# تسهيلات

پښتو شرح

# مشکوٰة

تاليف مولانا شاه فيصل

فاضل دار العلوم اسلاميه چارسده و امداد العلوم پشاور

د اوويشت (۲۷) خصوصياتو سره چې يولس (۱۱) په کښې دا دي

1. پېښوري پښتو سره بين القوسين د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه
2. د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
3. په ترجمه کښې بين القوسين د مرقاة المفاتيح د اضافي قيوداتو ترجمه
4. د حديث هرې جملې او د هغې ترجمې ته د آسانتيا دپاره نمبرې ورکول
5. د فقهي اختلافي مسئلو دلائلو آسان حل
6. د اوږدو احاديثو د متن او ترجمې تقسيم
7. د هر حديث د صحاح ستة [illegible] تخريج
8. د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتيح [illegible] د مشکلو لغاتو حل
9. د قوله په عنوان سره د [illegible] مشکلو جملو تشريح
10. د هر باب په اول کښې [illegible] خلاصه
11. د هر کتاب په اول کښې [illegible] مقدمه



تسهيلات

# تسهیلات

# پښتو شرح

# مشکواة

تالیف :- مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

نهم جلد (۹)

**د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دي**

① پیښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د گرانو ټکو اضافه
② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه
④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول
④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث
⑤ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم
⑥ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج
⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل
⑧ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح
⑨ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه
⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي

فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

# اجمالی فہرست

| شمار | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

# د احاديثو د عنواناتو فهرست

د ګوتمې داچولو بيان ۳۳۴

دپیزار بیان ۳۵۴



دمنجز کولو بیان ۳۶۲

# فهرست اختلاف مذاهب

# [۲۰] كِتَابُ الصَّيْدِ وَالذَّبَائِحِ

## دَښکار او ذبیحو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة و ثلاثون حديثاً مشتملة على ثلاث عشر مسئلة:**

① بيان كيفية الاصطياد وأحكام الصيد: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۱۹، ۲۰، ۳۱.

② حكم اللحم الذى لا يعلم تسمية الله عليه عند الذبح: ذكر عليه اسم الله ۶.

③ حرمة الذبح لغير الله تعالى: ۷.

④ ما يجوز به الذبح ولا يجوز: ۸، ۹، ۱۸، ۳۲.

⑤ آداب الذبح أمراً ونهياً: ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۲۵، ۲۶، ۲۷.

⑥ حكم الذبح الإضطرارى: ۸، ۱۸.

⑦ طريق وسم الحيوان أمراً ونهياً: ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷.

⑧ النهي عن صيد كلاب المجوس: ۲۲.

⑨ حكم استعمال أواني الكفرة وأطعمتهم: ۳، ۲۳، ۲۴.

⑩ طريق ذبح الجنين: ۲۸، ۲۹.

⑪ حكم ذبح الحيوان للأكل: ۳۰.

⑫ حكم ما يقطع من الحيوان: ۳۱.

⑬ حكم دواب البحر: ۳۳.

**د صید لغوی معنی:** صید مصدر دې داکله دَ اصطیاد په معنی کښې هم راځي یعنی ښکار کول او کله دَاسم مفعول المصید په معنی کښې راځي یعنی ښکار شوې څیز.

**دښکار د ممانعت صورتونه:** په عامو حالاتو او مکاناتو کښې ښکار کول مباح او جائز دی البته بعضې حالاتو کښې ښکار کول جائز نه دی هغه دا دی.

① په حرم مکی کښې ښکار کول

② دَ احرام په حالت کښې په حرم او غیر حرم کښې ښکار کول

**دښکار حکم:** ① د کتاب الله او سنت رسول الله او په اجماع امت سره دَ ښکار اباحت ثابت دې

② امام مالك فرمائی که یو سړې صرف دَلهو لعب او لوبو توقو دَپاره ښکار کوی نو دا مکروه دې

**په عهد رسالت کښې ښکار:** نبی کریم پخپله ښکار نه دې کړې البته ښکار ئی جائز گرځولې دې او دائی خوړلې هم دې. ښکاری ئی په ښکار کولو سره لیدلې دې دَ صحابه کرامو په

طبقه کښې د تولونه زیات د ښکار د مسئلو عدی بن حاتم تپوس کړی دی اودې ښکاری هم وو بیا ابوثعلبه خشنی رضی الله عنه پوښتنه کړې ده دې هم ښکاری وو څه نورو صحابه کرامو هم ښکار کړې دې لکه ابوقتاده او سلمه بن اکوع رضی الله عنهما وغیره

**قوله:** ذبائح:

**د ذبائح لغوی معنی:** ذبائح جمعې دا ذبیحة جمع ده د ذبح کولو عمل ته وائی

**د کتاب الصید والذبائح معنی:** د ذبائح د لفظ سره دا دویم مفهوم زیات مناسب دې مطلب به داشی چه د ښکار او مذبوحه څیزونو بیان

**د ذبیحه دوه قسمونه:** ① **ذبحه اختیاری:** په دې کښې دا ضروری دی چه د حلقوم اکثر رګونه پرې کړې شی او بسم الله ورسره وی

② **ذبحه اضطراری:** په دې کښې د ځناور یا د مرغئی په کومه حصه چه زخم اولګی هغه د ذبح د پاره کافی ده په دې شرط چه د ویشتلو په وخت ئی بسم الله اوتکبیر وئیلې وی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۳] د سپی او غشی په ذریعه د کړې شوی ښکار مسئله**

۲۰۳-[۱] (۱) ①«عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②قَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ فَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ، ③فَإِنْ أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَأَدْرَكْتَهُ حَيًّا فَاذْبَحْهُ، ④وَإِنْ أَدْرَكْتَهُ قَدْ قَتَلَ ⑤وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ فَكُلْهُ، ⑥ وَإِنْ أَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ، ⑦فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ، ⑧فَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ كَلْبًا غَيْرَهُ ⑨وَقَدْ قَتَلَ فَلَا تَأْكُلْ، ⑩فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي أَيُّهُمَا قَتَلَ.

**ترجمه:** ① حضرت عدي ابن حاتم رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل هر کله چې ته خپل سپي پريږدي، نو د الله جل جلاله نوم ذکر کوه [يعني کله چې ته د خپل تربيت يافته سپي د پريخودلو اراده وکړي، نوهغه په الله اکبر بسم الله ويلو سره پريږده] ③ بيا که هغه سپي تا دپاره ښکار نيولي وي، او هغه ښکار ته ژوندي بيا مومي نوهغه ذبح کړه [که هغه قصداً ذبح نه کړي، نو د هغې خوړل به حرام وي، ځکه چې په دې صورت کې به هغه مردار وي] ④ او که ته هغه ښکار په داسې حالت کې پيدا کړې، چې سپي هغه وژلي دي، ⑤ ليکن د هغې نه يې څه نه دي خوړلي، نو ته هغه (ښکار) خوره، ⑥ ليکن که هغه سپي د هغې نه څه خوړلي وي، نو بيا ته هغه مه خوره، ⑦ ځکه چې په دې صورت کې اد دې نه علاوه نور هيڅ

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصید/باب الصید إذا غاب عنه یومین أو ثلاثة (رقم-۵٤۸٤)ومسلم فی کتاب الصید/باب الصید بالکلاب المعلمة (رقم-۶ - (۱۹۲۹) والترمذی فی کتاب الصید عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکلب یأکل من الصید (رقم-۱٤۷۰) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب إذا وجد مع کلبه کلبا غیره (رقم-٤۲۶۹)واحمد فی المسند: والترمذی فی/٤۵۶

نشي ونيل كيدي چې] سپي به هغه ښکار د خان د پاره نيولي وي [کوم چې د دې خبري علامه به وي چې سپي تربيت يافته نه دي، حالانکه د هغه سپي نيولي ښکار حلال دی. کوم چې تربيت يافته وي] ⑧ او که تا د ښکار سره د خپل سپي سره د بل چا سپي هم وليدلو.⑨ په داسې حالت کې چې په هغه دواړو کې يو سپي هغه ښکار وژلي وی. نو [په دي صورت کې هم] هغه ښکار مه خوره.⑩ ځکه چې دا نه ده معلومه چې هغه ښکار په هغه دواړو کې کوم سپي وژلي دي. [نو کيدي شي چې هغه تربيت يافته (ترېند) نه وي. يا د هغې پريخودنکي د پريخودلو په وخت کښې بسم الله نه وي ويلي. يا داسې سړي پريښي وي. چې د هغه د لاس ذبيحه حلاله نه وي (لکه مجوسي يا بت پرست وغيره) ]

① وَإِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ ② فَاذْكُرِ اسْمَ اللهِ ③ فَإِنْ غَابَ عَنْكَ يَوْمًا ④ فَلَمْ تَجِدْ فِيهِ إِلَّا أَثَرَ سَهْمِكَ فَكُلْ إِنْ شِئْتَ ⑤ وَإِنْ وَجَدْتَهُ غَرِيقًا فِي الْمَاءِ فَلَا تَأْكُلْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او هر کله چې ته په يو ښکار خپل غشي اوولې.② نو هغه وخت د الله ﷻ نوم ذکر کوه [يعنی په بسم الله ويلو سره غشی چلوه]③ او بيا که هغه ښکار تر يوې ورځی ستا د نظر نه غائب وي.④ او د دې نه پس تاته معلومه شي، نو که ته غواړې. نو هغه وخوره په شرط د دې چې ته په هغه ښکار کې د خپل غشی د نښې نه علاوه بله څه نښه بيا نه مومي. ⑤ اوکه ښکار تاته په اوبو کې ډوب ملاو شي، [او په هغې کې ستا د غشی نښه هم موجود وي] نو ته هغه مه خوره [ځکه ممکنه ده چې هغه ستا په غشی سره نه وي مړ شوي، بلکې په اوبو کې په ډوبيدو سره مړ شوي وي] بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ①فَإِنْ أَمْسَكَ: که ايسار ئې کړو تاله، وې ساتلو ستا دپاره. ②رَمَيْتَ: اولې ته، ورخوشې کړې ته.

**تسهيلات:**

**عدی بن حاتم طائی مختصر تعارف:** د حديث د راوی حضرت عدی بن حاتم طائی رضی الله عنه نوم عدی.د پلار نوم ئې طائی وو.د عدی خاندان سره تعلق ساتلو.د ظهور اسلام په وخت کښې د قبيلې طی سردار وو.خو چه د اسلامی فتوحاتو سيلاب کله د ده قبيلې طرف ته هم متوجه شو نو دې پريشانه شو او د اسلامی لښکر مقابلې توان او طاقت په کښې نه وو د دې وجهې د خپل خاندان سره شام طرف ته لاړل (۳).

**د اسلام قبلول:** حاتم طائی سره د ټول خاندانه شام ته لاړل خو لور ترې نه پاتې شوه او هغه د مسلمانانو په قيديانو کښې راغله هغې د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چه ما د فديې ورکولو دپاره څوک نشته ته په ما باندې احسان اوکړه او ما پريږده نبی کريم ﷺ ترې تپوس اوکړو ته د چا څه ئې؟ دې ورته اووئيل حضرت زه د عدی لور يم کوم چه د طې قبيلې سردار وو او شام ته اوتختيدل نبی کريم ﷺ د دوی د آزادئ اعلان اوکړواو ډير

په اكرام اوعزت سره ئې د څو صحابه كرامو سره كړه او شام ته ئې اوليږله كله چه هلته اورسيده نوحاتم طائى ته حاضرل نو هغه د خپلې لور نه تپوس اوكړو ته يوه پيغله جينۍ ئې محمد او دده ملګرو ستا عزت خو نه دې اخستې هغې ورته اوونيل اې زما پلار حضرت محمد چه زما د عزت ناموس كوم حفاظت كړې دې هغه به تاسو هم زما نه وى كړې اوپه دې سفر كښې چه د هغه صحابؤ زما د عزت كوم حفاظت كړې دې دغه شان حفاظت به زما ورونړو هم زما د عزت نه وى كړې په دې اوريدو سره او د نبى كريم ﷺ د حسن اخلاقو نه ډيرمتاثر شواو واپس راغلل په د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او ايمان ئې راوړل په دوى كښې حضرت عدى هم وو نبى كريم ﷺ دوى دخپلې قبيلې سردار جوړ كړل د نبى كريم ﷺ د وفات نه پس چه كله د عربو مختلفې قبيلې د اسلام نه بيرته واوړيدې نو په دغه نازک وخت كښې هم دحضرت عدى په كوشش سره د دوى د قبيلې خلق د ارتداد نه محفوظ وو او په خپل ايمان باندې قائم وو.

**عبادت:** هميشه دپاره به په اودس كښې اوسيدو او د مانځه په وخت كښې بۀ ورته د اودس كولو ضرورت نه پښيدل

**وفات:** په آخرى وخت كښې هم په كوفه كښې اوسيدل او په كوفه كښې په ۲۷ هجرى كښې وفات شو

**روايات:** د دوى نه ۲۲ روايات مروى دى په دې كښې ۲ متفق عليه دى او په ۳ كښې بخارى اوپه ۲ كښې مسلم منفرد دې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ:

**د ځناورو تربيت يافته كيدو درې شرطونه:** فقهاؤ دَ ځناور دَ تعليم يافته كيدودپاره درې شرطونه بيان كړى دى.

① اول شرط چه كله په ښكارپسې پريخودې شى نو چه ښه منډه وهى

② دويم شرط دا چه دَمنډې په وخت چه كله واپس راؤ غوښتې شى نوچه فوراً راواپس شى.

③ دريم شرط دا چه ښكار اونيسى مالك له ئې راوړى پخپله ئې بالكل اونه خورى دغه شان تعليم يافته كيږى دَده دَ پريخودو په وخت بسم الله ونيلوسره ښكار حلاليږى. دَ هغه په وژلوسره ذبح مكمل كيږى اوكه ښكار تردغه وخته پورې ژوندې وى نوبيا دَهغه ذبح كول ضرورى دى.

**د مرغانو تربيت يافته كيدو دوه شرطونه:**

① كله چه په ښكار بازوغيره پريخودې شى نوچه ښه الوتوسره منډه كړى.

② چه کله واپس راؤغوښتې شي نوچه ښه الوتوسره واپس راشي ښکار نه خوړل دَ مرغو دَپاره شرط نه دې

**د ښکاری سپی د ښکار د خوړلو نه پس د ښکار په حکم کښې ۲ مذاهب:**

①که چرې سپی اوخوړلو اوښکار مړشو امام مالك رحمه الله اوامام اوزاعی شام رحمه الله فرمائی چه دغه شان ښکار حلال دې دَدې خوراك هم حلال دې

② جمهور ائمه فرمائی چه دَداسې ښکارخوړل حرام دی.

**داول فریق دلیل:** په سنن ابی داؤد کښې روایت دې چې الفاظ ئې دا دی «اذاأرسلت کلبك وذکرت اسم الله علیه فکل وان أکل منه» [ابوداؤد ۳/۳۸] یعنی کله چې تا ښکاری سپې (په ښکار پسې) خوشئ کړلو او د الله تعالی نوم دې واخستلو نو هغه خوره اګر که سپی د هغې څخه خوراک کړی وی.

**د اول فریق د دلیل درې جوابونه:** ① دَ امام مالك رحمه الله دَ مستدل په مقابله کښې دا حدیث الباب اقویٰ اومضبوط دې. نو هغه د دې مقابله نشی کولې

② دَ قرآن آیت «مِمَّآ اَمۡسَکۡنَ عَلَیۡکُمۡ» کښې په واضحه توګه دَ حلال کیدودَپاره دَ ښکار نه خوړل بلکه امساك شرط دې. په دې وجه دَ امام مالك رحمه الله مستدل به پریخودلې کیږی.

③ دریم جواب دادې "فلاتأکل" کښې نهی ده اومقابله دَ حل او دَحرمت کښې ترجیح حرمت ته ورکولې کیږی.

**د دویم فریق دلیل:** ① جمهورو دَزیر بحث حدیث "وان أکل فلاتأکل" نه استدلال کړې دې

**قوله: فَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ كَلْبًا غَيْرَهُ:**

**دکلب معلم سره د غیرمعلم کلب دښکارحکم:** په دې حدیث کښې دا دویمه مسئله ده دَدې تشریح داسې ده که ښکاری سپی سره دَ یوسړی بل سپې شامل شو اوهغه ښکار اوو‌ژلو نو په دې حدیث کښې دی چه دغه ښکار مه خورئ

**د ممانعت اکل دوه وجوهات:** څکه چه اصل خبره دَ بسم الله وئیلو اونه وئیلو ده اودا دویم سپې شامل شو په ده کښې دوه خبرې مشکوك دی

① دا نه ده معلومه چه دغه سپې معلم دې که نه، ډیر ممکن ده چه هغه غیرمعلم وی

② دا چه نه ده معلومه چه دَ سپی پریخودو وخت کښې دَ الله تعالی نوم اخستوسره بسم الله وئیلې شوې ده که نه. په دې وجه نبی کریم فرمائیلی دی چه دا مه خورئ.

**قوله: فَاذْكُرِ اسْمَ اللهِ:**

**د متروك التسمیه ذبیحې په حکم کښې ۲ مذاهب:**

دَ سپی پریخودو په وخت یا غشی ویشتو په وخت یا په ذبح اختیاری کښې که چرې چا په

قصد سره بسم الله ونیل پریخودل نو ددې ذبیحې په حلت او حرمت کښې دَفقهاؤ اختلاف دې
① دَ امام شافعي رحمه الله په نیز که چرې چا بسم الله عمداً په قصد سره پریخوده یا ئې په هیره سره پریخوده په هرحالت کښې ښکار حلال دې دَ حنابلو هم یو ضعیف قول داشان دې
② داؤد ظاهري او امام شعبي رحمه الله وائي چه په هرحالت کښې ښکار حرام دې
③ امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله جمهور فرمائي چه که چا تسمیه عمداً ترك کړه نوښکار حرام دې او که په هیره بسم الله پاتې شوه نوښکار حلال دې
**د اول فریق دلیل:** په قرآن اوحدیث کښې دَ بسم الله کوم ذکر دې هغه عام دې که غواړې په ژبه سره اووائي او که غواړې په زړه کښې دې اووائي اودَمسلمان په زړه کښې بسم الله او دَالله تعالی نوم هروخت موجود دې لهذا متروکه التسمیه ذبیحه حلاله ده
**د دویم فریق دلیل:** دَ قرآن پاك آیت ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ [سورة انعام: ۱۱۲] عام اومطلق دې که تسمیه په هیره سره پاتې شي یا قصداً پریخودې شي ذبیحه حرام ده
**د دریم فریق دلائل:** ① په آیت کښې ﴿وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ وئیلې شوي دي چه دَ بسم الله پریخودل فسق دې اوفسق هغه فعل ته وائي په کوم کښې چه قصد او اراده وي که چرې په فعل کښې قصد اواراده نه وي هغه فسق نه دې.لهذا عمداً تسمیه ترك کولوسره ذبیحه حرام ده او په هیره پریخودو سره به ذبیحه حرام نه وي ځکه چه حدیث ((رفع عن أمتي الخطأ والنسيان)) یوه ضابطه ده
② جمهورو دَدې باب تړلو احادیثوځخه هم استدلال کړې دې په کوم کښې چه دَ تسمیه شرط ذکردې.
**د ښکار د حلت شرطونه:** ① دَ ښکار حلال کیدواول شرط دادې چه ښکار کونکې دې مسلمان وي دکافر ښکار اوذبیحه حرام ده.
② چه دَ سپي وغیره دَ پریخودو وخت کښې ښکاري دَ الله نوم اخستې وي قصداً که تسمیه چرته پریخودې شي نوښکار به حلال نه وي.
③ چه ښکاري سپې ښکاري سړې پریخودې وي دا دویم شرط دې که خپل پخپله سپي ښکار اونیولو حاضر ئې کړو نو هغه حلال نه دې
④ تعلیم یافته سپي هم که چرته ښکارکولونه پس ښکار اوخوړلو نودَ باقي پاتې استعمالول دَ سړي دَپاره حرام دي
⑤ دکوم ځناور یا مرغئي په ذریعه چه ښکار کولې شي هغه دې معلم اوغیرمعلم ښکار دَ ذبح نه بغیر حرام دې.
⑥ که چرې ښکار اورك شي اودَ سخاکیدونه مخکښې ملاؤ شي نودَهغې خوړل حلال دي

او كه چرې سخاشي يا په اوبو كښې پريوتلوسره ډوب شي او مړشي نود هغې خوړل حلال نه دي
⑥ دتعليم يافته سپي دښكارحلال كيدودپاره شپږم شرط دادې چه سپي په ښكار زخم لګولې وي كه چرې بغيردزخم نه ښكار مړشي نودي استعمال حرام دې

**[۴۰۶۵] د توپک د ګولئ د ښکار حکم**

۴۰۶۵— [۲] ( )[١] وَعَنْهُ، قَالَ: «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! [٢] إِنَّا نُرْسِلُ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ، [٣] قَالَ: "كُلْ مَا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ" [٤] قُلْتُ: وَإِنْ قَتَلْنَ؟ [٥] قَالَ: "وَإِنْ قَتَلْنَ" [٦] قُلْتُ: إِنَّا نَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ. [٧] قَالَ: "كُلْ مَا خَزَقَ، [٨] وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَ [٩] فَإِنَّهُ وَقِيذٌ فَلَا تَأْكُلْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او حضرت عدي ﷺ وايي چې ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ [٢] مونږ تربيت يافته سپي په ښكار پسې پريږدو، [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې ستاسو سپي چې تاسو د پاره كوم ښكار نيولو سره وساتي، هغه خورئ، [۴] ما عرض وكړو اګر كه هغه سپي ښكار ووژني، [۵] حضور ﷺ وفرمايل اګر كه وي وژني، [٦] بيا ما عرض وكړو چې مونږ په ښكار بغير د (وزرو) غشی چلوؤ [او د هغې په ذريعه ښكار كوؤ؟ نو آيا هغه ښكار خوړل صحيح دي؟ [٧] حضور ﷺ وفرمايل كوم ښكار چې غشی زخمي كړي [يعني كه هغه غشی په سيده تلو سره د څوكي د جانب نه ښكار ته ولګيږي او هغه مړ شي] نو هغه خورئ، [٨] او كه هغه غشی (د څوكي دجانب نه نه) بلكي د عرض يعنی د پلنوالي د جانب نه په هغه ښكار داسې ولګيږي، [چې هغه ښكار زخمي نه كړي] او هغه مړ شي، [٩] نو هغه وقيذ دي، هغه مه خورئ، (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① اَلْمُعَلَّمَةَ: تعليم يافته، تربيت يافته، ② الْمِعْرَاضِ: پلنوالي، ③ خَزَقَ: چه زخمی نې كړي. ④ بِعَرْضِهِ: پلنوالی سره، ⑤ وَقِيذٌ: زورلې شوې (بې هوشه)

**تسهيلات:**

**قوله**: إِنَّا نَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ:

**په پلنوالی د ښكار شوی څيز حكم**: يعنی كله مونږ ښكارباندې غشي ورپريږدو هغه لاړشی اوپه پلنوالی كښې اولګی دهغې څه حكم دې؟ نبی كريم په جواب كښې فرمائيلی دی "كل ماخزق" خزق ورننوتلو او نافذ كيدوته وائی په څوكه او تيره طرف باندې زخمی كول مراد دی. معراض هغه غشي دې چه په پلنوباندې ښكارباندې اولګی په تيره طرف په طرف باندې اونه لګی داد وقيذ په حكم كښې دې ښكارحلال نه دې. ددې نه دهرهغه دروند څيز

---

[1]) اخرجه البخاری فی كتاب الذبائح والصيد/باب ما أصاب المعراض بعرضه (رقم-۵۴۷۷) ومسلم فی كتاب الصيد/باب الصيد بالكلاب المعلمة (رقم-١ - (١٩٢٩) وابوداود فی كتاب الصيد/باب فی الصيد (رقم-٢٨٤٧) والنسائی فی كتاب الصيد والذبائح/باب صيد المعراض (رقم-٤٣٠٥) وابن ماجه فی كتاب الصيد/باب صيد المعراض (رقم-٣٢١٤) واحمد فی المسند:والترمذی فی/٢٨٠

ضابطه راوځی په کوم کښې چه تیره طرف نه وی بلکه خپل بوج، زور او دباؤ سره ښکار اوشلوی

## په پس ځیز د ښکار شوی صید په حکم کښې ۲ مذاهب:

دَغیر تیره مخ والا ځیزباندې که ښکار اوشی

① نودَ امام مکحول او اوازعی شامی رحمه الله او دَ نورو څه علماؤ رائې داده چه دَ ټوپك په ګولئی سره کړې شوې ښکارحلال دې.

② دَ جمهور علماؤ رائې داده چه دَ تیره مخ نه علاوه او زخم لګیدونه بغیردَ دباؤ په ذریعه ویشتلې شوې ښکار حلال نه دې. لهذادَ ټوپك په ګولئی سره ښکار حلال نه دې چه ښکاره ژوندې وی اوذبح اختیاری اوشی نوحلال دې.

**داول فریق دلیل:** دَ قرآن کریم په آیت [مِمَّآ أَمۡسَكۡنَ عَلَيۡكُمۡ] [سورة مائده: ۴] کښې دَ زخم ذکر نشته دې. آیت مطلق دې دا زخم سره مقید کولې نه شی.لهذا غیرتیزمخ والا ځیزسره ښکار جائز دې.

**داول فریق د دلیل جواب:** جواب دا دې چه [مِمَّآ أَمۡسَكۡنَ] کښې امساك قیددَ عدم اکل دَپاره دې چه ستاسو دَ پاره ئی رامنع کړی اودَ ځان دَپاره ئی رامنع نه کړی. دَدې آیت دَ زخم لګیدو یا نه لګیدو سره هیڅ تعلق نشته بلکه امساك اوزخم دواړه یوځائی کیدې هم شی.

**د دویم فریق دلیل:** جمهور دَ مذکوره حدیث نه استدلال کوی چه نبی کریم دَمعراض ښکار وقیذ ګرځولې دې اودَ خزق شرط ئی اولګولو چه په تیزمخ سره زخم لګیدلې وی اووینه بهیدلې وی نوبیا حلال دې ګنی نه دې.

**د ذبحې دوه طریقې:** په دې سلسله کښې مولانا خالد سیف الله رحمانی لیکل کړی دی چې خلاصه بې دا ده.. دَ ذبح دوه طریقې دی

① یودَ هغه څناور دَ ذبح طریقه چه دَ سرې په قابوکښې وی دې ته دَ فقهې په اصطلاح کښې ذبح اختیاری وائی

② دویم صورت دَ داسې څناور دَ ذبح کولودې چه دَ سړی په قابوکښې نه وی مثلاً دَ ښکارڅناور کوم ته چه دَ لرې نه نښه اخلی او دَ ویشتلو کوشش ئی کیږی. دَهغې دَ ذبح طریقه دَ هغه څناورو نه لږه مختلف ده کوم چه دَ انسان په قابوکښې وی. اودې ته دَ فقهې په اصطلاح کښې ذبح اضطراری وائی.

په ذبح اضطراری کښې دَ حلق خاص رګونه پرې کول ضروری نه دی بلکه دومره اندازه باندې کافی دی چه کوم څیزدَ ښکاردَپاره استعمال کړې شی چه هغه ښکار زخمی کړی اودَ زخمی کولونه پس که چرې ښکار کونکی ښکار په ژوندی حالت کښې اونیولو نواوس

په دغه حلق رګونه پرې کول کيږي اوکه دهغه د رسيدونه مخکښې ښاور مړشوې وو نو د هغه زخمي کيدل کافي دی او اوس هغه حلال دې د ښکار په معامله کښې دا خصوصي سهولت د قرآن اوحديث د تصريحاتو نه ماخوذ دې

**د ټوپک په ګولۍ لګيدلی ښکار حکم:** ښکاري ښاور د ټوپك په ګولئي سره د ويشتلو په صورت کښې که ټوپك چلونکې مسلمان وی اود ګولئي د چلولوپه وخت بسم الله الله اکبر اووائي اوهغه باندې ښکار اولګی اود هغه مرګ واقع شی نودا ښکار به حلال وی که حرام د هدايه او د فقهې د نورو کتابونود تصريح نه معلوميږی که چرې د دې خبرې يقين اوشی چه د ښاور مرګ د زخم نه شوې دې نو هغه بيشکه حلال دې اوکه يقين وی چه په ګذار سره شوې نو بيشکه حرام دې د هدايه عبارت دادې "والأصل فی هذه المسائل أن الموت إن كان مضافا الى الجراح بيقين كان حلالا وان كان مضافا الى الثقل بيقين كان حراما وان وقع الشك ولا يدري مات بالجرح او بالثقل كان حراما احتياطاً".

**د مفتي محمود صاحب د ټوپک د ښکار په حکم کښې استفتاء:** مولانا مفتي محمود صاحب نومبر ۱۹۵۶ء په مطابق ربيع الاول ۱۳۷۶ھ مولانا مفتي رشيداحمدلدهيانوی چه هغه وخت په دارالعلوم کراچئی کښې مفتي اومدرس وو ته يو خط اوليکلو دې مسئله (د ټوپك په ګولئي سره ښکار) کښې احقرته پخپله تردد دې. په لاندينو دلائلوباندې تاسو نظر واچوئی او په خپله رائې خبردارې راکړئی اود نفس دلائل لاندې "فانظر الى ما قال ولا تنظر الى من قال" په موجب رائې قائمه کړئی.

دې نه پس مولانا مفتي محمود صاحب رحمه الله په حلت او حرمت باندې دلالت کونکی ډير روايات ذکرکولوسره خپله رائې ليکلې ده هغه په ذکرشوی خط کښې ليکی او اوس د کوترې نه واخله ترد هوسئی پورې ښکارهم په ټوپك سره کيږی "قدرت على الذكاة الاختيارية" شاذ اوهم نادر ملاويدې شی. اخراج الدم هم کامل وی. نو په دې ضرورت شديده کښې باوجود د تميز الدم المسفوح باکمل وجه وهوالمقصود د حرام ګرځولو معنی به دا شی چه د دې زمانې خلق دې د الله تعالی د رخصت نه متمتع نه وی. مولانا مفتي محمود رحمه الله د خپلې رائې په اظهارکښې څومره احتياط نه کار اخلی د دې اندازه د دې خبرې نه لګولې شی چه د دواړو قسمه دلائلو ذکرکولو باوجود ډير په احتياط سره خپله رائې ليکی اودد دې د وجهې طرف ته هم اشاره کوی.

دا صحيح ده چه بغير د څه وجهې د جديد آلات او جديد زمانې سره په احکامو کښې ترامیم کول الحاد او زندقه دی اود فقهاء کرامو رحمهم الله عبارتونو اواشاراتو خلاف څه حکم نافذ کول هم د فتنه نه خالی نه دی. ليکن د شرعی دلائلو په موجودګئی کښې د فقهاء کرامو د مقررکړې شوې اصولو لاندې په يوه مسئله باندې غور نه کول به هم

دَ ملامتيا قابل وى جديد آلات او ضروريات زمانه باندې غور اوفکر نه كول اودَ ټوپك ګولئى په بندوقهٔ طين باندې قياس كولوسره خان خلاصول دَ علماؤ دَ شان سره ښه نه دى اوبيا ټوپك كښې صرف په ګولئى او په چهرو سره خو ښكار نه كيږى بلكه دَ خوكيدارې ګولئى كارتوس خودَ معراض دَ خوكې نه كم نه وى. ټول په يوحكم كښې راوړل به څنګه صحيح شى.

**د مفتي رشيد احمد صاحب د ټوپک د ښکار په باره کښې فتوی:** مولانا رشيد احمد لدهيانوى دَ فقهاء كرامو ډيرو عبارتونو حواله وركړې ده اودَ عقلى دلائلونه ئى هم امداد اخستې دې. ليكن په آخره كښې دَ مولانامفتى محمود رحمه الله دَدې قول "بلكه دَ نوكدارې ګولئى څوكه خو دَمعراض دَخوكې نه كمه نه وى"لاندې ليكى: اقول دَ داسې ګولئى دَ ښكار په حلت كښې هيڅ شك نشته اونه په دې كښې دَ څه قسم اختلاف ګنجائش دې. امدادالمفتيين كښې هم دَداسې ښكار دَحلت فتوىٰ درج ده.البته كه داسې څه ګولئ دومره وړوكى څناور اوويشتلو چه دَ ګولئى دَدروندوالى طاقت نه شى لرلې. يعنى كه چرې ګولئى تيره څوكداره نه وه نوبياهم په ثقل اودروندوالى سره څناور مړكيدې شو نودا څناور به حلال نه وى.

**د مولانا محمد ايوب جان بنوری رائې:** مولانا محمدايوب جان صاحب بنورى رحمه الله دَ حضرت مفتى محمودصاحب دَ مؤقف وضاحت داسې كوى چه حضرت مفتى صاحب ډيرزيات دلائل پيش كړى دى. په هغې كښې يودليل داهم وو چه په ټوپك باندې كله ډز كيږى نوهغه وخت دَدې نه داسې اور راوځى اوهغه زخمى كيږى او په اور سره فقهاء ذبيحه حلال ګرځوى په دې وجه دا حلال دې.

**[۲۰۳۱] دَاهل کتابو په لوښو کښې د خوراک کولو حکم**

۲۰۳۱—[۳] ()[1] ﴿۱﴾«وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ﴿۲﴾ قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللّٰهِ! إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ.﴿۳﴾ أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ؟﴿۴﴾ وَبِأَرْضِ صَيْدٍ﴿۵﴾ أَصِيدُ بِقَوْسِي وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ ﴿۶﴾ وَبِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ،﴿۷﴾ فَمَا يَصْلُحُ لِي؟﴿۸﴾ قَالَ: أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ آنِيَةِ أَهْلِ الْكِتَابِ،﴿۹﴾ فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَهَا فَلَا تَأْكُلُوا فِيهَا،﴿۱۰﴾ وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَاغْسِلُوا وَكُلُوا فِيهَا،

**ترجمه:** ﴿۱﴾او حضرت ابو ثعلبه خشنى رضى الله عنه وايي ﴿۲﴾ چې ما عرض وكړو چې اې د الله نبي! مونږ د يو داسې قوم په منځ كې وسيږو چې اهلِ كتاب دي،﴿۳﴾ نو آيا مونږ د هغوئ په لوښو كې خوراک څښاك كولې شو؟﴿۴﴾ او مونږ په داسې علاقه كې اوسيږو چې هلته ښكار ډير دي.﴿۵﴾ زه د خپلې ليندې (غشى) او د غير تربيت يافته سپي په ذريعه هم ښكار كوم، ﴿۶﴾

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الذبائح والصيد/باب صيد القوس (رقم-۵۴۷۸) ومسلم فى كتاب الصيد/باب الصيد بالكلاب المعلمة(رقم-۸ - (۱۹۳۰) وابوداود فى كتاب الصيد/باب فى الصيد (رقم-۲۸۵۵) والنسائى فى كتاب الصيد والذبائح/باب صيد الكلب الذى ليس بمعلم (رقم-۴۲۶۶)

او په تربیت یافته سپي سره هم ښکار کوم ⑦ نو زما د پاره کوم څيز درست دي؟ ⑧ حضور ﷺ وفرمايل تر څو چې د هغه شي تعلق دي چې تا د اهل کتابو د لوښو باره کې پوښتنه کړې ده، ⑨ نو د هغې متعلق دا حکم دي چه که، د هغه لوښو نه علاوه بل لوښي بيا مومې، نو بيا د هغوئ په لوښو کې يې مه خورئ او مه څکئ ⑩ او که بل لوښي بيا نه مومې، نو مخکې هغه ښه اوينځئ بيا په هغه کې خوراک څښاك کوئ

**حل اللغات:** ① قَوْسِ: قوس ليندې ته وائي مراد ترې غشي دي

> ① وَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ ② فَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ، ③ وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ ④ فَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ، ⑤ وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ غَيْرِ مُعَلَّمٍ ⑥ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① پاتې شوه د ښکار خبره نو کوم حيوان چې تا په خپل غشي سره ښکار کړې دي ② او د غشي د پريخودلو په وخت کښې د الله ﷻ نوم اخستي دي، نو هغه هم خوره، ③ دغه شان کوم حيوان چې تا د تربيت يافته سپي په ذريعه ښکار کړې دي ④ او د هغه سپي د پريخودلو په وخت کښې دي، د الله ﷻ نوم اخستي دي، نو هغه هم خوره، ⑤ او کوم ښکار چې تا د غير تربيت يافته سپي په ذريعه ونيولو، ⑥ او هغه دي د ذبح کولو قابل (يعني ژوندي) بياموندو، او بيا دې ذبح کړو، نو هغه هم خوړلې شي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ⑥ ذَكَاتَهُ: ذبح کول دهغې

**تسهيلات:**

**قوله:** أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ:

**د کافرانو د لوښو د استعمال صورتونه او حکمونه:** ① که چرې هغوی دَ خنزير غوښه کېخودې وی يا دَ شرابو دپاره استعمال شوې وی نو که په دې صورت کښې بل څه لوښي ملاويدې شی نو ددې لوښو استعمال قطعاً جائز نه دی

② په مذکوره صورت کښې که بل څه لوښي نه ملاويږی نو دَ هغې وينځلو سره استعمالول جائز دی مجبوری ده

③ که دَ اهل کتابو دا لوښي په شرابو وغيره کښې نه دی استعمال شوی نو بيا صرف وينځلو سره استعمالول جائز دی سره ددې چه خپل لوښي موجود وی

**دحديث مقصود:** اسلام غواړی چه په مسلمانانو کښې اسلامی غيرت او حميت باقی وی څکه چه زيات ګډوډ کيدلو سره په مزه مزه سرې دَ غيرمسلمو په معاشره کښې ورکيږی بداخلاقی جائز نه ده ليکن دَ اخلاقو هم يو مقام وی اخلاق دَ دې نوم نه دې چه دَ الله تعالی دښمن سره دَزړه مينه پيدا شی. دَزير بحث حديث اشاره هم دغه ده چه که چرې خپل لوښي موجود وی نو دَ کافرانو لوښي مه استعمالوئ.

[٣٠٦٧] د بدبويه غوښو حکم

٣٠٦٧-[٤] (١) ① وَعَنْهُ، قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«إِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ ③ فَغَابَ عَنْكَ ④ فَأَدْرَكْتَهُ فَكُلْ مَا لَمْ يُنْتِنْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو ثعلبه خشني ﷺ وايي ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل که ته د الله ﷻ د نوم په اخستو سره په يو ښکار خپل غشی وچلوې، ③ او بيا هغه ښکار غشي خوړلو سره ستا د نظر نه غائب شی [يعني په يو داسې ځاي کې مړ شي چې هغه وخت تا ته ملاو نشوا ④ او بيا هغه ستا لاس ته راشي ا]و ته په هغه کې د خپل غشي نښه ليدو سره يقين وکړې، چې دا ستا د هغه غشي د لګيدو نه مړ شوي دي] نو ته هغه خوړلی شې، تر څو چې د هغې په بوي کې تغير پيدا نشي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① بِسَهْمِكَ: په غشي خپل سره، ② مَا لَمْ يُنْتِنْ: چه بد بويه شوي نه وی، خراب شوي نه وی

**تسهيلات:**

**قوله: فَكُلْ مَا لَمْ يُنْتِنْ:**

**د بدبو داره ښکار د خوړلو حکم:** مثلاً يوسړی مرغئی وغيره ښکاره کړه ليکن هغه راپريوتله او په ځنګل کښې ورکه شوه. اوس دَ دغه ورك شوی ښکار څه حکم دې. په دې حديث کښې خودلې شوی دی چه ترکومې پورې دغه ښکار سخا شوې نه وی اوبدبوئی نه وی کړې دَهغه وخته پورې دَدې خوړل جائزدی.

**د مذکوره ښکار د خوړلوده شرطونه:** ① شرط دادې چه دغه ښکاردَ بل څه وجهې نه وی مړشوې بلکه دَ ښکاری سړی په غشي وغيره سره مړشوې وی

② دَ ويشتلو په وخت ئی بسم الله الله اکبر وئيلې وی.

**د بدبو داره ښکار خوړلو طبی نقصان:** ښکار په معمولی بدبوئی راتلوسره حرامیږی نه سره دَدې چه دَ صحت دَپاره نقصانی وی خوبيا هم په ښکاری باندې لازم دی چه هغه دغه ښکار ترممکن حده پورې اولټوی. په راتلونکی حديث کښې دی چه دريوورځونه پس هم ملاؤ شی بياهم جائزدې.

[٣٠٦٨] درې ورځې پس د موندلې شوی ښکار حکم

٣٠٦٨-[٥] (٢) ① وَعَنْهُ ② «عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الَّذِي يُدْرِكُ صَيْدَهُ بَعْدَ ثَلَاثٍ: ③ "فَكُلْهُ مَا لَمْ يُنْتِنْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

(١) اخرجه مسلم فى كتاب الصيد/باب إذا غاب عنه الصيد ثم وجده (رقم-٩ - (١٩٣١) وابوداود فى كتاب الصيد/باب في اتباع الصيد (رقم-٢٨٦١) واحمد فى المسند: ١٩٤/٤

(٢) اخرجه مسلم فى كتاب الصيد/باب إذا غاب عنه الصيد ثم وجده -١٠ - (١٩٣١) والنسائى فى كتاب الصيد والذبائح/باب الصيد إذا أنتن (رقم-٤٣٠٤)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوثعلبه خشني رضي الله عنه وايي [۲] چې نبي كريم ﷺ د هغه ښكارې په حق كې اچې خپل ښكار درې ورځې وروسته اوموميا وفرمايل [۳] چې هغه خوره. تر څو چې په هغه كې بدبويي نه وي پيدا شوی. «مسلم»

## [۲۰۳] د مشتبه ذبيحې حكم

۲۰۳-[۲] ( )[۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ هُنَا أَقْوَامًا [۳] حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ بِشِرْكٍ [۴] يَأْتُونَنَا بِلُحْمَانٍ [۵] لَا نَدْرِي أَيَذْكُرُونَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا أَمْ لَا؟ [۶] قَالَ: "اذْكُرُوا أَنْتُمُ اسْمَ اللَّهِ وَكُلُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] اچې يو خل صحابه ؤ عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ دلته څه خلق داسې هم دي [۳] چې د هغوئ د شرك زمانه ډيره نزدې ده (يعني هغه نوی مسلمانان دي چې هغوئ اسلامي احكام او ديني مسائل پوره پوره لا نه دي زده كړي) [۴] هغه خلق مونږ ته غوښه راوړي، [۵] او مونږ ته د دې علم نه وي. چې آيا هغوئ د ذبحې په وخت پرې د الله جل جلاله نوم اخستې دي كه نه؟ (نو آيا د هغوئ راوړې غوښه مونږ خوړلې شو كه نه؟) [۶] حضور ﷺ وفرمايل چې تاسو د الله جل جلاله نوم ورباندې اخلئ او هغه خورئ. «بخاري»

**حل اللغات:** ① حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ: نوی مسلمانان دی، د شرک زمانه ئې نزدې ده. د اسلام زمانه ئې نوې ده ② بِلُحْمَانٍ: غوښه راوړونكی دی.

**تسهيلات: قوله:** اذْكُرُوا أَنْتُمُ اسْمَ اللَّهِ:

**په اسلامي معاشره كښې په غوښه د بسم الله د تحقيق كولو حكم:** صحابه كرامو دَدې مسئلې تپوس كړې دې چه دَ مختلفو اطرافونه مختلفې غوښې راځي معلومه نه ده چه دَدې ذبيحه دَ كوم قسم ده دَدې خوړل څنګه دی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل شك مه كونی بسم الله وايئی او خورئی ئی دَدې حديث مطلب دا نه دې چه دَ ښاروی دَ ذبح په وخت كښې بسم الله نه ده وئيلې شوې نواوس دَمرګ نه پس بسم الله اووايه اوخورئی ئی بلكه مطلب دادې چه ذبحه كونكې كه چرې قابل دَ ذبح وی اودَ كومو اطرافونه غوښې راغلې وی هغه مسلمانان وی نودَ تحقيق، تفتيش او تشكيك اوتلبيس نه بغيرپه مسلمانانوباندې دَ ښه ګمان په بنياد بسم الله وئيلوسره خوړل پكار دی

**په غيراسلامي ملكونوكښې د تحقيق ضرورت:** البته كه سړې په غيراسلامي ملك كښې

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الذبائح والصيد/باب ذبيحة الأعراب ونحوهم (رقم-۵۵۰۷) وابوداود فى كتاب الضحايا/باب ما جاء فى أكل اللحم لا يدرى أذكر اسم الله عليه أم لا؟ (رقم-۲۸۲۹) والنسائى فى كتاب الضحايا/باب ذبيحة من لم يعرف (رقم-۴۴۳۶) وابن ماجه فى كتاب الذبائح/باب التسمية، عند الذبح (رقم-۳۱۷۴) كتاب الذبائح/باب ما جاء فى التسمية على الذبيحة (رقم-۱)

اوسیږی نوهلته د حلالو څیزونوپه غوښه کښې هم احتیاط پکار دې څکه چې پته نه لګی چې دا ذبحه په چا کړی وی ددې وجهې هلته د غوښې څخه علاوه نور څیزونه خوړل پکار دی مثلاً روټې، دال او مختلف سبزیانې

**د وسوسې سد باب:** حضرت مولانا شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی په دې حدیث سره نبی کریم دَ وسوسې دَ لرې کولودَپاره داسې بیان اوفرمائیلو چه وسواسی مه جوړیږئی بسم الله واینی اوخورئی ئی بسم الله وئیلوسره به ستاسو وسوسه ختمه شی. دامطلب ئی نه دې چه حرام غوښه باندې بسم الله وئیلوسره حلالیږی

## [۴۰۷۰] دغیرالله د نوم د ذبیحې حرمت

۴۰۷۰-[۷] ([1]) ⑴ وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: «سُئِلَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ⑵ هَلْ خَصَّكُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ؟ ⑶ فَقَالَ: مَا خَصَّنَا بِشَيْءٍ لَمْ يَعُمَّ بِهِ النَّاسَ ⑷ إِلَّا مَا فِي قِرَابِ سَيْفِي هَذَا ⑸ فَأَخْرَجَ صَحِيفَةً فِيهَا: ⑹ " لَعَنَ اللَّهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللَّهِ، ⑺ وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ سَرَقَ مَنَارَ الْأَرْضِ " ـ ⑻ وَفِي رِوَايَةٍ: ⑼ " مَنْ غَيَّرَ مَنَارَ الْأَرْضِ ⑽ وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ لَعَنَ وَالِدَهُ ⑾ وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ آوَى مُحْدِثًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑴ حضرت ابوطفیل وایی چې د حضرت علي (رض) نه دا پوښتنه وشوه ⑵ چې آیا رسول الله ﷺ تاسو (اهل بیت) ته د څه شي په ذریعه خصوصیت او امتیاز ورکړې دې؟ [یعنی آیا دا صحیح ده چې حضور ﷺ تاسو خلقو ته چې اهلِ بیت رسول الله ﷺ دی، څه داسې احکام درکړي دي، کوم چې نورو خلقو ته یې نه دي ورکړي؟] ⑶ حضرت علي رضي الله عنه وفرمایل چې نه، حضور ﷺ زمونږ دپاره یو داسې څیز نه دی مخصوص کړي، کوم چې یې د نورو د پاره عام کړي نه وی، ⑷ علاوه د دې څیز نه چې زما د توري په تیکي کې [د څو احکامو د مجموعي په صورت کی] موجود دې، [لیکن د دې احکامو باره کې هم ماته دا نه ده معلومه، چې دا احکام آیا خاص زمونږ د اهل بیتو د پاره خاص دي. یا د دې تعلق په عمومي طور سره د پوره امت سره دی] ⑸ بیا حضرت علي د خپلي توري د تیکي نه یو کاغذ راوخکلو، په هغې کې دا احکام درج وو، ⑹ چه په هغه سړي دې د الله ﷻ لعنت وي، چې د غیر الله په نوم څه شي ذبح کړي، ⑺ په هغه سړي دې د الله ﷻ لعنت وي، چې د زمکي نښنه پټه کړي، ⑻ او په یو روایت کې د الفاظ دي ⑼ په هغه سړي دې د الله ﷻ لعنت وي، چې د زمکي په نښنه کې تغیر اوتبدل وکړي، ⑽ په هغه سړي دې د الله ﷻ لعنت وي، کوم چې په خپل پلار لعنت وکړي، ⑾ او په هغه سړی دې د الله لعنت وي چې یو بدعتي ته ځای (پناه) ورکړي (مسلم)

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الأضاحی/باب تحریم الذبح لغیر الله تعالی ولعن فاعله (رقم-۴۵ - (۱۹۷۸) والنسائی فی کتاب الضحایا/باب من ذبح لغیر الله عز وجل (رقم-۴۴۲۲)

**حل اللغات:** ① قِرَاب: د توري قاش، تیکي، ② صَحِیفَة: لیکلې شوې کاغذ، مخطوطه، ③ مَنَار: د زمکې نښه، علامتی کانړي، ④ آوَی: ⑤ مُحْدِثًا: په دین کښې نوې خبره پیدا کونکې، بدعتی.

**تسهیلات: قوله: مَا خَصَّنَا بِشَيْءٍ لَمْ يَعُمَّ بِهِ النَّاسَ إِلَّا مَا فِي قِرَابِ سَيْفِي هٰذَا**

**علی رضی الله عنه سره د خاص وصیت عدم وجود:** داپروپیګنډه دهغه وخت نه ترننه پورې جاري ده چه حضرت علی رضی الله عنه ته نبی کریم څه خصوصي وصیتونه کړي وو صحابه کرامو بار بار دحضرت علی رضی الله عنه نه ددې پوښتنه اوکړه اوحضرت علی رضی الله عنه مسلسل انکار کړې دې ترننه پورې روافض په خپلو اذانونوکښې د علی وصی رسول الله الفاظ یادوی اودحضرت علی رضی الله عنه خبره دروغ ګڼړی

**قوله: لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللّٰهِ**

**دغیرالله په نوم د ذبح کولو صورتونه:** دالله تعالی د نوم نه بغیرد غیرالله په نوم باندې ځناور ذبح کول داسې دی لکه چه دحضرت عیسی علیه السلام په نوم باندې یا دحضرت عزیر علیه السلام په نوم باندې یا د شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله په نوم باندې یا دحضرت حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه په نوم باندې یاد یوفقیر په نوم باندې ځناور په نامه کولې شی چه داد فلانکی د نوم ځناور دې بیادا ذبح کړی. د ذبح په وخت بعضې بې دین خود غیرالله نوم اخلی اوبعضې بې دین نوم خودالله تعالی اخلی مګر ساه دبل چا دپاره اوباسی. د غیرالله په نوم باندې د نامه کولو نه پس د ذبح په وخت بسم الله سره څه کیږی کله چه دغه نذر اونیاز د غیرالله په نوم دې

**قوله: وَلَعَنَ اللّٰهُ مَنْ سَرَقَ مَنَارَ الْأَرْضِ**

**په زمکه کښې د خیانت کولوسزا:** دزمکې نښې ته منار وئیلې شوی دی ددغه نښې نه مراد علامتی کانړي وغیره دی چه د دوو شریکو ملګرو د زمکې په حدودوکښې لګولې شی دهغې پټولو یا د بدلولو سره هغه د بل سړی زمکه راګیرول غواړی کله داسې هم کیږی چه دغه نښه د یوځائی نه اوچته کړې شی بل طرف ته اوړلې شی او اصل مالك ته پته نه وی دا هم راګیرول دی او نن صبا په ډیرو زمکوکښې د ټولونه زیات بدلون د پټواریانو په لاس کښې دې ددې حدیث اولنې مصداق پټواریان دی چه دزمکې په نقشه او خادر (لټها) کښې او په فردنمبرکښې ګړبړکوی او بیا په صحیح کولوباندې ډیرې پیسې اخلی پخپله ئې خراب کړی بیا پیسې اخلی

**قوله: لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ لَعَنَ وَالِدَهُ**

**خپلې موربالدې د لعنت وئیلو صورت:** یعنی دموربلار نافرمانی کوی او هغوی د تنقید نښانه جوړوی یاد بل سړی موربلارته کنځلې کوی اوهغه د ده موربلارته کنځلې اوکړې دغه شان دې پخپله د دغه کنځلو ذریعه جوړشو.

**قوله. وَلَعَنَ اللّٰهُ مَنْ آوَى مُحْدِثًا:**

**بدعتی ته پناه ورکونکی باندې لعنت:** دې نه بدعتی مراد دی داسې سړی ته خانی ورکول پتول، سنبالول مدینه یا مکه وغیره کښې ساتل هغوی سره مالی تعاون کول دهغوی رائې له ترجیح ورکول دهغوی تعظیم اوتوقیر کول هغوی پیر اومرشد جوړول داټول د لعنت سبب دی

**[۲۰۸] په تیره څیز د ذبح کولو حکم**

۲۰۰۰-[۸] ()[۱] «وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّا لَاقُوا الْعَدُوِّ غَدًا، [۳] وَلَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى [۴] أَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ؟ [۵] قَالَ: "مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ، فَكُلْ [۶] لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ، [۷] وَسَأُحَدِّثُكَ عَنْهُ: [۸] أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، [۹] وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشِ" [۱۰] وَأَصَبْنَا نَهْبَ إِبِلٍ وَغَنَمٍ [۱۱] فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ، [۱۲] فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت رافع رضي الله عنه بن خدیج وایي [۲] چې ما عرض وکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم صبا ته د دښمن (یعني د کفارو) سره زمونږ مقابله کیدونکي ده. [۳] او زمونږ سره چړې نشته [یعني کیدي شي چې د جنګي هنګامو په وجه زمونږ سره چړې موجودې پاتې نشي او مونږ ته د حیوان د ذبح کولو ضرورت پیښ شي] [۴] نو په دې صورت کې آیا مونږ په کړکي (بانس) سره ذبح کولې شو؟ [۵] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل په کوم څیز سره چې وینه وبهیږي. او په هغې د الله جل جلاله نوم واخستل شي، نو هغه خوړلې شي. [یعنی د هغه حیوان خوړل جائز دي، چې په داسې څیز سره ذبح شوي وي، چې په هغې سره وینه وبهیږي. که هغه اوسپنه وي، یا یو بل څیز وي] [۶] خو د غاښ او د نوك په ذریعه ذبح کول جائز نه دي. [۷] اوزه تا ته ددې دواړو باره کې وایم [چې ددې په ذریعه ذبح کول ولې جائز نه دي نو واوره] [۸] چې غاښ خو هډوکې دې، [۹] او هر چې نوك دې، نو هغه د حبشو چاړه ده. [۱۰] [حضرت رافع رضي الله عنه وایي] چې د دښمن څه اوښان او بزې (چیلۍ) په لوټ کې زمونږ لاس ته راغلې. [۱۱] په هغې کې یو اوښ ورانیدو سره وتښتیدو، [۱۲] لیکن په مونږ کې یو سړي هغه په غشی ویشتلو سره هلاك کړو [یعنی هغه غشی خوړلو سره په زمکه راغورځیدلو سره یخ شوا].

**حل اللغات:** ① إِنَّا لَاقُوا: مونږ مخامخ کیږو، مقابله کونکی یو. ② مُدًى: د مدية جمع ده چاړې ته وائی ③ الْقَصَبُ: د بانړه تیره غاړه، ④ أَنْهَرَ: اوبهیوی، ⑤ السِّنّ: غاښ، ⑥ الظُّفُرُ: نوکان، ⑦ عَظْمٌ: هډوکې، ⑧ مُدَى الْحَبَشِ: د حبشیانو چاړې، ⑨ نَهَبَ: د لوټ مال، ⑩ فَنَدَّ: نواوتختیدو،

---

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصید/باب ما ند من البهائم فهو بمنزلة الوحش (رقم-۵۵۰۹) ومسلم فی کتاب الأضاحی/باب جواز الذبح بکل ما أنهر الدم. إلا السن. والظفر. وسائر العظام (رقم-۲۰ - (۱۹۶۸) وابوداود فی کتاب الضحایا/باب فی الذبیحة بالمروة (رقم-۲۸۲۱) والترمذی فی کتاب الأحکام والفوائد/باب ما جاء فی البعیر والبقر والغنم إذا ند فصار وحشیا یرمی بسهم أم لا؟ (رقم-۱۴۹۲) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الإنسیة تستوحش (رقم-۴۲۹۷) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب ذکاة الناد. من البهائم (رقم-۳۱۸۳)واحمد فی المسند:وابوداود فی/۴۶۳

[١] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] إِنَّ لِهٰذِهِ الْإِبِلِ أَوَابِدَ [٣] كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، [٤] فَإِذَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا شَيْءٌ [٥] فَافْعَلُوا بِهِ هٰكَذَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ (دا ليدو سره) وفرمايل [٢] چې په دي اوښانو کې بعضې هم دغه شان د انسانانو سخه تريږي، [٣] لکه څرنګه چې جنګلي ځناور د انسانانو سخه تريږي. [٤] نو په دي اوښانو کښې که يو اوښ ستاسو د قبضې نه په وتلو سره وتښتي، [٥] نو د هغې سره دغه شان معامله کوئ (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ⑴ أَوَابِدَ: دَدي مفرد آبدة دې تختيدونکې او غصه شوی وحشی ځناور ⑵ الْوَحْشِ: ځنګلي، ويريدونکې

**تسهيلات:**

**قوله:** أَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ:

**د مذکوره تپوس مطلب:** مطلب دا چه مونږ له به دَ ځاروی دَ ذبح کولو ضرورت پيښيږي د تنګئی حالت وی دَ جهاد سفردې که چرې چاړه ملاؤنه شی نو آيا مونږ "نل" باندې ځناور ذبح کولې شو؟

**قوله:** أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ:

**په هډوکی د ذبح کولو ممانعت:** يعنی دَ اوښ غاښ خو هډوکې دې او په هډوکی باندې ذبح صحيح نه ده لهذا په غاښ سره ذبح کول صحيح نه دی.

**قوله:** وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشِ:

**په نوکونو ذبح کولو ممانعت:** يعني نوکونه خودَ اهل حبش چاړې دی هغوی دا استعمالوی لهذا مسلمانانوله دکافرانو طريقه نه دی خپلول پکار. په هرتيره مخ والاخيزبه کوم سره چه وينه روانه شی ذبح کول جائز دی

**په نوک باندې د ذبح په حکم کښې ٢ مذاهب:**

غاښ او نوکونه چه بدن سره لګيدلې وی نو په اتفاق سره په دې ذبح ناجائز ده ليکن که جدا راوتلې وی نو په دې سره ذبح کولوکښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① دَجمهور فقهاؤ په نيزبه غاښ او نوکونوسره ذبح مطلقاً ناجائز ده که دَ بدن نه جدا وی اوکه لګيدلې وی.

② دَ احنافو په نيزکه غاښ او نوك دَ بدن سره لګيدلې وی نوذبح ناجائز ده ليکن که جدا وی او په استعمال سره وينه جاری شی نوذبح کراهت سره جائز ده

**داول فريق دليل:** جمهورو دَمذکوره حديث نه استدلال کړې دې

**داول فريق د دليل جوابونه:** ① دا حديث په غيرمقلوع غاښ اوغير مقلوع نوك باندې حمل دې

څکه چه دَ حبش خلقو به ځناورداسې ذبح کول

② دَ زير بحث حديث ممانعت دَ کراهت په درجه کښې دې هغه دَ احنافو په نيزهم مکروه دې ليکن ذبيحه حلاله ده دَ احنافو استدلال کمزورې دې

**د دويم فريق دلائل:** دَ فصل ثاني دَعدی بن حاتم حديث نمبر ۱۸ کښې دا الفاظ دی "أمررالدم بمشئت" يعنی په کوم څيزسره چه غوارِئی وينه اوبهيوئی دا حديث عام دې غاښو او نوکونو ته هم شامل دې اصل مقصد وينه بهيول دی که چرې په مقلوع غاښ او نوك سره دباؤ نه پريوځی اوينه بهيږی نو ذبيحه حلال کيدل يکار دی البته په فعل کښې کراهت دې

③ راتلونکی حديث نمبر(۴۰۸۱) کښې دَ احنافو دليل دې څکه چه غاښ او تيره هډوکې هم يو څيزدې

**[۴۰۷۳] په تيره کاڼي دذبح کولو حکم**

۴۰۷۳—[۹] ()[۱]«وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ،[۲] أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ غَنَمٌ[۳] تَرْعَى بِسَلْعٍ[۴] فَأَبْصَرَتْ جَارِيَةٌ لَنَا بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِنَا مَوْتًا[۴] فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا بِهِ،[۵] فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،[۶] فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت کعب ابن مالك ﷺ نه روايت دې [۲] چې د کعب ﷺ سره د بزو يوه رمه وه، [۳] چې د مديني په يوې غونډئ سلع يې څروله،[۴] يوه ورځ زمونږ يوي وينځې يوه بزه (چيلۍ) وليده، چې هغه مري،[۴] نو هغي د کاڼي ټکړه ماته کړه، او د هغه ټوټې په ذريعه يې هغې بزه (چيلۍ) ذبح کړه،[۵] بيا کعب ﷺ د نبي کريم ﷺ نه مسئله وپوښتله، اچې په دي صورت کې د هغه بزي (چيلۍ) غوښه خوړل حلال دی که نه؟[۶] حضور ﷺ د هغه بزي (چيلۍ) د غوښو خوړلو حکم ورکړو. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا بِهِ:

**په اضطراری حالت کښې په کاڼری د ذبح کولوجواز:** مطلب دا دې چه په رمه کښې يو بيزه اچانک مړه کيدله او چاقو، چاړه هم موجود نه وو نو هغې شپونکی وينزې يو تيره کاڼې راوغستلو او هغه بيزه ئې زبحه کړه نو ددې نه دا معلومه شوه چه ده ښځې ذبيحه (حلاله) کول هم درست او صحيح دی

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إذا أبصر الراعى أو الوكيل شاة تموت. أو شيئا يفسد. ذبح وأصلح ما يخاف عليه الفساد(رقم-٢٣٠٤) وابن ماجه فى كتاب الذبائح/باب ذبيحة المرأة (رقم-٣١٨٢)

[٤٠٧٣] په ذبح کولو کښې د نرمۍ کولو تعليم

٤٠٧٣-[١٠] (١) [١] وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] قَالَ: «إِنَّ اللَّهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ، [٣] فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ، [٤] وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذَّبْحَ، [٥] وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ [٦] وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت شداد ابن اوس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي [٢] چې حضور ﷺ وفرمایل الله تعالی په هر شي احسان کول لازم کړي دي [یعنی د حق تعالی د طرف نه هر کار په حسن او خوبي او نرمي سره د انجام کولو حکم ورکول شوي دي، تر دي چې سزا په طور څوك قتلولو یا د څناورو په ذبح کولو کې هم مهرباني، نرم دلي او د خوبي او نرمي طریقه اختیارول لازم دي] [٣] هر کله چې تاسو یو سړي د قصاص یا حد په طور قتلوئ، نو هغه په نرمئ او خوبئ سره یې قتلوئ، [چې هغه ته تکلیف نه وي، [لکه تیره، توره استعمالوئ، او په قتل کولو کې جلتی کوئ] [٤] او هر کله چې تاسو یو حیوان ذبح کوئ. نو په خوبي او نرمي سره یې ذبح کوئ، [نو دا ضروري ده، چې په تاسو کې کوم سړي یو حیوان ذبح کول غواړي] [٥] نو خپله چاړه دي ښه تیره کړي، [٦] او ذبح کیدونکي حیوان ته دي آرام ورکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْإِحْسَانَ: ښه سلوک، ② الْقِتْلَةَ: په قتلولو کښې، ③ الذَّبْحَ: حلالول. ④ وَلْيُحِدَّ: تیره دې کړي، ⑤ شَفْرَتَهُ: تیره اړخ د چاړې، ⑥ وَلْيُرِحْ: او آرام دې اورسوی،

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ:**

**په قتلولو کښې د نرمۍ حکم:** مطلب داچه په میدان جهاد کښې یا قصاص کښې څوك وژل وی نو په دغه قتل کښې هم سلیقه اختیارکړئ چه تکلیف ورنه کړې اوشکل وران نه کړې شی تکړې تکړې کولوسره مه قتل کوئ.

**قوله: وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذَّبْحَ،**

**په ذبح کولو کښې د نرمۍ حکم:** دغه شان په ذبح کښې هم سلیقه اختیار کړئ چه دَ ضرورت نه زیات سټ مه پرې کوئ، چاړه ښه تیره کړئ اسلام دَ احسان او سلیقې حکم ورکوی لیکن نن صباخلق بې سلیقه راغلی دی چه دَ اسلام سلیقه ته سلیقې نه وائی

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الصید/باب الأمر بإحسان الذبح والقتل. وتحدید الشفرة (رقم-٥٧ - (١٩٥٥) وابوداود فی کتاب الضحایا/باب فی النهی أن تصبر البهائم. والرفق بالذبیحة (رقم٢٨١٥) والترمذی فی کتاب الدیات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن المثلة (رقم-١٤٠٩) والنسائی فی کتاب الضحایا/باب حسن الذبح (رقم-٤٤١٢) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب إذا ذبحتم. فأحسنوا الذبح (رقم-٣١٧٠)واحمد فی المسند: والترمذی فی/١٢٣

**[۳۰۷۴] څناور لره د نښه جوړلو ممانعت**

۳۰۷۴-[۱۱] (¹) [۱] «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [۲] يَنْهَى أَنْ تُصْبَرَ بَهِيمَةٌ، أَوْ غَيْرُهَا لِلْقَتْلِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [۲] چې حضور ﷺ د دې خبرې نه منع فرمايله، چې يو چوپايه دې [۳] يا بل څه حيوان [اوتړلې شی ،نښنه كړل شي] د وژلو دپاره، (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ① أَنْ تُصْبَرَ: چه اوتړلې شی، ② بَهِيمَةٌ: څاروې.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَنْهَى أَنْ تُصْبَرَ بَهِيمَةٌ، أَوْ غَيْرُهَا لِلْقَتْلِ:

**د تصبر په مفهوم کښې دوه ا قوال:** ① چه څناور ئې دَ نښې دَپاره اوتړلو اوبيائې په هغه باندې غشې ورول شروع كړه يا ګولئې چلول ئې شروع كړه دې دَپاره چه مزه اوخوند هم واخلی اونښه ئې پخه شی داسخت منع دی څکه چه په دې کښې څناور ته تکليف ورکول دی چه په ذبح کولوباندې يوزياتی سزا ده. دا مطلب راتلونکی رواياتوسره زيات مناسب دې په کوم کښې چه دَ صبراً په ځائې غرضاً لفظ راغلې دې.

② چه څناور ئې اوتړلو او خوراک څښاك ئې پرې بندكړو دې دَپاره چه مړشی تردې چه هغه له مرګ راغلو په دې صورت کښې به "للقتل" کښې لام اجليه وی "أی لأجل القتل" يعنی دَقتل دَپاره ئې اوتړلو.

**[۳۰۷۵] ذی روح څیز لره نښه جوړونکی باندې لعنت**

۳۰۷۵-[۱۲] (²) [۱] وَعَنْهُ، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ [۳] مَنِ اتَّخَذَ شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي [۲] چې نبي كريم ﷺ په هغه سړي لعنت ويلې دی [۳] چې د يو جاندار (ساه لرونكی) شي لره په تړلو سره هغه نښنه كړي (بخاری مسلم)

**حل اللغات:** ① غَرَضًا: نښنه.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَعَنَ مَنِ اتَّخَذَ شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا:

---

¹) اخرجه البخاری فی كتاب الذبائح والصيد/باب ما يكره من المثلة والمصبورة والمجثمة (رقم-۵۵۱۴) واحمد فی المسند:۲/۹۴

²) اخرجه البخاری فی كتاب الذبائح والصيد/باب ما يكره من المثلة والمصبورة والمجثمة(رقم-۵۵۱۵) ومسلم فی كتاب الصيد/باب النهی عن صبر البهائم (رقم-۵۹ - (۱۹۵۸) والنسائی فی كتاب الضحايا/باب النهی عن المجثمة (رقم-۴۴۴۱) واحمد فی المسند: ۲/۸۶

**ذی روح څیز لره نښه جوړولو حرمت:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا ممانعت د تحریم دپاره دې خکه چه نبی کریم ﷺ وفرمائیل چه کوم کس داسې وکړل نو په هغه د الله تعالی لعنت وی او د ممانعت وجه دا هم ده چه په دې فعل سره صرف یو ذی روح ته تکلیف ورکول نه دی بلکه مال ضائع کول هم دی

**[۴۰۷۶] د ذی روح څیز نښه جوړولو څخه ممانعت**

۴۰۷۶-[۱۳] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] " «لَا تَتَّخِذُوا شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ وفرمایل [۲] یو ساه لرونکې څیز (په تړلو سره) په مه نښه کوئ (مسلم)

**تسهیلات: قوله:** لَا تَتَّخِذُوا شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا:

**په نښه جوړلو کښې څلور قباحتونه** امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا نهی تحریمی ده. خکه چه بل خائی کښې ارشاد دې "لعن الله من فعل هذا". او په دغه طریقی سره خناور ویشتلو کښې څلور قسمه قباحتونه دی.

① د مال ضائع کول. ② عذاب ورکول.

③ إتلاف النفس (یعنی یو جان نفس هلاک کول)

④ که هغه خناور حلال وو نو د شرعی حکم نه بغیر ذبحه کول هلاک کول دی او که هغه خناور حلال نه وو نو په دې صورت کښې دهغې د منافعو نه محروم کیدل لازم دی (مرقاة)

**[۴۰۷۷] په مخ د وهلو او داغلو ممانعت**

۴۰۷۷-[۱۴] (۲) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ [۳] وَعَنِ الْوَسْمِ فِي الْوَجْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ په مخ د وهلو نه منع فرمائیلې ده [۳] او په مخ د داغلو نه ئې منع فرمایلې ده. [یعنی یو سړي یا حیوان په مخ په څپیړه یا په دُرّه وغیره دي نه وهل کیږی. او نه دي چاته په مخ داغ ورکول کیږی] (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْوَسْمِ: داغ

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الصید/باب النهی عن صبر البهائم(رقم-۱۹۵۸) والنسائی فی کتاب الضحایا/باب النهی عن المجثمة (رقم-۴۴۴۳) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب النهی عن صبر البهائم. وعن المثلة (رقم-۳۱۸۷) واحمد فی المسند:اخرجه البخاری فی ۲۱۶/

(۲) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب النهی عن ضرب الحیوان فی وجهه ووسمه فیه(رقم-۱۰۶ - (۲۱۱۶) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة التحریش بین البهائم والضرب والوسم فی الوجه (رقم-۱۷۱۰) واحمد فی المسند:۳۱۸/۳

**تسهیلات:**

**قوله: عَنِ الضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ:**

**په جهاد کښې په مخ د وهلو اجازت:** یعنی یو انسان لره په مخ باندې د وهلو نه منع شوی ده خو د جنګ په وخت کښې کافر په مخ وهل جائز دی

په مخ باندې داغ لګولو کښې مختلف روایات ① بعضې روایتونو نه نهی معلومیږی
② بعضې روایتونو نه جواز علومیږی

نبی کریم ﷺ حضرت ابی ابن کعب رضي الله عنه ته داغ لګولې وو او هم دغه شان حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه او حضرت اسعد بن زراه رضي الله عنه ته نی هم د داغ لګولو اجازت ورکړې وو.

**نوټ:** د داغ لګولو په باره کښې تفصیل د حدیث نمبر (۴۵۱۶) په شرح کښې تیرشوې دې

**[۴۰۷۸] د څناورو په مخ د داغ لګولو حرمت**

| |
|---|
| ۴۰۷۸–[۱۵] (۱) [۱] وَعَنْهُ، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَيْهِ حِمَارٌ [۳] وَقَدْ وُسِمَ فِي وَجْهِهِ، [۴] قَالَ: "لَعَنَ اللَّهُ الَّذِي وَسَمَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وایي [۲] چې [یوه ورځ] د نبي کریم ﷺ مخې ته یو خر تیر شو، [۳] چې هغه ته په مخ داغ ورکول شوې وو، [۴] حضور ﷺ (د هغه په لیدو سره) وفرمایل په هغه سړي دې لعنت وي چا چې دې داغلې دې. (مسلم)

**تسهیلات: قوله: لَعَنَ اللَّهُ الَّذِي وَسَمَهُ:**

**په مخ د داغ لګولو حرمت:** دَ ساه لرونکی په مخ او خله باندې داغ لګول منع دی که هغه انسان وی او که څناور.

دَ مخ اوخلې نه علاوه دَ بدن په نورو حصوباندې داغ ورکول جائزدی ځکه چه دَ راتلونکو روایاتو نه ثابت دی.البته دَ انسان بدن داغلونه په بعضو روایاتوکښې مطلقًا ممانعت راغلې دې

**د داغ لګولود ممانعت دوه وجوهات:** ① دا نهی شفقةً ده چه حضور پاك په نورو اسبابوسره دَ علاج ترغیب ورکړې دې ځکه چه په اور سره داغلوکښې سخت تکلیف کیږی اوکله چه نور علاج ناکام شی نو په آخری مجبورئی سره داغ ورکول صحیح دی لکه چه وئیلی شوی دی "آخر الداء الکی" بلکه که مجبوری وی نو په مخ باندې هم داغ لګول جائزدی

② اهل جاهلیت به داغ ورکول یو کرشماتی او قطعی یقینی علاج ګنړلو لکه چه داغ ورکول دَهغوی دَ وهم پرستئی یوه حصه وه په دې وجه مسلمانان منع کړې شو

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب النهی عن ضرب الحیوان فی وجهه ووسمه فیه(رقم-۱۰۷ - (۲۱۱۷) وابوداود فی کتاب الجهاد . باب النهی عن الوسم فی الوجه والضرب فی الوجه (رقم - ۲۵۶۴) واحمد فی المسند:وابوداود فی/۲۹۷

## [۴۰۷۹] د ضرورت په وجه د حيوان د داغولو اجازت

۴۰۷۹–[۱۶] ()[1] ⑴ «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ⑵ غَدَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ ⑶ لِيُحَنِّكَهُ، ⑷ فَوَافَيْتُهُ فِي يَدِهِ الْمِيسَمُ ⑸ يَسِمُ إِبِلَ الصَّدَقَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت انس ﷺ وايي ⑵ چې يوه ورځ ما د سحر په وخت کې عبدالله ابن ابي طلحه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر کړو، ⑶ چې حضور ﷺ کجور ژوولو سره د هغه په تالو کې ولګوي، ⑷ نو هغه وخت ما حضور ﷺ په داسې حالت کې وليدو چې په لاس مبارک کې يې د داغلو آله وه، ⑸ چې د هغې په ذريعه يې د زکوة اوښان داغل (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ① لِيُحَنِّكَهُ: دتحنيک نه دي، کجوره جونيلو سره د ماشوم په تالو کښې ايخودل ② الْمِيسَمُ: د داغ لګولو آله، لکه چه سيخ وغيره شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** غَدَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ لِيُحَنِّكَهُ:

**دتحنيک طريقه:** دَ تحنيك عمل دادې چه سړې په خپله خله کښې کهجورې او چيوی اولعاب جوړکړی اوبيا هغه دَ نوی راپيدا شوی ماشوم په تالوپورې اولګوی په هغه اوختی دې دَپاره چه دَ نيك سړی مبارك لعاب دَ ماشوم خوراك جوړشی.

## [۴۰۸۰] چيلئ په غوږ داغول

۴۰۸۰–[۱۷] ()[2] ⑴ وَعَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ⑵ قَالَ: «دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ⑶ وَهُوَ فِي مِرْبَدٍ ⑷ فَرَأَيْتُهُ يَسِمُ شَاءً ⑸ حَسِبْتُهُ قَالَ: ⑹ فِي آذَانِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت هشام ابن زيد د حضرت انس ﷺ نه روايت کوی، ⑵ هغه وايي چې يوه ورځ زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، ⑶ هغه وخت حضور ﷺ د څناورو په سرايی (پنډ غال) کې وو، ⑷ ما وليدو چې حضور ﷺ د بزو وغيره په اندامونو داغ لګوی، ⑸ [هشام وايي] چې زما ګمان دي چه حضرت انس ﷺ دا بيان کړي دي، ⑹ چې حضور ﷺ د هغه بزو وغيره په غوږونو داغ لګولو. (بخاري ومسلم)

---

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الزكاة/باب وسم الإمام إبل الصدقة بيده (رقم-۱۵۰۲) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب جواز وسم الحيوان غير الآدمى فى غير الوجه. وندبه فى نعم الزكاة والجزية (رقم-۱۰۹ - (۲۱۱۹)

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الذبائح والصيد/باب الوسم والعلم فى الصورة (رقم-۵۵۴۲) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب جواز وسم الحيوان غير الآدمى فى غير الوجه. وندبه فى نعم الزكاة والجزية (رقم-۱۱۱ - (۲۱۱۹) وابوداود فى كتاب الجهاد/باب فى وسم الدواب (رقم-۲۵۶۳)

**تسهیلات:**

**قوله: وَهُوَ فِي مِرْبَدٍ:**

**د مربد په تشریح کښې پنځه اقوال:**

① هغه ځائ کوم کښې چه اوښان او غواګانې تړلې شی.

② امام طیبی رحمه الله فرمائی چه "مربد" د اوښانو باړ ته وائی

③ بعضو حضراتو وئیلی دی چه کوم ځائی کښې اوښان او ګډې بیزې تړلې شی هغی ته "مربد" وئیلې شی.

**د غوږ د مخ ځځه خارج کیدو دلیل:** دارنګ ددې حدیث نه دا خبره معلومیږی چه غوګ په مخ کښې شامل نه دې ځکه چه په مخ باندې د داغ لګولو نه منع فرمائیلی شوې ده او که د غوګ تعلق مخ سره وې نو نبی کریم ﷺ به په غوګ باندې داغ نه لګولې. نو لهذا دا معلومه شوه چه د ځناور په غوګ باندې داغ لګول جائز دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۰۸] په تیره څیز سره د ذبح کولو جواز**

۴۰۸-[۱۸] ()[1] ① «عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَرَأَيْتَ ③ أَحَدُنَا أَصَابَ صَيْدًا ④ وَلَيْسَ مَعَهُ سِكِّينٌ ⑤ أَيَذْبَحُ بِالْمَرْوَةِ ⑥ وَشِقَّةِ الْعَصَا؟ ⑦ فَقَالَ: "أَمْرِرِ الدَّمَ بِمَ شِئْتَ ⑧ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عدي ابن حاتم رضی الله عنه نه روایت دي ② چې هغه عرض وکړو یا رسول الله ﷺ ماته دا اووایه ③ چه که په مونږ کې یو سړي د [یو حیوان] ښکار ونیولو. ④ او هغه وخت د هغه سره چاړه نه وي، ⑤ نو آیا هغه د یو کاڼي په ټکړې سره هغه ښکار ذبح کولي شي؟ ⑥ یا د یو لرګي په دړه [یا نل سره] ئې ذبح کولې شی؟ ⑦ حضور ﷺ وفرمایل ته چې په کوم څیز سره غواړي وینه یې وبهیوه ⑧ او بسم الله اووایه. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① سِكِّينٌ: چاړه، ② الْمَرْوَةِ: تیره کاڼړې، ③ شِقَّةِ الْعَصَا: د لرګی یا نل تیره غاړه، ④ أَمْرِرِ الدَّمَ: تویه کړه وینه.

**تسهیلات:**

**قوله: أَمْرِرِ الدَّمَ بِمَ شِئْتَ:**

**وینه بهونکی څیزباندې د ذبح جواز:** یعنی وینه تویه کړه په هر څیزسره چه وی. دَحدیث دې

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الضحایا/باب فی الذبیحة بالمروة (رقم-۲۸۲۴) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الصید إذا أنتن (رقم-۴۳۰۴) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب ما یذکی به (رقم-۳۱۷۷) واحمد فی المسند: والترمذی فی/۲۵۶

عموم نه احنافو د جدا شوی غابس او جدا شوی نوك په ذریعې سره د ذبح په جواز بندې استدلال کړې دې يعنى بسم الله اووايه او وينه تونى کړه

**[۴۰۸۳] د ذبح اضطراری حکم**

۴۰۸۲–[۱۹] ( ) [۱] «وَعَنْ أَبِي الْعُشَرَاءِ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: [۲] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ إِلَّا فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ؟ [۳] فَقَالَ: "لَوْ طَعَنْتَ فِي فَخِذِهَا لَأَجْزَأَ عَنْكَ». [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ، [۵] وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهٰذِهِ ذَكَاةُ الْمُتَرَدِّي. [۶] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا فِي الضَّرُورَةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوالعشراء د خپل پلار محترم نه نقل کوي چې هغه عرض وکړو [۲] یا رسول الله ﷺ آیا د شرعي ذبح تعلق د حلق او سینې د سر درمیانه حصې سره دی (یعنی آیا په شرعی طور سره ذبح دې ته ونیل کیدې شی، چې د حیوان د حلق او د سینې د سر درمیان نه په جراحت سره وینه وبهیول شي)[۳] حضور ﷺ وفرمایل که ته د ښکار په ورنونو کې هم جراحت (زخم) ورسوي، نو ستا د پاره به کافي وي.[۴] ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمي)[۵] امام ابوداؤد رحمه الله فرمایي (چې په دې حدیث کې د مذکوره ذبح اجازت ورکولا) د هغه حیوان سره متعلق دې چې په کوهي کې لویدلي وي. یعنی دا د ذبح اضطراري د صورت حکم دي.[۶] او امام ترمذي رحمه الله ویلي دي چې د ضرورت د حالت حکم دي.

**حل اللغات:** ① الذَّكَاةُ: شرعی ذبح او حلالې ته زکات وائی ② الْحَلْقِ: مرئ، حلق. ③ اللَّبَّةِ: دحلق او سینې د سر مینځنۍ حصه. ④ لَوْ طَعَنْتَ: که ته زخم کړې،

**تسهیلات:**

**قوله: أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ إِلَّا فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ؟:**

**په اضطراری حالت کښې دمطلق زخم کفایت:** يعنى آيا ذبح صرف د سینې او حلق په مینځ کښې وی بل ځائی نه وی؟ په دې جمله کښې استفهام دې دې په جواب کښې نبی کریم د ذبح اضطراری عموم اوخودلو چه اضطراری ذبح کښې چرته هم زخم اولګولې شی مکمل به وی مرئی سره خاص نه ده البته اختیاری ذبح هم په مرئی کښې وی

**[۴۰۸۳] د تربیت شوی سپی ښکار که مر شی؟**

۴۰۸۳–[۲۰] ( ) [۱] وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«مَا عَلَّمْتَ

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الضحایا/باب ما جاء فی ذبیحة المتردیة (رقم-۲۸۲۵) والترمذی فی کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی الذکاة فی الحلق واللبة (رقم-۱۴۸۱) والنسائی فی کتاب الضحایا/باب ذکر المتردیة فی البئر التی لا یوصل إلی حلقها (رقم-۴۴۰۸) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب ذکاة الناد. من البهائم (رقم-۳۱۸۴)واحمد فی المسند: والترمذی فی/۲۳۴

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الصید/باب فی الصید (رقم-۲۸۵۱)

مِنْ كَلْبٍ، أَوْبَازٍ، [۳] ثُمَّ أَرْسَلْتَهُ، [۴] وَذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ [۵] فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكَ عَلَيْكَ ". [۶] قُلْتُ: وَإِنْ قَتَلَ؟ [۷] قَالَ: إِذَا قَتَلَهُ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ شَيْئًا [۹] فَإِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَيْكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عدی ابن حاتم رضی الله عنه روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] کوم حیوان چې تا تربیت یافته کړو، که هغه سپي وي یا باز. [۳] او بیا تا هغه په یو ښکار پسې پریخودو، [۴] او د پریخودلو په وخت دې د الله جل جلاله نوم واخستو. [۵] نو ته هغه ښکار خوره، چې هغه [سپي یا باز] ستا د پاره نیولي دي، [۶] ما عرض وکړو که چیرې هغه، هغه ښکار وژلي وي؟ [۷] حضور ﷺ وفرمایل هر کله چې هغه [سپي یا باز] ښکار مړ کړي، اوخپله د هغې نه څه ونه خوري، [۹] نو [ددې مطلب د دې نه سوا نور هیڅ نشي کیدي چې] هغه هغه ښکار ستا د پاره نیولي دي. (ابوداؤد)

**نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي. د مزید تفصیل ضرورت نشته.

**[۴۰۸۳] په یوشرط سره د مړ شوی ښکار حلت**

۴۰۸۳–[۲۱] (۱) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «قُلْتُ: [۲] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَرْمِي الصَّيْدَ [۳] فَأَجِدُ فِيهِ مِنَ الْغَدِ سَهْمِي. [۴] قَالَ: " إِذَا عَلِمْتَ أَنَّ سَهْمَكَ قَتَلَهُ [۵] وَلَمْ تَرَ فِيهِ أَثَرَ سَبُعٍ فَكُلْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عدي ابن حاتم رضی الله عنه وایي چې ما عرض وکړو [۲] یا رسول الله ﷺ زه په ښکار خپل غشی چلوم، [۳] او بیا په بله ورځ چې په هغه کې خپل غشی اوموم (آیا هغه ښکار خوړې شم؟) [۴] حضور ﷺ وفرمایل چې په دې صورت کې که ته په دې پوهه شې. چې هغه ښکار ستا غشی وژلي دې، [۵] او په هغه ښکار کې ته د یو درنده نښه بیا نه مومې، نو هغه خوړی شي، [اوکه په هغه ښکار کې د یو درنده د غاښ یا پنچې وغیره څه نښه بیا مومې، یا د بل چا د غشی علامت بیا مومې، نو په هغه صورت کې هغه مه خوره] (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا عَلِمْتَ أَنَّ سَهْمَكَ قَتَلَهُ وَلَمْ تَرَ فِيهِ أَثَرَ سَبُعٍ فَكُلْ:

**دمشکوک ښکار عدم حلت:** که ورک شوې ښکار ملاوشی او د څه بلې وجهې نه دمړکیدو احتمال په کښې موجود وی نو بیا به دا ښکار بلکل نه شی خوړلې، مثلاً په اوبو کښې ډوب ملاوشو نو چونکه معلومات نشته چه دا په اوبو کښې دننه مړ شوې دې او که د اوبو نه بهر مړ شوې دې لهذا داسی مشکوک ښکار خوړل جائز نه دی.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة/باب فی کراهیة التقذر للطعام (رقم-۳۷۸٤) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب فی الذی یرمی الصید فیغیب عنه (رقم-۴۳۰۰)

**[۴۰۸۵] دمجوسي د سپي د ښکار حرمت**

۴۰۸۵—[۲۲] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «نُهِينَا عَنْ صَيْدِ كَلْبِ الْمَجُوسِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي [۲] چې مونږ د مجوسيانو د سپي د نيولي ښکار د خوړلو نه منع کړې شوي يو (ترمذي)

**تسهيلات: قوله:** **نُهِينَا عَنْ صَيْدِ كَلْبِ الْمَجُوسِ:** که چرې خناور ژوندې وی اومسلمان هغه ذبح کړی نوحلال به شي. سره ددې چه دمجوسي سپي نيولې وی ليکن که مړ شو نوحرام دې

**دمجوسي د ښکار مختلف صورتونه** ① مجوسي چه کوم خناور ښکار کړی، خواه که هغه د خپل سپي په ذريعه وی او که دمسلمان د سپي په ذريعه وی نو ددې ښکار خوړل جائز نه دی ② که د مجوسي ښکار ژوندې ونيولې شي او بيا ئې مسلمان ذبح کړی نو ددې خوړل حلال دی، ③ که د مجوسي او د مسلمان سپي په شريکه يو ښکار وکړو نو دا هم حلال نه دي، ④ که د مجوسي او د مسلمان سپي په شريکه يو ښکار وکړو نو که ژوندې وو نو په ذبح کولو سره حلال دي

لهذا دا حديث په دې خبره دليل دې چه څنګه د غير مسلم ذبيحه حلال نه ده نو هم دغه شان د غير مسلم د سپي وغيره ښکار هم حلال نه دي.

**[۴۰۸۶] دغير مسلم د لوښي داستعمال حکم**

۴۰۸۶—[۲۳] ()[۱] «وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ: [۲] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّا أَهْلُ سَفَرٍ [۳] نَمُرُّ بِالْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَالْمَجُوسِ، [۴] فَلَا نَجِدُ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ. [۵] قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا [۶] فَاغْسِلُوهَا بِالْمَاءِ، [۷] ثُمَّ كُلُوا فِيهَا وَاشْرَبُوا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو ثعلبه خشني ﷛ وايي چې ما عرض وکړو [۲] چې يا رسول الله ﷺ مونږ زيات د سفر کونکي خلق يو، [۳] د يهوديانو. عيسائيانو اومجوسيانو په آباديو زمونږ تيريدل کيږي. [۴] هغه وخت د هغوئ د لوښونه علاوه بل لوښي مونږ سره نه وي (نو آيا مونږ د هغوئ په لوښو کې خوړلې او څکلې شو؟) [۵] حضور ﷺ وفرمايل که تاسو د هغوئ د لوښو نه علاوه بل لوښي بيا نه مومئ، [۶] نو د هغوئ لوښې په اوبو سره ښه وينځئ، [۷] او بيا په هغې کې خورئ اوڅکئ (ترمذي)

) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الصيد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صيد كلب المجوس (رقم-١٤٦٦) وابن ماجه في كتاب الصيد/باب صيد كلب المجوس. والكلب الأسود البهيم (رقم-٣٢٠٩)

) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الصيد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يؤكل من صيد الكلب وما لا يؤكل (رقم-١٤٦٤) واحمد في المسند: ١٩٣/٤

**تسهيلات:**

**نوټ:** دَدې باب حديث نمبر (۴۰۶۶) کښې دَ زير بحث حديث د مضمون تفصيل تيرشوې دې

**[۴۰۸۴] غيرمسلمو سره د خوراک حکم**

۴۰۸۴ – [۲۳] (¹) وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [۲] قَالَ: «سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ طَعَامِ النَّصَارَى [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: سَأَلَهُ رَجُلٌ [۴] فَقَالَ: إِنَّ مِنَ الطَّعَامِ طَعَامًا أَتَحَرَّجُ مِنْهُ [۵] فَقَالَ: " لَا يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شَيْءٌ [۶] ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت قبيصه بن هلب رضي الله عنه د خپل پلار نه روايت کوي [۲] چې هغه اوويل چې ما د رسول الله ﷺ نه د عيسائيانو د طعامونو باره کې پوښتنه وکړه [چې مونږ خلق يې وخورو که نه؟] [۳] او په يو روايت کې داسې دي چې په دې باره کې يو سړي د حضور ﷺ نه مسئله وپوښتله، [۴] هغه عرض وکړو چې په طعامونو کې يو طعام [يعني د يهوديانو او د عيسايانو طعام] داسې دې، چې د هغې نه زه پرهيز کوم، [۵] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستا په زړه کې د څه شي [يعنی د شك وشبهې] انديښنه پيدا کيدل نه دي پکار، [۶] [ګني] تا د خپل دې عمل په ذريعه د عيسائيت مشابهت اختيار کړي دې. (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَتَحَرَّجُ: زه حرج محسوسوم اوبياډډه کوم. ② لَايَتَخَلَّجَنَّ: داد خلجان نه دې يعنی ستا په زړه کښې څه خلجان اويره نه ده تيريدل پکار. ③ ضَارَعْتَ: دا دَ مضارعت نه دَمشابهت په معنی کښې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَايَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شَيْءٌ ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ:

**بې ځايه د شک کولو ممانعت:** مسلمانانو له پکاردی چه ترکومې پورې دَحرمت يقين نه وی صرف دَ شك په بنياد باندې دې څه څيز نه حراموی.

**قوله:** ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ:

**دنصرانيت د ذکر کولو وجه:** سوال کونکې چونکه عدی بن حاتم وو چه اول عيسائی وو په دې وجه نبی کريم دَ نصاراؤ ذکر اوفرمائيلو. او ورته ئې اوفرمائيل په دې طرز عمل سره تادَ نصاراؤ مشابهت اختيار کړو ځکه چه هغوی په خپل ځان باندې ډيره سختی کوی او لږ شان شك راتلو سره په خپل ځان باندې حلال خوراك حراموی.

¹) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأطعمة/باب فی كراهية التقذر للطعام (رقم-٣٧٨٤) والترمذی فی كتاب السير عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی طعام المشركين (رقم-١٥٦٥) وابن ماجه فی كتاب الجهاد/باب الأكل فی قدور المشركين (رقم-٢٨٣٠)

## [۴۰۸۸] په نښه ويشتلو سره د مړ شوي حيوان د خوراک حکم

۴۰۸۸- [۲۶] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْمُجَثَّمَةِ [۳] وَهِيَ الَّتِي تُصْبَرُ بِالنَّبْلِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د مجثمه خوړلو نه منع فرمايلي ده. [۳] او مجثمه هغه حيوان ته وايي چې هغه په تړلو سره د نښې په مثل ودرول شي. او بيا په غشو ويشتلو سره قتل کړل شي (ترمذي)

**حل اللغات:** ① اَلْمُجَثَّمَةِ :هِيَ الَّتِي تُصْبَرُ بِالنَّبْلِ: هغه ځاروې چه د نښې په طور غشي ويشتلو دپاره اوتړلې شي ② تُصْبَرُ: چه اوتړلې شي. ③ النَّبْلِ: غشي.

**تسهيلات:** **نوټ:** د حديث نمبر (۴۰۷۴) په تسهيل کښې ددې مضمون وضاحت تيرشوې دې هغې ته رجوع اوکړئ

## [۴۰۸۹] د بعضې محرماتو بيان

۴۰۸۹-[۲۷] (۲) [۱] وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ [۳] عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، [۴] وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ، [۵] وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ، [۶] وَعَنِ الْمُجَثَّمَةِ، وَعَنِ الْخَلِيسَةِ، [۷] وَأَنْ تُوطَأَ الْحَبَالَى [۸] حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي بُطُونِهِنَّ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت عرباض ابن ساريه رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د دې ځناورو د خوړلو نه منع وفرمايله، [۳] داړه ور درنده، [۴] پنجه ور مرغان. [۵] د کورني خرونو غوښه [۶] مجثمه اوخليسه. [۷] او [حضور ﷺ په جهاد کې نيول شوې] د هغه وينځو سره د جماع کولو نه هم منع وفرمايله، کومې چې حاملې وي، [۸] تر څو چې هغه کوشني پيدا نشي. کوم چې د هغوئ په خيټه کې وي،

**حل اللغات:** ① السِّبَاعِ: په غاښونو سره شلونکي ځناور. ② ذِي مِخْلَبٍ: په پنجه سره شلونکي مارغان. ③ الْمُجَثَّمَةِ: هغه ځاروې چه د نښې په طور غشي ويشتلو دپاره اوتړلې شي ④ الْخَلِيسَةِ: د شرمښ يا بل درنده نه اخستلې حيوان چه دذبحې نه مخکښې مړ شي، ⑤ تُوطَأَ: چه وطی کړی ⑥ الْحَبَالَى: حامله وينځه ⑦ يَضَعْنَ: ماشوم زيګوی .

[۱] قَالَ: مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى: [۲] سُئِلَ أَبُو عَاصِمٍ عَنِ الْمُجَثَّمَةِ [۳] فَقَالَ: أَنْ يُنْصَبَ الطَّيْرُ، أَوِ الشَّيْءُ [۴] فَيُرْمَى [۵] وَسُئِلَ عَنِ الْخَلِيسَةِ [۶] فَقَالَ: الذِّئْبُ، أَوِ السَّبُعُ [۷] يُدْرِكُهُ الرَّجُلُ فَيَأْخُذُ مِنْهُ [۸] فَيَمُوتُ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يُذَكِّيَهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الأطعمة/باب ما جاء فی كراهية أكل المصبورة (رقم-۱٤۷۳)

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الأطعمة/باب ما جاء فی كراهية أكل المصبورة (رقم-۱٤۷٤) واحمد فی المسند: ۱۲۷/٤

**ترجمه:** [۱] حضرت محمد ابن يحيي اچي د امام ترمذي رحمه الله شيخ او استاذ دي او د حديث د راويانو نه يو راوي دې) وايي [۲] چې زما د شيخ او استاذ حضرت ابو عاصم نه د مجثمي د معنې پوښتنه وشوه، [۳] نو هغه وفرمايل اچې د مجثمه مطلب دا دی) چې يو مارغه يا مرغۍ االوتونکي يا ځريدونکي) ترلو سره ودرول شي، [۴] او بيا هغه په غشو ويشتلو سره قتل کړل شي، [۵] دغه شان (دحضرت ابو عاصم نه) د خليسه د معنې پوښتنه وشوه، [۶] نو وي فرمايل چې د دې مطلب دا دي چې شرمښ يا بل درنده (شلونکي) يو حيوان ونيولو) [۷] او بيا يو سړي د هغه درندې نه هغه حيوان په زور واخلي. [۸] او هغه حيوان د ذبح کيدو نه مخکې د هغه سړي په لاس کی مړ شي (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** ذِي مِخْلَبٍ:

**د ذی مخلب څناور دښکار حکم:** يعنی کومه مرغئی چه په پنجو باندې شلول کوی لکه باز، شکره تپوس چرغ او ګدهٔ دَ پنجو په ذريعه نورې مرغئی شلوی اوخوری يعنی ذی ناب اوذی مخلب په دې صورت کښې حرام دی چه هغوی په ناب او مخلب سره ښکار کوی که چرې ښکار نه کوی نو هغه حرام نه دې لکه اوښ ذی ناب دې مګر په ناب سره ښکار نه کوی

**قوله:** وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ:

**دحمر دوه قسمونه:** ① دې نه کورنی ساتلې شوی خره مراد دی ددې غوښه حرامه ده.

② ځنګلی خره حلال دی کوم ته چه زيبرا وائی دا د افريقه په ځنګلونو کښې په کثرت سره ملاويږی.

**قوله:** وَعَنِ الْخَلِيسَةِ:

**دخليسه د ښکار حکم:** يعنی ازمری يا ليوه چه چيلئی ښکار کړه اويوانسان هغه راخلاصه کړه مګر هغه چيلئی مړه شوې وه دې ته خليسه وائی دا چونکه مرداره شوې ده په دې وجه دَ مسلمان دَپاره دَدې خوړل حرام دی.

**قوله:** **قوله:** وَأَنْ تُوطَأَ الْحَبَالَى حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي بُطُونِهِنَّ:

**د حاملې وينځې سره دجماع کولو حرمت:** يعنی دَ چا لاس ته وينځه راغله چه حامله ده نو وضع حمل پورې دې سره جماع کول جائز نه دی دې نه منکوحه حامله ښځه مراد نه ده. که چرې وينځه حامله نه وی نودَ يوحيض راتلو پورې انتظار ضروری دې دا په جهاد کښې په لاس راتلونکې دَ وينځې خبره ده.

**[۴۰۰۰] د شريطه د خوراک حرمت**

۴۰۰۰-[۲۷] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، ② أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «نَهَى عَنْ شَرِيطَةِ الشَّيْطَانِ.» ③ زَادَ ابْنُ عِيسَى: ④ هِيَ الذَّبِيحَةُ يُقْطَعُ مِنْهَا الْجِلْدُ ⑤ وَلَا تُفْرَى الْأَوْدَاجُ، ⑥ ثُمَّ تُتْرَكُ حَتَّى تَمُوتَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① حضرت ابن عباس رضی الله عنه او حضرت ابوهريره رضی الله عنه راويان دي ② چې رسول الله ﷺ د شريطه د خوړلو نه منع فرمايلې ده. ③ ابن عيسٰي (د حديث يو راوي) دا مزيد بيان وکړو ④ چې شريطه د شيطان دا ده چې د خناور (د حلق د پاسه) څرمن کټ کړې شي. ⑤ او د هغه پوره رګونه کټ نه کړل شي، ⑥ او بيا هغه پريخودل شي، تر دې چې هغه مړ شي (ابوداؤد)

**حل اللغات** : ① شَرِيطَةِ: چې د خناورو د حلق د پاسه څرمن کټ کړې شي، او دهغه پوره رګونه کټ نه کړل شي، او بيا سغه پريخودل شي، تر دې چې هغه مړ شي، ② الْجِلْدُ: څرمن. ③ وَلَا تُفْرَى: اوکټ نه کړې شي، ④ الْأَوْدَاجُ: رګونه دحلق.

**تسهيلات: قوله**: شَرِيطَةِ الشَّيْطَانِ:

**دشريطه وضاحت**: داد جاهليت د ناجائز ذبائح نه يوه وه هغه داسې چه خناور به ئې په مرئي کښې لږشان پرې کړو او ننبه به ئې پرې اولګوله او بيا به ئې پريخودو. پوره رګونه به ئې نه وو پرې شوی او په ترقيدو ترقيدوسره به مړشو داد شيطان ننبه ده کومه چه ناجائزده ځکه چه په دې کښې ډيرزيات ظلم هم دې اود رګونونه مسفوح وينه هم نه خارجيږی نوحرام مردار دې

**قوله**: وَلَا تُفْرَى الْأَوْدَاجُ

**د ذبحې سره متعلق دمرئ څلور رګونه**: (۱) حلقوم: دې دې سره د ساه تعلق دې درمختار کښې دا راجح او صحيح ګرځولې شوې دې

(۲) مرئ دې کوم سره چه دخوراك څښاك تعلق دې

(۳)-(۴) باقی دوو ته ودجان وائی چه دمرئی په مخامخ حصه کښې وی حلقوم اومری د دې په مينځ کښې وی دې ته شه رګ هم وائی

**د رګونوپه کټ کولو کښې شرعی ضابطه**: په دې څلورو واړو کښې چه کوم درې پرې شی شرعی ذبح به مکمل شی په حديث کښې د أوداج لفظ د څلورو واړو رګونوده پاره ونيلې شوې دې که چرې دوه رګونه کټ شی اوباقی دوه پاتې شی نو ذبح به نه کيږی

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الضحايا/باب فی المبالغة فی الذبح (رقم-۲۸۲۶) واحمد فی المسند: اخرجه البخاری فی /۲۸۹

**[۲۰۹] د ذبیحه د خیټې د بچي حکم**

۴۰۹-[۲۸] (۱) ۞ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۞ "«ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت جابر ﷛ راوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ۞ د مور ذبح کول د خیټې د بچي هم ذبح کول دي، (ابوداؤد دارمي) ترمذی دا روایت د حضرت ابو سعید نه نقل کړې دي

**حل اللغات:** ① ذَکَاةُ: شرعی ذبحه، ② الْجَنِين: د حمل ماشوم بچې،

**تسهیلات:**

**قوله: ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ** "یعنی دَ مور ذبح دَهغې په خیټه کښې دَ بچی ذبحه ده

**د مور د ذبحې څخه پس د بچې دوه صورتونه:** تفصیل داسې دې چه چرته حامله څناور ذبحه کړې شی اودَ ذبح نه پس دَهغې دَ خیټې نه دَهغې بچی راؤوتلو نودَدې دوه صورتونه دی

① که بچې ژوندې وی یا به مړوی. که چرې ژوندې راؤوتلو نواتفاقًا دَ هغه ذبح ضروری ده دَ ذبح نه بغیربه حلال نه وی.

② که چرې بچې مړ شوې دې نوپه هغې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**په دویم صورت کښې ۲ مذاهب:**

① دَ جمهورو او صاحبینو په نیزذبح کیدو نه بغیر هغه بچې حلال طیب دې دَمور ذبح کیدل دَ هغې دَ بچی دَ ذبح دَپاره کافی دی په دې شرط چه د بچی اندامونه پوره وی اودَ هغه په بدن باندې ویښته راغلې وی.

② امام ابوحنیفه ﷫ فرمائی دغه شان بچې مردار دې اودَهغې خوړل حرام دی

**داول فریق دلائل:** ① مذکوره حدیث دَ جمهورو دلیل دې هغوی "ذکاة أمه" مرفوع ګرځوی دَ کوم نه چه هغوی استدلال کوی یعنی دَجنین ذبح هم دغه ده چه دَهغه مور ذبح شی

**داول فریق د دلیل جواب:** د حدیث مفهوم هغه نه دې کوم چې تاسو اخستې دې بلکه دا حدیث په تشبیه باندې محمول دې یعنی "ذکاة الجنین کذکاة أمه" دَدې مطلب واضح دې چه څنګه مو مور ذبح کړې ده دغه شان دَهغې بچې هم ذبح کړئ ذبح کولو طریقه هم یوشان ده په دغه بچی باندې ترس خوړلوسره بغیردَ ذبح مه پریږدئ بل دا خیال اونه کړئ چه دومره وړوکې بچې به ذبح سره حلال نه شی لکه څنګه چه بعضې خلق دا حلال نه ګڼړی. دَدې مطلب تائید حدیث کښې "ذکاة امه" منصوب لوستلو سره هم کیږی چه منصوب بنزع

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الضحایا/باب ما جاء فی ذکاة الجنین (رقم-۲۸۲۷) والدارمی فی السنن رقم الحدیث ۱۹۷۹

الخافض دي "اى كذكاة أمه" اوددي مطلب تائيد راتلونكى حديث نمبر (۳۰۳) سره هم كيږي په كوم كښې چه صحابه كرامو د جنين غورزولو اونه خوړلو يا دخوړلو سوال كړې دې په دې وجه دا حديث دجمهورو د مطلب نه دي

**داول فريق دويم دليل:** دوى قياس كوى چه كوره په ساه اخستو كښې د خيټې بچې د مور تابع دي خرڅولو او اخستلوكښې دمور تابع دې خوراك څښناك مرګ او ژوند كښې دا بچې د مور تابع دي لهذا په ذبح كښې هم دا دمور تابع كيدل پكاردى خكه چه دا بچې دمور جزء متصل دې د جدا ذبح كولو ضرورت نشته دې

**د دويم فريق دليل:** كه چرې دا بچې د مور د ذبح زياتى دى اود هغې دمرګ نه مخكښې مړشوې وى نودا "ميتة" د مردار په حكم كښې دې اوكه چرې د مور د مرګ نه پس ساه بنديدوسره مړشوې وى نودا "منخنقة" د ساه بنديدو والاحيوان په حكم كښې دې اودا دواړه حرام دى لهذا جنين حرام دې

**د دويم فريق د دليل دوه جوابونه:** ① د بچى د ذبح معامله په بيع وشراء وغيره باندې قياس كول جائز نه دى خكه چه په ذبح كښې انهار الدم وى. دا په خرڅولو او اخستلو باندې قياس كول قياس مع الفارق دې

② بل دا معامله د مبيح او د محرم ده په داسې صورت كښې ترجيح محرم ته وركولې شى

**[۳۰۳] د مور ذبح د جنين ذبح ده**

۳۰۳-[۲۹] () [۱] «وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! نَنْحَرُ النَّاقَةَ، [۳] وَنَذْبَحُ الْبَقَرَةَ وَالشَّاةَ، [۴] فَنَجِدُ فِي بَطْنِهَا الْجَنِينَ، [۵] أَنُلْقِيهِ أَمْ نَأْكُلُهُ؟ [۶] قَالَ: "كُلُوهُ إِنْ شِئْتُمْ، [۷] فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكَاةُ أُمِّهِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي [۲] چې مونږ عرض وكړو يا رسول الله ﷺ كوم وخت چې مونږ اوښه نحر كوو [۳] يا غوا يا بزه (چيلى) ذبح كوو. [۴] نو ډير خله مونږ د هغه ذبيحې په خيټه كې مړ بچي بيا مومو. [۵] آيا مونږ هغه بچي وغورځوو، يا يي اوخورو؟ [۶] حضور ﷺ وفرمايل كه غواړئ نو وئ خورئ. [۷] خكه چې د هغې د مور ذبح كول د هغه بچي هم ذبح كول دي (ابوداؤد ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**دنحر په ځالې دذبح كولو حكم:** په دې حديث كښې د نحر او ذبح ذكر دې چه د اوښ نحر مسنون دې او د نورو خناورو متعلق ذبحه كولو حكم دې د ذبحه په صورت كښې چه د

) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الضحايا/باب ما جاء فى ذكاة الجنين (رقم-۲۸۲۷) وابن ماجة رقم الحديث ۳۰۹۹ واحمد فى المسند ۳/ ۳۱

مرئ (حلق) کوم رګونه کټ کولې شي هغه څلور دي، چه د کوم ذکر مخکې وشو، اوس که د ذبحه کونکو ځناورو نحر وکړې شي نو دا هم سره د کراهت جائز دي

**قوله: أَنُلْقِيهِ أَمْ نَأْكُلُهُ؟**

**د غورځولو دوه وجوهات:** ① چه دا مونږ اوغورځوو ددې وجهې چه دا مړ شي

② یا دا مونږ ددې وجهې دا اوغورځوو چه دا مردار دي

**قوله: أَمْ نَأْكُلُهُ؟**

**داکل په مفهوم کښې دوه اقوال:** ①يعني دا مونږه مستقل طور ذبحه کړو او وئې خورو ②ددې د مور په ذبحه باندې اکتفا وکړو، او د مور ذبحه ددې د حلالیدو دپاره کافي ده

**دصحابؤ د تپوس وجه:** هرکله چې بچې سره د وړوکوالی د وجهې شفقت او محبت وی، نو ددې وجهې صحابه کرامو ته ردد وو چه ذبح ئی کړو که نه؟ نو نبی کریم ﷺ ورته مذکوره جواب ورکړو

**[۲۰۳] بلا مقصده د حیوان د قتلولو ممانعت**

٢٠٣-[٣٠] (١) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، [٢] أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٣] «مَنْ قَتَلَ عُصْفُورًا فَمَا فَوْقَهَا بِغَيْرِ حَقِّهَا، [٤] سَأَلَهُ اللهُ عَنْ قَتْلِهِ» [٥] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ! وَمَا حَقُّهَا؟ [٦] قَالَ: «أَنْ يَذْبَحَهَا فَيَأْكُلَهَا، [٧] وَلَا يَقْطَعَ رَأْسَهَا فَيَرْمِيَ بِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] اودحضرت عبدالله ابن عمرو ابن العاص نه روایت دي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٣] که څوك مرغۍ یا د دې نه وړوکي [یا] لوي یو بل حیوان یا مارغه ناحقه ووژني. [٤] نو الله تعالی به د هغه نه د ناحق وژلو باره کې پوښتنه کوي. [٥] عرض وشو چې یا رسول الله ﷺ د هغه مرغۍ وغیره حق څه دي؟ [٦] حضور ﷺ وفرمایل دا چې هغه ذبح شي، [په بله طریقه دي هغه نه وژل کیږي]، او بیا دې هغه وخوړلې شي. [٧] دا نه چې د هغې سر کټ کولو سره وغورځول شي. (احمد نسائي دارمي)

**حل اللغات:** ① عُصْفُورًا: چنچڼه، مرغۍ

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ قَتَلَ عُصْفُورًا فَمَا فَوْقَهَا بِغَيْرِ حَقِّهَا، سَأَلَهُ اللهُ عَنْ قَتْلِهِ:**

**د جائز مقصد دپاره د حیوان د قتلولو جواز:** دَ یوځناور وژل ډیره لویه خبره ده او لویه حادثه ده. د جائزمقاصدنه علاوه په دې باندې اقدام نه دی کول پکار جائزمقصددادې چه دا ذبح کړې شي اواوخوړلې شي دا نه چه دَ لوبو توقویه غرض اووژلې شي او په استعمال کښې رانه وستلې شي. دَ ضرر لرې کولو دَپاره وژل هم جائزمقاصد کښې شامل دی.

---

(١) اخرجه النسائي في السنن كتاب الضحايا/باب من قتل عصفورا بغير حقها(رقم-٤٤٤٥)واحمد في المسند: ومسلم في /٦٦:

**اشکال:**

په دې حديث کښې عصفور طرف ته يوځل دَمؤنث ضمير راګرځولې شوې دې اوبه دويم ځل دَمذکر ضمير راګرځولې شوې دې کوم چې د نحو د قواعدو څخه خلاف دې

**دَاشکال درې جوابونه:** ① علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه دَ جنس په اعتبارسره دَ مؤنث ضمير راګرځولې شوې دې اودَ لفظ په اعتبارسره دَمذکرضمير راګرځولې شوې دې

② يا دَ مرغئي نه ورکوټې ځناور وى اودَ غټوالي طرف ته هم اشاره کيدې شي چه مرغئي وى يادَ مرغئي نه غټ وى. [الکاشف:۸/۱۰۸]

③ په دې کښې دَ "زيدٌهاهو" قاعده خپله کړې شوې ده چه مؤنث په اعتبار دَ کلمة دې اومذکر په اعتباردَ لفظ دې. "فمافوقها" دَ تحقير دَپاره هم کيدې شي چه مرغئي وى

**[۴۰۹۵] دژوندی حیوان دبدن څخه دکټ شوی اندام حکم**

۴۰۹۵–[۳۱] (۱) ① وَعَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ ③ وَهُمْ يَجُبُّونَ أَسْنِمَةَ الْإِبِلِ، ④ وَيَقْطَعُونَ أَلْيَاتِ الْغَنَمِ. ⑤ فَقَالَ: "مَا يُقْطَعُ مِنَ الْبَهِيمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ ⑥ فَهِيَ مَيْتَةٌ لَا تُؤْكَلُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو واقد ليثي رضي الله عنه وايي ② کوم وخت چې نبي کريم ﷺ د مکي نه هجرت کولو سره مديني ته تشريف راوړو، ③ نو هغه وخت د مديني خلقو داسې کول چې د اوښ د قُب به ئې پريکولو ④ او د پسه د لم بوټۍ به يې کټ کولي [او بيا به يې هغه خوړلو] ⑤ حضور ﷺ وفرمايل چې کوم څيز د داسې حيوان د بدن نه کټ شي چې ژوندي وي، ⑥ نو هغه کټ شوي څيز مردار دې، هغه دې نه خوړل کيږي. (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَجُبُّونَ: جَبَّ يَجُبُّ دَ پرې کولو په معنی کښې دې. ② أَسْنِمَةَ: دَ سنام جمع ده دَ اوښ او غوئې وغيره قب ته وائي ③ أَلْيَاتِ: دَ ألية جمع ده دَ ګډ لکۍ او لم ته وئيلې شي

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا يُقْطَعُ مِنَ الْبَهِيمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ فَهِيَ مَيْتَةٌ لَا تُؤْكَلُ.

**دجاهليت د يو رسم حرمت:** دَجاهليت په دورکښې چه به کله عربو ته دَ غوښې ضرورت پيښ شو نودَ پوره ځناور دَ بچ کولو په غرض به ئې دَ ژوندی اوښ قب اودَ ژوندی ګډ لم پرې کولو اوغوښه به ئې استعمالوله. اسلام دَدې ظالمانه کار نه منع اوکړه اودغه شان جدا کړې شوې غوښه ئې حرامه اوګرځوله ځکه چه په دې کښې دم مسفوح شامل دې.

---

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الصيد/باب كتاب الصيد/باب فى صيد قطع منه قطعة (رقم-٢٨٥٨) والترمذى فى كتاب الأطعمة/باب ما قطع من الحى فهو ميت (رقم-١٤٨٠) واحمد فى المسند: ٢١٨/٥

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۴۰۹۳] په اضطراری ذبحه کښې د مطلق وینې بهول

۴۰۹۳-[۳۲] (¹)[۱] عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، «عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي حَارِثَةَ،[۲] أَنَّهُ كَانَ يَرْعَى لِقْحَةً[۳] بِشِعْبٍ مِنْ شِعَابِ أُحُدٍ،[۴] فَرَأَى بِهَا الْمَوْتَ،[۵] فَلَمْ يَجِدْ مَا يَنْحَرُهَا بِهِ،[٦] فَأَخَذَ وَتِدًا[۷] فَوَجَأَ بِهِ فِي لَبَّتِهَا[۸] حَتَّى أَهْرَاقَ دَمَهَا،[۹] ثُمَّ أَخْبَرَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۱۰] فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا». [۱۱] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَمَالِكٌ. وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ فَذَكَّاهَا بِشِظَاظٍ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عطاء ابن یسار د قبیلهٔ بن حارثه د یو سړي نه روایت کوي[۲] چې هغه [یوه ورځ] یوه اوښه چې لنګیدو ته نزدې وه،[۳] د احد د غره په یوه دره کې څروله.[۴] چه په هغې کې یې د مرګ اثار ولیدل، [یعنی هغه ولیدل چې اوښه په څه وجه مري][۵] هغه وخت د هغه څه داسې څیز اونه موندو[چې دهغې په ذریعه هغه اوښه یې نحر کړې وي][٦] آخر هغه یو میخ اوچت کړو[۷] او د هغې د څوکې د طرف نه د هغې اوښې په سینه کې یې ننه ایسته،[۸] تر دې چې د هغې وینه یې وبهیوله،[۹] بیا هغه دا واقعه رسول الله ﷺ ته بیان کړه، [او د هغې د غوښې باره کې یې پوښتنه وکړه چې په داسې صورت کې د هغې غوښه خوړل څرنګه دی؟][۱۰] حضور ﷺ ورته د هغې د غوښې د خوړلو اجازت ورکړو [۱۱] ابوداؤد، مالك، او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې آخر هغه په یو تیره [یعنی د څوکې ولا] لرګي سره ذبح کړله.

**حل اللغات:** ① يَرْعَى: څروله، ② لِقْحَةً: حامله اوښه چه لنګیدو ته نزدې وی. ③ بِشِعْبٍ: په یوه دره کښې، د غره په سر، ④ وَتِدًا: میخ، ⑤ فَوَجَأَ: نو ویتومبله، ⑥ لَبَّتِهَا: په مرئ دهغې کښې، ⑦ أَهْرَاقَ: اوئې بهیوله. ⑧ فَذَكَّاهَا: نو ذبحه ئې کړه، ⑨ شِظَاظٍ: تیره لرګې،

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ګرانو لغاتو حل اوشو اود حدیث مطلب د تشریحی ترجمې څخه واضح دی

## [۴۰۹۴] په دریابي ځناورو کې یواځې ماهی حلال دي

۴۰۹۴-[۳۳] (²)[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "«مَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْبَحْرِ[۳] إِلَّا وَقَدْ ذَكَّاهَا اللهُ لِبَنِي آدَمَ»". رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د اوبو یو داسې حیوان نشته [۳] چې الله تعالی د بني آدم د پاره ذبح کړي نه وی. (دارقطني)

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الضحايا/باب في الذبيحة بالمروة (رقم-۲۸۲۳)
(²) اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ٤ من كتاب الصيد والذبائح

**تسهيلات**: يعنى په دریاب کښې چه څومره څناوردى الله تعالى هغه ذبح کړى دى اوهغه دَانسان دَپاره حلال دى دَ دغه دريابى څناورونه مراد كبان دى ځکه چه هرقسم کب د ذبح نه بغير حلال دې

**د کب څخه علاوه د نورو دريابى څناورو په حلت او حرمت کښې مذهبين:**

① دَ کب نه علاوه نورسمندرى څناور د جمهورو په نيز حلال دى نودَهغوى په نيزدا حديث دَ ټولو دريابى څناورو دَپاره دې

② احناف صرف کب ته حلال وائى نودَهغوى په نيز داحديث صرف دَ کب دپاره دې دا اختلاف مخکښې تير شوې دې

# [ ۱ ] بَابُ ذِكْرِ الْكَلْبِ

**دَسپى متعلق دَاحکامو بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① شناعة إقتناء الكلب: ۱، ۲، ۵۔

② ما يجوز إقتناءه من الكلاب ولا يقتل: ۱، ۲، ۵، ۴۔

③ حكم قتل الكلاب : ۳، ۴، ۵۔

④ النهي عن تحريش الكلاب: ۶۔

**په مذکوره باب کښې د سپو درې قسمه احکام:**

① دکوم قسم سپى ساتل جائزدى

② دَ کوم قسم سپو ساتل ناجائزدى.

③کوم قسم سپې وژل جائزدى.

**په ابتداء د اسلام کښې د سپو د وژلووجه:** په جاهليت اولى کښې دَخلقو په زړونوکښې دَ سپو دَپاره ډير زيات محبت وو لکه نن صباچه دې. دَدې محبت ختمولودَپاره دَ اسلام په شروع کښې ډير زيات دَ سپو دَ وژلومهم شروع شوې وو. کله چه دَ خلقو په زړونوکښې نفرت پيدا شو نوبيا دَ يوڅو قسم سپو ساتلو اجازت ملاؤشو اودَ شوقيه سپى ساتلو ممانعت راغلو

**د څلورقسمه سپوساتلواجازت:** دَ ټولو احاديثواود فقهاؤ د اقوالو څخه معلوميږى چه څلور قسمه سپى ساتل جائزدى

① دَ څناورو دَ حفاظت په غرض.

② دَ ښکاردَپاره

③ دَ فصل دَحفاظت دَپاره

④ دکوردَ څوکيدارئى سپې هم شامل کړې دې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۴۰۹۸]بلا ضرورته د سپي په ساتلو د ثواب کمیدل

۴۰۹۸-[۱]()[۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]وَمَنِ اقْتَنَى كَلْبًا[۳]إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْضَارٍ[۴]نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]حضرت ابن عمر وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې سپي ساتي [۳] د خناورو د حفاظت کونکی سپي اود ښکاري سپي نه علاوه،[۴] نو د هغه د اعمالو په ثواب کې هره ورځ د دوو قیراطو په برابر کمي کيږي. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ① اقْتَنَى: اونې ساتلو، اونې پاللو، ② مَاشِيَةٍ: د چيلو رمه، ③ ضَارٍ: ښکاری سپې، ④ قِيرَاطَانِ:دا تشنيه ده دَدې مفرد قيراط دې قيراط دَ يو وزن نوم دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْضَارٍ:

**دکلب ضار څخه مراد:** دا هغه ښکاری سپی ته وائی چه دَ ښکار دومره شوق لری لکه چه ښکار دَهغه طبیعت ثانیه جوړشوي دې.

**په روایاتو کښې د ضار مختلف الفاظ :**

① بعضو کښې ضاری راغلې دې

② بعضې روایاتو کښې دا لفظ "ضاریاً" راغلې دې

③ بعضو کښې ضار راغلې دې دټولو نه مراد ښکاری سپې دې.

**قوله:** قِيرَاطَانِ:

**د قیراط په وزن کښې مختلف اقوال:**

① دا دَ دینار دَ لسمې حصې دَنیمې برابر وی.

② دا نصف دانګ دې.

③ دا دَ اوربشو دَ پنځو دانوبرابر وی.

④ دا دَ دینارڅلورمه حصه ده.

⑤ دا سپکوالی په توګه دَ وروکی شان څیزدَپاره هم یادولې شی

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب الشواء (رقم-۵٤۰۰) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب الأمر بقتل الكلاب، وبيان نسخه، وبيان تحريم اقتنائها إلا لصيد، أو زرع، أو ماشية ونحو ذلک (رقم-۵۰ - (۱۵۷٤) کتاب الأحکام والفوائد/باب ما جاء من أمسک کلبا ما ينقص من أجره (رقم-۱٤۸۷) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الرخصة فی إمساک الکلب للصید (رقم-٤۲۸٦) ومالک فی الموطا کتاب الاستئذان/باب ما جاء فی أمر الکلاب (رقم-۱۳) واحمد فی المسند: ۸/۲

**دشوقیه سپی په ساتلو د ثواب د کمیدو دوه وجوهات:**

① د رحمت فرښتې هغه کور ته نه راځي نوثواب متاثره کیږي

② سپي خلقو ته تکلیف ورکوي چیچي ئې غاپي ویرول کوي نود ثواب نقصان کیږي

**د قیراط په مقدارکښې تعارض:** بعضې احادیثوکښې د یوقیراط د ثواب کمیدو ذکر دې اوبعضو کښې د دوو قیراطو د کمی ذکردې کوم چه په ظاهره تعارض دې

**د تعارض ځلور جوابونه:** ① اول د یو قیراط وحی راغلې وه اوبیا د دوو قیراطو وحی راغله څه خاص تعارض نشته دې

① دا اختلاف د ځائی، ذماني او د سپو د تکلیف رسولو او د نه رسولو په اعتبار سره دې

② یا دا فرق د ځائی او د مقام د وجهې نه دې، لکه څوک چه په مکه مکرمه او مدینه منوره کښې سپی ساتی نو دوه قیراط او په نورو ښارونو کښې ئې ساتی نو یو قیراط. یا څوک چه په ښار کښې سپی ساتی نو دوه قیراط او چه په کلی، بانډه کښې ئې ساتی نو یو قیراط

③ په شروع کښې د یو قیراط دکمیدلو وعید راغلې وونو بیا ئې د خلقو په زړونو کښې د نوز قباحت زیاتولو دپاره د دوه قیراط کیمدلو وعید بیان کړو.

④ کله چه خلقو د سپو سره ډیر محبت ساتلو نو د دوه قیراط کمیدلو حکم راغې او کله چه د خلقو محبت سپو سره ختم شو نو د یو قیراط د کمیدلو حکم راغلو والله أعلم

**[۴۰۹۰] دشوقی سپی په ساتلو روزانه د یو قیراط اجر کمیدل**

۴۰۹۰-[۲] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنِ اتَّخَذَ كَلْبًا [۳] إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْصَيْدٍ أَوْزَرْعٍ، انْتَقَصَ مِنْ أَجْرِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې سپي ساتي [۳] د څناورو حفاظت کونکي، ښکار نیونکي او د پټئ د درمن څوکیداري کونکي سپي نه علاوه، [۴] نوده هغه دثواب نه روزانه د یوقیراط برابر کمې کیږي (بخاري ومسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث د مضمون تشریح ددې څخه وړاندې حدیث نمبر (۴۰۹۸) په تشریح کښې تیره شوه

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب اقتناء الکلب للحرث (رقم-۲۳۲۲) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب الأمر بقتل الکلاب، وبیان نسخه، وبیان تحریم اقتنائها إلا لصید، أو زرع، أو ماشیة ونحو ذلک (رقم-۵۸ - (۱۵۷۵) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الرخصة فی إمساک الکلب للحرث (رقم-۴۲۸۹) وابن ماجه فی کتاب الصید/باب النهی عن اقتناء الکلب، إلا کلب صید، أو حرث، أو ماشیة (رقم-۳۲۰۴) واحمد فی المسند:ومسلم فی /۲۶۷

**[۳۱۰۰] د سپو د وژلو حکم**

۳۱۰۰-[۳] ( )[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَتْلِ الْكِلَابِ، [۳] حَتَّى إِنَّ الْمَرْأَةَ تَقْدَمُ مِنَ الْبَادِيَةِ بِكَلْبِهَا فَنَقْتُلُهُ [۴] ثُمَّ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَتْلِهَا، [۵] وَقَالَ: "عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ ذِي النُّقْطَتَيْنِ [٦] فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ مونږ ته (د مديني) د سپو د وژلو حکم وکړو انومونږ به د مديني او اطرافو سپي وژل[۳] تر دي چې کومه ښځه به د ځنګل نه راتله او د هغې سره به سپي وو، نو مونږ به هغه سپي هم وژلو.[۴] بيا وروسته حضور ﷺ دعامو سپو د وژلو نه منع وفرمايله.[۵] اودا حکم يي وکړوچې خالص تور سپي چې ددوه نقطو والاوي وژل ستاسودپاره ضروري دي.[٦] ځکه چې هغه شيطان دي (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْبَادِيَةِ: کلي، ځنګل، ② بِالْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ: تک تور سپي. ③ ذِي النُّقْطَتَيْنِ: دوه نقطو والا. دوه داغ لرونکی،

**تسهيلات:**

**قوله:** أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَتْلِ الْكِلَابِ:

**د سپو د وژلود حکم وجه:** اول دَعامو سپودَ وژلو حکم راغلو دې دَپاره چه په زړونو کښې نفرت اوکركه پيدا شي. بيا دَ شوقيه او دَ اسودبهيم نه علاوه دَ سپو اجازت اوشو.

**قوله:** عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ:

**د بهيم اسود سپي د قتلولووجه:** يعنى داسې تك تور سپي دَ كوم دَ سترګو دَپاسه چه دوه سپين ټاكي اوداغونه وى داډير زيات شرير وى. دَ تكليف سبب وى اودَ فائدې نه خالى وى په دې وجه دې ته شيطان اوونيلې شو.

**[۳۱۰۱] د درې قسمه سپو د قتلولو نه استثناء**

۳۱۰۱-[۴] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ [۳] إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ كَلْبَ غَنَمٍ أَوْ مَاشِيَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دي [۲] چې نبي كريم ﷺ مونږ ته (د ټولو سپو يا د مديني) د سپو د وژلو حكم وكړو[۳] ليكن ښكاري سپي او د بزو حفاظت كونكي سپي او د څناورو حفاظت كونكي سپي يي مستثني كړل (بخاري ومسلم)

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب المساقاة/باب الأمر بقتل الكلاب، وبيان نسخه، وبيان تحريم اقتنائها إلا لصيد، أو زرع، أو ماشية ونحو ذلك (رقم-٤٧ - (١٥٧٢) والترمذى فى كتاب الأحكام والفوائد/باب ما جاء فى قتل الكلاب (رقم-١٤٨٦)

[۲]) اخرجه مسلم فى كتاب المساقاة/باب الأمر بقتل الكلاب، وبيان نسخه، وبيان تحريم اقتنائها إلا لصيد، أو زرع، أو ماشية ونحو ذلك (رقم-٤٦ - (١٥٧١)

**تسهيلات: قوله: أَوْكَلْبَ غَنَمٍ أَوْمَاشِيَةٍ:**

**د كلب ماشية مصداق:** يعني دَ چيلو دَ رمې دَ حفاظت دَپاره يا دَ خاروو دَ حفاظت دَپاره وی نودا جمله تعميم بعد تخصيص دَپاره ده يا اودَ شك دَپاره دې چه راوی ته شك شوې دې چه نبی کريم کوم يو لفظ استعمال کړې وو. غنم او ماشية هم يوځيز دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۱۰۳] د ټولو سپود نه قتلولو وجه

۳۱۰۳–[۵] (١) [١] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] قَالَ: " «لَوْلَا أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ [٣] لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا كُلِّهَا [٤] فَاقْتُلُوا مِنْهَا كُلَّ أَسْوَدَ بَهِيمٍ». [٥] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ. [٦] وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ: [٧] " «وَمَا مِنْ أَهْلِ بَيْتٍ يَرْتَبِطُونَ كَلْبًا [٨] إِلَّا نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِمْ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ [٩] إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ كَلْبَ غَنَمٍ».

**ترجمه:** [١] حضرت عبدالله ابن مغفل رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي [٢] چې حضور ﷺ وفرمايل كه دا خبره نه وي چې سپي هم د ډلونه يوه ډله ده، [٣] نو ما به يقينًا دا حكم كړې وو. چې دا ټول سپي دې ووژلي شي، [٤] نو په دوي كې چې كوم سپي د خالص تور رنګ وي، هغه ووژلي شي [٥] (ابوداود ، دارمی) [٦] او ترمذي رحمه الله او نسائي رحمه الله مزيد دا عبارت نقل كړې دې [٧] او كوم كور والا چې بلا ضرورته سپي ساتي، [٨] د هغوئ د عمل [د ثواب نه] روزانه د يو قيراط په قدر كميږي، [٩] ښكاري سپي او د پټي حفاظت كونكي او د رمې چوكيداري كونكي سپي د دې نه مستثني دي.

**حل اللغات:** ① أُمَّةٌ: أمت. يو جدا مخلوق، ② أَسْوَدَ بَهِيمٍ: تک تور سپې، ③ يَرْتَبِطُونَ: ساتی او پالنه نې کوی.

**تسهيلات: قوله: لَوْلَا أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ، لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا كُلِّهَا:**

**د سپو د قتلِ عام د ممانعت وجه:** لكه څنګه چه انسان الله تعالى دَ يوخاص مصلحت لاندې پيدا كړې دې اودَ هغه نسل ئې باقي اوساتلو هم دغه شان الله تعالى څناور هم دَ حكمت او مصلحت لاندې پيدا كړل. لهذا دا باقي ساتل هم دَحكمت تقاضا ده هم دَدې طرف ته په دې حديث كښې اشاره ده كه چرې سپي مستقل امت نه وې نوما به دَ ټولو دَختمولو حكم وركولو. دَ نوح عليه السلام په كشتئ كښې چه كوم انسان اوحيوان داخل شو دَهغې نسل به باقي پاتې كيږی په دې وجه دَ چا نسل دَ بيخه ختمول ممكن نه دی.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الصيد /باب فی اتخاذ الكلب للصيد وغيره (رقم-۲۸٤٥) والترمذی فی كتاب الأحكام والفوائد /باب ما جاء من أمسک كلبا ما ينقص من أجره (رقم-١٤٨٩) والنسائی فی كتاب الصيد والذبائح /باب صفة الكلاب التی أمر بقتلها (رقم-٤٢٨٠) وابن ماجه فی كتاب الصيد /باب النهی عن اقتناء الكلب. إلا كلب صيد، أو حرث، أو ماشية (رقم-۳۲۰۵) واحمد فی المسند: ٥/٥٤

**[۴۱۰۳] د ځناورو د جنګولو ممانعت**

۴۱۰۳-[۲۱] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ [۲] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د ځناورو د يو بل سره د جنګولو نه منع فرمايلي ده. (ترمذى ابوداود)

**حل اللغات:** ① التَّحْرِيشِ: ځناور د يو بل سره جنګول.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ:

**د حيواناتو د جنګولو حرمت:** مطلب دا دې چه اوښان هاتيان ګډان غوايان ميخې سپې چرګان اومرزان جنګول سخت منع دى. كه په شرط وى اوكه بغيرد شرط نه وى. كله چه د ځناورو جنګول منع دى نو انسانان ناحق جنګول به څومره لويه ګناه وى.

# وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

(په دې باب كښې فصل الثالث نشته)

# [۲] بَابُ مَا يَحِلُّ أَكْلُهُ وَمَا يَحْرُمُ

**دكوموځناورو خوړل حلال دى اودكوموحرام دى**

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وأربعون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① ما يحرم أكله: ۱، ۲، ۳، ۴، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹- ② ما يحل أكله: ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰ ، ۱۱، ۱۲- - المشروب الذى وقع فيه الذباب : ۱۲، ۳۹، ۴۰. حكم ما وقع فيه الفارة: ۱۳، ۲۰، ۲۱، ۲۸، ۲۹، ۳۰ ، ۴۳.

③ جواز قتل بعض الموذيات وعدم قتل بعضها: ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۳۳، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۳۸، ۴۱، ۴۴.

④ النهي عن تحريق النمل: ۱۹.

⑤ النهي عن تذليل بعض الحيوانات : ۳۱، ۳۲.

⑥ إتباع الكتاب والسنة فى التحليل و التحريم: ۴۲.

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد/باب فى التحريش بين البهائم (رقم-۲۵۶۲) والترمذى فى كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية التحريش بين البهائم والضرب والوسم فى الوجه (رقم-۱۷۰۸)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۳۰۳] د ذی ناب ځناور حرمت

۳۰۳ـ[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«كُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ فَأَكْلُهُ حَرَامٌ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] په د رندګـو کې چې کوم داړه ور وي. ایعنی چې په غاښ سره خپل ښکار نیسي لکه زمري او شرمښ وغیره] [۳] د هغې خوړل حرام دي (مسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ذي ناب ځناور تفصیل کتاب الصید حدیث ۴۰۸۹ په تسهیل کښې تیرشوې دي

## [۳۰۵] په پنجه ښکارکونکی مارغه د غوښې حرمت

۳۰۵ـ[۲] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ [۳] وَكُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷛ وایي [۲] چې رسول الله ﷺ د هر هغه درنده د غوښې خوړلو نه منع فرمایلي ده، چې داړه ور وي، [۳] او د هر هغه مارغه د غوښې خوړلو نه یې منع فرمایلي ده. کوم چې پنجه ور وي، [یعنی چې په خپلې پنجې سره ښکار کوي. لکه باز وغیره] (مسلم)

**حل اللغات:** ① ذي مِخْلَب: په پنجه سره شلونکی مارغان.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ذي مخلب ځناور تفصیل کتاب الصید حدیث ۴۰۸۹ په تسهیل کښې تیرشوې دي

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الصید/باب تحریم أکل کل ذی ناب من السباع. وکل ذی مخلب من الطیر(رقم-۱۵ - ۱۹۳۳) والترمذی فی کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی کراهیة کل ذی ناب وذی مخلب (رقم-۱٤۷۹) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب تحریم أکل السباع (رقم ٤۳۲٤) وابن ماجه فی کتاب الصید/باب أکل. کل ذی ناب من السباع (رقم-۳۲۳۳) ومالک فی الموطا کتاب الصید /باب تحریم أکل کل ذی ناب من السباع (رقم-١٤)واحمد فی المسند: ٤۱۸/۲

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب الصید/باب تحریم أکل کل ذی ناب من السباع. وکل ذی مخلب من الطیر(رقم-۱٦ - ۱۹۳٤) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب النهی عن أکل السباع (رقم-۳۸۰۳) وابن ماجه فی کتاب الصید/باب ما ینهی. عن قتله (رقم-۳۲۲٤)واحمد فی المسند: ۳۷۳/۱

[۴۱۰۶] د کورنی خر د غوښو حرمت

۴۱۰۶ـ [۳] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «حَرَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ اوحضرت ابوثعلبه رضی الله عنه وايي ۲ چې رسول الله ﷺ د کورني خرونو غوښه حرامه کړي ده، (بخاري مسلم)

**نوټ:** دحمر اهلي د حرمت بيان د حديث نمبر (۴۰۸۹) په تشريح کښې تيرشوې دې.

[۴۱۰۷] د آس د غوښې حلت

۴۱۰۷ـ [۴] (۲) ۱ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ۲ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ، ۳ وَأَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ اوحضرت جابر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د کورني خرونو د غوښې د خوړلو نه ممانعت جاري کړي وو، ۳ او د آسونو د غوښې خوړلو اجازت يې ورکړي وو. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ:

**د اس د نسل دوه صورتونه:** ① اس که دَخرِ دَ نسل نه وی نو دَهغه غوښه په اتفاق سره حرام ده

② که چرې په اس کښې دَ خرِ دَ نسل ګډوډوالې نه وی نوآیا دَهغې غوښه حلال ده که حرام؟ دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

## په دويم صورت کښې ۲ مذاهب:

① دَامام شافعی رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله اودَ صاحبينوحضراتو په نيز دَ اس غوښه حلال طيب ده.

② امام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه دَ اس غوښه خوړل مکروه ده يا مکروه تحريمی ده يا مکروه تنزيهی ده.

**د جمهورو دليل:** حديث الباب کښې په صراحت سره راغلی دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د اسونو د غوښې خوړلو اجازت ورکړې وو نو د اس غوښه حلاله شوه.

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصيد/باب لحوم الحمر الإنسية (رقم-۵۵۲۷) ومسلم فی کتاب الصيد/باب فی أکل لحوم الخيل (رقم-۲۳ - (۱۹۳۶))

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصيد/باب لحوم الحمر الإنسية (رقم-۵۵۲۴) ومسلم فی کتاب الصيد/باب فی أکل لحوم الخيل (رقم-۳۶ - (۱۹۴۱)) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی أکل لحوم الحمر الأهلية (رقم-۳۸۰۸) والنسائی فی کتاب الصيد والذبائح/باب إباحة أکل لحوم حمر الوحش (رقم-۴۳۴۳)

**جوابونه:** ① مذکوره حدیث جائز مع الکراهیة باندې محمول دې دې دپاره چه په دواړو احادیثوکښې تعارض پاتې نه شی

② دا مسئله دَ محرم اومبیح ده په کوم کښې چه محرم ته ترجیح ورکولې شی

**دامام ابوحنیفه اوامام مالک دلائل:** ① دَ قرآن آیت ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ [سورة النحل: ۸] دلیل دې طریقه دَ استدلال داسې دې چه الله تعالی په اسونوکښې اهم فائده په هغې باندې سورلی کول او "رُکُوب" گرځولې دې که چرې دَدې غوښه خوړل جائز وې نوالله تعالی به ضرور ارشاد فرمائیلو ځکه چه دَ رکوب نه خوړل زیات اهم وو اوالله تعالی اهم ذکرکوی

② اس دَ جهاد آله ده که چرې دا دغه شان ذبح کړې شی نودَ جهادمیدان به کمزورې شی

③ دَحضرت خالد رضی الله عنه حدیث نمبر (۳۳۰) دلیل دې دکوم الفاظ چه دادی «عن خالد بن الولید رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ نهى عن اکل لحوم الخیل والبغال والحمیر» (ابوداؤد نسائی)

**دامام ابوحنیفه دخپل قول څخه رجوع:** بهرحال دَ احنافوکتاب کفایت المنتهی کښې لیکلی دی چه امام ابوحنیفه رحمه الله دَ خپل انتقال نه درې ورځې مخکښې دَ دې قول نه دَ صاحبینو اودَ جمهورو دَ قول طرف ته رجوع کړې وه او هم په دې باندې فتوی ده په درمختارکښې هم داسې لیکلی دی چه امام صاحب دَ خپل قول نه رجوع کړې ده اوهم په دې باندې فتوی ده

## [۳۰۸] دَ ځنګلی خر دَ غوښې حلت

۳۰۸—[۵] ([1]) [۱] «وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّهُ رَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا [۳] فَعَقَرَهُ، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ؟ [۵]" قَالَ: مَعَنَا رِجْلُهُ، [۶] فَأَخَذَهَا فَأَكَلَهَا»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه نه روایت دي [۲] چې هغه ګور خر [ځنګلی خر] ولیدلو، [۳] او هغه یې ووژلو، [ببیا یې د رسول الله ﷺ نه د هغې د غوښو خوړلو د مسئلې پوښتنه وکړه] [۴] نو نبي کریم ﷺ پوښتنه ورنه وکړه چې تا سره د هغې د غوښې نه څه موجود دي؟ [۵] ابو قتاده رضی الله عنه اوویل چې زمونږ سره د هغې پښې موجودي دي، [۶] نو حضور ﷺ هغه پښې واخستې او هغه یې وخوړلې (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① حِمَارًا وَحْشِيًّا: ځنګلی خر. ② فَعَقَرَهُ: په خپو نې اوویشتله

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَخَذَهَا فَأَكَلَهَا:

**د نبی علیه السلام د ځنګلی خر غوښه خوړل:** ددې مطلب دا دې چه ابو قتاده وحشی خر ښکار

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصید/باب ما جاء فی التصید (رقم-۵٤۹۰)ومسلم فی کتاب الحج /باب تحریم الصید للمحرم (رقم-۶۳ - (۱۱۹۶) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب إباحة أكل لحوم حمر الوحش (رقم-٤۳٤۵)واحمد فی المسند: والنسائی فی/۳۰۸

کړو او د نبی کریم ﷺ نه ئې ددې د حلت متعلق تپوس وکړو نو نبی کریم ﷺ خپله وخوړلو او د حلت جواب یې په عملی توګه باندې ورکړو.

**[۳۰۹] د سوي د غوښې حلت**

۳۰۹- [۲۱] (۱) ① «وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ، ③ فَأَخَذْتُهَا فَأَتَيْتُ بِهَا أَبَا طَلْحَةَ ④ فَذَبَحَهَا وَبَعَثَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِوَرِكِهَا وَفَخِذَيْهَا ⑤ فَقَبِلَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې يوه ورځ مونږ په مقام مر الظهران کې د ښکار کولو د پاره په يو سوئي (خرګوش) پسې ولګيدو، ③ نو ما څغليدو سره هغه ونيوله. بيا مې ابو طلحه رضي الله عنه ته راوړه، ④ ابو طلحه رضي الله عنه هغه ذبح کړه، او د هغې يو کوناټي او دواړه ورنونه يې رسول الله ﷺ ته وليږل، ⑤ حضور ﷺ هغه قبول کړل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَنْفَجْنَا: د إنفاج څخه دي په معنى د راپارولو، اوويرولو په تيښته مجبور کول. را پارول او ويرولوسره ② أَرْنَبًا: خرګوش، سويه، ③ مَرِّ الظَّهْرَانِ: د يوې علاقې نوم دې. ④ بِوَرِكِهَا: ورك پېږ پتون او کوناټي ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِمَرِّ الظَّهْرَانِ:

**د مرالظهران محل وقوع:** دا يو ځائی دَ مکې او مدينې په مينځ کښې يوې زرې لارې سره نيزدې دَ مکې نه شمال طرف ته تقريبًا ۱۲ ميل فاصله باندې واقع دې. اويو د باغونو والا علاقه ده کوم ځائ کښې چه ډيره آبادی هم ده مکې معظمې ته تازه سبزيانې او دَ بوټو څيزونه هم دَ دې ځائ نه رسولې شي. دَ مکې خلق دلته دَ سيل دَ پاره هم راځی نن صبا دغه ځائ ته وادی فاطمه هم وائی خودا نسبت دَ حضرت فاطمة الزهری رضي الله عنها طرف ته نه دې بلکه پنځه ويش کم دوه سوه کاله وړاندې دَترکودَ زمانې فاطمې نومې يوې مالدارې ښځې طرف ته منسوب دي

**قوله:** بِوَرِكِهَا وَفَخِذَيْهَا:

**د رواياتو په الفاظو کښې اختلاف:** ① د ترمذی په روايت کښې په شك سره داسې نقل دي. ((بفخذها او بورکها))

② د مسلم په روايت کښې په فبعث بورکها أو فخذيها واقع شوي

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب قبول هدية الصيد (رقم-۲۵۷۲) ومسلم فی کتاب الصيد/باب إباحة الأرنب (رقم-۵۳ - (۱۹۵۳) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی أکل الأرنب (رقم-۱۷۸۹) والنسائی فی کتاب الصيد والذبائح/باب الأرنب (رقم-۴۳۱۲) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/ باب الرجلان يدعيان فی خص (رقم-۲۳۴۳) واحمد فی المسند: ۱۷۱/۳

③ د نسائی په روایت کښې فبعثنی بفخذیها وورکها واقع شوي دي.
**د روایاتو د اختلاف حل:** حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی ممکن دی چه فخذ او ورک دواړه ئ لیږلي شوي وی اوراوی په بعضې روایتونوکښې دَ ورک او په بعضې کښې دَ فخذ ذکر کړې دې لکه څنګه چې د نسائی په روایت کښې ((فبعثنی بفخذیها وورکها)) الفاظ راغلی دی
**قوله:** فَقَبِلَهُ:
**دسوې دغوښې د قبلولو مقصد:** نبی علیه السلام چې سوه قبوله کړه نو د دوی دا قبلول د خوراک دپاره وو د بل څه مقصد دپاره نه وو ددې څخه معلومه شوه چې د سوې غوښه خوړل حلال دی.

## د سوې په حلت اوحرمت کښې ۲ مذاهب:

① د عمرو بن العاص رضی الله عنه وغیره په نیزد سوې غوښه خوړل مکروه ده امام رافعی دَ امام ابوحنیفه رحمه الله نه یوروایت دَحرمت نقل کړې دې خوعلامه عینی رحمه الله فرمائی دا غلط دی زمونږ په احنافوکښې دَ چانه هم عدم جواز مروی نه دې او امام نووی رحمه الله هم دَ امام اعظم رحمه الله نه دَ حرمت روایت نقل کړې دې. خو امام کرخی رحمه الله فرمائی لم یروا جمیعًا بأسا بأکل الأرنب
② د جمهورو په نیزد سوې غوښه خوړل حلال دی
**داول فریق دلائل:** ① دَ حضرت خزیمه رضی الله عنه بن جزروایت د دوی مستدل دې (( قلت یارسول الله ماتقول فی الأرنب قال لا آکله ولا أحرمه. قلت لم یارسول الله قال إنی أحسب أنها تدمی وفی روایة نبئت أنها تدمی. (أخرجه ابن ماجه) دَ کوم حاصل چه دا دې چه دَ حضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه چه کله راوی تپوس اوکړو نورسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه نه ئې زه خورم اونه ئې حرام گرځوم
② دَ عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روایت دَ کوم چه داسې الفاظ دی جیئ بها الی رسول الله صلی الله علیه وسلم وأنا جالس فلم یأکلها ولم ینه عن أکلها وزعم أنها تحیض.
③ دَ عبدالله بن مغفل رضی الله عنه روایت دَ کوم الفاظ دی چه لا آکلها ولا أحرمها. (أخرجه الطبرانی)
④ سأل جریر بن انس رضی الله عنه النبی صلی الله علیه و سلم عن الأرنب فقال لا آکلها أنبئت أنها تحیض (اخرجه عبدالرزاق)
⑤ وقال حسن بن حسن بن علی رضی الله عنهم اذا عافها ولا أحرمها علی المسلمین (کذا فی العینی)
⑥ عن عکرمه رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم أنه أتی بأرنب فقیل له إنها تحیض فکرهها (عینی)
دَ دې روایتونونه ثابتیږی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خرگوش غوښه خوړل حرام خو نه دی گرځولی خو پخپله ئې خوړلې هم نه ده بلکه دکراهت اظهار ئې کړې دې لهذا دَ خرگوش غوښه به مکروه وی.
**د اول فریق د دلائلو مجموعی جوابونه:** ① په دې کښې اکثر روایات متکلم فیه دی لکه څنګه

چه عيني او ابن حجر عسقلاني اوداسې نورو شراحو تصريح کړې ده.

③ دا روايتونه په حلت باندې دال دی ځکه چه دَ حضور پاک فرمان لا أحرمه عين دليل دَ حلت دې.

④ پورته پيش کړې شوی روايتونوکښې صراحةً وارد شوې دې لم ينه عنها وأمر بأكلها. رسول الله ﷺ منع نه ده فرمائيلې بلکه صحابه کرامو ﷺ ته دَ ئ خوړلو حکم ورکړې دې

⑤ دَحديث مبارک شراح فرمائی دَ رسول الله ﷺ په هديه کښې خرګوش قبلول بل د حضرت عائشه ﷺ دَ پاره دَ هغې دَ غوښې څه حصه کيخودل او په هغې باندې خوړل اودَ دې متعلق دَ سوال په جواب کښې لاباس به فرمائيل دَ دې په حلال کيدو باندې دال دې

**د حيض دوجه دکراهت دوه جوابونه:** ① حضرت ګنګوهی ﷫ فرمائی ښکاره خبره ده چه دا دَ عجيبه او حيرانونکی حالت خبر دې دَ حرمت علت نه دې. ځکه چه دَ حيض راتلل شرعًا دَ اسبابو حرمت نه نه دی. قسطلانی ﷫ دَ بخاری شريف په شرح کښې دَ بعضې حضراتو نه نقل کړی دی چه اوښې باندې هم سره دَ نورو ځناورو حيض راځی حالانکه اوښه حلال اوخوړلې شی هم دغه وجه ده چه کله کلی والوخلقو رسول الله ﷺ ته اوونيل إنی رأيت بها دمًا نو رسول الله ﷺ او فرمائيل لاباس به او دويم روايت کښې دې فأمرنا بأكلها أولم يأكل وارد شوې دې

أخرجه ابو يعلى والطبراني والبيهقي من حديث عمار وابي ذر وابي الدرداء وابي عمر كذا في العيني.

② حضرت ګنګوهی ﷫ فرمائی چه دلته دَ أدماء معنی حيض نه ده بلکه إسالت دم ده. او مطلب دا چه دَ دې غوښه خو سراسر وينه ده ځکه چه که هر څو ځل دا اووينځې نو دَ دې نه هم وينه راوځی تردې چه په وينځلو وينځلو دا ختمه هم شی نو لکه دا دَ دم مسفوح په شان شوه سره دَ دې چه شريعت دا وينه نه ده تسليم کړې بلکه دَ عرف په اعتبار سره ئی دا غوښه ګرځولې ده. نور فرمائی که چرې دَ إدماء معنی سيلان دم (حيض) واخستلې شی نودې سره دَ اکل يعنی خوړلو جواز نور هم راجح کيږی ځکه چه کله فاسد وينه دَ دې نه خارج شوه نو دَ دې غوښه به نوره هم فائده منده شی. اوس پاتې شو دَ رسول الله ﷺ پخپله نه خوړل نوممکن دی چه دَ طبيعې کراهت په وجه وی او دَ إدماء خبر تنبيه ده په علت کراهية طبيعه باندې نه چه په کراهيت شرعيه باندې

**د دويم فريق دلائل:** ① روايت الباب په کوم کښې چه حضرت انس ﷺ دَ رسول الله ﷺ باره کښې په صراحت سره فرمائيلی دی چه رسول الله ﷺ دَ خرګوش هديه قبوله کړله نوښکاره خبره ده چه دَ قبلولو اعلی مفاد خوړل دی نوپه چا باندې دَ خوړلو دَ پاره به ئی هديه قبوله کړې وی.

② حديث جابر بن عبدالله ﷺ أن رجلا من قومه صاد أرنبًا أو ثنتين فذبحها بمروة فقطعها حتى لقى رسول الله صلى الله عليه وسلم فسأله فأمره بأكلها (أخرجه الترمذي)

③ دَ محمد رضی الله عنه بن صیفی روایت قال أتيت النبي صلى الله عليه وسلم بأرنبين فذبحهما بمروة فأمرني بأكلهما (أخرجه ابوداؤد وابن ماجه).

④ حدیث عمار رضی الله عنه قال كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فأهدي اليه رجل من الأعراب أرنبا فأكلنا فقال الأعرابي إني رأيت بها دما فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لابأس (أخرجه أبي شيبه بإسناد جيد)

⑤ حدیث ابن عباس رضی الله عنهما عن عائشة قالت أهدي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم أرنب وأنا نائمة فخبء لي منها العجز فلما قمت أطعمني (أخرجه الدارقطني)

⑥ عن إبراهيم رضی الله عنه أن رجلا سأل عبدالله بن عمر عن الأرنب فقال لابأس بها قال إنها تحيض قال إن الذي يعلم حيضها يعلم طهرها الخ. (أخرجه ابن أبي شيبه)

⑦ عن ابن المسيب عن سعد أنه كان يأكلها قيل لسعيد ماتقول قال كنت أكلها (عيني)

⑧ عن عبيد رضی الله عنه بن سعد أن بلالا رأي أرنبا فذبحها فأكلها (عيني)

⑨ عن الحسن إنه كان لا يري بأكلها بأسا (عيني)

⑩ قال طاؤس رحمه الله الأرنب حلال (عيني)

⑪ صح من حديث أبي هريرة رضی الله عنه أنه عليه السلام أتي بأرنب مشوية فلم يأكل منها وأمر القوم بأكلها (عيني)

دَ دې مذکوره مفصل روایاتواو آثارونه دا واضحه کیږي چه دَ خرګوش غوښه خوړل جائز دی او دَ دې په خوړلو کښې هیڅ قسم کراهت نشته دې.

**[۳۰] د سمسري د غوښې حکم**

٣٠—[٤] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت ابن عمر رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] سمساره زه نه خورم. او نه يې حرامه ګرځوم (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الضَّبُّ: سمساره، ګوه.

**تسهیلات:**

**قوله:** الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ

**دسمسارې عجائبات:** ① شارحينو ليکلي دی چه دګوه (سمساره) دوه ذکره وی

② اووه سوا کالو پورې دَدې عمر وی

③ اوبو ته نيزدې نه ورځی صرف په پرخه باندې ګذاره کوی

(١) اخرجه البخاري في كتاب الذبائح والصيد /باب الضب (رقم-٥٥٣٦) ومسلم في كتاب الصيد /باب إباحة الضب (رقم-٤٠ - (١٩٤٣) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في أكل الضب (رقم-١٧٩٠) وابن ماجه في كتاب الصيد /باب الضب (رقم-٣٢٤٢) كتاب الاستئذان /باب ما جاء في أكل الضب (رقم-١١)

④ خلوبنت ورخې پس يوڅاڅکي متيازې کوي
⑤ کله هم دَدې غابنونه نه پريوځي.

### د سمارۍ دخوړلو په حکم کښې ۲ مذاهب:

① ائمه ثلاثه، اسحاق بن راهويه او ظاهريه دَ جواز قائل دی
② احناف حضرات دا مکروه ګرځوي.

**① داول فريق دلائل:**

① دَ حديثِ الباب ((قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ)) نه معلوميږي چه رسول الله ﷺ ضب نه دې حرام کړې.

② عن ابن عباس رضي الله عنهما عن خالد بن الوليد أنه دخل مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بيت ميمونة رضي الله عنها فأتي بضب محنوذ فأهوى إليه رسول الله صلى الله عليه وسلم بيده فقال بعض النسوة أخبروا رسول الله صلى الله عليه وسلم بما يريد أن يأكل فقالوا هو ضب يا رسول الله صلى الله عليه وسلم فرفع يده فقلت أحرام هو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال لا ولكن لم يكن بأرض قومي فأجدني أعافه قال خالد فاجتززته فأكلته ورسول الله صلى الله عليه وسلم ينظر (أخرجه البخاري)

③ عن أبي سعيد الخدري رضي الله عنه مرفوعًا أن الله غضب على سبط من بني إسرائيل فمسخهم دواب يدبون في الأرض فلا أدري لعل هذا منها فلست آكلها ولا أنهى عنها قال ابوسعيد فلما كان بعد ذلك قال عمر رضي الله عنه إن الله عز وجل ينفع به غير واحد وإنه لطعام عامة الرعاة ولو كان عندي لطعمته (أخرجه مسلم)

④ عن ابن عمر رضي الله عنه قال كان أناس من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم منهم سعد فذهبوا يأكلون فنادتهم إمرأة أنه لحم ضب فأمسكوا فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم كلوا وأطعموا فإنه حلال اوقال لا بأس ولكنه ليس من طعامي (أخره البخاري ومسلم)

⑤ عن أبي هريرة رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم أتي بصحفة فيها ضباب فقال كلوا فإني عائفه (أخرجه الطحاوي)

⑥ عن خزيمه بن جزء رضي الله عنه قال قلت يا رسول الله جئتك لأسئلك عن أحفاش الأرض ما تقول في الضب قال لا آكله ولا أحرمه (الحديث) (ابن ماجه)

⑦ نورهغه روايات دی په کوم کښې چه لا أكله ولا أحرمه وارد شوی دی يا دَ رسول الله ﷺ په وړاندې دسترخوان باندې دَ ضب ذکر دې لکه چه امام ترمذی رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړی دی.

**استدلال:** دَ دې ټولو مذکوره رواياتو څخه معلوميږی چه رسول الله ﷺ پخپله خو ضب نه دې خوړلې مګر دَ خوړلو اجازت ئې ورکړې دې دَ رسول الله ﷺ په وړاندې نورو خلقو په دسترخوان باندې خوړلې دې نو معلومه شوه چه دَ دې خوراک جائز دې.

**داول فريق د دلائلو مجموعی جواب:** په دې روايتونو کښې اکثر متکلم فيه دی

② حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چه په رسول الله ﷺ په شروع کښې دَ دې باره کښې څه حکم نازل شوې نه وونو دَ دې باره کښې ئې خاموشي اختیار کړه لأن الأصل في الأشياء الإباحة او پخپله ئې دَ طبیعت په وجه دَ دې نه کراهت اوفرمائیلودَ رسول الله ﷺ وطن مالوف مکه معظمه کښې خودَ سر نه دَ دې وجود نه ووخودَ دې نه پس کله چه حرمت نازل شونو رسول الله ﷺ ډیر په سختئی سره منع اوفرمائیله اوکتهونی ئې هم اولته کړې كما هومفاد حديث عبدالرحمن بن شبل وحديث عبدالرحمن بن حسنة حاصل داچه دَ جواز دَ روایاتومحمل دَ شروع زمانه ده اودَ کراهت دَ روایاتو عمل آخرزمانه ده په دې وجه دغه دَ اتباع قابل دی

**دَ دویم فریق دلائل:** ① دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت إنه أهدي للنبي صلى الله عليه وسلم ضب فلم يأكله فقام عليه سائل فأرادت عائشة رضي الله عنها أن تعطيه فقال لها أتعطيه مالا تأكلين (أخرجه الطحاوي)

حضرت امام محمد رحمه الله دَ دې روایت نه استدلال کوی او فرمائی چه دَ روایت نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ دَخپل ځان دَپاره اودَ نورودَ پاره دَ ضب خوړل مکروه ګنړلی دی

② حديث عبدالرحمن رضي الله عنه بن حسنة قال نزلنا أرضا كثيرة الضباب فأصابتنا مجاعة فطبخنا منها وان القدور لتغلي بها إذ جاء رسول الله صلى الله عليه وسلم (الحديث) وفيه أنهم طبخوا منها فقال النبي صلى الله عليه وسلم إن أمة من بني إسرائيل مسخت دواب في الأرض فأخشى أن تكون هذه فأكفوها قال الحافظ سنده على شرط الشيخين (أخرجه أبوداؤد وابن حبان والطحاوي وأحمد)

③ حديث عبدالرحمن بن شبل رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن أكل الضب ، دا روایت په کراهت دَ اکل کښې صریح دې

④ حديث ابوسعيد رضي الله عنه أتيت به رسول الله صلى الله عليه وسلم فأخذ عودا فعد به أصابعه ثم قال إن أمة من بني اسرائيل مسخت دواب في الأرض (الحديث)

⑤ حديث ابن عمر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وددت أن عندي خبزة بيضاء من برة سمراء ملبقة بسمن ولبن فقام رجل من القوم فاتخذه فجاء به فقال في أي شئ كان هذا قال في عكة ضب قال ارفعه. (أخرجه ابوداؤد وابن ماجه)

**استدلال:** دَ دې پورته ذکرشوو روایاتونه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ دَ ضب غوښه خوړلونه منع فرمائیلې ده او دَ نفرت دَ اظهار دَ پاره کتهونی هم الته کړی. که چرې ضب حلال وې نورسول الله ﷺ به دَ دې باره کښې دومره سختی نه کوله

⑥ فقهاء کرامو حضراتو فرمائیلی دی چه دَ یو قوم دَ یو ښناور په شکل باندې مسخ کیدل دَ هغه ښناور دَ خباثت علامت دې. حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه دَ ښناورودَ حرمت باره کښې داهم کتل پکاردی چه آیا دَ دې په صورت کښې چرته یو قوم مسخ شوې دې که نه لکه چه بیزوګان اوخنزیران دی. سره دَ دې چه دَ مسخ شوی قوم نسل

باقي نه وي (كماورد في الحديث) مګر دَ دغه ځناور په شکل مسخ کيدل بهرحال دَ هغې دَ خبث علامت دي.

⑥ دَ ضب دَ خوراک باره کښې دواړه قسم روايات وارد شوي دي په بعضو سره حلال والې او بعضوسره حرام والې ثابتيږي دَ فقهاؤ دَ تصريح مطابق کله چه دَ حلت او د حرمت په رواياتوکښې تعارض وي نواحتياطًا دَ حرمت رواياتو ته ترجيح ورکولې شي نودلته به هم حرمت راجح وي.

**دنبي عليه السلام د نه خوړلو وجه:** نبي کريم دَ طبعي کراهت دَ وجهې دا نه ده خوړلې او په نورو باندې ئې حرام کړې نه ده. چنانچه دَ امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نيز دَدې غوښه حلال ده. ليکن امام ابوحنيفه رحمه الله د دې روايت څخه استدلال کوي

وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «نَهَى عَنْ أَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. امام ابوحنيفه رحمه الله په دې روايت سره دَ حلت روايات منسوخ ګرځوي.

### [٣٨] د نبي عليه السلام د سمساري خوړلوڅخه طبعي کرکه

٣٨—[٨] ( )[1] [١] «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ أَخْبَرَهُ [٢] أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى مَيْمُونَةَ [٣] وَهِيَ خَالَتُهُ وَخَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ، [٤] فَوَجَدَ عِنْدَهَا ضَبًّا مَحْنُوذًا، [٥] فَقَدَّمَتِ الضَّبَّ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٦] فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَهُ عَنِ الضَّبِّ.

**ترجمه:** [١] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه هغه ته بيان وکړو [٢] چې يوه ورځ حضرت خالد رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره د بي بي ميموني رضي الله عنها کور ته ورغلو. [٣] چې د حضرت خالد رضي الله عنه خاله (د مور خور) هم وه، او د ابن عباس رضي الله عنهما هم خاله وه [٤] هلته د هغې سره هغوئ (يعني حضور ﷺ او حضرت خالد رضي الله عنه) يوه پخ کړې سمساره وليدله. [٥] بي بي ميموني هغه سمساره د رسول الله ﷺ په مخکې پيش کړه، [٦] ليکن رسول الله ﷺ د هغې سمسارې نه خپل لاس مبارک راښکل

**حل اللغات:** ① مَحْنُوذًا: وريت کړې شوې، پوخ کړې شوې. ②-فَرَفَعَ: لاس ئې راښکلو (د خوړلو د هغې نه).

[١] فَقَالَ خَالِدٌ: أَحَرَامٌ الضَّبُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [٢] قَالَ: "لَا، وَلَكِنْ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي، [٣] فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ" [٤] قَالَ خَالِدٌ: فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ [٥] وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْظُرُ إِلَيَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] په دې ليدو سره حضرت خالد رضي الله عنه پوښتنه وکړه، يا رسول الله! ﷺ آيا سمساره حرامه ده؟ [٢] حضور ﷺ وفرمايل چې نا، بلکې دا زما د قوم په زمکه [حجاز] کې نه

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب الذبائح والصيد/باب الضب (رقم-٥٥٣٧) ومسلم في كتاب الصيد/باب إباحة الضب(رقم-٤٤ - (١٩٤٦) والنسائي في كتاب الصيد والذبائح/باب الضب (رقم-٤٣١٧)واحمد في المسند: والترمذي في/٣٩٤

وی،[۳] خکه زه د دې نه [طبعي کراهت] محسوسوم،[۴] د حضرت خالد ﷺ بیان دې. په دې اوریدو سره ما هغه سمساره د خان طرف ته راښکله، او اومې خوړله ،[۵] او حضور ﷺ زما طرف ته کتل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ③أَعَافُهُ: کرکه ددې ④فَاجْتَرَرْتُهُ: دا مې خپل خان طرف ته راښکله.

**تسهيلات**:

**نوټ**: ددې حدیث د مضمون پوره تفصیل د مذاهب د بیان سره ددې ځخه وړاندې حدیث نمبر (۴۱۱۰) په تشریح کښې تیرشو.

**[۴۳] دچرګ د غوښې حلت**

۴۳ــ[۹] ()[۱] «وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْكُلُ لَحْمَ الدَّجَاجِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوموسی ﷺ وايي [۲] چې ما رسول الله ﷺ د چرګ په غوښه خوړلو ليدلي دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ①الدَّجَاجِ: چرګ.

**تسهيلات**:

**قوله**: يَأْكُلُ لَحْمَ الدَّجَاجِ

**دَ لفظ دجاج تحقیق**: الدجاج اسم جنس مثلثة الدال ضبط کړې شوې دې لکه چه دمشقی، ابن مالک اومنذری وغیره نقل کړی دی خوعلامه نووی صرف دَ دال فتح اوکسره بیان کړې دې دَ ده واحد دجاجة هم مثلثة الدال دې اومذکر اومؤنث دواړودَ پاره استعمالیږی خوعلامه حربی په غریب الحدیث کښې فرمائی چه دجاج بالکسر فقط دَ مذکردَ پاره استعمالیږی اودَ دې واحد من غیر لفظه دیک دې او دجاج بالفتح مؤنث دَ پاره او دَ دې واحد دجاجة دې

**د دجاج وجه تسمیه**: علامه ابن سیده وائی چه دجاجه د دج یدج نه ماخوذ دې دَ کوم معنی چه بار بار په تیزئی سره تلل راتلل دی چرګه هم بار بار ځی راځی په دې وجه دې ته هم دجاجه وئیلی شی.

**دچرګې کنیت**: دَ دې کنیت ام الولید، ام حفصه، ام جعفر، ام عقبه، ام احدی و عشرین، ام

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصید/باب لحم الدجاج (رقم-۵۵۱۷) ومسلم فی کتاب الأیمان/باب ندب من حلف یمینا فرأی غیرها خیرا منها، أن یأتی الذی هو خیر، ویکفر عن یمینه (رقم-۹ - (۱۶۴۹) ومسلم فی کتاب الصید/باب إباحة الجراد (رقم-۵۲ - (۱۹۵۲) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أکل الدجاج (رقم-۱۸۲۷) والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب إباحة أکل لحوم الدجاج (رقم-۴۳۴۸) واحمد فی المسند: والترمذی فی/۳۹۴

قوب او ام نافع دي

**دَ چرگې دَ غوښې شرعي حکم:** دَ چرگې غوښه په اتفاق سره جائز ده که چرگه ساتلې شوې وی او که وحشيه يعنی ځنګلی وي

**دَ چرگې بعضې خواص:** ① چرگه دَ بزدلئی په وجه قليل النوم او سريع الانتباه دي

② په عام توگه باندې په اوچت ځائي اوده کيږی

③ دَ نمر ډوبيدو سره په دې دَ خوب غلبه راځی

④ دَ دې بچې دَ هگئی نه پشمين (د پشم په شان نرم) اوښانسته پيدا کيږيَ اوتيونگې وهلوباندې پوهيږی سريع الحرکت وی

⑤ چې څومره چه ورځې تيريږی په دې کښې حماقت او دَ حسن کمې پيدا کيږی تردې چه په آخره کښې بدشکله چرگه ترې جوړه شي

⑥ دَ چرگې بعضې هغه قسمونه دی چه په يوه ورځ کښې دوه هگئی اچوی او بعض هغه دی چه دَ يخنئی دؤو مياشتو نه علاوه ټول کال هگئی اچوی

⑦ علامه قزوينی وائی چه دَ چرگې په ججوره کښې يو کانړی وی که دا مرگی والا سره اوتړې نو شفابه ئی اوشی

⑧ په غاړه کښې ئ زوړندول دَ قوت باه دَ پاره مفيد دی

⑨ اودَ بدنظر نه دَ حفاظت ذريعه ده اوکه دَ يوماشوم دَ سرلاندې کيخودې شی نو هغه به په ⑩ خوب کښې نه ويريږی

**[۳۳] د ملخ د خوراک حکم**

> ۳۳-[۱۰]()[۱] «وَعَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَبْعَ غَزَوَاتٍ [۳] كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن ابي اوفي وايي، [۲] چې مونږ د رسول الله ﷺ په ملگرتيا کښې اووه جهادونه کړی دی، [۳] مونږ په [هغه موقع] د رسول الله ﷺ سره ملخان خوړل (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْجَرَادَ: ملخان، جراد په فتح دَ جيم اوتخفيف دَ راء سره دي واحد ئی جرادة دي اودَ حمامه په شان دا هم دَ مذکر اومؤنث دواړو دَ پاره استعماليږی

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الذبائح والصيد/باب أكل الجراد (رقم-۵۴۹۵) ومسلم فی کتاب الصيد/باب إباحة ميتات البحر (رقم-۱۷ - (۱۹۳۵) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی أكل الجراد (رقم-۳۸۱۲) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی أكل الجراد (رقم-۱۸۲۲) والنسائی فی کتاب الصيد والذبائح/باب الجراد (رقم-۴۳۵۶)واحمد فی المسند: والترمذی فی/۳۸۰

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ:

**د ملخ قسمونه او رنگونه:** بعضې د لويو بدنونووالا دی بعضې واړه دی اودَ دوی رنگونه هم مختلف دی بعضې سره بعضې زيړ او بعضې سپين دی

**د ملخ د كب د انټوشى څخه پيدا كيدل:** دَ بعضې حضراتو رائى داده چه دا د كب د انتروشى نه پيدا شوی دی هم په دې وجه دَ كب په شان بغيردَ ذبح دَ دې خوړل حلال دی

**دليل:** دَدې تائيدپه يوضعيف روايت سره هم كيږی دكوم تخريج چه ابن ماجه مرفوعًا دَ حضرت انس رضی الله عنه نه كړې دې ان الجرادة نثرة حوت من البحر دغه شان دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت كلوه فانه من صيد البحر( اخرجه ابوداؤد والترمذی وابن ماجه) هم دَ دې مؤيد دی كنيت ئ ابوعوف او ام عوف دې.

**دَ ملخ خواص:**

① ملخ په خنگل كښې هگئی اچوی اودَهغې دَ اوچيدو پورې هغه پريږدی.

② هميشه خپل مشر سره الوزی په كوم فصل چه ورشی هغه برباد كوی

③ كه يو سړی ته متيازو كښې تكليف وی نو هغه ته دَ لوئ ملخ په لوگی كولو سره به فائده اوشی

④ دَ اوږدې غړانگې والا ملخ چه دَ مريض په غاړه كښې واچولې شی نو هرڅلورمه ورځ باندې راتلونكې تبې دَ پاره فائده مند دې

⑤ ابن سينا ونيلی دی چه دَ دولسو ملخانو خپې لاسونه او سر دَ كشمالی دَ بوټی پوستكی سره ملاوول او څكل دَ استسقاء په مرض كښې فائده وركوی

⑥ كه دَ دې دَ هگومرهم دَ مخ په دانوباندې اولگولې شی نوداغونه به ئې ختم شی

**دَملخ شرعی حكم:** د ملخانودوه قسمونه

① بحري ملخان: دَ بحری ملخانو خوراک په اتفاق سره حرام دې

② بري ملخان د دې په خوراک كښې اختلاف دې

**د بری ملخانو په خوراک كښې دوه مذاهب:**

① بعضې شافعيه ضميری وغيره فرمائی چه دَ دې خوراک مكروه دې اودَ حضرات مالكيه باره كښې مشهور دی چه هغوی دَ دې دَ جواز دپاره دَ ذبح شرط لگوی.

② د جمهور علماؤ په دې خبره اتفاق دې چه دَ دې خوراک جائز دې

③ د ملخ د حلت دپاره د مالكيانومختلف اقوال

① بعضې مالکیه وائي چه دَ دې سر پریکول کافي دی
② بعضې وائي چه دَ دې په کتوني یااُور کښې اچول کافي دی.
③ ابن وهب مالکي فرمائیلي دی چه دَ دې رانیول به هم ذبح شمیرلې کیږی
④ مطرف مالکي فرمائي چه دَ ذبح هیڅ حاجت نشته خکه چه ابن عمر رضی الله عنهما

**د څلورم قول دلیل**:دَ نبی کریم ﷺ نه مرفوعًا نقل کړی دی أحلت لنا میتتان ودمان السمك والجراد والكبد والطحال (أخرجه أحمد والطبراني والدارقطني) معلومه شوه چه دَ ذبح هیڅ حاجت نشته اودا روایت سره دَ دې چه په اصح قول باندې موقوف دې خو دَ مرفوع په حکم کښې دې

**د اول فریق اول دلیل**:① رسول الله ﷺ دَ دې دَ خوراک نه کرکه فرمائیلې ده لکه څنګه چه دَ ضب دَ خوراک نه ئې کرکه فرمائیلې ده او دَ استدلال په توګه ئې دَ سلمان فارسی رضی الله عنه هغه روایت پیش کړې دې دَ کوم تخریج چه امام بخاری کړې دې إنه رسول الله صلى الله عليه وسلم سئل عن الجراد فقال لا آكله ولا أحرمه.

**د اول فریق د اول دلیل جواب**:دا روایت مرسل دې دَ کوم تفصیل چه امام ابوداؤد فرمائیلې دې.

**داول فریق دویم دلیل**:② دغه شان ابن عبدی دَ ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت انه سئل عن الضب فقال لا آكله ولا أحرمه وسئل عن الجراد فقال مثل ذلك نقل کړې دې. نومعلومه شوه چه دَ ملخ خوراک مکروه دې

**د اول فریق د دویم دلیل جواب**: دا روایت ضعیف دې په دې کښې ثابت بن زبیر راوی ضعیف دې كما قال النسائي.

**د دویم فریق دلائل**: ① روایت الباب په کوم کښې چه راوی دَ رسول الله ﷺ سره دَ جهاد په موقع باندې دَ ملخ دَ خوړلو بیان کړې دې دَ ترمذی د روایت نه معهٔ في الأكل صراحةً نه معلومیږی خو په بعضې روایاتو کښې راغلی دی نأكل معه الجراد اودَ ابونعیم په روایت کښې دَ يأكل معنا لفظ صراحةً دَ رسول الله ﷺ په خوړلو باندې دلالت کوی اګر چه اکثر روایاتو د معه د لفظ نه خالي دی نوبیابه دا تاویل کولې شي چه دَ رسول الله ی ﷺ په وړاندې چه کله صحابه کرامو ملخان اوخوړل نو حبیب پاک خاموش پاتې شونوتقریراً جواز ثابت شو

② حدیث أنس رضی الله عنه كن أزواج النبي صلى الله عليه وسلم يتهادين الجراد في الطباق (رواه ابن ماجه

③ عن ابن عمران عمر سئل عن الجراد فقال وددت لو أن عندي قفعةً فأكل منه (موطا)

④ عن ابي امامة ان النبي صلى الله عليه وسلم قال ان مريم بنت عمران سألت ربها ان يطعمها لحما لادم له فأطعمها الجراد (رواه البيهقي).

⑤ حديث ابن عمر رضی الله عنهما احلت لنا ميتتان السمك والجراد والكبد والطحال.

دَ دې دلائلو په رڼا کښې جمهور حضرات بغير د کراهت نه دَ ملخ خوراک ته جائز وائي دا رنګ علامه نووي رحمه الله دَ مخ دَ خوړلو په جواز باندې دَ علماؤ اجماع نقل کړې ده.(۱)

**ده معه لفظ اضافه بوګمې**: دَ حديث په اکثررواياتوکښې معه لفظ نشته دې اوچرته چه دا لفظ شته نودَدې مطلب دادې چه دَ نبی کريم په موجودګئ کښې صحابه کرامو ملخ خوړلې دې. پخپله نبی کريم چرته ملخ نه دې خوړلې اونه ئې په نورو حرام کړې دې.

**[۴۳] د دریابی کب د خوراک واقعه**

۴۳–[۱۱] ()[۱] «وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] غَزَوْتُ جَيْشَ الْخَبَطِ،[۳] وَأُمِّرَ عَلَيْنَا أَبُو عُبَيْدَةَ [۴] فَجُعْنَا جُوعًا شَدِيدًا،[۵] فَأَلْقَى الْبَحْرُ حُوتًا مَيِّتًا لَمْ نَرَ مِثْلَهُ،[۶] يُقَالُ لَهُ: الْعَنْبَرُ،[۷] فَأَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ،[۸] فَأَخَذَ أَبُو عُبَيْدَةَ عَظْمًا مِنْ عِظَامِهِ[۹] فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهُ،

**ترجمه**: [۱] اوحضرت جابر رضی الله عنه وايي [۲] چې په جيش الخبط [يعنی د پاڼي خنډلو خوړونکي لښکر] سره په جهاد کې تلونکي کې زه هم شريك وم،[۳] حضرت ابوعبيده د هغه لښکر مشر (سالار) جوړ شوي وو،[۴] موږ سخت اوږي شو،[۵] نو سمندر يو مهئ غاړې ته را اوغورځولو، موږ داسې غټ مهئ هيڅ کله نه وو ليدلي،[۶] دې قسم مهئ ته يې عنبر ويلی،[۷] موږ د هغه نه د تر نيمي مياشتي ډير په فراخي سره اوخوړلو،[۸] بيا حضرت ابوعبيده رضی الله عنه د هغه د هډوکو نه يو هډوکي [يعنی د هغه پښتي ودروله][۹] نو د هغه لاندې يو په اوښ سپور په ډيره آساني سره تير شو،

**حل اللغات**: ① جَيْش: لښکر، ② الْخَبَط: خبط دَ ونو پاڼړو ته وائی. ③ فَجُعْنَا: نو موږ اوږی شو، ④ حُوتًا: غټ کب، منې، ⑤ الْعَنْبَرُ: يو قسم کب دې،

[۱] فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَكَرْنَا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقَالَ: "كُلُوا رِزْقًا أَخْرَجَهُ اللَّهُ إِلَيْكُمْ،[۳] وَأَطْعِمُونَا إِنْ كَانَ مَعَكُمْ" [۴] قَالَ: فَأَرْسَلْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْهُ فَأَكَلَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] د دې نه پس چې موږ مديني ته راغلو، نو موږ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په مخکې د دې واقعې ذکر وکړو[۲] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل کوم رزق چې الله تعالی تاسو ته رسولي دي، هغه خورئ. [يعنی تاسو ښه وکړه چې هغه ماهی مو وخوړلو، ځکه چې الله تعالی هغه ستاسو رزق جوړولو سره تاسو ته رسولي وو، يا دا چې د هغه يو بل رزق پيدا کړي، نو هغه خورئ]

(۱) لکن فصل ابن العربی فی شرح الترمذی بين جراد الحجازی وبين جراد الأندلسی. فقال فی جراد الأندلس لايؤکل لأنه ضرر محض لأن فيه سميته محضة. ۱۲

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة سيف البحر. وهم يتلقون عيرا لقريش. واميرهم ابو عبيدة بن الجراح رضی الله عنه (رقم-۴۳۶۲)ومسلم فی صحيح رقم الحديث ۱۷/ ۱۹۳۵ وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی دواب البحر (رقم-۳۸۴۰)والنسائی فی کتاب الصيد والذبائح/باب ميتة البحر (رقم-۴۳۵۲) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب معيشة أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۴۱۵۹) ومالک فی الموطا کتاب صفة النبی صلی الله عليه وسلم/ جامع ما جاء فی الطعام والشراب (رقم-۲۴) واحمد فی المسند:۳۷۸/۳

[۳] او كه په هغه كې څه حصه تاسو سره پاتې وي، نو په مونږ يې هم وخوري [دا خبره ګويا حضور ﷺ د هغوئ د خوش دلي د پاره او د هغه ماهي د حلال كيدو حكم مؤكد كولو په غرض وفرمايله، چې د هغه خلقو په زړه كې دا خيال پيدا نشي، چې هغه ماهي په اصل كې خو جائز نه وو، خو زمونږ د اضطراري حالت پيش نظر هغه زمونږ د پاره حلال كړل شوي دي] [۴] حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې مونږ د هغه ماهي څه حصه د رسول الله ﷺ په خدمت كې وليږه، او حضور ﷺ د هغه نه وخوړله. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** غَزَوْتُ جَيْشَ الْخَبَطِ:

**د سرية الخبط وجه تسميه:** خبط دَ ونو پاڼو ته وائي. چونكه په دې غزوه كښې اسلامي لښكر دَ ونوپاڼې راشوكولې اوخوړلې. تردې چه شنې پاڼې هم ختمې شوې په دې وجه دَدې نوم سرية الخبط او جيش الخبط شو. دې ته سرية سيف البحر هم وائي. يعنى دَ سمندر دَ غاړې لښكر.

**دحديث پس منظر:** دَمدينې منورې نه دا ځائى دَ پنځو شپو په فاصله باندې دَ سمندرپه غاړه واقع دې. درې سوا صحابه كرام په دې چهاپه مار جنګ كښې شريك شوى وو دكوم امير چه حضرت ابوعبيده بن الجراح وو. په كال ۸ھ كښې دَ صلح حديبيه نه مخكښې دا واقعه پيښه شوې ده. دَ ونو پاڼې خوړلوسره دَ صحابه كرامو شونډې اوشليدلې اوخلې ئې زخمي شوې او قضاء حاجت به ئې دَ پچو په شان كيدلو. په آخره كښې الله تعالى امداد اوكړو او يو اژدها وهيل كب سمندر بهر راغوزاركړو

**قوله:** فَأَلْقَى الْبَحْرُ حُوتًا مَيِّتًا لَمْ نَرَ مِثْلَهُ:

**د كب څېړوالې:** دكوم نوم چه عنبر وو. دَ غټوالى په وجه دا دَ دابة په لفظ سره هم ياد كړې شوې دې ګنى دا كب وو لكه څنګه چه په زيربحث دَبخارى اومسلم حديث كښې دې ته حوت وئيلې شوې دې. دريو سوو مجاهدينو يوې مياشت پورې دا خوړلو. صحابه كرامو دَدې نه په زيات مقدار كښې تيل هم حاصل كړل په كشتوكښې ئې هم استعمال كړل او په بدنونو باندې ئې هم اومږل. دَ كب دَ سترګې په كنده كښې ۹كسان كيناستل اوښكاريدل به نه. دَ پوښتئى دَ هډوكى لاندې په اوښ باندې سور سړې تيركړې شو

**په رواياتوكښې تعارض:** بعضې رواياتوكښې ۱۵ ورځو او بعضو كښې ۱۸ ورځو پورې دَ خوړلو ذكر دې

**د تعارض حل:** په دې كښې هيڅ تعارض نشته دې ځكه چه چاڅومره ورځې خوړلې دې هم دَهغې ذكرئې كړې دې. پوره لښكر ۱۵ ورځې خوړلې دې بيا چه چاسره څومره غوښه پاتې شوه هغوى هم هغومره ورځې اوخوړله چا ۱۸ ورځې او چا ۳۰ورځې خوړلې ده.

**د نبی علیه السلام د حوت خوړ لو وجوهات:**

① چونکه دا یو برکتی کب وو د دې وجهې نبی کریم هم خوړلې ده
② په دې خوراک کښې د نبی علیه السلام د طرفه دَ صحابه کرامو خاطرداری مقصود وه
③ په دې خوراک کولو سره نبی علیه السلام عملی طور د دې کب د خوراک فتوی ورکړه

**[۳۱۵] په طعام کښې د مچ په غورزیدو د هغې حکم**

۳۱۵—[۱۳] (١) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ ③ فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ ثُمَّ لِيَطْرَحْهُ ; ④ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَاءً وَفِي الْآخَرِ دَاءً»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې په تاسو کې د یو سړي په لوښي کې اچې په هغې کې د خوراك څښاك څیز ویا مچ پریوځی. ③ نو هغه ته پکار دي، چې پوره مچ ته غوټه [غوپه] ورکړي. او بیا یې په را اوباسی او وئ غورځوي، ④ ځکه چې د هغه [مچ] د دواړو وزرو نه په یو وزر کی شفاء ده. او په دویم کې بیماري ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الذُّبَابُ: مچ . ② فَلْيَغْمِسْهُ: نو غوپه دې ورکړی. اودې تومبی. ③ لِيَطْرَحْهُ: بيا دې اوغورزوی.

**تسهیلات: قوله:** إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِ:

**د څیزونودوه قسمونه:** ① یوګرم اوبوخ شوې څیز وی لکه چائې که مچ په چائیویا ګرمه ترکاری کښې پریوځی اوبوخ شی نودې دَ خوراك څښاك تذکره په دې حدیث کښې نشته دې هغه خو په طبعی اوعرفی توګه باندې دَ استعمال قابله نه دې
② که د خوراک څیز یخ وی لکه پینی لسی شربت اویا یخه ترکاری، نوکه مچ په داسې یخ څیزونو کښې پریوځی. نوپه دې حدیث کښې هم دَ داسې صورت باره کښې نبی کریم ارشاد فرمائیلې دې چه مچ په دې کښې ورډوب کړه اوبیا راویستو سره بهر اوغورزوه

**قوله:** فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ ثُمَّ لِيَطْرَحْهُ:

**دمچ د ډوبولو وجه:** دَ ډوبولو وجه نی دا خودلې ده چه دَ مچ په یو وزر کښې زهر اوبیماری ده او دویم کښې دَدې علاج اوشفاء ده. وړاندې دَ فصل ثانی په حدیث نمبر (۳۳۳)، (۳۳۴) کښې دا تفصیل دې چه مچ دَ شفاء والا وزر دَ ډوبولونه ساتی دې دَپاره چه صرف بیماری او

---

١) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب إذا وقع الذباب فی الإناء (رقم-۵۷۸۲) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی الذباب یقع فی الطعام (رقم-۳۸۴٤) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب یقع الذ کتاب الطب/باب فی الإناء (رقم-۳۵۰۵) واحمد فی المسند: ۲/۲۲۹

جراثیم په انسان کښې داخل شی لهذا تاسو پوره مچ ورډوب کړئی چه شفاء هم حاصله شی. دَ مچ په کُس وزر کښې بیماری ده په بنی کښې شفاء ده

**قوله:** فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَاءً وَفِي الْآخَرِ دَاءً

**په یو څیز کښې متضاد صفات جمع کیدل:** دَ تجربې نه معلومه ده چه مچ په ډیر مهارت سره یو وزر پورته طرف ته اوچت ساتی په دې کښې هیڅ استبعاد نشته دې چه هم په یوحیوان کښې متضاد صفات جمع وی. دَ شاتو په مچنی کښې شات هم دی اوزهر هم دَ لړم څرمن دَ زهرو دَ پاره شفاء ده نوزهر هم دی او شفاء هم ورسره ده

**[۳۳] په غوړو کښې د مږې د پریوتو حکم**

۴۱۳۳ - [۱۳] ( ) ۱ وَعَنْ مَيْمُونَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - ۲ «أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ، فَمَاتَتْ، ۳ فَسُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۴ فَقَالَ: "أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او د بي بي میمونه رضي الله عنها نه روایت دی ۲ چې یوه مږه په غوړوکې ولویده. او مړه شوه، ۳ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه [چې د غوړو سره باید څه وشي؟] ۴ نو حضور ﷺ وفرمایل چې هغه مږه او شا وخوا غوړي په اوځکلو سره وغورځوئ. او پاتې غوړي خورئ. (بخاري)

**حل اللغات:** ① فَأْرَةً: مږه ، ② سَمْنٍ: غوړی.

**د حضرت ام المومنین میمونه تعارف:** نوم ئی میمونه وه اودَ قریشوخاندان سره ئې تعلق وو. دَ پلار نوم ئی حارث اودَ مورنوم هندبنت عوف وو. دَحضرت میمونې اوله نکاح مسعودبن عمرو بن عمیر ثقفی سره اوشوه بیا ابورهم سره نکاح اوشوه. په ۷ھ کښې دَ ابورهم دَ وفات نه پس دَ حضور ﷺ سره ئې نکاح اوشوه کله چه حضور ﷺ عمرې له تشریف اوړلونوهم په ۷ھ کښې احرام کښې ئې دې سره نکاح اوشوه. دا دَ حضوراکرم ﷺ آخری نکاح وه نوداد ټولونه آخری بی بی وه. دَ دوی باره کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی ((انها كانت اتقانالله واوصلناللرحم)) (۲) میمونه مونږ ټولوکښې دَ الله تعالی نه ډیره ویریده اوصله رحمی به ئی کوله.

**وفات:** داعجیبه اتفاق دې چه په کوم ځائ یعنی مقام باندې دَ سرف کښې نکاح اوشوه هم په هغه ځائ کښې وفات شوه.

**مرویات:** دې نه دَ روایاتوشمیر ۴۶ دې.

---

(۱) اخرجه البخاری فی كتاب الذبائح والصید/باب إذا وقعت الفأرة فی السمن الجامد أو الذائب(رقم-۵۵۳۸) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الفأرة تموت فی السمن (رقم-۱۷۹۸) واحمد فی المسند: ۶/۳۲۹

(۲) اصابة).(۲) اخرجه البخاری فی الهبة باب الهدیة للمشرکین ومسلم فی الزكاة باب فضل النفقة والصدقة علی الاقربین واحمد وابوداود (۲۶۹۸۱۱۱۰) وابن حبان (۴۵۰)

**تسهيلات:**

**قوله: "أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ":**

**دغوړو دوه قسمونه:**① غوړي دغه شان نورد خوراک څيزونه که مانع وي لکه شهد، پي، د خوروا (سالن) ترکاري

② غوړي بغير خوروا (سالن) وچه ترکاري که څخه څيز په کښې پريوځي نو چې په کوم ځائې کښې هم هلته وي ګيرچاپيره سرايت نه کوي.

**په مانع څيز کښې د نجاست د پريوتو په حکم کښې ۲ مذاهب**

تمهيد

① که په مانع غوړو کښې چې نرم نه وي مږه پريوځي او مږه شي نو امام اوزاعي رحمه الله اوزهري رحمه الله او بعضې ظاهريه وائي چه دا مږه او دې سره خواؤشا غوړي اوباسه که غوړي کلک وي او که بهيدونکې نوباقي پاک دي اودَ دې په استعمال کښې څه بدي نشته دَ امام بخاري رحمه الله دَ تبويب نه هم دغه فهم ته راځي چه هغه هم دَ دې قائل دې ځکه چه هغه په خپل صحيح کښې " باب إذا وقعت الفارة في السمن الجامد والذائب" عنوان قايم کړې دې اودَ حضرت ميمونه رضي الله عنها روايت الباب ئ ذکر ئ کړې دې او په کلک او ويلي شوؤ کښې ئي څه فرق نه دې کړې.

② جمهور علماؤ دَ غوړو په کلکو او ويلي کړې شوي په مينځ کښې دَ فرق قائل دي په کلکوکښې خو مږه اودَ دې سره ماحول اوويسلتلې شي باقي پاک وي خوويلي کړې غوړي به دَ مږې په پريوتو ټول ناپاکه شي.

**داول فريق دليل:**دَ رواياتو ظاهرڅخه استدلال کوي په کوموکښې چه دَ کلکواو ويلې کړو په مينځ کښې څه تفصيل نه دې بيان کړې شوي.

**داول فريق د دليل جواب:**څنګه چې د قرآن پاک بعضې تفصيلي آياتونه د اجمالي آياتونو تفسير کوي نودغه شان بعضې تفصيلي احاديث د اجمالي احاديث تشريح کوي په کومو احاديثو کښې چې مطلقاً د غوړو د خوړلو حکم دې نويه نورو کښې ورسره د جامد او مانع په حکم کښې فرق هم ذکرشوې دې ددې وجهې به په تشريحي اوتفصيلي رواياتوباندې عمل کولې شي،چې په هغې عمل اوشي نو په اجمالي اوتفصيلي دواړه قسمه احاديثو عمل اوشو

**د دويم فريق دلائل:**① دَ روايت الباب نه چه په دې کښې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي مږه 'ودَدې ماحول راؤباسي اوبيا دا خورئي ابن عربي وائي چه په لفظ ماحول سره دا په پوهه کښې راځي چه دا حکم دَ کلکو غوړو دې ځکه چه که چرې غوړي بهيدونکي وي نودَ دې

خوماحول نه جوړيږي نومعلومه شوه چه په کلکواو ويلی کړو کښې فرق شته
④ په صحيح بخاري کښې دَ امام زهری رحمه الله باره کښې نقل دی چه دَ هغه نه سوال اوکړې شو لفظه حدثنا عبدان قال أخبرنا عبدالله عن يونس عن الزهري سئل عن الدابة تموت في السمن وهو جامد أو غير جامد الفارة وغيرها قال بلغنا ان رسول الله صلى الله عليه وسلم أمر بفارة ماتت في السمن فأمر بما قرب منها فطرح ثم أكل

⑤ دريم هغه روايت دَ کوم تخريج چه امام ابوداؤد رحمه الله په طريق دَ معمر عن الزهري عن سعيد بن المسيب عن أبي هريرة رضي الله عنه کړې دې لفظه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا وقعت الفارة في السمن فإن كان جامدا فألقوه وما حولها فان كان مائعًا فلاتقربوه هم دغه روايت په طريق دَ معمر عن الزهري عن عبيدالله بن عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما عن ميمونة رضي الله عنها عن النبي صلى الله عليه وسلم هم مروی دې صاحب منتقی دَ دې اسناد ابوداؤد او نسائي طرف ته کړی دی علامه شوکاني رحمه الله وائي دَ دې تصحيح ابن حبان وغيره کړې ده دغه شان روايت صحيح على شرط الشيخين دې بهرحال په دې روايت کښې صراحةً د جامد او د مائع تفصيل موجود دې

**د نورو مائعاتو حکم:** جمهور علماؤ په غوړو قياس کولو د وجه نه جامداتو او مائعاتو حکم هم دا بيان کړي دي چنانچه د شاتو او د شيري وغيره په حکم کښي هم دغه تفصيل سره د فقهي په کتابونو کښي واضح ذکر دي ليکن امام احمد نه د نورو مائعاتو په باره کښي مختلف روايات نقل دی.

**د نجس مائع څيزد خرڅولوحکم:** دَ ناپاکه غوړو يا تيلو خرڅول اخستل اودَ دې نه فائده اخستل جائز دی که نه په دې سلسله کښې حسن بن صالح ظاهريه اوامام احمد رحمه الله فرمائي لايباع ولا ينتفع بشئ منه كما لا يؤكل. يعنی دَ دوی په نيز هيڅ قسم فائده اوچتول بالکل جائز نه دی او سفيان ثوری رحمه الله امام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائي چه دَدې خرڅول اخستل او خوړل جائز نه دی خو امام ابوحنيفه رحمه الله اودَ هغه شاګردان او دغه شان ليث رحمه الله فرمائي چه دَ خوراک نه علاوه دَ نورو فائدو اجازت دې مثلاً په ډيوه کښې سوزول. دَ کشتئی په رسو باندې لګول او صابن وغيره کښ استعمالول جائز دی دَ امام شافعی رحمه الله ظاهر قول هم دغه دې بل دَ احنافو په نيز دَ دې خرڅول او اخستل هم جائز دی په دې شرط چه دَ دې ناپاکه کيدل اوښائي. وكذا روي عن ابي موسى انه قال يبيعوه ويبينوا لمن تبيعونه منه ولا تبيعوه من مسلم.

## [۳۸۷]د مار د وژلو حکم

۳۸۷-[۱۳]()[۱]«وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲]"اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ،[۳]وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ[۴]وَالْأَبْتَرَ[۵]فَإِنَّهُمَا يَطْمِسَانِ الْبَصَرَ[۶]وَيَسْتَسْقِطَانِ الْحَبَلَ"[۷]قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ: فَبَيْنَا أَنَا أُطَارِدُ حَيَّةً أَقْتُلُهَا،[۸]نَادَانِي أَبُو لُبَابَةَ: لَا تَقْتُلْهَا.

**ترجمه:** [۱]او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روایت دي چې هغه د نبي کریم ﷺ نه واوریدل. [۲]چې ونیل یې چه [عموماً ټول] ماران وژنئ،[۳]او خصوصاً هغې مار چې د هغه په شا دوه تورې کرښې وي،[۴]او هغه مار چې ابتر ورته وایي [دا وژنئ] [۵]خکه چې دا دوه قسمه ماران بینایي زائل کوي، [یعنی محض د هغوئ په لیدوسره سړي ړوند کيږي او د دې سبب د هغه زهرو خاصیت دي، کوم چې په دې مارانو کې وي] [۶]دغه شان دا دواړه ماران حمل غورځوي. [یعنی حامله ښځه چې ورته وګوري، نو د هغه د زهرو د خصیت په سبب یا د خوف او د دهشت په وجه د هغې حمل غورځي][۷]حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ وایي چې یوه ورځ زه په یو مار حمله کولو سره د هغه په وژلو پسې لګیاوم.[۸][یو صحابي] ابولبابه انصاري ﷺ ماته آواز راکړو چې دې مه وژنه.

**حل اللغات:** ① الْحَيَّاتِ: ماران. ② ذَا الطُّفْيَتَيْنِ: په شا دوه تورو کرښو والا ③الْأَبْتَرَ:هغه مار چه لکۍ ني وړه وی. ④يَطْمِسَانِ: زائل کوی، ختموی. ⑤وَيَسْتَسْقِطَانِ: دا دواړه ساقط کوی. غورزوی. ⑥الْحَبَلَ: حمل. ⑦أُطَارِدُ: شړله مې، حمله مې کوله، د وژلو کوشش مې کولو.

[۱]فَقُلْتُ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَمَرَ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ. [۲]فَقَالَ: إِنَّهُ نَهَى بَعْدَ ذٰلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ،[۳]وَهُنَّ الْعَوَامِرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱]ما اوویل چې رسول الله ﷺ د ټولو مارانو د وژلو حکم کړې دې،[۲]حضرت ابو لبابه ﷺ اوویل چې هو لیکن حضور ﷺ د دې عام حکم نه پس په کور کې د اوسیدونکو مارانو د وژلو نه منع فرمایلې ده،[۳]خکه چې هغه کور آبادونکي دي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ⑧ذَوَاتِ الْبُيُوتِ: کور کښې اوسیدونکی، ⑨الْعَوَامِرُ: داد عامرة جمع ده یعنی داماران په کورونوکښې اوسیږی اوکورونه آبادوی دَدوی عمرونه زیات وی په دې وجه دې ته عوامر اوونیلې شو

**تسهیلات:**

**قوله:** وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ وَالْأَبْتَرَ

**دابتر مارپیژندګلو:** دا هغه مارته ونیلی شی دَ کوم لکئی چه بالکل وړه وی په ګلګت شتیال کښې دا مار لیدلې شوې دې دَ یو لیشت نه لږ شان اوږد وی لکئی ئی دَ نشت برابره وی

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب قول الله تعالی: ﴿وبث فيها من كل دابة﴾ [البقرة: ۱۶۴] (رقم-۳۲۹۷) ومسلم فی کتاب السلام/باب قتل الحیات وغیرها (رقم-۱۲۸ - (۲۲۳۳) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی قتل الحیات(رقم-۵۲۵۲) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب قتل ذی الطفیتین (رقم-۳۵۳۵) واحمد فی المسند:۱۲۱/۲

دهغه خاني خلقو ونيل چه كه دې مار چاته تك وركړو نوسړى په هغه دم باندې مرى دا دواړه قسمه ماران ډير زيات زهريلا وى كه حامله ښځه دا وينى نوددې د زهرو په اثر سره د ښځې حمل پريوځى اوكه څوك سړې دا وينى نود هغه سړى نظر ځى داد دې د زهرو خاصيت دې په دې وجه ددې د وژلو ډير زيات تاكيد وركړې شوې دې

**قوله** إِنَّهُ نَهَى بَعْدَ ذَلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ، وَهُنَّ الْعَوَامِرُ:

**په كورونو كښې اوسيدونكى ماران:** علامه توريشتى رحمه الله فرمائى چه دا جنات دى د عوامر اطلاق په جناتو باندې كيږى مطلب دادې چه په كورونو كښې اكثركوم ماران اوسيږى هغه په حقيقت كښې جنات وى چه دمار شكل ئى اختيار كړې وى په دې وجه ددې په قتل كښې احتياط كول پكار دى هسې نه چه هغه چرته جن وى دكوم نه چه د نقصان كيدلو توى خطره پيدا كيږى ددې حديث نور تفصيل او اوږده قصه روستو راځى

**[۳۱۸] دكورونه دپيريانو د تختولو طريقه**

۴۱۸-[۱۵] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي السَّائِبِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «دَخَلْنَا عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، [۳] فَبَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ، [۴] إِذْ سَمِعْنَا تَحْتَ سَرِيرِهِ حَرَكَةً [۵] فَنَظَرْنَا، فَإِذَا فِيهِ حَيَّةٌ، [۶] فَوَثَبْتُ لِأَقْتُلَهَا وَأَبُو سَعِيدٍ يُصَلِّي، [۷] فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنِ اجْلِسْ، فَجَلَسْتُ، [۸] فَلَمَّا انْصَرَفَ، أَشَارَ إِلَى بَيْتٍ فِي الدَّارِ، فَقَالَ: [۹] أَتَرَى هَذَا الْبَيْتَ؟ [۱۰] فَقُلْتُ: نَعَمْ. [۱۱] فَقَالَ: كَانَ فِيهِ فَتًى مِنَّا حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ، [۱۲] قَالَ: فَخَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْخَنْدَقِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت سائب رضي الله عنه [چې د حضرت هشام ابن زهره رضي الله عنه آزاد كړې غلام وو. او تابعي هم دى] هغه وايي [۲] چې يوه ورځ مونږ د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه كور ته ورغلو. [۳] مونږ هلته ناست وو، [۴] چې ناڅاپه مونږ دابوسعيد رضي الله عنه د تخت لاندې كښهاري واوريدو. [۵] مونږ وليدل چې هلته يو مار وو. [۶] د هغه د وژلو د پاره زه ور ولاړ شوم. خو ابو سعيد رضي الله عنه چې مونځ يي كولو. [۷] ماته يي اشاره وكړله، چې زه كينم. نو زه كينا ستم. [۸] هر كله چې ابو سعيد رضي الله عنه د مانځه نه فارغه شو، نو هغه د مكان يوې كوټې طرف ته اشاري كولو سره ووئيل [۹] چې ته دا كوټه وينې؟ [۱۰] ماوويل چې هو. [۱۱] بيا ابوسعيد رضي الله عنه اوويل په دې كوټه كې زمونږ د خاندان يو ځلمې اوسيدو. هغه نوې واده كړې وو. [۱۲] ابو سعيد رضي الله عنه اوويل چې مونږ ټول خلق [يعنى هغه ځلمې هم] د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره غزوه خندق ته لاړو. چې د هغې محاذ د مدينې په مضافاتو كې قائم شوې وو،

**حل اللغات:** ① سَرِيرِهِ: سرير كټ ته وائى، ② فَوَثَبْتُ: حملې دپاره تيار شوم، ③ فَتًى: ځوان هلك. ④ حَدِيثُ عَهْدٍ: نوې نوې، اوس اوس، ⑤ بِعُرْسٍ: واده كړې.

( ) اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب قتل الحيات وغيرها (رقم-١٤٠ - (٢٢٣٦) والترمذى فى كتاب الأحكام والفوائد/باب ما جاء فى قتل الحيات (رقم-١٤٨٤)

۱ فَكَانَ ذَلِكَ الْفَتَى يَسْتَأْذِنُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِأَنْصَافِ النَّهَارِ ۲ فَيَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ، ۳ فَاسْتَأْذَنَهُ يَوْمًا، ۴ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خُذْ عَلَيْكَ سِلَاحَكَ ۵ فَإِنِّي أَخْشَى " عَلَيْكَ قُرَيْظَةَ " ۶ فَأَخَذَ الرَّجُلُ سِلَاحَهُ، ثُمَّ رَجَعَ، ۷ فَإِذَا امْرَأَتُهُ بَيْنَ الْبَابَيْنِ قَائِمَةٌ، ۸ فَأَهْوَى إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ لِيَطْعَنَهَا بِهِ، ۹ وَأَصَابَتْهُ غَيْرَةٌ.

**ترجمه:** ۱ هغه ځلمي به روزانه غرمه وخت د رسول الله ﷺ نه کور ته د تلو اجازت غوښتلو اخکه چې د ناوې محبت هغه په دې مجبوره کړي ووا ۲ نو اجازت اخستوسره به هغه خپل اهل خانه ته ورتلو. [او شپه به کور کې په تیرولو سره سحر وخت به بیا راتلو سره په مجاهدینو کې شامليدو] ۳ یوه ورځ حسب معمول هغه د رسول الله ﷺ نه اجازت طلب کړو. ۴ حضور ﷺ اجازت ورکولو سره ورته وفرمایل چې خپله وسله د خان سره واخله. ۵ خکه چې ما سره ویره ده چیرته بنو قریظه په تا حمله ونه کړي [بني قریظه په مدینه کې د یهودیانو یوه قبیله وه، چې په دې موقع د مکې د قریشو حلیف جوړیدو سره د مسلمانانو خلاف په جنګ کې شریك شوي ووا] ۶ هغه ځلمي وسله واخسته او خپل کور ته روان شو. کوم وخت چې هغه د خپل کور مخې ته ورسیدو، ۷ نوڅه ګوري چې د هغه ښځه (ناوې) د کور ددواړو دروازو [یعنی دننه او بهر دروازې] په منځ کښې ولاړ ده، ۸ ځلمي د ښځې د وژلو د پاره د هغې طرف ته نیزه اوچته کړه، ۹ ځکه [چې هغه دا لیدو سره چې د هغه ښځه بهر ولاړه ده] هغه ته ډیر غیرت راغي.

**حل اللغات:** ۱- أَنْصَافِ النَّهَارِ: نیمه ورځ، غرمه، ۸ فَأَهْوَى: نو قصد ئې اوکړو، ۸ الرُّمْحِ: نیزه، ۹ لِيَطْعَنَهَا: چه اوئې وژنې، مره ئې کړي،

۱ فَقَالَتْ لَهُ: اكْفُفْ عَلَيْكَ رُمْحَكَ، ۲ وَادْخُلِ الْبَيْتَ حَتَّى تَنْظُرَ مَا الَّذِي أَخْرَجَنِي ۳ فَدَخَلَ فَإِذَا بِحَيَّةٍ عَظِيمَةٍ ۴ مُنْطَوِيَةٍ عَلَى الْفِرَاشِ، ۵ فَأَهْوَى إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ، ۶ فَانْتَظَمَهَا بِهِ، ۷ ثُمَّ خَرَجَ فَرَكَزَهُ فِي الدَّارِ، ۸ فَاضْطَرَبَتْ عَلَيْهِ، ۹ فَمَا يُدْرَى أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا: ۱۰ الْحَيَّةُ أَمِ الْفَتَى؟ ۱۱ قَالَ: فَجِئْنَا رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ،

**ترجمه:** ۱ لیکن ښځې ورته اوویل چې خپله نیزه د خان سره ایساره کړه، ۲ لږ کور ته راننوځه، چې څه شي زما بهر ته د راوتلو سبب شوي دي. ۳ په دې اوریدو سره هغه ځلمي په کور کې داخل شو. هلته سمدستي د هغه نظر په یو لوی مار پریوتلو، ۴ چې په بستره راتاو شوي پروت وو. ۵ ځلمي په هغه نیزې سره په مار حمله وکړه، ۶ اوهغه یې په نیزه کې وپیلي، ۷ بیا د دننه نه بهر راووتلو. اونیزه یې د کور په انګړ کې ښخه کړه، ۸ مار زخمي کیدو سره په ځلمي حمله وکړه، ۹ بیا دا معلومه نه شوه، چې په دواړو کې کوم مخکې مړ شو. ۱۰ مار یا ځلمي [یعنی دواړه داسې یو ځاي مړه شو، چې دا معلومات هم ونه شو، چې مخکې دچا مرګ واقع شوا] ۱۱ حضرت ابوسعید رضی الله عنه وایي چې د دې واقعې نه پس مونږ د

رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشو .او د حضور ﷺ په مخکې مو تو له واقعه بیان کړله

**حل اللغات:** ⑩ اَکُفُّ: بنده کړه، ایساره کړه. ⑪ مُنطَوِیَة: خان ني راتاؤ کړې وو. ⑫ فَانتَظَمَهَا: ورخبنه ني کړه پکښې. ⑬ فَرَكَزَهُ: ښخه ني کړه.

[۱] وَقُلْنَا: ادْعُ اللَّهَ يُحْيِيهِ لَنَا. [۲] فَقَالَ: "اسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ" [۳] ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ لِهَذِهِ الْبُيُوتِ عَوَامِرَ [۴] فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهَا شَيْئًا فَحَرِّجُوا عَلَيْهَا ثَلَاثًا [۵] فَإِذَا ذَهَبَ وَإِلَّا فَاقْتُلُوهُ [۶] فَإِنَّهُ كَافِرٌ" [۷] وَقَالَ لَهُمْ: "اذْهَبُوا فَادْفِنُوا صَاحِبَكُمْ". [۸] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: [۹] "إِنَّ بِالْمَدِينَةِ جِنًّا قَدْ أَسْلَمُوا [۱۰] فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُ شَيْئًا فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ [۱۱] فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ فَاقْتُلُوهُ [۱۲] فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او عرض مو اوکړو چې ته ﷺ د الله تعالی نه دعا وغواړه .چې دا خلمی زمونږ د پاره ژوندي کړي، [۲] حضور ﷺ وفرمایل چې د خپل ملګري د پاره مغفرت طلب کړئ. [۳] بیا یي وفرمایل چې د مدینې په دي کورونو کې عوامر[یعنی جنات (پیریان)] اوسیږي. [چې په هغوئ کې مؤمنان هم دي، او کافران هم] [۴] نو تاسو چې په هغوئ کې څوک [د مار په صورت کې] ووینئ، نو دري خلې یا دري ورځې په هغې تنګې اختیار کړئ. [۵] بیا که هغه لاړ شي، نو ډیره ښه ده، ګینې بیا یي ووژنئ، [۶] ځکه چې په دې صورت کې به د ګټل کیږی چې هغه په جناتو کې کافر دي، [۷] بیا حضور ﷺ انصارو ته وفرمایل چې ورشئ د خپل ورور کفن دفن وکړئ، [۸] په یو روایت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمایل [۹] په مدینه کې څه جنات (پیریان) دي، [او په هغوئ کې هغه هم دي] کوم چې مسلمان شوي دي. [۱۰] په هغوئ کې چې تاسو څوک [د مار په صورت کې] ووینئ، نو دري خلې هغه خبردار کړئ. [۱۱] بیا د دریو ورځو نه پس هم که هغه ښکاره شي، نو هغه ووژنئ [۱۲] ځکه چې هغه شیطان دي (مسلم)

**حل اللغات:** ⑭ عَوَامِرَ: دَ مارانو په شکل کښې جنات دی کوم چه په کورونو کښې آباد دی. ⑮ فَحَرِّجُوا: نو تنګی اختیار کړئ. ⑯ فَآذِنُوهُ: خبردار ني کړئ.

**تسهیلات: قوله: ادْعُ اللَّهَ يُحْيِيهِ لَنَا**

**د ژوندی کولو مطالبې وجه:** دَ صحابه کراموداً درخواست دَدې دَ پاره نه وو چه مړشوې صحابی دې ژوندې شی بلکه دَهغوی خیال وو چه کیدې شی چه دا ژوندې وی دَ مار دَ زهرود وجهې بې هوشه شوې وی نبی کریم اوفرمائیل داخبرې پریږدئی هغه مړشوې دې دَده دَپاره استغفار اوکړئی

**قوله: فَحَرِّجُوا عَلَيْهَا**

**مارته د کور څخه د وتلو حکم:** یعنی ده ته اووایئی چه اوس ته په تنګئی او ګیره کښې ئې اوس دَ وتلوکوشش مه کوه. که بیا راؤوتلو نو مونږ به په تابانډې حمله اوکړو قتل به دې کړو اوس ستاخوښه ده اوسیږې اوکه ځې.

**مارته د مخاطبې الفاظ**: په یوروایت کښې نبي کریم فرمائیلي چه کله په کورکښې مار ښکاره شي نو هغه ته دا اوواییئ "أنشدکم بالعهد الذی أخذ علیکم سلیمان بن داؤد لاتؤذونا ولاتظهروالنا" یعني زه تاسو ته هغه وعده یادوم کومه چې حضرت سلیمان علیه السلام ستاسو څخه اخستې وه چې تاسو مونږ ته ضرر مه رارسوئ اوتاسو مونږ ته مه ښکاره کیږئ

**د هرې ورځو څخه ورستو دقتل جواز**: دریو ورځوپورې داعمل اوکړئ که چرې هغه مسلمان جن وی نو لاړبه شي اوکه لاړو نومعلومه شوه چه داکافر جن دې اوس دغه مار اووژنئ خکه چه اوس دې شیطان جوړشوې دې چه په حقیقت کښې ابلیس دې یا په حقیقت کښې ماردې یا کافرجن دې دَدې تولو وژل جائزدي

## [۳۳] د چرمخکې د وژلو حکم

۴۱۲۳-[۱۲]() ۱ وَعَنْ أُمِّ شَرِيكٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: ۲ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ ۳ وَقَالَ: "كَانَ يَنْفُخُ عَلَى إِبْرَاهِيمَ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او د بي بي ام شريك رضي الله عنها نه روایت دې ۲ چې رسول الله ﷺ د گرگټ د وژلو حکم وکړو ۳ او وي فرمایل گرگټ به په حضرت ابراهیم علیه السلام اور پوکولو بخاري مسلم

**حل اللغات**: ① اَلْوَزَغ: کربوړې، گرگټ ② يَنْفُخُ: پوکې به ئې وهلو

**د حضرت ام شریک رضی الله عنها مختصر تعارف**: نوم عزیة خو دې ته به عزیلة ونیلي کیدل کنیت ام شریک، ځیني وائی چه ددې تعلق قبیله عامریه سره وو یا دوسیة یا انصاریة ددوی احادیث بخاری، مسلم، ترمذی، نسائی او ابن ماجه وغیره کښې موجود دی

**تسهیلات**:

**قوله**: أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ:

**د وزغ لغوی تحقیق**: ① دَدې جمع أوزاغ ده چمچورکئی ته وائی مصباح اللغات کښې هم ددې ترجمه چمچورکئی لیکلې ده

② منجدچه کوم تصویر ورکړې دې هغه هم دَ چمچورکئی دې

③ مظاهرحق دَدې ترجمه گرگټ کربوری سره کړې ده کومه چې تیک نه ده

**قوله**: كَانَ يَنْفُخُ عَلَى إِبْرَاهِيمَ

**د چرمخکې د ابراهیم علیه السلام اورته پوکې ورکول**: دې هم دَ دغه طبعی شرارت او بدنیتئی دَ اظهارپه توگه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دپاره لگیدلې دَ نمرود اور ته پوکې ورکولو گنی دَدې په پوکی سره به څه اثر پریوتلې وې صرف دَ عداوت اظهارئی اوکړو

() اخرجه البخاری فی کتاب الانبیا/ باب قول الله (واتخذ الله ابراهیم خلیلا) رقم الحدیث ۳۳۵۹ ومسلم فی کتاب السلام/ باب استحباب قتل الوزغ... رقم الحدیث ۵۹۷۹

**د چرمخکۍ په وژلو ثواب ملاویدل**:دا یو ضرري خناور دې په دې وجه په اسلام کښې ددې په وژلو باندې دا انعام ملاویږي چه که په یو وار دې اووژله نود یوصاع د صدقې ثواب ملاویږي اوکه په زیاتو گذارونو مړه شوه نود نصف صاع د صدقې ثواب ملاویږي دا اکثر په یو وار کښې نه مرې اود دې دپاره لنده بهترین وسله ده فوري مړه کیږي حضرت عائشه رضي الله عنها به ددې د وژلودپاره په کورکښې دوه ډنډې کیخودلې یوه به ئې د کوړیه صحن کښې او بله به ئې کوټه کښې کیخودله

چرمخکۍ ډیر زهریلا حیوان دې که چرته په خوراك کښې پریوتله نو په دې سره به تول خوراك کونکي مړه شي دا شاذ ونادر په چا باندې چك لگوي لیکن چك لگولو سره سړې مړکیږي دا په طبعي توگه باندې شرارتي وي سره ددې چه خاموشه ښکاري په مالگه کښې پوکې وهي یا په دې کښې لوغړیږي دې دپاره چه دغه مالگې په استعمال سره انسان د برگي مرض بیمار جوړ شي د هگئي د پوستکي کیخودو د وجهې چرمخکۍ تختي

**دثواب په مقدارکښې د تعارض تطبیق**:دې پسې چه کوم حدیث دې په هغې کښې هم د چرمخکۍ د وژلو حکم بیان کړې شوې دې اودې نه پس حدیث نمبر(۴۱۲۱) کښې ددې په وژلو باندې د سلو نیکو ثواب ملاویدو بیان دې په دې شرط چه وژونکې اول پوزیشن حاصل کړي دویم نمبر سړی ته به ۵۰ او دریم ته به ۲۰ درجې ثواب حاصلیږي

**[۳۳۰] چرمخکۍ باندې د فویسقه اطلاق**

۳۳۰–[۱۷] (¹) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ [۳] وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او د حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه نه روایت دې [۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د کرکټ وژلو حکم وکړو [۳] او د هغه نوم يې فويسق کیخودو (مسلم)

**حل اللغات**: ① الْوَزَغِ: کرکټ. کربوړې، ② فُوَيْسِقًا: تصغیر دې، مړه

**تسهیلات: قوله**: وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا

**چرمخکۍ ته د فویسقه ویلووجه**:دا په اصل کښې د فاسق تصغیر دې چه معنی ئې ده وړوکې فاسق ده، نو کربوړې ته هم وړوکې فاسق ددې وجهې نه وئیلې شي چه دا هم د فواسق خمسه نه دې یعنی دهغه پنځو خناورو نه دې، چه د کومو په هر حال کښې وژل جائز دی خواه که هغه په حدود د حرم کښې وي او که بهر وي هم دغه شان کربوړې خپله نفع حاصلولو نه بغیر انسانانو ته نقصان ورکوي او دا هم د حق لارې نه اوړي، ددې وجهې نه ورته فاسق وئیل کیږي .

¹) اخرجه مسلم فی کتاب السلام/ باب استحباب قتل الوزغ... رقم الحدیث ۵۹۸۱

## [۳۳] د چرمخکی په وژلو د ثواب ملاویدل

۴۱۳۱—[۱۸] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«مَنْ قَتَلَ وَزَغًا فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ ۳ كُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ، ۴ وَفِي الثَّانِيَةِ دُونَ ذَلِكَ، ۵ وَفِي الثَّالِثَةِ دُونَ ذَلِكَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ۲ کوم سړي چې ګرګټ په يو وار کې ووژني، ۳ د هغه د پاره سل نيکۍ ليکل کيږي، ۴ په دويم وار کې د هغې نه کم ۵ او په دريم وار کې د هغې نه هم کم نيکۍ ليکل کيږي (مسلم)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د چرمخکي د قتلولو وضاحت دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۱۲۰) په تشريح کښې تيرشوي دي

## [۳۳] د ميږي د وژلو حکم

۴۱۳۲—[۱۹] (۲) ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«قَرَصَتْ نَمْلَةٌ نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ، ۳ فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ، ۴ فَأَوْحَى اللهُ تَعَالَى إِلَيْهِ: ۵ أَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ أَحْرَقْتَ أُمَّةً مِنَ الْأُمَمِ ۶ تُسَبِّحُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ۲ د الله تعالى کوم انبياء عليهم السلام چې مخکې تير شوي دي، په هغوئ کې د يو نبي واقعه ده. چې يوه ورځ هغه يو ميږي وچيچلو، ۳ نو هغه د ميږو د سوړې باره کې حکم وکړو چې هغه دې وسوزول شي. نو وسوزول شوه، ۴ بيا الله تعالى په هغه وحي نازله کړه، ۵ چې ته يو ميږي چيچلې وې. او تا د جماعتونو نه يو جماعت وسوزولو، ۶ چې په تسبيح (يعني د الله تعالى په پاکي بيانولو) کې مشغول وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① قَرَصَتْ: ونې چيچلو.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَرَصَتْ نَمْلَةٌ نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ:

**د نبي په مصداق کښې دوه اقوال:** ① بعضو ونيلي دي چه دا حضرت موسى عليه السلام وو بعضو د حضرت داؤد عليه السلام نوم ليکلې دې (مرقات)

---

(۱) اخرجه مسلم في كتاب السلام... رقم الحديث ۵۹۸۴

(۲) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير /باب: إذا حرق المشرك المسلم هل يحرق (رقم-۳۰۱۹) وابوداود في كتاب الأدب /باب في قتل الذر (رقم-۵۲۶۶) ومسلم في كتاب الصيد والذبائح /باب قتل النمل (رقم-۴۳۵۸) وابن ماجه في كتاب الصيد /باب ما ينهى عن قتله (رقم-۳۲۲۵) واحمد في المسند: ۴۰۲/۲

**د مثال په ذريعه کښې د پيغمبر پوهول:** په مرقات کښې ليکلی دی چه دې نبی دَ الله تعالی نه سوال اوکړو چه يا الله په يوقوم کښې نيك او بد هرقسم خلق وی خوچه کله ستا عذاب راځی نو نيکان او بدان ټول راګيره وی حالانکه ټول مجرمان نه وی الله تعالی دَ يومثال په ذريعه هغه پوهه کول غوښتل نوهغه نبی دَ ونې لاندې اوده شو هغه يو ميږی اوچيچلو نو هغه دَ ټولو سوړه اوسوزوله الله تعالی دَ زورنې په توګه تپوس اوکړو چه ټول دې اوسوزول حالانکه هم يو چيچلې وې. په دې کښې اشاره وه چه کله امتياز مشکل وی نوټول وژلې کيږی. دَ دغه نبی په سوزولو باندې زورنه اونه کړې شوه بلکه دَ ټولو په وژلو سره زورنه اوشوه

**قوله: فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ:**

**په شريعت محمدی کښې د ميږو د سوزولو ممانعت:** دا سوزول دَهغوی شريعت وو زمونږ په شريعت کښې ميږې کتمل سپږې وغيره سوزول جائز نه دی په بل څه طريقه باندې وژل پکاردی. چه کوم ميږی تکليف درکړې وی نودَ سزا په توګه هغه وژل جائز دی. مګر سوزول يا ټول وژل جائز نه دی.

**دکور څخه د ميږو شړلودپاره عمل:** دَ ميږو دَشړلودپاره په مرقات کښې يو عمل ليکلې شوې دې سړې دې په کرسئی باندې کينی او ميږی دې مخاطب کړی اودَ الله تعالی دَ حمد اوثنا نه پس دې دا وظيفه اووائی "إِنِّي أُحَرِّجُ عَلَيْكُنَّ إِلاَّ خَرَجْتُنَّ مِنْ دَارِيْ فَإِنِّيْ أَكْرَهُ أَنْ تُقْتَلْنَ فِيْ دَارِيْ" يعنی زه تاسوته په سختئ سره وايم چې زما د کور څخه لاړشئ اوکه تاسو لاړې نوتاسو به مجبوراً زما په کورکښې قتل کړې شئ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۳۳]په غوړو کي د مږي د لويدو مسئله

۲۳۳—[۲۰] (١)[١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِذَا وَقَعَتِ الْفَأْرَةُ فِي السَّمْنِ[٣] فَإِنْ كَانَ جَامِدًا[٤] فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا[٥] وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلَا تَقْرَبُوهُ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] که په غوړو کې مږه ولويږي [اوهغه مږه شي] ،[٣] او هغه غوړي جم شوی (ناګه) وي،[٤] نو هغه مږه او د هغې څلور طرف ته غوړي اوځکلو سره وغورځوئ. [او باقي غوړي د خوراك په مصرف کې راولئ]،[٥] او که هغه غوړي ويلي شوي وي، نو بيا هغې ته نژدې هم مه ورځئ، [يعنی هغه مطلقًا مه خورئ] (احمد ابوداؤ)

**حل اللغات:** ①الْفَأْرَةُ: مږه. ②جَامِدًا: کلک. ټينګ. ③مَائِعًا: بهيدونکي

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی الفأرة تقع فی السمن (رقم-٣٨٤٢) واحمد فی المسند ٢/ ٢٣٢

۴۲۳۴-[۱] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه**: [۱] او دارمي رحمه الله دا روايت د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړي دي

**تسهیلات**:

**نوټ**: په غوړو کښې د مړې پريوتو مثله ددې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۱۱۴) په تشريح کښې تفصيل سره تيره شوې ده

## [۴۲۳۵] د ډينګ د غوښې حلال والې

۴۲۳۵-[۲۱] (۱) [۱] وَعَنْ سَفِينَةَ، قَالَ: [۲] «أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَحْمَ حُبَارَى» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] اوحضرت سفينه رضي الله عنه وايي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ سره د حباری (سرخاب) غوښه خوړلي ده (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① حُبَارَى: سرخاب، ډينګ.

**تسهیلات**:

**قوله**: أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَحْمَ حُبَارَى:

**دحباری لغوی تحقیق**: بضم الحاء وفتح الراء جوهري فرمائي چه دا د يو مشهور مارغه نوم دې کوم ته چه ډينګ وئيلې شي، دا اسم جنس دې، او ددې اطلاق په مذکر و مونث دواړو باندې کيږي او د واحد، جمع دپاره يو لفظ استعماليږي نحوی اعتبار سره په حباری کښې الف نه د تانيث دې او نه د إلحاق دې چونکه د کلمې بنياد په دې ايخودلې شوې دې او ددې وجهې دا دکلمې جز جوړشوې دې حباری معرفه او نکره دواړو حالتونو کښې غير منصرف دې

**د ګناهونوپه وجه د ډينګ هلاکت**: حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه إنه سمع رجلا يقول إن الظالم لا يضر إلا نفسه، چه يو کس نه ئې دا خبره واريدله چه د ظلم نقصان پخپله صرف ظالم ته ضرور ملاويږي نو حضرت ابو هريره رضي الله عنه دا خبره رد کړه او وفرمائيل چه په هغه ذات دې زما قسم وی دچا په قبضه کښې چه زما خان دې چه ډينګ د بنی آدم د ګناهونو د وجهې هلاک کيږي يعنی کله چه په زمکه کښې ګناه ډيره شي نو الله تعالی بارانونه بند کړی نو ددې د وجهې غلې پيداوار کم اوشی نو دا مارغه د ولګی او تندی د وجهې نه هلاک شي (کذا في البيهقي)

**د ډينګ دغوښې حلت**: ددې حديث نه دا خبره معلومه شوه چه ددې غوښه خوړل جائز دی او نبی کريم ﷺ هم ددې غوښه خوړلې ده ددې غوښه معتدل مزاج وی

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الاطعمة / باب في اكل لحم الحبارى... رقم الحديث ۳۷۹۹

**د ډينګ کم عقلي:** ددې مارغه متعلق دا مشهوره ده چه دا احمق ترين، او کم عقل ترين مارغه دې او ددې د وجهې د يو کم عقل کس مثال حبارى سره ورکړې کيږى حضرت عثمان رضي الله عنه فرمائي چه هر ځناور خپل اولاد سره محبت کوى تر دې چه ډينګ هم چه په حماقت کښې يو ضرب المثل دې هغه د حماقت باوجود د نورو ځناور په شان د خپل اولاد سره محبت کوى

**[۳۳۳] د ګندګۍ خوړونکې حيوان د غوښې حرمت**

۳۳۳-[۲۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ وَأَلْبَانِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ: [۳] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: قَالَ: «نَهَى عَنْ رُكُوبِ الْجَلَّالَةِ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جلاله د غوښې د خوړلو او د هغې د شيدو د څکلو نه منع فرمايلي ده، ترمذي. [۳] او د ابوداؤد رحمه الله په روايت کې داسې دي چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اوويل چه حضور صلی الله علیه وسلم په جلاله د سوريدو نه منع فرمايلي ده.

**حل اللغات:** ① الْجَلَّالَةِ: ګندګی خوړونکې، ② أَلْبَانِهَا: د لبن جمع ده، پئ.

**تسهيلات:**

**قوله: نَهَى رَسُولُ اللهِ عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ وَأَلْبَانِهَا:**

**د جلّاله لغوى معنى:** جلالة بفتح الجيم وتشديد اللام دَ مبالغې دَ اوزانو نه دې ماخوذ من الجله بفتح الجيم يعنى بعرة وفى القاموس الجلة مثلثة البعر أو البعرة دَ دې جمع جلالات او جوال راځى وئيلې شى

**د جلاله شرعى شرعى تعريف:** جلاله شرعًا هغه ځناورته وائى دَ کوم چه غالب ګپ ګندګى ،غول، او مردارى وى چه دَهغې په غوښه پئيو خوله وغيره کښې دَ نجاست اثرمعلوم شى تردې چه دَ هغې نه بدبوئى محسوس شى

شوافعو وغيره حضرات هم دغه تعريف کړې دې وهکذا فى العالمګيريه نوکه دَ دې غالب، ګيا پاکه وى اودَ هغې په غوښه وغيره کښې دَ نجاست اثر محسوس نه شى نوهغې ته به جلاله نشى وئيلې کذامصرح فى کتاب الفقه

امام رافعى فرمائيلى دى چه دَ کثرت هيڅ اعتبارنشته بلکه مدار بدبوئى محسوس کيدو باندې دې که چرې يو ځناور ګندګى اومردارى خورى او د هغې په غوښه وغيره کښې تغيراوشى نوهغې ته به جلاله وئيلى شى که دَ هغې غالب ګيا پاکه ولې نه وى هکذاقاله النووي في الروضة تبعًاللرافعي كذافى النيل

---

[۱]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الاطعمة/ باب ما جا فى اكل لحوم الجلالة والبانها... رقم الحديث ۱۹۳۹

**د جلاله د غوښې په حکم کښې مذاهب:**

① امام مالک لیث بن سعد حسن بصری فرمائی چه دَ جلاله خناور غوښه، پئی وغیره استعمالول بغیردَ کراهت نه جائز دی دغه شان اسحاق بن راهویه فرمائی لابأس أن یأکل لحمها بعد أن یغسل غسلاً جیدًا

②جمهور علماء احناف اودَ شافعیه یوجماعت امام الحرمین قفال ابواسحاق مروزی علامه بغوی اوعلامه غزالی رحمهم الله دکراهت تحریمی قول فرمانیلې دې هم دغه دَ حنابله قول دې علامه ابن دقیق العید هم دا راجح او صحیح ګرځولې دې بل دَ جلاله هګئی هم دې حضراتو دَ جلاله دَ غوښې سره لاحق کړی دی مکروه تحریمی ئې ګرځولې دی

**د اول فریق دلیل:** کوم خناورچې شریعت جائز ګرځولی دی نوهغه به په اصلاً جائز وی البته حدیث کښې ممانعت دَ طبعی کرکې په وجه دې

**داول فریق دَ دلیل جواب:** جلاله خناور په کوم کښې چه نجاست دومره اثر کړې وی چه هغه دَ سرنه واخله ترخپوپورې پلیت شوې وی نوهغه به څنګه جائز شی او البته هغه خناور دَ کوموحرمت چه په قطعی نصوصو سره ثابت شوې وی هغې ته به حرام وئیلی شی اودَ جلاله دَ حرمت وجه دَ هغې پلیتی ده او نصوص چې اخبار آحادی دی هم ظنیه دی په وجه به ئې حرمت لغیره وی نودا به مکروه تحریمی ګرځولې شی

**د دویم فریق دلائل:** ① د ابن عمر رضی الله عنهحدیث الباب د دوی مستدل دې

② حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الترمذي وصححه وکذا أخرجه أبوداؤد والنسائی بطریق قتادة عن عکرمه عن ابن عباس رضی الله عنهما وهو أصح مافی الباب قال الحافظ فی الفتح هو علی شرط البخاري فی رجاله إلا أن أیوب رواه عن عکرمة فقال عن ابی هریرة رضی الله عنه.

③ حدیث أبی هریرة رضی الله عنه أخرجه البیهقی والبزار من وجه آخر. نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الجلالة وعن شرب ألبانها وأکلها ورکوبها

④ حدیث جابر رضی الله عنه نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الجلالة أن یؤکل لحمها أو شرب لبنها أخرجه ابن أبی شیبه بسند حسن

⑤ حدیث عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم خیبر عن لحوم الحمر الأهلیة وعن الجلالة عن رکوبها وأکل لحمها أخرجه ابوداؤد والنسائی سنده حسن

دَ دې مذکوره روایاتو نه په صراحت سره دَ جلاله خناور د استعمال ممانعت ثابتیږی وهوالمدعٰی

**په بندولوسره د جلاله په حکم کښې تبدیلی راتلل:** فقهاء حضرات فرمائی چه که جلاله بند کړې شی چه دَ هغې خوله نجاست ته اونه رسی یا هغې باندې پاک خوراک اوکړې شی تردې چه دَ هغې بوئی ختم شی نودَهغې خوراک جائز دې

**د بندولو دودې په تعین کښې اقوال:** ① دامام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې باره کښې توقف مروی دې ونی فرمائیل ماته نه دی معلوم چه په څومره ورځو کښې به دَهغې غوښه پاکه صفا شی
② علامه سرخسی رحمه الله فرمائی دَ دې دَ پاره هیڅ موده مقرر نه ده حضرت گنگوهی رحمه الله هم دغه فرمائی چه اصل د نجاست دَ اثر زوال دې هغه چه کله هم متحقق شی وهوالصحیح
③ تجنیس کښې لیکلی دی چرګه دې درې ورځې چیلئی څلور ورځې اوښ غوا دې لس ورځې وتړلې شی وهوالمختارعلی الظاهر
④ بعضې حضرات فرمائی اوښ غوا وغیره څلویښت ورځې چیلئی اووه ورځې او چرګه درېو ورځو پورې بند کړې شی. هوالمختار فی التهذیب والتحریر
**د حبس د مودې دلائل:** دَ حبس د مودې په سلسله کښې څه موقوفه آثار هم مروی دی مثلاً ما اخرجه البیهقی بسند فیه نظر عن عبدالله بن عمرو مرفوعًا انها لاتؤكل حتى تعلف اربعين يومًا دغه شان ما اخرجه ابن ابی شیبه بسند صحیح عن ابن عمر انه كان يحبس الدجاجة الجلالة ثلاثًا (فتح الباری) وروي عن ابن عمر انه كان لا يأكلها حتى يقصرها أيامًا وروي عنه أيضًا أنه كان إذا أراد أن يأكل بيض الدجاجة قصرها ثلاثة أيام أخرجه الطبراني

**[۳۳۷]د سمساري غوښه خوړل حرام دي**

۳۳۷—[۲۳]( )[۱]وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [۲]أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «نَهَى عَنْ أَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبدالرحمٰن ابن شبل رضی الله عنه نه روایت دې [۲] چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سمساري د غوښې د خوړلو نه منع فرمایلي ده. (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** نَهَى عَنْ أَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ:

**د سمساري د غوښې په حکم کښې ۲ مذاهب:**

**د ضب لغوی معنی:** ضَبّ بفتح الضاد المعجمة وتشديد الباء دَ اوچې خناوردې دَ مؤنث دَ پاره ضبة راخی اوجمع ضباب او أضب راخی صاحب محیط اعظم وائی چه دې ته په فارسی کښې سوس مار او په هندئ کښې گوه وائی دا په قدکښې دَ پیشونه وروکې خناوردې دَ دې لکې ډیره وروه وی اودَ دې رنګ زیړ او تور بخن په مینځ کښې وی او په دیارعرب کښې دا خناورډیردی
① ائمه ثلاثه. اسحاق بن راهویه او ظاهریه دَ جواز قائل دی
② د احنافو په نیزد دې غوښه مکروه تحریمی ده.

( ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی اکل الضب... رقم الحدیث ۳۷۹۸

**دَ قائلين جواز دلائل:** ① عن ابن عباس رضي الله عنهما عن خالد بن الوليد أنه دخل مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بيت ميمونة رضي الله عنها فأتي بضب محنوذ فأهوى إليه رسول الله صلى الله عليه وسلم بيده فقال بعض النسوة أخبروا رسول الله صلى الله عليه وسلم بما يريد أن يأكل فقالوا هو ضب يا رسول الله صلى الله عليه وسلم فرفع يده فقلت أحرام هو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال لا ولكن لم يكن بأرض قومي فأجدني أعافه قال خالد فاجتززته فأكلته ورسول الله صلى الله عليه وسلم ينظر (أخرجه البخاري)

② عن أبي سعيد الخدري رضي الله عنه مرفوعًا أن الله غضب على سبط من بني إسرائيل فمسخهم دواب يدبون في الأرض فلا أدري لعل هذا منها فلست آكلها ولا أنهى عنها قال ابوسعيد فلما كان بعد ذلك قال عمر رضي الله عنه إن الله عز وجل ينفع به غير واحد وإنه لطعام عامة الرعاة ولو كان عندي لطعمته (أخرجه مسلم)

③عن ابن عمر رضي الله عنه قال كان أناس من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم منهم سعد فذهبوا يأكلون فنادتهم امرأة أنه لحم ضب فأمسكوا فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم كلوا وأطعموا فإنه حلال او قال لا بأس ولكنه ليس من طعامي (أخرجه البخاري ومسلم)

④ عن أبي هريرة رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم أتي بصحفة فيها ضباب فقال كلوا فإني عائفه (أخرجه الطحاوي)

⑤ عن خزيمه بن جزء رضي الله عنه قال قلت يا رسول الله جئتك لأسئلك عن أحناش الأرض ما تقول في الضب قال لا آكله ولا أحرمه (الحديث) (ابن ماجه)

⑥ نور هغه روايات دي په كوم كښې چه لا آكله ولا أحرمه وارد شوي دي يا دَ رسول الله ﷺ په وړاندې دسترخوان باندې دَ ضب ذكر دې لكه چه امام ترمذي رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړې دى.

⑦ د هغه ټولو رواياتو څخه معلوميږي چه رسول الله ﷺ پخپله خو ضب نه دې خوړلې مګر دَ خوړلو اجازت ئې ورکړې دې دَ رسول الله ﷺ په وړاندې نورو خلقو په دسترخوان باندې خوړلې دې نو معلومه شوه چه دَ دې خوراک جائز دې

**داول فريق د دلائلو مجموعي جواب:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائي چه په رسول الله ﷺ په شروع كښې دَ دې باره كښې څه حكم نازل شوې نه وونو دَ دې باره كښې ئې خاموشي اختيار كړه لأن الأصل في الأشياء الإباحة او پخپله ئې دَ طبيعت په وجه دَ دې نه كراهت اوفرمائيلو دَ رسول الله ﷺ وطن مالوف مكه معظمه كښې خو دَ سر نه دَ دې وجود نه ووخو دَ دې نه پس كله چه حرمت نازل شونو رسول الله ﷺ ډير په سختئي سره منع اوفرمائيله او كټونې ئې هم اولټه كړې كما هو مفاد حديث عبد الرحمن بن شبل وحديث عبد الرحمن بن حسنة حاصل دا چه دَ جواز دَ رواياتو محمل دَ شروع زمانه ده او دَ كراهت دَ رواياتو عمل آخر زمانه ده په دې وجه دغه دَ اتباع قابل دى

**د دويم فريق دلائل:** ① دَ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت إنه أهدي للنبي صلى الله عليه وسلم ضب فلم يأكله فقام عليه سائل فأرادت عائشة رضي الله عنها أن تعطيه فقال لها أتعطيه ما لا تأكلين (أخرجه الطحاوي).

حضرت امام محمد رحمه الله د دې روايت نه استدلال کوی او فرمائی چه د روايت نه معلوميږی چه رسول الله ﷺ دخپل خان دپاره اود نورود پاره د ضب خوړل مکروه ګڼړلی دی

④ حديث عبدالرحمن رضي الله عنه بن حسنة قال نزلنا أرضاً كثيرة الضباب فأصابتنا مجاعة فطبخنا منها وان القدور لتغلي بها إذ جاء رسول الله صلى الله عليه وسلم (الحديث) وفيه أنهم طبخوا منها فقال النبي صلى الله عليه وسلم إن أمة من بني إسرائيل مسخت دواب في الأرض فأخشى أن تكون هذه فاكفوها قال الحافظ سنده على شرط الشيخين (أخرجه أبوداؤد وابن حبان والطحاوي وأحمد)

③ حديث عبدالرحمن بن شبل رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن أكل الضب دا روايت په کراهت د اکل کښې صريح دې،

④ حديث ابوسعيد رضي الله عنه أتيت به رسول الله صلى الله عليه وسلم فأخذ عوداً فعد به أصابعه ثم قال إن أمة من بني إسرائيل مسخت دواب في الأرض (الحديث)

⑤ حديث ابن عمر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وددت أن عندي خبزة بيضاء من برة سمراء ملبقة بسمن ولبن فقام رجل من القوم فاتخذه فجاء به فقال في أاي شئ كان هذا قال في عكة ضب قال ارفعه. (أخرجه ابوداؤد وابن ماجه).

د دې پورته ذکرشوو رواياتونه معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ د ضب غوښه خوړلونه منع فرمائيلې ده او د نفرت د اظهار د پاره کتوئی هم الته کړی. که چرې ضب حلال وې نورسول الله ﷺ به د دې باره کښې دومره سختی نه کوله.

⑥ فقهاء کرامو حضراتو فرمائيلی دی چه د يو قوم د يو ځناور په شکل باندې مسخ کيدل د هغه ځناور د خباثت علامت دې. حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه د ځناورود حرمت باره کښې داهم کتل پکاردی چه آيا د دې په صورت کښې چرته يو قوم مسخ شوې دې که نه لکه چه بيزوګان اوخنزيران دی. سره د دې چه د مسخ شوی قوم نسل باقی نه وی (کماوردفی الحديث)، مګرد دغه ځناور په شکل مسخ کيدل بهرحال د هغې د خبث علامت دې د پورتنو روايتونونه معلومه شوه چه د ضب په شکل باندې د بنی اسرائيلو يوقوم مسخ شوې دې نويقينًا داخبيث ځناوردې اوهغه د حشرات الارض نه د کيدو په وجه هم خبيث دې او د قرآن په نص ﴿يُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَٰٓئِثَ﴾ خادمنی حرام کيدل پکاردی

⑦ د ضب د خوراک باره کښې دواړه قسم روايات واردشوی دی په بعضو سره حلال والې او بعضوسره حرام والې ثابتيږی. د فقهاؤ د تصريح مطابق کله چه د حلت او د حرمت په رواياتوکښې تعارض وی نواحتياطًا د حرمت رواياتو ته ترجيح ورکولې شی نودلته به هم حرمت راجح وی.

## [۳۳۸]پیشو حرامه ده

۳۳۸-[۲۴]()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲]أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «نَهَى عَنْ أَكْلِ الْهِرَّةِ وَأَكْلِ ثَمَنِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دي[۲] چې نبي کريم ﷺ د پیشو د غوښې او د هغې د قیمت د خوړلو نه منع فرمایلي ده (ابوداؤد ، ترمذي)

**تسهیلات**:

**قوله**: نَهَى عَنْ أَكْلِ الْهِرَّةِ:

**د پیشو دغوښې حرمت**: دَ پیشو غوښه خوړل دَ ټولو په نیز حرام ده دَ چین خلق دَ ځنګلي وغیره پیشوګانو غوښه خوري دکوم په وجه چه هغوی ته دَ نمونیا غوندي وباني امراضو راتلل کیږي البته پیشو خرڅول اودَدې پیسې استعمالول دَ احنافو په نیز جائز دی مګر مکروه دی ځکه چه دایوه خرابه پیشه ده. دَمسلمان دَپاره دَ خرابې پیشې نه ځان ساتل مناسب دی

## [۳۳۹]د کورنی خر د غوښې حرمت

۳۳۹-[۲۵]()[۱]وَعَنْهُ، قَالَ: [۲]«حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ - [۳]الْحُمُرَ الْإِنْسِيَّةَ، [۴]وَلُحُومَ الْبِغَالِ، [۵]وَكُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، [۶] وَكُلَّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ». [۷] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱] اوحضرت جابر رضی الله عنه وایي[۲] چې رسول الله ﷺ د خیبر په ورځ غوښه خوړل حرامه ګرځولي وه [۳] د کورني خرونو. [۴] د قچر [۵] اود هر داړه ور درنده [۶]او په پنجو سره ښکار کونکو مرغانو.[۷] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دي

**حل اللغات**: ① الْحُمُرَ الْإِنْسِيَّةَ: کورني خره. ② الْبِغَالِ: قچر. ③ السِّبَاعِ: په غابونو ښلونکی ځناور. ④ ذِي مِخْلَبٍ: په نوکانو ښلونکی مارغان

**تسهیلات**:

**نوټ**: دَ دې ناب ځناور تفصیل کتاب الصید حدیث ۴۰۸۹ په تسهیل کښې تیرشوي دي

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی النهی عن اکل السباع... رقم الحديث ۳۸۰۹

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الصید والذبائح / باب ما جا فی کراهیة کل ذی ناب وذی مخلب... رقم الحدیث ۱۵۵۳

**[ ] د اس د غوښو د خوړلو ممانعت**

۴۰۳۰–[۲۶] ( )[۱] ۞ وَعَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-: ۞ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او د حضرت خالد بن وليد ﷛ نه روايت دې ۞ چې رسول الله ﷺ د اس، قچر او د خرونو د غوښو د خوړلو نه منع فرمايلې ده (ابوداؤد، نسائي)

**حل اللغات:** ① الْبِغَالِ: قچر، ② الْحَمِير: خرونه،

**د حضرت خالد بن وليد مختصر تعارف:**

**نوم:** خالد، ابو سليمان كنيت، سيف الله لقب، دوى د ام المومنين حضرت ميمونه ﷛ نزدې رشته دار وو. دخالد خاندان زمانه جاهليت كښې ډير مغروره ګڼړلې كيدو غزوه احد كښې ئې مسلمانانو سره ډير په شجاعت سره اوجنګيدو چه دمسلمانانو وار خطا شو

**اسلام:** دخينو په قول د شپږمې او اتمې هجرئي ميخ كښې ئې اسلام قبول كړې وو (مسند احمد ۴۱۹/۴). اسلام قبلولو نه پس ئې اول جنګ كښې شركت اوكړو او دا وو جنګ موته هم دې كښې ددوى ﷛ دلاسه نهه تورې ماتې شوې. هم دې كښې دوى ﷛ ته حضرت نبى كريم ﷺ د سيف الله لقب وركړو. بيا دې نه پس فتح مكه، غزوه حنين، غزوه طائف، تبوک، سره بنو خزيمه، سريه نجران، سريه يمن، او سريه عزى نه علاوه نورو ډيرو جنګونو كښې ئې شركت اوكړو.

حضرت عمر فاروق ﷛ دوى په ۱۷ هجرئي كښې معزول كړى وو چه هسې نه د خلقو دا خيال پيدا شي چه داسلام فتوحاتو دارو مدارپه خالد ﷛ دې.اودا حضرت عمر فاروق ﷛ نه خوښول (ابن كثير ۴۱۹/۲). ددې نه سوانور هم وجوهات وو، حضرت عمر فاروق ﷛ دوى دحران او موته ګورنر جوړ كړل، خودوى پخپله يو كال پس پريخودل. د دوى ﷛ حضرت نبى كريم ﷺ سره ډيره زياته مينه وه، دوى ﷛ يو ټوپۍ جوړه كړې وه چه هغې كښې د حضرت نبى كريم ﷺ ويښته مبارک ئې ايخودى وو. دجنګ ميدان كښې به هم دا په سروله. ديرموک جنګ كښې دا وركه شوه ډير تلاش كولو نه پس د املاؤ شوه (اصابه ۹۹/۲).

**وفات:** مدينه منوره كښې په كال ۲۲ هجرئي كښې وفات شو. خينې دوفات ځاې ئې حمص خودلې دې خو اول قول راجح دې. دحضرت عمرفاروق ﷛ جنازه كښې شريک وو. (اصابه: ۹۹/۲)).

---

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأطعمة/باب فى أكل لحوم الخيل (رقم-۳۷۹۰) والنسائى فى كتاب الصيد والذبائح/باب تحريم أكل لحوم الخيل (رقم-۴۳۳۱) وابن ماجه فى كتاب الصيد/باب ما ينهى، عن قتله (رقم-۳۲۲۵) ۸۹/۴

**مرویات** : دوی نه اتلس روایات منقول دی چه په هغې کښې دوه بخاری شریف کښې او مسلم دواړو کښې دی

دنورو حالاتو دپاره اوګورئی ۱، استیعاب ۱/۱۵۷، ۲، طبقات ابن سعد ۳، اسد الغابه ۲/۱۰۳، ۴، زرقانی ۳/۸۲، ۵، تاریخ الخلفاء للسیوطی ۷۲، ۲، تاریخ ابن خلدون ۲/۷۹، ۷، طبری ۴/۲۲۲ وغیره

**تسهیلات**:

**نوټ** د دې حدیث مضمون سره متعلق بحث وړاندې د حدیث نمبر ۴۱۰۷، په شرح کښې تیرشوې دې زیر بحث حدیث دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَمسلك موافق دې دَامام مالك رحمه الله مسلك هم دغه دې

### [۳۳] د معاهد د مال حکم

۴۱۳۳—[۲۷] (۱) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ خَيْبَرَ، [۳] فَأَتَتِ الْيَهُودُ، فَشَكَوْا [۴] أَنَّ النَّاسَ قَدْ أَسْرَعُوا إِلَى حَظَائِرِهِمْ، [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَلَا [۶] لَا يَحِلُّ أَمْوَالُ الْمُعَاهَدِينَ [۷] إِلَّا بِحَقِّهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه وایی [۲] چې زه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره د خیبر په ورځ په جهاد کې شریك وم، [۳] په یوه موقع یهودیان د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې راغلل، او دَ شکایت یې وکړو [۴] چې خلقو د هغوئ کجورو طرف ته جلتی اختیار کړې ده، ایعنی مسلمانانو زمونږ د کجورو د ونو نه میوې شوکولې دي، حال دا چې مونږ معاهدین یوا. [۵] رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې خبردار! [۶] د هغه خلقو مال حلال نه دې، د چا سره چې عهدو پیمان (لوظ واقرار) شوې دې، [۷] علاوه د هغه حق نه چې د دغې مال سره متعلق دې. (ابوداؤد)

**حل اللغات** : ① حَظَائِرِهِمْ: دَ کهجوروهغه باغ ته وائی دکوم په کچه کهجوروکښې چه شین رنګ خورشوې وی یعنی پخیدوته نیزدې وی په دې وجه دا لفظ دَ خضرة دَمادې نه جوړکړې شوې دې ② الْمُعَاهَدِينَ: جمع د معاهد ده،هغه کافرچه په اسلامی ملك کښې د اوسیدوعهد، لوظ ورسره شوې وی،چې هغه به د اسلامی حکومت قوانین منی او تابعداری به نې کوی اوحکومت به د هغه د مال او جان حفاظت کوی

**تسهیلات**:

**قوله**: أَلَا لَا يَحِلُّ أَمْوَالُ الْمُعَاهَدِينَ إِلَّا بِحَقِّهَا:

**د معاهدې د مال د حرمت وجه**: ① که چرې معاهدذمی دې نو په هغه باندې جزیه ده دَ حق

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب النهی عن أکل السباع (رقم-۳۸۰۶) واحمد فی المسند: ۸۹/۴

جزيې نه علاوه دَهغه مال قبضه كول حرام دى.

④ كه چرې معاهد مستأمن دې نودَهغه دَ تجارت دَمال نه چه كوم دَ لارې ټيكس اخستې شى هغې ته عشر وانى دَدې نه علاوه دَ هغه نه څه اخستل ظلم دې

**[۴۳۲] ماهي، ملخ، اينه او تورې حلال دې**

۴۳۲-[۲۸] (١) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ وَدَمَانِ. ۳ اَلْمَيْتَتَانِ: الْحُوتُ وَالْجَرَادُ، ۴ وَالدَّمَانِ: الْكَبِدُ وَالطِّحَالُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ مونږ د پاره دوه ابغير د ذبح] مړه شوي څيزونه او دوه وينې حلالې دي، ۳ دوه [بغير د ذبح] مړه شوي څيزونه خو ماهى او ملخ دي، ۴ او دوه وينې اينه او تورې دي. [چې دا دواړه په اصل کې جم شوي وينه ده، نه چې غوښه] (احمد ابن ماجه دارقطني)

**حل اللغات:** ① الْحُوتُ: كب، مهي، ② الْجَرَادُ: ملخ، ③ الْكَبِدُ: اينه، ④ الطِّحَالُ: تورې،

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْمَيْتَتَانِ:

**د ميتتان د اطلاق وجه:** يعنى دَ ذبح نه بغيرحلال دې هم په دې اعتبارسره دې ته ميتتان اووئيلې شو

**قوله:** وَالدَّمَانِ: الْكَبِدُ وَالطِّحَالُ:

**د دمان څخه مراد:** دَدوو وينونه مراد كليجى او پښتوره ورگې دې كه په دې باندې زوراوكړې شى او په گوتوكښې اومږلې شى نودا خالص وينه جوړيږى ليکن دا دواړه وينې حلال دى باقى ټولې حرام دى.

**[۴۳۳] د سمک طافى حکم**

۴۳۳-[۲۹] (٢) ۱ وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «مَا أَلْقَاهُ الْبَحْرُ ۳ أَوْ جَزَرَ عَنْهُ الْمَاءُ فَكُلُوهُ. ۴ وَمَا مَاتَ فِيهِ وَطَفَا فَلَا تَأْكُلُوهُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. ۵ وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: الْأَكْثَرُونَ عَلَى أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى جَابِرٍ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو الزبير د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ

---

[1] اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الأطعمة/باب الكبد والطحال (رقم-۳۳۱۴) والدارقطنى فى السنن رقم الحديث ۲۵ من كتاب الصيد، واحمد فى المسند: ۹۷/۲

[2] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأطعمة/باب فى أكل الطافى من السمک (رقم-۳۸۱۵) وابن ماجه فى كتاب الصيد/باب الطافى . من صيد البحر (رقم-۳۲۴۷)

وفرمایل[۲] کوم [ماهی] چې دریاب غاړې ته غورځولې وي.[۳] یا د اوبو نه هغه جدا شوې وي، ایعنی د دریاب اوبه بالکل وچې شوې وي، یا یو بل طرف ته تلې وي]. نو هغه مه خورئ.[۴] اوکوم ماهی چې په دریاب کې په مړ کیدو سره د اوبو د پاسه راشي. نو هغه مه خورئ. ابوداؤد ابن ماجه، [۵] اومحی السنة ویلی دي چه اکثره محدثین د دې خبرې قائل دي چې دا حدیث په حضرت جابر رضي الله عنه موقوف دې. [یعنی د هغوی په نزد دا د حضور ﷺ ارشاد نه دي بلکه د حضرت جابر رضي الله عنه خپل قول دې]

**حل اللغات:** ①جَزَرَ: جدا شوې وی. ②طَفَا: د اوبو سر ته راختلې وی

**تسهیلات:** أوجزر عنه الماء

**د کب د مړ کیدو صورتونه:** ①که سمندر وغیره اوبوکښې دَ څه تکراؤ یاڅه آفت دَ وجهې کب مړشی اومړکیدوسره دَ اوبوسرله راشی

② دَ سمندر په غاړه باندې راؤغورزولې شی یا ډیرو اوبوسره یومقام ته کب ن راشی او اوبه واپس لاړې شی کب په اوچه پاتې شی اومړشی په دې دواړو دَ جمهورو په نیزدا کب حلال دې

③ که په سمندر یا اوبوکښې دننه کب پخپله مړشی دَ څه خارجی سبب سره نه وی مړشوې اوالته کیدوسره دَ اوبوسر له راشی دې ته سمک طافی وائی

**په دریم صورت کښې ۲ مذاهب:**

① دَ شوافع اومالکیه په نیزسمک طافی حلال دې که په هرڅه وجه مړشوې وی

② احناف دا سمک طافی حرام گرځوی

**داول فریق اول دلیل:** ① ددوی مستدل د ترمذی وغیره حدیث دې په کوم کښې چې نبی علیه السلام د سمندر د ځناورو په باره کښې فرمائی ((الحل میته))نوسمک طافی هم د سمندر میته ده نودا به هم حلال وی

**د اول فریق د اول دلیل دوه جوابونه:** ①د((الحل میتة)) څخه غیرمذبوح مراد نه دې بلکه مالیس له نفس سائله ترې ماد دې بلکه چه احلت لناالمیتتان کښې دمیتة څخه هم دامراد دې او د احنافو مستدل مذکوره په بناء که داسې اوونیلې شی چه سمك طافی دینه مستثنی دې نوبیاهم بعیدنه دې

② حضرت شیخ الهندمحمود الحسن رحمه الله د قول مطالب د الحل څخه مراد حلال نه دې بلکه طاهر دې

**داول فریق دویم دلیل:** ② حدیث العنبرهم د دوی مستدل دې. په هغې کښې دی چې صحابه فرمائی ډیره زمانه یو سمندرې ځناورخوړلو چه دهغې نوم عنبروو باب عزوة سیف البحرکښې دبخاری شریف په دې روایت کښې الفاظ دادی ((فالقی لناالبحردابة یقال له العنبرفاکلنامنه نصف شهرځ)) دې روایت کښې لفظ ددابة دا ښائی چه داځناور دسمك نه علاوه څه بل څیزوو.

**داول فريق د دويم دليل جواب:** دحديث دعنبر جواب دادې چه ددې دطافي كيدوتصريح نشته طافي صرف هغه ماهي ته وائي چه كوم دخارجي سبب نه بغيرپخپله په اوبوكښې مرشي اوالته شي.

**داول فريق دريم دليل:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يو اثر مروى دې په كوم كښې چې سمك طافي حلال ګرخولې شوې دې (كذا، سنن بيهقي والدارقطني).

**داول فريق د دريم دليل درې جوابونه:** ① اول خو په دې روايت كښې شديد اضطراب دې دويم ② كه باالفرض دا صحيح اومنلې شي هم نودا د يوصحابي اجتهاددې چه دمرفوع حديث مقابله نه شي كولې

③ دا هم ممكن ده چه دې كښې دميتة ماهي نه هغه سمك مراد وى چه داسباب خارجيو په بناء مرشوې وى.

**د دويم فريق دلائل: د دويم فريق اول دليل:** ① دحضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه روايت دې ((قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما القى البحر اوجزر عنه فكلوه وما مات فيه وطفا فلا تأكلوه)) (كذا في ابي داود وابن ماجه)

**اشكال:** امام ابوداؤد داروايت مرفوعًا وموقوفًا په دواړو طريقو روايت كړې دې . بيانې طريق موقوف صحيح ګرخولې دې

**داشكال جواب:** حقيقت دادې . چه مرفوع روايت هم تولوترثقاتو نه مروى دې.او د ثقه زيادت مقبول وى.ددې وجې ددې په مرفوع منلوكښې هيڅ اشكال نشته .اوكه موقوف طريق هم صحيح اومنلې شي نو بياهم چه مسئله غيرمدرك بالقياس ده . نوحديث به دمرفوع په حكم كښې وى

## [۴۳۳] د ملخ حكم

۴۳۳-[۳۰] ([1]) [۱] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «سُئِلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْجَرَادِ، [۳] فَقَالَ: "أَكْثَرُ جُنُودِ اللَّهِ، [۴] لَا آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سلمان رضي الله عنه وايي [۲] چې د نبي كريم ﷺ نه د ملخ [د خوړلو او د هغې د حقيقت] باره كې پوښتنه وشوه، [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل چې ملخان د الله جل جلاله [په وزر لرونكو كې] د ټولونه لوئ لښكر دي، [۴] نه خو زه دا خورم [ځكه چې طبعًا ماته كراهت محسوسيږي] او نه [په نورو] شرعًا دا حراموم، [ځكه چې دا د الله تعالى د طرف نه حلال شوي دي. خرنګه چې مخكې دا حديث تير شوې دې چې أحلت لنا ميتتان] . (ابوداؤد) اومحى السنة ويلي دي چې دا حديث ضعيف دي

**حل اللغات:** ① الْجَرَادِ: ملخان

**تسهيلات:** **قوله:** لَا آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ:

**د ملخ د خوراک حلالوالي:** دَ الله تعالى په الوتونكى مخلوق كښې دَټولونه زيات مخلوق

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة /باب في اكل الجراد... رقم الحديث ۳۸۱۵

ملخان دی اودَدې لښکر دَ ټولونه لوئی دې اودَقیامت نه وړاندې دَ دې ورکیدل دَ قیامت دَ علاماتونه دی. بعضې ملکونوکښې لوئی لوئی ملخان وی په دې وجه که څوك ئې صفاکوی اوخوری ئې نوخوړل ئې جائزدی سره دَدې چه نبی کریم نه دی خوړلی.

**[۳۳۵] چرګ ته دبد ونیلو ممانعت**

۴۳۳۵-[۳۱] (¹) [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ سَبِّ الدِّيكِ [۳] وَقَالَ: إِنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلصَّلَاةِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت زید ابن خالد رضي الله عنه وایي [۲] چې رسول الله ﷺ چرګ ته د بد ویلو نه منع فرمایلي ده، [۳] او حضور ﷺ وفرمایل چې بلا شبه چرګ د مانځه د پاره آ ګاهي کوي. (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① الدِّيكِ: چرګ.

**تسهیلات:**

**قوله:** نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ سَبِّ الدِّيكِ:

**چرګ ته د کنځلوکولود ممانعت وجه:** چرګ آسمانی نظام سره رلې اوسیږی پورته چه کله فرښتې متحرك کیږی نودَهغه ځائی سره دَچرګ رابطه قائمیږی. بیا اذان ورکوی په دې وجه ده ته کنځل کول یوپاکیزه نظام ته دکنځلوکولو په شان دی لهذا منع دی. شیخ سعدی بابا وئیلی دی:

اے مرغ سحر عشق زپروانہ بیاموز　　　کاں سوختہ را جاں شدآواز نیامد

اې دَ سحر چرګه دَ پتنګ نه عشق زده کړه فضول شور کوې اوچغې وهې ګوره پتنګ په چپه خله خپل ځان بیللو.

وَقَالَ: إِنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلصَّلَاةِ:

**د چرګ د بانګونو وختونه:** دَ سحرپه وخت خلق اوده وی په تنګ کورکښې چه کله چرګ دَسحر اذان کوی نوکوروالا بعضې وخت پریشان شی او کنځلې کوی څکه چه چرګ نیمه شپه کښې دَ اذان یو دور چلوی بیا دَ پیشمنی په وخت دویم دور چلوی اوخلق دَ پیشمنی او تهجددپاره پاسوی بیا په آخری دورکښې دَسحردَ مونځ دپاره ئې پاسوی

**د فارمی چرګ بانګ:** یاد لرئی چه دَدې چرګ نه دَ نن صبا فارمی چرګان مراد نه دی کوم ته چه دَ آذان ورکولو وخت هم نه دې معلوم. دَمابنام او ماسخوتن نه پس اذان ورکوی څکه چه دَ انسان مصنوعی لاس دَده په تخلیق کښې شامل شو چرګ ته دَ وخت پته نه لګی او چرګې ته دَ بچی راویستو پته نه لګی.

¹) واحمد فی المسند: ۱۹۲/۵

**[۴۳۶] د مانځه دپاره د چرګ با نګ ورکول**

۴۳۶-[۳۲] ( )[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا تَسُبُّوا الدِّيكَ [۳] فَإِنَّهُ يُوقِظُ لِلصَّلَاةِ» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] اوحضرت زید رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] چرګ ته بد مه وايئ، [۳] ځکه چې هغه د مانځه د پاره بيدارول کوي. (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّهُ يُوقِظُ لِلصَّلَاةِ:**

په دې حديث کښې د مطلق مونځ ذکر دې، بعضې حضراتو فرمائيلی دی چه د دې نه مراد د سحر مونځ دې ځکه چه په دی وخت کښې د خوب غلبه وی.

**د نبی علیه السلام چرګ:** شيخ طبری رحمه الله يو روايت نقل کړې دې چه د نبی کريم ﷺ يو سپين رنګ چرګ وو، او صحابه کرامو به هغه ځان سره اوړو، ددې دپاره چه د مونځونو وختونو علم وشی.

**د الله تعالی د چرګ تسبيحات:** د معجم طبرانی په يو روايت کښې ذکر دی چه د الله تعالی سره يو سپين رنګ چرګ دې چه دهغی وزرې په ياقوت او زبرجد سره مزين دی او يو وزر ئې مشرق پورې او بل وزر ئې مغرب پورې خور دې او سر ئې عرش نه لاندې دې او پښې ئې په هوا کښې دی او روزانه د تهجد په وخت کښې دا کلمات وائي سبحانك ما أعظم شأنك او په بل روايت کښې دی چه دا کلمات وائی سبوح قدوس، او ددې آواز د انسانانو او جناتو نه علاوه هر يو مخلوق اوری. د زمکې والا چرګان ددې آواز جواب ورکوی کله چه به د قيامت ورځ نزدې شی نو الله تعالی به ورته حکم وکړی چه خپلې وزرې راغونډې کړه او آواز دې پست (کمزوری) کړه نو کله چه ددې آواز رانشی نو د دنيا والا چرګان به هم جواب ورنه کړی نو انسانانو او جناتو نه علاوه به هر يو څيز ته علم وشی چه قيامت راتلونکې دې (مرقات)

**[۴۳۷] په کور کښې د مار، د ښکاره کيدو صورت کښې مسنون عمل**

۴۳۷-[۳۳] ( )[۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: قَالَ أَبُو لَيْلَى: [۲] قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] «إِذَا ظَهَرَتِ الْحَيَّةُ فِي الْمَسْكَنِ [۴] فَقُولُوا لَهَا: إِنَّا نَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوحٍ وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ [۵] أَنْ لَا تُؤْذِينَا، [۶] فَإِنْ عَادَتْ فَاقْتُلُوهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عبدالرحمن ابن ابي ليلي رضی الله عنه وايي [۲] چې ابو ليلي بيان اوکړو چه

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی الديک والبهائم (رقم-۵۱۰۱) واحمد فی المسند: ۱۹۳/۵
[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی قتل الحيات (رقم-۵۲۶۰) والترمذی فی کتاب الأحکام والفوائد/باب ما جاء فی قتل الحيات (رقم-۱۴۸۵)

رسول الله ﷺ وفرمايل [۳] کله چې په يو کور کې مار راووځي، [۴] نو د هغه مخکې دې اوويل شي چې مونږ تا ته د حضرت نوح علیه السلام د عهد او د حضرت سليمان ابن داؤد علیه السلام د عهد (اقرار) واسطه درکولو سره دا غواړو [۵] چې ته مونږ ته ضرر مه رسوه. که د دې نه پس هغه بيا په نظر راشي، نو هغه وژنئ (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْحَيَّةُ: مار، ② فَإِنْ عَادَتْ: که بيا راواپس شي، ښکاره شي

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّا نَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوحٍ وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ أَنْ لَا تُؤْذِينَا:

**د کورني مارلرې کولو د پاره مسنون عمل:** دا يو قسم وظيفه ده او مار ته يو وعده وريادول هم دی ځکه چه حضرت نوح علیه السلام مار په کشتئی کښې سور کړو نو د مارانو نسل باقي پاتې شو کنی ختم شوی به وو. او د سليمان علیه السلام وعده ځکه چه د هغوی خو په مارانو باندې هم حکومت وو هغوی سره به ئې خبرې کيدلې.

### [۳۳۸] دا انتقام د ويرې د مار په نه قتلولو باندې زور نه

۳۳۸ـــ[۳۳] ()[۱] وَعَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا رَفَعَ الْحَدِيثَ: [۳] أَنَّهُ «كَانَ يَأْمُرُ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ، [۴] وَقَالَ: مَنْ تَرَكَهُنَّ خَشْيَةَ ثَائِرٍ [۵] فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ"

**ترجمه:** [۱] او حضرت عکرمه رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه په نقل کولو سره وايي [۲] چې زه د دې نه علاوه څه نه پيژنم، چې [حضرت ابن عباس رضي الله عنهما] بطريق مرفوع دا حديث بيان کړي دي. [۳] چې نبي کريم ﷺ به د مارانو د وژلو حکم کولو [۴] او فرمايل به يې کوم سړې چې د بدلې (انتقام) د ويرې نه د دې مارانو وژل پريږدي، [۵] نو هغه [د يو موذي نه وژلو او په قضاء وقدر الهي د باور نه کولو په سبب] زمونږ نه نه دې، [يعنی زمونږ په لاړ تلونکې نه دې] (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① الْحَيَّاتِ: د حية جمع ده، ماران، ② ثَائِرٍ: انتقام ته وائي يعنی د انتقام او بدلې د ويرې نه مار مه وژنئ

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ تَرَكَهُنَّ خَشْيَةَ ثَائِرٍ فَلَيْسَ مِنَّا

**د جاهليت د عقيدې ترديد:** د عربو د جاهليت په وخت کښې يوه غلطه عقيده وه هغه دا چه که يو سړی مار مړکړو نو د هغه ملګرې به خامخا راځي او د دغه مړکونکی نه به انتقام اخلی فرض کړه که نر ئې وژلې وی نو ماده به د انتقام د پاره راځي او که چرې ماده ئې وژلې وی نو نر به د انتقام اخستلو د پاره راځي چونکه دا غلطه عقيده په وهم باندې بنا وه په دې وجه

(۱) اخرجه شرح السنة کتاب الطب والرقى/ باب قتل الوزغ ۶/ ۱٤٦

نبي کريم دَدې نه منع اوفرمائيله چه څوك داسې عقيده لرى هغه سړې زمونږ نه نه دې يعنى سره دَدې چه هغه باقى په اسلام باندې قائم دې ليکن په دې خاص شعبه کښې هغه د اسلام په طريقه نه دې دامطلب نه دې چه دغه سړې کافرشو

**[۴۳۹] د مار او انسان دشمنى**

۴۳۹-[۳۵] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَا سَالَمْنَاهُمْ مُنْذُ حَارَبْنَاهُمْ، [۳] وَمَنْ تَرَكَ شَيْئًا مِنْهُمْ خِيفَةً فَلَيْسَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول ﷺ وفرمايل [۲] د څه وخت نه چې مونږ د مارانو سره جنګ شروع کړې دې، د هغه وخت نه مونږ ورسره مصالحت نه دې کړې. [۳] نو کوم سړې چې يو مار د ويرى په وجه د وژلو نه منع شي، [چې خپله هغه مار ب د هغه جوړه به ورته نقصان ورسوي، او بدله به واخلي]، نو هغه زمونږ نه نه دې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① سَالَمْنَاهُمْ: مونږ دوى سره مصالحت کړې دې، ② خِيفَةً: ويره.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا سَالَمْنَاهُمْ مُنْذُ حَارَبْنَاهُمْ:

**د مار او انسان طبعى دشمنى:** يعنى طبعًا دواړه دَ يوبل دښمنان دى. دَ مار داخيال دې چه م کله هم انسان وينى سربه راله چخنړى کوى لهذا دا زمادښمن دې. انسان سوچ کوى چه کله مې هم په مارخپه کيخوده هغه به تك راکوى ترقوى به مې. په دې وجه دَدواړو طرفونه پخه دښمنى ده اودکله نه چه دښمنى شروع شوې ده هيڅ کله صلح نه ده شوې په ضعيف رواياتو کښې دى چه دَ ابليس دَ جنت نه دَ وتلونه پس دوباره دننه بوتلونکې هم مار وو بې ابليس وسوسه واچوله اوحضرت آدم ئى دَ جنت نه اوويستلو که چرې داسې وى نويقينًا دا يو پوخ جنګ دې.

**[۴۴۰] د مار د قتلولو څخه د ويرې کولو مذمت**

۴۴۰-[۳۶] (²) [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "[۲] «اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهُنَّ، [۳] فَمَنْ خَافَ ثَأْرَهُنَّ فَلَيْسَ مِنِّي» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ټول ماران قتلوئ، [۳] که يو سړي د هغوى د انتقام (بدل) نه خوف زده شو نو هغه زما نه نه دي، (ابوداؤد نسائي)

---

(¹) اخرجه ابوداود فى السنن کتاب الادب /باب فى قتل الحيات... رقم الحديث ۵۶۵۰

(²) اخرجه ابوداود فى السنن کتاب الادب... رقم الحديث ۵۲۵۱

**تسهیلات:**

نوټ د انتقام د ویرې د وجهې د مار نه قتلولو وضاحت وړاندې د حدیث نمبر (۴۱۳۸) په تشریح کښې شوې دې

**[۳۳]دَ زمزم په کوهی کښې مار**

۴۱۳۱–[۳۷] (¹)[۱]وَعَنِ الْعَبَّاسِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نُرِيدُ أَنْ نَكْنُسَ زَمْزَمَ[۳]وَإِنَّ فِيهَا مِنْ هَذِهِ الْجِنَّانِ -يَعْنِي: الْحَيَّاتِ الصِّغَارِ-[۴]فَأَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِقَتْلِهِنَّ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]او د حضرت عباس ﷛ نه روایت دې چې هغه یوه ورځ عرض وکړو[۲] چې یا رسول الله ﷺ مونږ د زمزم د اوبو صفایي کول غواړو،[۳]لیکن په هغې کې وړوکي ماران دي،[۴]نو رسول الله ﷺ د هغه مارانو د وژلو حکم وکړو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①نَکْنُسَ: صفائی کوو مونږ، ②الْجِنَّانِ: -يَعْنِي الْحَيَّاتِ الصِّغَارِ: واړه ماران.

**تسهیلات:**

**قوله: فَأَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-بِقَتْلِهِنَّ:**

**د ضرورت په وجه د آبادۍ د کوهی سره نژدې د مار د قتلولو حکم:** چونکه دَ زمزم دَ اوبو کوهی صفائی ضروری وه او ګرانه دا پیښیدله چه هلته واړه واړه ماران وو دَ هغې دَ وژلو خطره وه نبی کریم اوفرمائیل چه وئی وژنئ اوس مجبوری ده ځکه چه دَ دې نه بغیر صفائی ممکن نه ده نو دَ دې حدیث دَ عوامرنه وژلو والاحدیث سره څه تعارض نشته دې

**[۳۴]د وړوکي سپین مار د وژلو ممانعت**

۴۱۳۲–[۳۸] (²)[۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ[۲] «اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهَا[۳] إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ[۴] الَّذِي كَأَنَّهُ قَضِيبُ فِضَّةٍ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]او د حضرت ابن مسعود ﷛ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ټول ماران وژنئ.[۳] علاوه د جان ابیض (یعنی د سپینو وړو مارانو) نه،[۴] چې د سپینو زرو د نل په شان وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①الْجَانَّ: سپین واړه ماران، ②قَضِيبُ: نل، بانړس

**تسهیلات:**

**قوله: إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ الَّذِي كَأَنَّهُ قَضِيبُ فِضَّةٍ:**

**د وړوکی سپین مار د نه وژلو وجه،** دا مار ډیر نقصان ورکونکې نه وو ځکه ئې د قتل نه منع وکړې شوه بلکه دا چه په دې مار کښې زهر هم نه وی، او د حضرت ابن عباس ﷛ نه روایت

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فی قتل الحیات(رقم-۵۲۵۱)
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فی قتل الحیات (رقم-۵۲۶۱)

دي چه مار د جناتو په شکل کښې بدل شوي دي (یعنی مسخ شوي دي) لکه څنګه چه بنی اسرائیل دبیزوګانو په شکل کښې مسخ شوی وو په دې خبره کښې د علماء کرامو اختلاف دې چه دا ماران به درې ورځو پورې ویرولې شی او که درې ځل به ویرولی شی، نو علماء کرام فرمائی چه اول د یر راجح دې.

## [۴۳۳] د خوراک په څیز کښې د مچ د پریوتلو حکم

۴۳۳-[۳۹] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ [۳] فَامْقُلُوهُ [۴] فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً [۵] وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً [۶] فَإِنَّهُ يَتَّقِي بِجَنَاحِهِ الَّذِي فِيهِ الدَّاءُ [۷] فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې په تاسو کې د چا په لو ښی کې [چې په هغې کې د خوراک څښاک څه څیز وي] مچ ولویږي. [۳] نو هغې ته غوپه ورکړئ، [۴] ځکه چې د هغه په یو وزر کې بیماري ده. [۵] او په دویم وزر کې یې شفاء ده. [۶] او مچ په یو شي کې اول خپل هغه وزر اچوي چې په هغې کې بیماري ده، نو پوره مچ ته غوپه ورکول پکار دي، [چې د شفاء والا په وزر سره هغه جراثیم لرې شي. چې د بیماري والا وزر په وجه د خوراک څښاک څیز ته رسیدلي دي] (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الذُّبَابُ: مچ، ② فَامْقُلُوهُ: نو غوپه ورکئ، ③ فَلْيَغْمِسْهُ: نو ور ډوب (ورغوپه) نې کړئ.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د خوراک په څیزکښې د مچ غوپه کولوتفصیل وړاندې د حدیث نمبر (۴۱۱۵) په تشریح کښې تیرشوې دې. هغې ته رجوع اوکړئ.

## [۴۳۴] د خوراک په څیز کښې د ماشی د غورځیدو حکم

۴۳۴-[۴۰] ()[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] قَالَ «إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي الطَّعَامِ [۳] فَامْقُلُوهُ [۴] فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ سَمًّا [۵] وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً [۶] وَإِنَّهُ يُقَدِّمُ السَّمَّ [۷] وَيُؤَخِّرُ الشِّفَاءَ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل هر کله چې په طعام کې مچ ولویږي، [۳] نو هغه ته غو ته (غوپه) پکی ورکړئ، [۴] ځکه چې د هغه په یو وزر کې زهر دي، [۵] او په دویم وزر کې شفاء ده، [۶] او مچ خپل د زهرو والا وزر مخکې اچوي [۷] او هغه بل وروسته کوي. (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① الذُّبَابُ: مچ، ② فَامْقُلُوهُ: نو غوپه ورکئ، ③ سُمًّا: زهر، ④ فَلْيَغْمِسْهُ: نو ور ډوب نې کړئ،

() اخرجه ابوداود في السنن رقم الحديث ۳۸٤٤، واحمد في المسند ۳/ ٦۷

() اخرجه ابن ماجة في السنن رقم الحديث ۳۵۰٤ واحمد في المسند ۳/ ٦۷

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي الطَّعَامِ:**

**مچان په جهنم کښې:** ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه نبی کريم ﷺ وفرمائيل چه د مچ عمر څلويښت شپې وي او د شاتو د مچې نه علاوه ټول مچان به په جهنم کښې وي ددې حديث په تشريح کښې محدثين حضرات فرمائي چه د مچانو جهنم ته داخليدل به د عذاب دپاره نه وي بلکه اهل جهنم ته د عذاب ورکولو دپاره به وي او دا مچان به اهل جهنم ته اذيت او تکليف رسوي

**نوټ:** د خوراک په څيزکښې د مچ غوپه کولوتفصيل وړاندې د حديث نمبر۴۱۱۵، په تشريح کښې تيرشوې دې هغې ته رجوع اوکړئ

**[۳۳۵] د څلورقسمه حيوانانو د وژلو ممانعت**

د۳۳-[۳۱] ( )۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ۲ «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَتْلِ أَرْبَعٍ مِنَ الدَّوَابِّ: ۳ النَّمْلَةُ، وَالنَّحْلَةُ، وَالْهُدْهُدُ، وَالصُّرَدُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي ۲ چې رسول الله ﷺ د دې څلورو ځناورو د وژلو نه منع فرمايلې ده ۳ ① ميږي ② د شاتو مچۍ ③ ملا چرګك ④ او صرد، (تنورا) چې د کوترې غوندې ده، چې مرغۍ ښکار کوي). (ابوداؤد دارمي)

**حل اللغات:** ① النَّمْلَةُ: ميږي. ② النَّحْلَةُ: د شاتو مچۍ. ③ الْهُدْهُدُ: ملاچرګک. ④ الصُّرَدُ: تنورا، شين تڼ‌ری، باخه

**قوله: وَالنَّحْلَةُ:**

**د شهدو د مچې د وژلو د ممانعت وجه:** د شاتومچئ يومبارك حيوان دې اومبارك شات تياروي نوددې په قتلولوکښې کښې دوی ته تکليف رسول هم دي اود انسانانود فائدې اخستلوسبب هم ختميږي څکه نبی عليه السلام ددې د وژلوڅخه منع اوفرمائيله

**قوله: الْهُدْهُدُ:**

**د هدهد د وژلو د ممانعت وجه:** دا يوه مرغئ ده دې ته په اکثرو ژبوکښې هدهدوانی کهټ بړهنی ورته هم وائي ملاچرجك او ملاچرګك ورته هم وائي او کلی مکرکنړی ورته هم وائي چونکه دا مردار بدبودار دې ددې خوړل جائزنه دی نودفضول وژلونه ئې منع کړې شوه مضرهم نه دې

---

) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی قتل الذر (رقم-۵۲۶۷) وابن ماجه فی السنن کتاب الصید/باب ما ينهى عن قتله (رقم-۳۲۲٤) واحمد فی المسند:۱/۳۲۲

قوله: وَالصُّرَدُ

د صرد په مصداق کښې مختلف اقوال: ① په منجد کښې دې صرد یوه مرغنی ده د کومې سرچه لونی وی اوږدې اوږدې وزرې ئې وی اوږده مښوکه ئې وی نیم سپین اونیم تور وی. د مرغو ښکار کوی دا د منجد تحقیق دې

② مولانا فضل محمد صاحب په توضیحات کښې فرمائیلی دی زما دا خیال دې چې دا شین تغ دې یعنی په پښتو کښې ورته شین تغ وائی په اوبو کښې ورغوږه کیږی او د کبانو ښکار کوی اوممکن ده چه وړوکې مرغنی هم ښکار کوی

③ دَ مظاهرحق والا دَدې مرغنی نوم کلچړی لیکلې دې

④ مصباح اللغات دَدې نوم لتورا لیکلې دې.

دا بې ضرر مرغنی ده ددې وژل منع دی. والله أعلم

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۳۶] انسان سره د تحلیل اوتحریم عدم اختیار

۳۳۶-[۳۲] (¹)[۱]عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲]كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَأْكُلُونَ أَشْيَاءَ[۳] وَيَتْرُكُونَ أَشْيَاءَ تَقَذُّرًا[۴] فَبَعَثَ اللَّهُ نَبِيَّهُ[۵] وَأَنْزَلَ كِتَابَهُ[۶] وَأَحَلَّ حَلَالَهُ، وَحَرَّمَ حَرَامَهُ[۷] فَمَا أَحَلَّ فَهُوَ حَلَالٌ[۸] وَمَا حَرَّمَ فَهُوَ حَرَامٌ[۹] وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ عَفْوٌ[۱۰] وَتَلَا ﴿قُلْ لَا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا[۱۱] عَلَى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ[۱۲] إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَيْتَةً﴾ [الأنعام: ۱۴۵] الْآيَةَ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې په زمانه د جاهليت کې به خلقو [د خپل خواهش مطابق] څه څيزونه خوړل،[۳] او څه څيزونه به يې پريښودل. [يعنی د کومو څيزونونه چې يې نفرت وو هغه به يې نه خوړل]،[۴] نو الله تعالی جل جلاله خپل نبي صلی الله علیه وسلم راوليږلو.[۵] او [په هغه نبي صلی الله علیه وسلم او د هغه په ذريعه د هغه په امت يې] خپل کتاب نازل کړو.[۶] او خپل حلال څيزونه يې حلال وګرځول، او خپل حرام څيزونه يې حرام وګرځول. [يعنی دا يې بيان کړل چې فلانې شي حلال دي او فلانې شي حرام دي].[۷] او الله تعالی جل جلاله چې کوم څيز حلال کړي دي. هغه حلال دي، [د هغې نه علاوه حلال نه دي].[۸] او کوم څيز چې يې حرام کړي دي، هغه حرام دي.[۹] او د کوم څيز نه يې چې سکوت اختيار کړي دي، [يعنی د کوم څيز باره کې چې يې دا نه دی ښودلی چې دا حلال دي يا حرام]، نو هغه شي معاف دي، [په هغه څه مؤاخذه نشته].[۱۰] او بيا حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا آيت وويلو اي محمده! (صلی الله علیه وسلم) دوي ته اووايه چې کوم احکام د وحي په ذريعه ماته راغلي دي، په هغې

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب ما لم يذكر تحريمه (رقم-۳۸۰۰)

کې خو زه څه حرامه غذا نه بیا مومم،[۱۱] د چا خوړونکي د پاره چې هغه وخوري،[۱۲] خو دا چې هغه مردار وي، یا وینه الخ (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَقَذُّرًا: کرکه به ئې کوله، نفرت به ئې کولو.

**تسهیلات:**

**قوله: فَمَا أَحَلَّ فَهُوَ حَلَالٌ، وَمَا حَرَّمَ فَهُوَ حَرَامٌ:**

**په تحلیل او تحریم کښې د خلقو تره ید:** په دې حدیث سره د قرآن مجید هغه ایت مبارک طرف ته اشاره مقصود ده کوم چه په سوره انعام کښې دې قل لا أجد فیما أوحي إلى محرما ـــ الایة (الأنعام ۳) دا ایت حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د هغه خلقو په ترید کښې وئیلې وو کومو چه به د خپل نفساني خواهشاتو په بنیاد د حلت او حرمت فیصلې کولې کوموڅیزونه طرف ته چه به ئې طبیعت راغب شو هغه به ئې حلال ګڼړل او کومو څیزونه طرف ته چه طبیعت راغب نه وو هغه به ئې حرام ګڼړل، نو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په دې ایت سره ددوي خلقو خبره رد کړه او وئې فرمائیل چه حلال هغه دی کوم چه الله تعالی حلال کړی دی او حرام هغه دی کوم چه الله تعالی حرام کړی دی حاصل دا چه د حلت او حرمت تعلق نفساني خواهشاتو سره نه دې بلکه د شارع د حکم سره دې.

**[۴۳۷] د خره د غوښو حرمت**

۴۳۷ــ [۳۳] ( ) [۱] وَعَنْ زَاهِرٍ الْأَسْلَمِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «إِنِّي لَأُوقِدُ تَحْتَ الْقُدُورِ بِلُحُومِ الْحُمُرِ [۳] إِذْ نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زاهر اسلمي رضی الله عنه وايي[۲] چې [یوه ورځ] ما تر هغه کټوئ لاندي اور بلولو چې په هغې کې د خره غوښه د پخیدو د پاره ایخودل شوي وه،[۳] چې ناڅاپه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه یو اعلانچي دا اعلان وکړو[۴] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسو د خره د غوښو خوړلو نه منع کړی یي، (بخاري)

**حل اللغات:** ① لَأُوقِدُ: اور مې بلولو. ② الْقُدُورِ: کټوئ.

**تسهیلات:** **قوله: يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ:**

**د خره غوښې د حرمت حکم:** په ابتدا د اسلام کښې د خر غوښه خوړل حلال وو بیا د غزوه خیبر په موقع چه کله د خر غوښه پخیدله نو حرمت ئې نازل شو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خر غوښې د خوړلو نه منع وفرمائیله نو صحابه کرامو خپلې کټوئی الټا کړې او هغه غوښه ئې اوغورځوله او د قیامت پورې د خر غوښه خوړل حرام شو.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الحديبية (رقم-۴۱۷۳)

## [۳۳۸] دَ جناتو قسمونه

۳۳۸-[۳۴] ()[۱] وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، يَرْفَعُهُ "[۲]«الْجِنُّ ثَلَاثَةُ أَصْنَافٍ: [۳] صِنْفٌ لَهُمْ أَجْنِحَةٌ يَطِيرُونَ فِي الْهَوَاءِ، [۴] وَصِنْفٌ حَيَّاتٌ وَكِلَابٌ، [۵] وَصِنْفٌ يَحُلُّونَ وَيَظْعَنُونَ»، رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابو ثعلبه خشني ﷺ بطريق مرفوع نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] د جناتو (پيريانو) دري قسمو نه دي، [۳] يو خو هغه دي چې د هغوی (وزرې) وي او هغه په هوا کې الوخي، [۴] او دويم هغه دي چې د مارانو او د سپو [په شکل کې] په نظر راخي، [۵] او دريم قسم هغه دي چې په منزل خکته کيږي اوکوچ کوي، [يعنی تلونکی او راتلونکی وی] (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① أَصْنَافٍ: جمع د صِنفٌ ده. قسم، ② أَجْنِحَةٌ: د جناحة جمع ده. وزر ته وانی. ③ حَيَّاتٌ: دحية جمع ده، ماران. ④ يَحُلُّونَ: راکوزيږی، ديره کيږی، ⑤ يَظْعَنُونَ: خی راخی.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْجِنُّ ثَلَاثَةُ أَصْنَافٍ:

**د جناتو دري قسمونه:**

① بعضې جنات دَ مرغوبه شان الوزی.

② بعضې جنات دَ مارانوبه شان توخيږی.

③ بعضې جنات په کورونو کښې راکوزيږی راځی.

**دشرارت په اعتبار سره د جناتو درجات:** جنات دَ اورنه پيداشوې مخلوق دي دَدوی په طبيعت او خته کښې شرارت پروت دې.

① په جناتو کښې چه کله شرارت او سرکشی دَحدنه زياته شی نودوی شيطانان جوړيږی او ديوان شی.

② که دَدوی شرارت زيات نرم شی اودَ طبيعت نه زياتی شيطانت ختم شی نو دوی بناپيری شی.

③که چرې شرارت ئی اعتدال سره وی نودا جنات دی.

---

[۱] لم اجده

# [۳]بَابُ الْعَقِیقَةِ]

## دعقیقې بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① الأمر بإماطة الأذى عن الصبى: ۱، ۵، ۶، ۱۰.

② التحنيك للصبيان: ۲، ۳.

③ مقدار العقيقة: ۴، ۶، ۷، ۸، ۱۰.

④ وقت العقيقة: ۵.

⑤ الأذان والإقامة فى أذن الولد: ۹.

**قوله:** العقيقة

**د عقیقه لغوی معنی:** دا د عق یعق عقا نصر ینصر نه په معنی دَ شق یشق شقًا شلولو په معنی کښې دې چونکه دَ نوی پیداشوی ماشوم دَ سر وینښته په لا زمی توګه باندې خریلو سره اخواکولې شی په دې وجه دَ دغه وینښتو صفاکولو اوپه اوومه ورځ نوم کیخودو اویوه چیلئی ذبح کولونوم عقیقه کیخودې شوې دې.

**د عقیقې په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① دَ ابن حزم او دَ اهل ظواهر په نیز او د امام احمدبن حنبل رحمه الله دَ یوقول مطابق عقیقه واجب ده

② دجمهور علماؤ په نیزعقیقه سنت ده په دې شرط چه په اووه ورځو کښې دننه دننه وی داول فریق دلیل

**داول فریق دلیل:** اهل ظواهراو امام احمدرحمه الله دَ عقیقې د وجوب دَپاره اهریقوا وغیره دَامر صیغوته دَ وجهې دَوجوب قول کړې دې

**داول فریق د دلیل جواب:** دا منو چې اهریقوا د امر صیغه ده خوامرپه هرځائې کښې د وجوب په معنی نه وی قرآن کښې الله تعالی فرمائی (وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا) یعنی کله چې تاسو د احرام څخه حلال شئ نو ښکار کوئ اوس په دې ځائې کښې د حلالیدو څخه روسته ښکارکول د چا په نیز هم واجب نه دې حالاتکه د امر صیغه ده دغه شان دلته هم «اهریقوا» د وجوب دپاره نه دې بلکه د نورو روایاتوپه رڼا کښې دا امر د سنتیت دپاره دې

**ددویم فریق دلیل:** جمهور فقهاء فرمائی چه په اکثرواحادیثوکښې دَعقیقې دَپاره دَ سنت لفظ ونیلې شوې دې لهذا سنت دی واجب نه دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۴۹] د ماشوم څخه د خيرې لرې کولو حکم**

۴۱۴۹ —[۱] (¹) [۱] عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ الضَّبِّيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۳] «مَعَ الْغُلَامِ عَقِيقَةٌ [۴] فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا، [۵] وَأَمِيطُوا عَنْهُ الْأَذَى»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت سلمان ابن عامر ضبي رضي الله عنه وايي، [۲] چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل، [۳] چه د هلك په پيدا كيدو عقيقه كول (مسنون يامستحب) دي، [۴] نو د هغه د طرف نه خاروي ذبح كوئ، [۵] او د هغه نه تكليف (يعني د هغه د سر ويښتان اوخيري) لرې كړئ (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَقِيقَةٌ: دماشوم د پيدائش په اوومه ورځ خاروي ذبح كول. ② فَأَهْرِيقُوا: نو توئې كړئ. وبهيوئ، ③ وَأَمِيطُوا: إماتت دَ ازالې معنی کښې دې، لرې کړئ. ④ الْأَذَى: تكليف. خيري

**تسهيلات:**

**قوله:** أَمِيطُوا عَنْهُ الْأَذَى:

**د اذى څخه مراد:** إماتت دَ ازالې معنی کښې دې اودَ اذیٰ نه مراد خيرى وغيره دى چه دَ پيدائش دَ وخت نه دَ سر په ويښتو كښې وى بلكه دغه ويښته پخپله خيرې دي

**[۳۵۰] تحنيك مسنون عمل دې**

۴۱۵۰ —[۲] (²) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُؤْتَى بِالصِّبْيَانِ [۳] فَيُبَرِّكُ عَلَيْهِمْ، [۴] وَيُحَنِّكُهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشي رضي الله عنها نه روايت دي [۲] چې نبي كريم ﷺ ته به (نوزيږيدلي) كوشنيه [ماشومان] راوستل شو، [۳] حضور ﷺ به د هغوى د پاره د بركت دعا كوله (يعني د هغوى په مخكې به يې فرمايل بَارَكَ اللَّهُ عَلَيْكَ الله تعالى دې په تا بركت او رحمت نازل كړي) [۴] او د هغوى تحنيك به يې كولو (مسلم)

**حل اللغات:** ① فَيُبَرِّكُ: د بركت دعا به ئې كوله. ② وَيُحَنِّكُهُمْ: دتحنيك نه دې، كجوره جوئيل اوبيا هغه د ماشوم په خوله كښې وركول

¹) اخرجه البخاري في كتاب العقيقة/باب إماطة الأذى عن الصبي في العقيقة (رقم-۵۴۷۱) وابوداود في كتاب الضحايا/باب في العقيقة (رقم-۲۸۳۹) والترمذي في كتاب الأضاحي عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الأذان في أذن المولود (رقم-۱۵۱۵) والنسائي في كتاب العقيقة/باب العقيقة عن الغلام (رقم-۴۲۱۴)

²) اخرجه مسلم في كتاب الطهارة/باب حكم بول الطفل الرضيع وكيفية غسله (رقم-۱۰۱ - (۲۸۶) وابوداود في كتاب الأدب/باب في الصبي يولد فيؤذن في أذنه (رقم-۵۱۰۶)

**تسهيلات: قوله: وَحَنَّكَهُمْ:**

**د تحنيک شرعي تعريف:** دَهغه عمل نوم دې چه يوعالم يا نيك سړې كهجوره په خله كښې ښه اوچپوی اوبيا دغه لعاب دَ هغه نوی پيداشوی ماشوم په خله كښې تالوسره اولګوی ماشوم به دا تيركړی

**دتحنيک ځيزونه:** كهجوره خوږ ځيزهم دې او مباركه ميوه هم ده په دې وجه دَدې انتخاب اوكړې شو په شاتوسره هم داعمل كيدې شی نوې پيداشوې ماشوم دَ بې خودنی په حالت كښې وی دَ هغه دَ بدن حواس او مشاعر په خوږ ځيزسره رابيداريږی

**دتحنيک فائده:** كله چې د يو ماشوم خيټې ته ړومبې خوراك دَ يوعالم يا صالح سړی لعاب رسيدلوسره بركت هم راځی. اوكله چه نبی دَ چاتحنيك اوكړی دَهغې به څه وائی اوچه سيد الاولين وآلآخرين وی نوبياخوبه دَتحنيك شان څه بل رنګ وی

**[۳۱۵۱] دهجرت څخه روسته په مدينه كښې اولنی پيدا شوې ماشوم**

۳۱۵۱-[۳] (١)[١]«وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُما،[٢] أَنَّهَا حَمَلَتْ بِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ،[٣] قَالَتْ: فَوَلَدْتُ بِقُبَاءَ،[٤] ثُمَّ أَتَيْتُ بِهِ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٥] فَوَضَعْتُهُ فِي حِجْرِهِ،[٦] ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ فَمَضَغَهَا،[٧] ثُمَّ تَفَلَ فِي فِيهِ،[٨] ثُمَّ حَنَّكَهُ،[٩] ثُمَّ دَعَا لَهُ وَبَارَكَ عَلَيْهِ،[١٠] فَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الْإِسْلَامِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] د بي بي اسماء بنت ابي بكر رضي الله عنها نه روايت دې[٢] چې په مكه كې عبدالله ابن زبير رضي الله عنه د هغې په خيټه وو،[٣] بي بي اسماء رضي الله عنها وايي چې د قباء په مقام زما اولاد [عبدالله] پيدا شو،[٤] نو د عبدالله په اخستو سره زه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضره شوم.[٥] او هغه مي د حضور ﷺ په غيږه مباركه كې وركړو[٦] او نبی عليه السلام خورما [قجوره] راوغوښته، هغه يي وژووله.[٧] بيا د خُلي مباركي لاړې يې د هغه په خُله كې واچولي. [يعنی حضور ﷺ هغه كجور چې د حضور ﷺ لاړو مباركو سره يو ځاي شوي وه، د عبدالله په خُله كې واچوله] .[٨] او بيا هغه خورما يې د هغه د تالو سره اولګوله.[٩] د دې نه پس حضور ﷺ د هغه د پاره دبركت دعا وكړله. [يعنی داسې يې وفرمايل چې الله تعالى دې په ده بركت نازل كړي] .[١٠] نو عبدالله ابن زبير رضي الله عنه په مهاجرينو كې اولني ماشوم وو چې د اسلام په عهد كې پيدا شو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① حَمَلَتْ: راوچت كړي وو. ② حِجْرِهِ: په غيږه كښې. ③ فَمَضَغَهَا: اونې جويله. ④ تَفَلَ: اونې توكلې. ⑤ فِيهِ: په خوله دهغه كښې. ⑥ حَنَّكَهُ: تحنيک ئې اوكړو هغه ته.

(١) اخرجه البخاری فی كتاب العقيقة/باب تسمية المولود غداة يولد، لمن لم يعق عنه، وتحنيكه (رقم-٥٤٦٩) ومسلم فی كتاب الآداب/باب استحباب تحنيک المولود عند ولادته وحمله إلى صالح يحنكه، وجواز تسميته يوم ولادته، واستحباب التسمية بعبد الله وإبراهيم وسائر أسماء الأنبياء عليهم السلام (رقم-٢٦ - (٢١٤٦)) واحمد فی المسند:٣٤٧/٦

**تسهیلات:**

**قوله:** فَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الْإِسْلَامِ:

**دهجرت څخه روسته اولنی پیدا شوی مهاجراوانصارماشومان:** یعنې دَ هجرت نه پس په مهاجرینوکښې چه کوم ړومبې بچې پیدا شوې وو هغه عبدالله بن زبیروو او په انصار مدینه کښې دَ اسلام نه پس چه کوم ړومبې بچې پیداشوې وو هغه نعمان بن بشیر انصاری وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۴۱۵۲] د عقیقې د چیلو تعداد

۴۱۵۲ــ [۴] (۱) ۱ عَنْ أُمِّ كُرْزٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ۲ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ۳ " «أَقِرُّوا الطَّيْرَ عَلَى مَكِنَاتِهَا» " ۴ قَالَتْ؟ وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ ۵ " عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ، وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ ۶ وَلَا يَضُرُّكُمْ ذُكْرَانًا كُنَّ أَوْ إِنَاثًا» ، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، ۷ وَالنَّسَائِيُّ مِنْ قَوْلِهِ: يَقُولُ " عَنِ الْغُلَامِ إِلَى آخِرِهِ ۸ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ۱ بي بي ام کُرز ﷞ وایي ۲ چې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل ۳ چې مرغۍ د مغوی په جالو کې پریږدئ، ۴ ام کُرز ﷞ وایي چې ما د حضور ﷺ نه دا هم واوریدل ۵ چې په عقیقه کې د هلك د طرف نه دوه چیلۍ او د جنیۍ د طرف نه یوه چیلۍ ده ، ۶ او په دي کې ستاسو د پاره څه نقصان نشته، چې هغه نر وي یاښځه وي، [یعنې د دې خبرې لحاظ ضروري نه دي، چې د هلك په عقیقه کې دي چیلې ذبح کړل شي او د جینۍ په عقیقه کښې دی چیلۍ ذبح کړل شي] ، (ابوداؤ د ترمذي) ۷ د نسائي رحمه الله په روایت کې د یقول عن الغلام نه تر آخره پوري دي، ۸ او ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث صحیح دي

**حل اللغات :** ① أَقِرُّوا : دَ امر صیغه ده برقرار اوساتئ، ② مَكِنَاتِهَا : دَمکنة جمع ده، د مرغۍ د اوسیدوجاله (کور)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَقِرُّوا الطَّيْرَ عَلَى مَكِنَاتِهَا

**د مذکوره جملې پس منظر :** دَ عربوعادت ووچه دَ یو کاردَپاره دَ تللو په وخت به ئې دَ جالو نه مرغئې الوزولې او پاره کولې به ئې دې دَپاره چه په دې سره دَ کار دَ انجام دَ کامیابئې یا ناکامئې اندازه اوشي. که چرې مرغئې به دَ جالې نه ښي طرف ته تلله نوعرب به ډیر خوشحالیدل اوسفربه ئې جاری ساتلو اوکه چرې مرغئې به ګس طرف ته الوتله نوعربوبه

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الضحایا/باب فی العقیقة (رقم-۲۸۳۵) والترمذی فی کتاب الأضاحی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب الأذان فی أذن المولود (رقم-۱۵۱۶) والنسائی فی کتاب العقیقة/کم یعق عن الجاریة (رقم ۴۲۱۷) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب العقیقة (رقم-۳۱۶۲)واحمد فی المسند: ۳۸۱/۶

دَدې نه بدفالي نيوله سفربه ئې خنمولو او واپس به راتلل دا تول وهم پرستى وه په دې وجه نبى كريم دَدې نه ممانعت اوفرمائيل

**قوله**: وَلَا يَضُرُّكُمْ ذُكْرَانًا كُنَّ أَوْإِنَاثًا:

**په عقيقه كښې د نر او ښځې چيلى برابرى**: يعنى په دې كښې هيڅ حرج نشته دې چه په دوو چيلوكښې نر وى كه ماده وى دا ضرورى نه دى چه د هلك دَ طرف نه نر وى اود جينئى د طرف نه ماده وى

**[۴۱۵۳] د عقيقې اهميت**

۴۱۵۳-[۵] (۱)[۱] وَعَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]«الْغُلَامُ مُرْتَهَنٌ بِعَقِيقَتِهِ[۳] تُذْبَحُ عَنْهُ يَوْمَ السَّابِعِ، وَيُسَمَّى، وَيُحْلَقُ رَأْسُهُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[۴] لَكِنْ فِي رِوَايَتِهِمَا " رَهِينَةٌ " بَدَلَ مُرْتَهَنٍ[۵] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ وَيُدْمَى مَكَانَ " وَيُسَمَّى [۶] وَقَالَ أَبُودَاوُدَ وَيُسَمَّى أَصَحُّ.

**ترجمه**: [۱] اوحسن بصري د حضرت سمره رضي الله عنه نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ فرمايي[۲] هر كوشني د خپلي عقيقې په بدله كې گروى [گانړه] دي.[۳] [د هغه د پيدا نش] په اوومه ورځ دي د هغه د عقيقې د پاره يو پسه ذبح كړل شي، په اوومه ورځ دي نوم كيخودل شي، او سر دي وخريل شي، دا روايت احمد، ترمذي، ابوداؤد، او نسائي نقل كړي دي.[۴] ليكن د ابوداؤد رحمه الله اونسائي رحمه الله په روايت كې د مُرْتَهَنٌ په ځاىٔ د رَهِينَةٌ لفظ دي .[۵] اوداما احمد رحمه الله او دابوداؤد رحمه الله په يوروايت كې د يُسَمَّى په ځاىٔ وَيُدْمَى دي.[۶] او ابوداؤد رحمه الله ويلي دي چې لفظ يسمّي زيات صحيح دي

**حل اللغات**: ① مُرْتَهَنٌ: گانړه، گروى، ② رَهِينَةٌ: گانړه، گروى.③ يُدْمَى: دا دَ تدمية نه دې په وينه كښې ككړكول

**تسهيلات**:

**قوله**: الْغُلَامُ مُرْتَهَنٌ بِعَقِيقَتِهِ

**د مرتهن بعقيقته په مفهوم كښې دوه اقوال**: ① يعنى دَ ماشوم صحت اودَ هغه پالنه اودَ آفاتونه حفاظت په عقيقه باندې موقوف دې

② كه چرې عقيقه ئې اونه كړه وماشوم مړشو نوهغه به په قيامت كښې دَ مورپلار شفاعت نه كوى نو شفاعت موقوف اومحبوس دې په عقيقه باندې

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الضحايا/باب فى العقيقة (رقم-۲۸۳۷) والترمذى فى كتاب الأضاحى/باب من العقيقة (رقم-۱۵۲۲) والنسائى فى كتاب العقيقة/باب متى يعق؟ (رقم-۴۲۲۰) وابن ماجه فى كتاب الذبائح/باب العقيقة (رقم ۳۱۶۵) واحمد فى المسند: ۱۹۶۹

**قوله:** لَكِنْ فِي رِوَايَتِهِمَا "رَهِينَةٌ" بَدَلَ مُرْتَهَنٍ.

**د لفظ مرتهن عدمِ صحت:** "مرتهن" هغه سړی ته وائي چاسره چه دَ چا رهن کیخودې شوې وی دامطلب دلته صحیح نه جوړیږی نوکه چرې دَمرتهن په ځائی "الغلام مرهون" اسم مفعول واخستې شی نومعنی به صحیح شی لیکن په روایاتوکښې داسې لفظ نه ملاویږی، نو داسې معلومیږی چې دلته مرتهن ونیلوسره دَیو راوی نه سهو شوې ده او صحیح لفظ هم هغه "رهينة" دې کوم چه ابوداؤد او نسائی کښې ذکرکړې شوې دې.

**قوله:** وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ وَيُدَمَّى مَكَانَ "وَيُسَمَّى"

**د يُدَمَّى مفهوم:** په دې روایت کښې لفظ "يدمى" هم نقل دې کوم چه امام احمدؒ په مسنداحمد کښې ذکرکړې دې. دا د تدمية نه دې چه په وینه کښې دَ ککړکولو په معنی کښې دې. ماشوم به د عقیقې په وینه کښې ککړکولې شی

**قوله:** وَقَالَ أَبُودَاوُدَ وَيُسَمَّى أَصَحُّ.

**د يدمى د روایت عدمِ صحت:** دا دَ جاهلیت طریقه وه لهذا په دې لفظ کښې هم دَ یو راوی دَطرفه تصرف شوې دې. اصل لفظ "يُسَمّى" دې یعنی دَ ماشوم نوم به کیخودې شی ابوداؤد داصحیح ګرځولې دې.

**[۴۱۵۴] د هلک په عقیقه کښې یوه چیلی ذبح کول**

۴۱۵۴–[۲] (¹) [۱] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- [۲] قَالَ: «عَقَّ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الْحَسَنِ بِشَاةٍ [۳] وَقَالَ: يَا فَاطِمَةُ احْلِقِي رَأْسَهُ [۴] وَتَصَدَّقِي بِزِنَةِ شَعْرِهِ فِضَّةً" [۵] فَوَزَنَّاهُ فَكَانَ وَزْنُهُ دِرْهَمًا أَوْ بَعْضَ دِرْهَمٍ». [۶] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، [۷] وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ، [۸] لِأَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ لَمْ يُدْرِكْ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ.

**ترجمه:** [۱] حضرت محمد ابن علي ابن حسین رضی الله عنه [یعنی حضرت امام محمد باقر ابن امام زین العابدین ابن امام حسین شهید رضی الله عنه] د حضرت علي ابن ابي طالب رضی الله عنه نه روایت کوي [۲] چې هغه وفرمایل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د[اخپل لمسي او زما د زوي] حسن رضی الله عنه په عقیقه کې یوه (چیلۍ) ذبح کړي وه، [۳] او وي فرمایل چې اي فاطمه! (رضی الله عنها) د ده (حسن رضی الله عنه) سر وخروه، [۴] او د هغه د ویښتانو په وزن سپین زر صدقه کړه، [۵] نو مونږ د هغه ویښتان وزن کړل، نو هغه د یو درهم یا د یو درهم نه د کم وزن وو، [۶] ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او ویلي یي دي چې دا حدیث حسن غریب دي، [۷] او ددې اسناد متصل [یعنی مسلسل] نه دي، [۸] ځکه چې محمد ابن علي ابن حسین رضی الله عنه د حضرت علي بن ابي طالب رضی الله عنه زمانه نه ده لیدله.

**حل اللغات:** ① عَقَّ: عقیقه ئې اوکړه، ② بِزِنَةِ: په برابر،

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأضاحي/عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب العقيقة بشاة (رقم-۱۵۱۹)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَقَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْحَسَنِ بِشَاةٍ:

**د تعارض اشكال:** ① په زيربحث حديث كښې دَ يوې چيلئى دَ ذبح بيان دې سنن ابوداؤد كښې هم دغه شان دې

② په سنن نسائى كښې دَ دوو كبش ذكر دې

③ دې څخه مخكښې حديث نمبر (۴۱۵۲) كښې دَ عقيقې دا ضابطه بيان كړې شوې ده چه دَ هلك دَ طرف نه دوه چيلى يا چيلئى اودَ جينئى دَ طرف نه يو ذكردې په ظاهره رواياتوكښې تعارض دې

**دااشكال هرې جوابونه:** اصل ضابطه خوهم هغه ده چه په عقيقه كښې دَ هلك دَ طرف نه دوه اودَ جينئى دَ طرف نه يو چيلې يا چيلئى ده. دلته دَ حضرت حسن رضي الله عنه په عقيقه كښې چه دَ يوې چيلئى دَ ذبح كولو ذكر دې نو په دې كښې به تاويل كولې شى.

① زير بحث روايت غيرمتصل دې په دې كښې انقطاع ده لهذا دَدې په ځائى دَ دوو چيلو والا روايت اولى بالقبول دې.

② يوه چيلئى دَ حضوراك دَ طرف نه وه اودويمه دَحضرت على رضي الله عنه يا حضرت فاطمې رضي الله عنها دَ طرف نه وه

③ ممكن دى چه دَ ولادت په وخت نى يوګډ ذبح كړې وى اودَ عقيقې په وخت نى بل ذبح كړې وى نودې ته يويو كبش هم وئيلې كيدې شى اودوه هم وئيلى شى

**[۴۱۵۵] دحسنينو په عقيقه كښې يو يو ګډ ذبحه كول**

۴۱۵۵-[۷] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: [۲] أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «عَقَّ عَنِ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - كَبْشًا كَبْشًا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، [۳] وَعِنْدَ النَّسَائِيِّ: كَبْشَيْنِ كَبْشَيْنِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې [۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د امام حسن رضي الله عنه او د امام حسين رضي الله عنهما په عقيقه كې يو يو پسه ذبح كړ (ابوداؤد) [۳] او نسائي دوه دوه پسونه نقل كړي دي

**حل اللغات:** ① عَقَّ: عقيقه ئې اوكړه. ② كَبْشًا: ګډ.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَقَّ عَنِ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - كَبْشًا كَبْشًا:

**د تعارض اشكال:** وړاندې په حديث نمبر (۴۱۵۲) كښې يوه ضابطه ده چه دَهلك دَ طرفه دوه

---

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الضحايا/باب فى العقيقة (رقم-۲۸۴۱) والنسائى فى كتاب العقيقة/كم يعق عن الجارية (رقم-۴۲۱۹)

جيلي اودَ جينئي دَ طرفه د يوې چيلې عقيقه ده اودلته په دې حديث كښې دى چې نبى عليه السلام په حسنينو كښې د هريو د طرفه يو يو ګډ ذبح كړې وو دا ښكاره تعارض دې

**د تعارض جواب**:اصل څيزضابطه شوه اوپه دې حديث كښې چې د يو يو ګډ ذكر دې په دې كښې هغه احتمالات موجود دى د كومو ذكرچې دحديث نمبر(۴۱۵۴) په شرح كښې شوى دې

## [۴۱۵۶]دبچى څخه د عقيقه كولو محبوبيت

۴۱۵۶-[۸] (¹)[۱] وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ[۲] قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنِ الْعَقِيقَةِ.[۳] فَقَالَ "لَا يُحِبُّ اللهُ الْعُقُوقَ "[۴] كَأَنَّهُ كَرِهَ الِاسْمَ[۵] وَقَالَ " مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ[۶] فَأَحَبَّ أَنْ يَنْسُكَ عَنْهُ فَلْيَنْسُكْ.[۷] عَنِ الْغُلَامِ شَاتَيْنِ،[۸] وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ» "رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كوي[۲] چې هغه اوويل چه د رسول الله ﷺ نه د عقيقه باره كې پوښتنه وشوه.[۳] نو هغه ﷺ وفرمايل الله تعالى ﷻ عقوق نه خوښوي،[۴] ګويا آنحضرت ﷺ دا فعل په لفظ عقيقه سره موسوم كول (نومول) خوښ نه كړو،[۵] او بيا يي وفرمايل د كوم سړي چې زوي پيدا شي،[۶] هغه ته پكاردي، چې هغه د هغه دطرفه ذبح اوكړي [۷] هلك د طرف نه دوه بزي (چيلئ) ،[۸]او د جنيئ د طرف نه يوه بزه (چيلئ)- (ابوداؤد نسائي )

**حل اللغات**: ①الْعُقُوقَ : نافرماني، ②أَنْ يَنْسِكَ: چه قرباني كرى، ذبح كړي.③الْجَارِيَةِ: جينئ،

**تسهيلات**:

**قوله**:فَقَالَ "لَا يُحِبُّ اللهُ الْعُقُوقَ:

**د مذكوره جملې ظاهرى مطلب**:دَدې حديث په ظاهره مطلب دادې چه كله دَ نبى كريم نه دَعقيقې باره كښې پوښتنه اوكړې شوه نونبى كريم اوفرمائيل الله تعالى عقوق يعنى نافرماني نه خوښوى لهذا دَ چا چه عقيقه اوشوه هغه دَعقوق نه بچ شو لكه چه دادَعقيقې كولوترغيب دې

**قوله**:كَأَنَّهُ كَرِهَ الِاسْمَ:

**دراوى د ګمان تغليط**: دا مذكوره الفاظ دَيو راوى دَ طرفه تفسير دې هغه دا ګڼړلى چه نبى كريم لفظ عقوق نه خوښولو حالانكه حقيقت داسې نه دې نبى كريم اسم پخپله استعمال كړې دې

(¹) والنسائي فى كتاب العقيقة (رقم-۴۲۱۲) واحمد فى المسند: ۱۸۲/۲

## [۳۱۸۷] د ماشوم غوږ کښې اذان کول

۴۱۵۷-[۹] ([1]) [1] وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [2] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [3] حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلَاةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ. [4] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ

**ترجمه:** [1] او حضرت ابو رافع رضي الله عنه وايي [2] چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې د حسن ابن علي رضي الله عنه په غوږ کې يې اذان وکړو [3] کوم وخت چې د بي بي فاطمې رضي الله عنها نه هغه پيدا شو. او هغه اذان د مانځه د اذان په شان وو. (ترمذي ابوداؤد) [4] او ترمذي رحمه الله وېلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**تسهيلات: قوله:** أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا:

**د ماشوم په غوږ کښې اذان کول:** دې حديث نه دا خبره معلومه شوه چه د ماشوم په غوږ کښې آذان کول مسنون دي.

**په ښي غوږ کښې اذان او گس کښې اقامت کول:** د شرح السنه په يو روايت کښې دي چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د کوم کس په کور کښې ماشوم پيدا شي او دې دهغه په ښی غوږ کښې آذان اوکړی شي او په گس غوږ کښې ئې تکبير اووائی نو هغه ماشوم ته به د ام الصبيان بيماری نه لگی.

**دماشوم په غوږ کښې دتعوذ کلمات وئيل:** امام نووی رحمه الله نه دا الفاظ منقول دي چه د ماشوم په غوږ کښې دا الفاظ وئيل مستحب دي "إني أعيذها بك وذريتها من الشيطان الرجيم"

**د اذان کولو په حکمت کښې دوه اقوال:** ① ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه د ماشوم په غوږ د آذان کولو حکمت دا دي چه د ماشوم په غوږ کښې د تولو نه اول د الله تعالی د ذکر اطلاع دعوت إلى الإيمان والصلوه په طور ورسيږي خکه چه ددې بنيادی رکن مونځ دي (مرقات)

② ما د يو عالم څخه اوريدلی ومعلومه نه ده چې هغوی به دا خبره د کوم کتاب څخه کړی وی چې د ماشوم په ښی غوږ کښې اذان اوگس غوږ کښې اقامت کولو کښې دې طرف ته اشاره ده چې اې ماشومه لکه څومره وخت چې د اذان او اقامت په مينځ کښې وی دغه شان ستا دنيا ته راتګ او ددې څخه د واپس تلو وخت ډيرکم اومعمولی دې په دې کښې دآخرت دپاره نيک اعمال اوکړه او د دنيا په تماشو مه نيازيږه
لکه څنګه چې حافظ صاحب فرمائيلی دي

□ د دنيآ په تماشو چې څوک نيازيږی    دا هم نن ني تماشه ده صبا نه ده

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی الصبی يولد فيؤذن فی أذنه (رقم-۵۱۰۵) والترمذی فی كتاب الأضاحی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الأذان فی أذن المولود (رقم-۱۵۱٤) واحمد فی المسند: ۹/۶

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۱۵۸] په اوومه ورځ عقيقه کول

۳۱۵۸-[۱۰] ()[۱] «عَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا وُلِدَ لِأَحَدِنَا غُلَامٌ [۳] ذَبَحَ شَاةً وَلَطَخَ رَأْسَهُ بِدَمِهَا، [۴] فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ [۵] كُنَّا نَذْبَحُ الشَّاةَ يَوْمَ السَّابِعِ، [۶] وَنَحْلِقُ رَأْسَهُ [۷] وَنُلَطِّخُهُ بِزَعْفَرَانٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، [۸] وَزَادَ رَزِينٌ: وَنُسَمِّيهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت بریده رضي الله عنه وايي چې په زمانه د جاهليت کې دا دستور وو، چې په مونږ کې به د چا هلك پيدا شو، [۲] نو هغه به بزه (چيلۍ) ذبح کوله، او د هغه بزې وينه به يې د هغه هلك په سر مږله [۳] خو کوم وخت چې د اسلام زمانه راغله، [۵] نو مونږ به [د وړوکي د پيدائش] په اوومه ورځ بزه (چيلۍ) ذبح کوله، [۶] د هغه سر به مو خرولو، [۷] او د هغه په سر به مونږ زعفران لګول، (ابوداؤد) [۸] او د رزين رحمه الله په روايت کې دا الفاظ هم دي چې مونږ به په اوومه ورځ د هغه نوم کيخو دلو.

**حل اللغات:** (۱) لَطَّخَ: مږلې به ئې، ککړ کولې به ئې،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَطَّخَ رَأْسَهُ بِدَمِهَا:

**دجاهليت د زمانې رسم:** په جاهليت کښې به خلقوماشوم دَ عقيقې دَ څناور په وينوکښې ککړکولو. په دې سره به دَ ماشوم په طبيعت کښې څناورتوب راتلو.

**قوله:** وَنُلَطِّخُهُ بِزَعْفَرَانٍ:

**په ماشوم باندې زعفران لګول:** اسلام د ماشوم په بدن د وينې لګولو په ځاې دَ زعفرانو لګولو حکم ورکړو دې دَپاره چه ماشوم مشك او زعفران جوړشي. په دې وجه علماؤ ليکلی دی چه دَعقيقې خوراك سره لږه شيريني هم کيدل پکاردی چه دَماشوم اخلاق خواږه شي.

اسلام دَ جاهليت طريقه موقوف کړه اوخپله مبارکه طريقه ئې جاری کړه په دې وجه مسلمانانوله دَ اسلام طريقه خپلول پکاردی.

() اخرجه ابوداود في السنن رقم الحديث ۲۸۴۳

# [۲۱] كِتَابُ الأَطْعِمَةِ

## دَخوراکونو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة وسبعون أحاديث مشتملة على خمس عشرة مسئلة:**

① أداب الأكل قولا وفعلا: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۲۶، ۲۷، ۴۰، ۴۱، ۴۲. ۴۸، ۴۹، ۵۵، ۷۰، ۷۴، ۷۷، ۷۹.

② ضيق المعيشة في زمن النبي ﷺ: ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۳۱، ۳۲، ۳۳، ۳۴.

③ عدم الانكار على العيب في الطعام: ۱۴.

④ قباحة كثرة الطعام: ۱۵، ۷۵.

⑤ المواساة في الطعام: ۱۶، ۱۷.

⑥ فضائل بعض الأطعمة: ۱۸، ۱۹، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۵، ۲۸، ۲۹، ۳۰. ۵۴. ۵۷. ۵۸. ۵۹. ۶۱. ۶۶، ۶۹، ۷۱، ۷۲، ۷۶، ۷۸.

⑦ حكم الأكل بالسكين والسن: ۲۰، ۵۱، ۵۲، ۶۴، ۷۳.

⑧ حكم الجمع بين الطعامين: ۲۴، ۶۰، ۶۳.

⑨ كراهة بعض الأطعمة: ۳۵، ۳۶، ۶۷، ۶۸.

⑩ جواز الكيل في الطعام: ۳۷.

⑪ التحميد عند فراغ الأكل: ۳۸، ۳۹، ۴۳، ۴۴، ۴۵.

⑫ غسل اليدين قبل الأكل وبعده وتركه أحيانا: ۴۶، ۴۷، ۵۰، ۶۶.

⑬ الاجتناب عن بعض الأطعمة للمريض: ۵۳.

⑭ تصفية الطعام من السوس (السوس دود يقع في التمر): ۶۳.

⑮ تفصيل الحلال والحرام: ۶۵.

**د طعام په تعریف کښې درې اقوال:** ① أطعمة د طعام جمع ده علامه جوهری رحمه الله وائی الطعام مایؤکل یعنی کوم څیز چه خوړلې شی او کله دَ دې اطلاق دَ غنمو سره خاص وی

② طعام هغه خوراک ته هم وائی کوم چه پوخ کړې شوې تیار شی

③ طعام هغه خوراک ته وائی چه دَ اولګې لرې کولو دَ پاره تیارولې شی او یو قول دا هم دې چه هغه خوراک په کوم چه خیټه ډکه شی هغې ته طعام ونیلې شی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۳۱۵۹] په ګډه کښې د خوراک کولو درې آداب

۳۱۵۹-[۱] (۱) ۞ «عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ۞ كُنْتُ غُلَامًا فِي حِجْرِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۞ وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ. ۞ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَمِّ اللّٰهَ ۞ وَكُلْ بِيَمِينِكَ ۞ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ حضرت عمر ابن ابي سلمه ﷺ وايي چې زه وړوکي وم، او د رسول الله ﷺ په پرورش اوتربيت کې وم، ۞ او زما لاس به په لوښي کې جلتئ جلتئ سره تاويدلو يعنې څرنګه چې د وړوو عادت وي، ما به د خپل مخې نه د خوړلو په ځاى اخوا ديخوا ته لاس وهلو ۞ نو رسول الله ﷺ ماته وفرمايل چې بسم الله وايه ۞ او په ښي لاس سره يې خوره، ۞ او د هغه جانب نه يې خوره کوم چې تاته نزدې دي [يعني د خپلې مخې نه يې خوره] بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ① حِجْر: غيره، پرورش، تربيت.

**حضرت عمرو بن ابي سلمه مختصر تعارف:** دې دَ حضرت ام المؤمنين حضرت ام سلمه ﷺ خوئ دې چه دَ هغې دَ ړومبی خاوند ابوسلمه ﷺ نه وو. دَ هجرت نه دوه کاله پس پيداشوې وو. کله چه ام سلمه ﷺ او ابوسلمه ﷺ په حبشه کښې وو. په خپلو خوئيندو ورونړو کښې دَ ټولونه مشر وو. کله چه دَ حضوراکرم ﷺ نکاح ام سلمه ﷺ سره اوشوه هغه وخت دې ماشوم وو. دې نه پس هغه دَ نبی کريم ﷺ په پالنه کښې راغلو. دوی دحضوراکرم ﷺ نه هم روايت کوی اودَ خپلې مور بی بی ام سلمه ﷺ نه هم روايتونه نقل کوی. (۳) دَ عبدالملک بن مروان په زمانه کښې وفات شو. (۴). ابن الاثير فرمائی چه دَ هغوی انتقال په ۸۳ هـ کښې شوې. (۵)

**تسهيلات:**

**قوله: كُنْتُ غُلَامًا فِي حِجْرِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**دحجر رسول الله مفهوم:** عمرو بن سلمه دَ ام سلمه ﷺ دَ مخکينی خاوندخوئی دې ام سلمه ﷺ چه کله دَ نبی کريم په نکاح کښې راغله نو عمرو بن سلمه هغې سره دَ نبی کريم په تربيت کښې راغلو هم دې طرف ته "في حجررسول الله ﷺ" سره اشاره کړې شوې

**قوله: وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ.**

**په شريکه د روټي خوراک کولو درې آداب:** ده "تطيش" يعنی لاس ئې اخوا ديخوا په رکيبئی کښې

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام... رقم الحديث ۵۳۷۶ ومسلم فی کتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب... رقم الحديث ۵۳۸۸

تاویدلو کله به نی دَ دیخوا نه خوړلو اوکله دَ اخوا نه لکه چه دَ ماشومانو عادت وی رسول الله ﷺ هغه ته دري آداب اوخودل

① بسم الله وئیلوسره خوراك شروع کول

② په ښی لاس باندي خوراك کول

③ دَ خپلې مخې څخه خوراک کول. دلته دَ دريو آدابو بیان دي.

**[۳۳۰] د خوراك په وخت کښې د بسم الله ويلو اهميت**

۳۳۰-[۲]( ) ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت حذیفه رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په کوم طعام چې د الله جل جلاله نوم وانخستل شي، نو هغه شيطان ځان د پاره حلال ګڼي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَسْتَحِلُّ: حلال ګڼري.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ:

**په بسم الله نه ويلو سره په خوراک کښې د شيطان شرکت:** يعنى دَ شيطان کوشش وی چه په يوطريقه مسلمان په غفلت سره خوراك شروع کړی دي دَپاره چه شيطان ته موقع ملاؤشی اوهغه هم ورسره شی. بسم الله لوستلوسره دا خبيث تختي.

**[۳۳۱] په بسم الله سره د شيطان د شرکت څخه حفاظت**

۳۳۱-[۳]( ) ① وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ ③ فَذَكَرَ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ ④ وَعِنْدَ طَعَامِهِ. ⑤ قَالَ الشَّيْطَانُ: لَا مَبِيتَ لَكُمْ وَلَا عَشَاءَ. ⑥ وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ; ⑦ قَالَ الشَّيْطَانُ: أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ ⑧ وَإِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ طَعَامِهِ ⑨ قَالَ: أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرکله چې سړي په خپل کور کې [يعنى د خوب په ځاي کې] داخليږي، ③ او د داخليدو په وخت کې د الله جل جلاله نوم واخلي، [يعنى بسم الله ويلو سره په خواب ګاه کې داخليږي] ④ او د خوراك په وخت هم

(1) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب وأحكامهما (رقم-۱۰۲ - (۲۰۱۷) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام (رقم-۳۷٦٦) واحمد فى المسند:٥/۳۸۳

(2) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب وأحكامهما(رقم-۱۰۳ - (۲۰۱۸) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام (رقم-۳۷٦٥)وابن ماجه فى كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فى كم يكبر الإمام فى صلاة العيدين (رقم-۱۲۷۹) واحمد فى المسند: ۳/۳۸۳

د الله ﷻ نوم واخلي، ۵ نو شیطان [خپلو تابعدارو ته] وایي چې په دي کور کې نه ستاسو د پاره څه ځای شته، او نه طعام شته، ۶ او کله چې سړي په کور (خواب گاه) کې د داخلیدو په وخت د الله ﷻ نوم نه اخلي، ۷ نو شیطان خپلو تابعدارو ته وایي، چې په دي کور کې تاسو ته ځای ملاؤ شو، ۸ او هر کله چې سړي د طعام خوړلو په وخت د الله ﷻ نوم نه اخلي، ۹ نو شیطان خپلو تابعدارو ته وایي چې په دي کور کې تاسو ته ځای هم ملاؤ شو او طعام هم ، (مسلم)

**حل اللغات:** ① مَبِیتَ: دشپې تیرولو ځائي، ② عَشَاءَ: دماښام روټئ.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَامَبِیتَ لَکُمْ وَلَاعَشَاءَ:

**د بسم الله په وجه د شیطانانو نه د کور حفاظت:** کورته دَ راتلوپه وخت اوبیا دَ خوراك کولوپه وخت کله سړي بسم الله وائی نودَ شیطانانودَ جماعت امیر هغوی ته وائی دلته نه خوراك شته اونه دَ شپې تیرولو گنجائش شته.

**قوله:** أَدْرَكْتُمُ الْمَبِیتَ وَالْعَشَاءَ:

**د بسم الله نه ویلو په وجه په خوراک او جماع کښې د شیطان شرکت:** اوکه یوسړي کورته دَ راتلو په وخت بسم الله نه وائی نوهم دغه شیطان وائی خوشحاله شئی رونړو خوراك او شپه تیرول دواړه ملاؤشو. علماء لیکلی دی چه بیا ابلیس دي سړی سره په جماع کښې هم شریکیږی. دَ نن صبا دروکښې دَ جهالت په وجه دا وباء عام شوې ده. ماډرن طبقه دَ بسم الله نه لرې ده.

**[۳۳] په ښی لاس د خوراک څکاک کولو مسنونیت**

۳۳-(۳) ([1]) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَأْكُلْ بِيَمِينِهِ، ۳ وَإِذَا شَرِبَ فَلْيَشْرَبْ بِيَمِينِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هر کله چې په تاسو کې یو سړي طعام خوري، نو په ښي لاس سره دي خوري، ۳ او هر کله چې څه شي څکي نو په ښي لاس سره دي څکي، [یعنی د اوبو وغیره لوښي دې په ښي لاس سره نیسي] (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَأْكُلْ بِيَمِينِهِ:

**په ښی لاس د خوراک کولو حکم:** شریعت دَ انسان هرځائی رهنمائی کړې ده لهذا دَ شریعت

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب واحکامهما(رقم-۱۰۳ - (۲۰۱۸) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب التسمیة علی الطعام (رقم-۳۷۶۵)وابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فی کم یکبر الإمام فی صلاة العیدین (رقم-۱۲۷۹) واحمد فی المسند: ۳/۳۸۳

حكم دي چه خوراك په ښې لاس کوئي او ډك اودس ماتې په ګس لاس باندې صفاكوني اوس كه يوسړې دَ دې الته چليږي او په ګس لاس باندې خوراك كوي نودَ شريعت نافرمانئ سره سره به دَده خوراك هم بې مزې شي ځكه چه كله ده ته يادېږي چه اوس لږساعت وړاندې ئې په ګس لاس باندې ځان صفاكړې دې او اوس هم هغه لاس په خله كښې وركوي او ځتې ئې نودَده به كركه پيدا كيږي او خوراك به ئې بې مزې شي

**[۴۳]په ګس لاس سره د خوراك څښاك كولو ممانعت**

۴۳–[۵]( )[۱]وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا يَأْكُلَنَّ أَحَدُكُمْ بِشِمَالِهِ[۳] وَلَا يَشْرَبَنَّ بِهَا». [۴] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِهَا، رَوَاهُ مُسْلِمٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] په تاسو كې دې يو سړي په چپ [ګس] لاس سره طعام نه خوري،[۳] او نه دې په چپ لاس سره [يو شي] څكي،[۴]ځكه چې دا د شيطان طريقه ده، چې هغه په چپ لاس سره خوري او په چپ لاس سره څكي (مسلم)

**تسهيلات: قوله:** لَا يَأْكُلَنَّ أَحَدُكُمْ بِشِمَالِهِ وَلَا يَشْرَبَنَّ بِهَا:

دَدې حديث نه معلومه شوه چه كوم خلق په ګس لاس باندې خوراك څښاك كوي دوى په حقيقت كښې شيطانان جوړشوى دى سره دَدې چه شكل ئې دَ انسان دې شيطان دَ انسان دښمن دې مكربښكارى نه او داخبره ده چه دَ ده كار اوكردار ښكارى نوكوم كس چه دَ شيطان كردارخپلوى نوښه پوهه شه چه دې دَ شيطان دوست او پخپله پوخ شيطان دې

**[۴۴]په دريو ګوتو د خوراك كولو مسنونيت**

۴۴–[۶]( )[۱] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَأْكُلُ بِثَلَاثَةِ أَصَابِعَ[۳] وَيَلْعَقُ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يَمْسَحَهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱]او كعب ابن مالك رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به په په دريو ګوتو (يعني په متهـ. د شهادت په ګوته او د منځ په ګوته) طعام خوړلو.[۳] او د طعام د فارغيدو نه پس به يې خپل لاس (په رومال وغيره سره) د اوچولو (يا د وينځلو) نه مخكې څټلو (مسلم)

**حل اللغات:** ①يَلْعَقُ: څټلو به ني. ②أَنْ يَمْسَحَهَا: چه اوچ ني كړي

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب وأحكامهما (رقم-١٠٦ - (٢٠٢٠) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب الأكل باليمين (رقم-٣٧٧٦)والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى النهى عن الأكل والشرب بالشمال(رقم -١٧٩٩) كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب النهى عن الأكل بالشمال (رقم-٦) واحمد فى المسند: ٣٣/٢

[2]) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب استحباب لعق الأصابع والقصعة، وأكل اللقمة الساقطة بعد مسح ما يصيبها من أذى، وكراهة مسح اليد قبل لعقها (رقم-١٣١ - (٢٠٣٢) واحمد فى المسند:وابوداود فى/٤٥٤

**تسهيلات:**

**قوله: يَأْكُلُ بِثَلَاثَةِ أَصَابِعَ:**

**په درې ګوتو خوراک کول:** انسان له پکار دی چه په خوراك کښې د کم نه کمې ګوتې استعمال کړی د نوړئی اوچتولو دپاره کم نه کم د دريو ګوتو ضرورت وی بیاد پلیټ څټل هم د برکت سبب دې او لاس وینځلونه یا صفاکولونه وړاندې د ګوتو څټل هم سنت دی په دې کښې برکت دې او په دې کښې د خوراك خوند دې بعضې وخت د ضرورت د وجهې د دريو ګوتونه زيات هم نبی کريم په خوراك کولوکښې استعمال کړی دی په کوم سره چه د جوازطرف ته اشاره اوشوه

**قوله: وَيَلْعَقُ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يَمْسَحَهَا**

**د تعليق اومسح په مصداق کښې درې اقوال:** ① دَ صفا کولومطلب داهم کيدې شی چه په کپړه سره صفاکړې شی

② د صفا کولو مطلب دا هم کیدې چه دَ خپوپه ګیتو او تلو باندې اومړلې شی لکه چه د صحابه کرامو عادت وو

③ دَمسح څخه وینځل هم مراد اخستې شی.

**[۳۷۴۵] د ګوتو اوکاسې د څټلو حکم**

۳۷۴۵-[۷] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [۲] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «أَمَرَ بِلَعْقِ الْأَصَابِعِ وَالصَّحْفَةِ، [۳] وَقَالَ: "إِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ: فِي أَيِّهِ الْبَرَكَةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت جابر نه روايت دې [۲] چې نبي کريم ﷺ د ګوتو او پلیټ څټلو حکم وړکولو. [۳] او وي فرمايل چې تاسو ته نه ده معلومه. چې په کومو ګوتو يا نوړئ کې برکت دي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① لَعْق: څټل. ② الْأَصَابِعِ: ګوتې. ③ الصَّحْفَةِ: پلیټ. کاسه.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي أَيِّهِ الْبَرَكَةُ:**

**د "أَيِّهِ" په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① "أية" کښې تاء د تانيث ده ددې وجهې نه ترجمه ئې په ګوتو يا په نمړئ سره کولې شی

② بعضو نسخو کښې دا لفظ ه په ضمير سره هم دي نو په دې صورت کښې به معنی دا شي چه تاسو نه پوهيږې چه کوم خوراک کښې برکت دې ايا هغه کوم چه تاسو وخوړلو په

(¹) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة/باب استحباب لعق الأصابع والقصعة. وأكل اللقمة الساقطة بعد مسح ما يصيبها من أذى، وكراهة مسح اليد قبل لعقها(رقم-۱۳۳ - (۲۰۳۳) واحمد في المسند:۳/۱٥٤

هغې کښې برکت دي او که په هغه خوراک کښې کوم چه تاسو په ګوتو سره اوڅټلو په هغې کښې برکت دي، اوددې خبرې تائيد په دې حديث کښې دي "فإنه لايدرى فى أى طعام تكون البركة".

**قوله**: فِي أَيِّهِ الْبَرَكَةُ:

**د برکت لغوى معنى**: په عربي ژبه کښې د برك البعير معنى ده اوښ په پوخانى کښې مضبوط اودريدل، او په عربي کښې برکة حوض ته وائي ځکه چه په حوض کښې هم اوبه ډير وخت پورې ولاړې وي

**د برکت په مفهوم کښې درې اقوال**: ① خير كثيريعنى په دې خوړلو کښې ډير لوئې خيردې کيدې شي د ګوتو سره چې د خوراک کوم اجزاء اونخلی اوهغه تيرې شي په هغې کښې الله تعالى دده دپاره شفاء کيخودې وی خو دده څخه نې پته کړې وی.

② ډيريدل او زياتيدل يعنى په سره به د ده طعام ډيرشي اوبرکت به په کښې پيدا شي

③ دوام او پائيداري به ترې مراد وی لکه څنګه چه دورد شريف کښې راځی "بارك على محمد". ددې په تشريح کښې علماء فرمائي چه "أي أثبت له وأدم ما أعطيته من التشريف والكرامة"

**[۳۳]د روټي نه پس د ګوتو څټل**

۳۳ـ [۸] ()① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " «إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ ③ فَلَا يَمْسَحْ يَدَهُ حَتَّى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې يو سړي طعام وخوري، ③ نو هغه دې لاس تر هغه وخته په څه څيز سره نه وچوي (او نه دې وينځي) تر څو چې د لاس ګوتې پخپله يا په بل چا ونه څټي (بخاری مسلم)

**حل اللغات**: ① يَلْعَقَهَا: په خپله به نې څټلې. ② يُلْعِقَهَا: په بل به ئې څټلې.

**تسهيلات**:

**قوله**: حَتَّى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا:

**د ګوتو څټلو مسنونيت**: يعنى پخپله ئې اوڅټي يائى په بل باندې اوڅټي. څټل کونکې دې داسې کس وی چه هغه له ددې د ګوتونه کرکه نه ورځى مثلاً خوئى لور ده واړه بچی دی يا خادم طالب اوغلام دې إلعاق دَ باب افعال نه په بل باندې دَ څټلو په معنى کښې دې ماشومانو باندې ګوتې څټلو باندې ما خپل مشران ليدلی دی

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب لعق الأصابع ومصها قبل أن تمسح بالمنديل(رقم-٥٤٥٦) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب استحباب لعق الأصابع والقصعة. وأكل اللقمة الساقطة بعد مسح ما يصيبها من أذى، وكراهة مسح اليد قبل لعقها(رقم-١٢٩ - (٢٠٣١) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب فى المنديل (رقم-٣٨٤٧) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب لعق الأصابع (رقم-٣٢٦٩)

## [۳۳۸۴] د پريوتلي نمرۍ حكم

۳۳۸۴-[۹] ()(۱) وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (۲) "«إِنَّ الشَّيْطَانَ يَحْضُرُ أَحَدَكُمْ عِنْدَ كُلِّ شَيْءٍ مِنْ شَأْنِهِ" (۳) حَتَّى يَحْضُرَهُ عِنْدَ طَعَامِهِ (۴) فَإِذَا سَقَطَتْ مِنْ أَحَدِكُمُ اللُّقْمَةُ (۵) فَلْيُمِطْ مَا كَانَ بِهَا مِنْ أَذًى (۶) ثُمَّ لِيَأْكُلْهَا وَلَا يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ (۷) فَإِذَا فَرَغَ فَلْيَلْعَقْ أَصَابِعَهُ (۸) فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي: فِي أَيِّ طَعَامِهِ يَكُونُ الْبَرَكَةُ؟». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** (۱) او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل (۲) چې شيطان ستاسو د هر كار په وخت كې حاضريږي، (۳) تر دې چې ستاسو د طعام خوړلو په وخت هم درسره موجود وي، (۴) لهذا په تاسو كې چې د كوم سړي نه نوړۍ ولويږي، (۵) نو پكار دي چې هغه را پورته كړي او كوم څيز [خاورې وغيره] چه دهغې سره لګيدلي وي هغه دې صفا كړي (۶) اودې خوري، هغه دې د شيطان د پاره نه پريږدي، (۷) او كله چې طعام وخوري، نو پكار دي چې خپلې ګوتې وڅټي، (۸) ځكه چې هغه ته نه ده معلومه چې د هغه په كوم طعام كې (يعني د خوراك په كومه حصه كې) بركت دې. (مسلم)

**حل اللغات:** (۱) سَقَطَتْ: اوغورزيږي، (۲) اللُّقْمَةُ: نمرۍ، (۳) فَلْيُمِطْ: لرې دې كړي، (۴) أَذًى: تكليف (دلته ترې خاوره وغيره مراد دي). (۵) يَدَعْهَا: پريږدي دا. (۶) فَرَغَ: چه فارغ شي (۷) فَلْيَلْعَقْ: نو اودې څټي

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيُمِطْ مَا كَانَ بِهَا مِنْ أَذًى:**

**د پريوتلې نمرۍ دوه صورتونه:** (۱) كه د پريوتلې نمرۍ صفا كول ممكن وى نو كه هغې سره دكې وغيره يا خاوره لګيدلې وى اوصفاكول ممكن وى نودَ خپل وس حده پورې دې صفاكړي اودې خورى اودكبرژنو خلقو په شان دې په زمكه يا په دسترخوان باندې نه پريږدې ځكه چه شيطان راځى او داخورى يادَدې په ضائع كولوباندې خوشحاليږى. نوشيطان له دَ خوشحالئى موقع مه وركوئى هغه خو ستاسو دښمن دې

(۲) كه د پريوتلې نمرۍ صفاكول ممكن نه وى نودا سپى يا پيشوباندې اوخوروئى دې دپاره چه دَ الله تعالى رزق ضائع نه شى. كله چه دَ خوراك نه فارغ شې نو په تواضع او عاجزۍ سره دَ الله تعالى شكراداكړه او ګوتې اوڅټه په دې كښې بركت دې اودَ نظام هضم دپاره ډيرفائده مند دى.

() اخرجه مسلم في كتاب الأشربة/باب استحباب لعق الأصابع والقصعة، وأكل اللقمة الساقطة بعد مسح ما يصيبها من أذى، وكراهة مسح اليد قبل لعقها(رقم-۱۳۵ - (۲۰۳۳)

## [۳۲۸] په ډډه لګولو سره د خوراک کولو کراهت

۳۲۸-[۱۰] (۱) وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (۲) «لَا آكُلُ مُتَّكِئًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** (۱) اوحضرت ابوجحیفه رضي الله عنه وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل (۲) زه په تکیه وهلو سره طعام نه خورم . (بخاري)

**حل اللغات:** ① مُتَّكِئًا: چه ډډه نې وهلې وی

**تسهیلات: قوله: متکئًا:** یعنی زه تکیه او ډډه لګولوسره په بې پرواهئی او تکبرسره خوراك نه خورم نوزما امت له هم داسې خوراك نه دی کول پکار داسې کبرژن خلق کوی

**تسهیلات:**

**قوله: لَا آكُلُ مُتَّكِئًا:**

**په ډډه لګولوسره د خوراک کولو څلور صورتونه:** ① په زمکه اړخ لګول او کیناستل

② د پرلت په حالت کښې کیناستل

③ په یو لاس په ذمکه ډډه وهل او په بل لاس خوراک کول

④ دیوال یا بل څیز سره تکیه لګولو په حالت کښې خوراک کول.

**د مذکوره صورتونود کراهت وجه:** دا ټول صورتونه مذموم دي ځکه چه دا د متکبرینو عادت دي او بنده له پکار دي چه د الله تعالی دنعمتونه خوړلو په وخت کښې تواضع اختیار کړي

د عاجزۍ درې صورتونه ① دواړه خپې ادرولو په حالت کیناستل

② دواړه پتونان خورول او په قدمونو کیناستل (یعنی االتحیات په شکل)

③ یو خپه اودرول او بلی خپې په قدم باندې کیناستل

په کوم صورت کښې چه تواضع ظاهریږي هغه صورت اختیارول پکار دي

**مسئله:** د تکیه لګولو په صورت کښې د خوراک څخاک څه حکم دي؟

### په ډډه لګولو سره د خورك کولوپه حکم کښې مذاهب:

① د صحابه کرامو او تابعینو یو جماعت د "اکل متکئا" د جواز قائل دي

② د امام مالک، امام شافعي، امام احمد بن حنبل، او د جمهور علماؤ په نیز د تکیه لګولو په حالت کښې خوراک کول مکروه دي اوخلاف اولی دي دا د جمهورو مذهب دي

**د اول فریق دلیل:** د عبدالله بن السائب بن خباب عن ابیه عن جده روایت د دوی مستدل دی

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة /باب الأكل متكئا (رقم-۵۳۹۹) وابوداود في كتاب الأطعمة /باب ما جاء في الأكل متكئا (رقم-۳۷۶۹) وابن ماجه في كتاب الأطعمة /باب الأكل متكئا (رقم-۳۲۶۲)

د هغې روايت حاصل دا دې چې مونږ نبی علیه السلام په تکیه وهلوحالت کښې خوراک کولوباندې ليدلې وو.

**د اول فريق د دليل جواب:** خودا روايت محدثينوباطل ګرځولې دې (كما في العيني)

**د دويم فريق دليل:** زيربحث حديث د دوی مستدل دې په دې کښې نبی علیه السلام فرمائی چې زه په ډډه وهلو سره خوراک نه کوم.

**[۳۳۳] په ميز او چوکۍ د خوراک کولو حکم**

۳۳۳-[۱۱] ( ) [۱] وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «مَا أَكَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى خِوَانٍ، [۳] وَلَا فِي سُكُرُّجَةٍ [۴] وَلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ. [۵] قِيلَ لِقَتَادَةَ: عَلَامَ يَأْكُلُونَ؟ قَالَ: عَلَى السُّفَرِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت قتاده د حضرت انس ﷺ نه روايت کوي [۲] چې نبي کريم ﷺ هيڅ کله په خوان (مراد چوکۍ يا ميز) طعام نه دي خوړلي، [۳] او نه يي په وړوکي لوښي کي خوړلي دي، [۴] او نه د حضور ﷺ د پاره چپاتي پخ شوي دی، [۵] د حضرت قتاده نه پوښتنه وشوه چې هغه ﷺ به په کوم ځيز طعام خوړلو؟ [۶] هغه اوويل چې په دستر خوان (بخاري)

**حل اللغات:** ① خِوَانٍ: ميز، چوکۍ، ② سُكُرُّجَةٍ: وړوکې لوخي، پليټ وغيره. ③ خُبِز: روټۍ. ④ مُرَقَّقٌ: د ميده اوړو روټۍ، ⑤ السُّفَر: دَ سفرة جمع ده دسترخوان.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَكَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى خِوَانٍ:

**دَ خوان د لفظ ضبط:** خوان بکسرالخاء وبضمها او دريم لغت اخوان بكسر الهمزه وسكون الخاء دې اودَ دې جمع قلت أخونة او جمع كثرت خُوَن ده.

**د خوان په تعريف کښې مختلف اقوال:** ① قاضی عياض رحمه الله فرمائی دَ دې معنی داسې دسترخوان دې چه په کوم باندې خوراک نه وی.

② مولانا ګنګوهی رحمه الله دَ دې تفسير داسې ځيز سره کړې دې په کوم کښې چه لوئ لوئ خپې لګيدلې وی

③ علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دَ پيتل وغيره نه جوړشوې لوئ تال کوم ته چه لاندې دَ پيتل وغيره خپې هم لګيدلې وی دَ کوم طول چه يو ذراع وی دا لوښې به دومره لوئ وو چه دابه دوو کسانو يا دَ دې نه زياتو اوچتولو اوَ لوئی سرى مخې ته به کيخودلې شو.

) اخرجه البخاری فی كتاب الأطعمة/باب الخبز المرقق والأكل على الخوان والسفرة (رقم-۵۳۸۶) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء علام كان يأكل رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۷۸۸) وابن ماجه فی كتاب الأطعمة/باب الأكل على الخوان والسفرة (رقم-۳۲۹۲) واحمد فی المسند: ۱۳۰/۳

③ په عرف کښې دَ دې اطلاق په هر هغه څيز باندې کيږی کوم چه دَ زمکې نه اوچت وی او خپې ورته لګيدلې وی

دَ متکبرينو داعادت وو چه هغوی به دا مخامخ کيخودو اوخوراک به ئی کولو دې دَ پاره چه سرښکته نه کړی لکه څنګه چه دَ حديث شراحو بيان کړې دې راوی فرمائيلی دی چه رسول الله ﷺ دَ متکبرينو دا مکروه عادت اختيار نه کړو

**په خوان باندې دَ خوراک کيخودلو شرعی حکم:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه دَ رسول الله ﷺ په خوان باندې خوراک نه کول خوقصداً دی يا اتفاقًا که قصداً وی نو په خوان او ميز د باندې خوراک کيخودل او د خوړلو کراهت ثابتيږی اوکه اتفاقا وی نوبيابه هم کراهت وی څکه چه دادَ متکبرينوطريقه ده. بهرحال په دواړو صورتونوکښې کراهت شته

**په اوچت او ښکته څيزد خوراک کولونقصانات اوفائدې:** ① کله چه دې سر اوچت وی نو خوراک به زيات کولې شی په کوم سره چه دَ خيټې د غټيدلو انديښنه ده دَ دې په مقابله کښې لاندې ناسته باندې خوراک کولو کښې په اندازه دَ ضرورت به خوراک خوړلې شی په کوم سره چه په خيټه غټيږی نه. بلکه په داسې طريقه سره خوراک کولوسره مسکنت او تواضع هم پيدا کيږی.

② خوراک دَ الله تعالی يوعظيم نعمت دې دغه شان خوراک کولوکښې به دَ هغې طرف ته پوره خيال او توجه وی څکه چه په دې کښې دَ نعمت قدرهم دې کوم چه دَخيراوبرکت موجب دې

البته په دې زمانه کښې کله چه دَ لاندې ناستې او خوراک کولو انتظام نشی کيدلې نو ضرورةً او دَ سفرپه حالت کښې په کرسو ميزونو باندې دَ خوراک کولو اجازت ورکولې شی خوحتی الامکان احتراز ترينه بهتر دې.

**د لفظِ سکرجة ضبط:** سکرجه په ضمې دَ سين او د کاف او راء مشقلة ده د هغې نه پس جيم مفتوحه دغه شان ونيلې دې ددې په اعراب کښې نور اقوال هم شته

**دسکرجة په تعريف کښې اقوال:** ① دا يوداسې وړوکې لوښې يا پيالې په کوم کښې چه دَ ترکارئی وغيره استعمال وی.

② بعض حضرات فرمائی چې يوه وړوکې غوندې رکيبئی په کوم کښې چه جوارشات چټنی او نوردَ هاضمې څيزونه وغيره دَ خونداومزې دَ پاره استعمالولې شی

③ علامه داؤدی دَ دې معنی وړوکې پيالې په کوم چه روغن کړې شوې وی بيان کړې ده علامه ابن قرقول بيان کوی چه بعضې حضراتو دَ دې معنی کړې ده چه دَ لرګی داسې پياله کوم کښې چه خپې لګيدلې وی.

**د نبی عليه السلام په سکرجة کښې د خوراک نه کولووجوهات:** ① په هغه زمانه کښې دا نه وو يا

رسول الله ﷺ دَ دې لوښودَ وړوکوالی په وجه دې ته هلو اهمیت ورنکړو ځکه چه په هغه زمانه کښې به ټولو خلقو په یوځائ خوراک کولو او دَ غټو لوښوضرورت به پیښېدلو.
۲ په عامه توګه به په وړو پلیټونوکښې دَ خوراک هضم کونکی څیزونه استعمالولې شو. او صحابه کرامو حضراتو خوبه دومره خوراک کولو چه دَ هاضمې والا دَ څیزونو دَ استعمال ضرورت به نه وو.
۳ دَ وړوکو پلیټونو دَ استعمال ضرورت به هله وی کله چه دَ مختلف قسمونو خوراکونه وی اودَ صحابه کرامو دور خودَ تنګدستئ دور وو دَ خوراک دادومره څیزونه به چرته وو.
**قوله:** وَلَاخُبِزَلَهُ مُرَقَّقٌ:
**د مرقق مصداق:** دَ رسول الله ﷺ دَ پاره نرئ نرمه روټئ نه ده پخ کړې شوې قاضی عیاض رحمه الله وائی دَ مرقق نه مراد دَ میدې وغیره روټئ یا چپاتې دې.
**د مرقق نه د نه خوړولو وجوهات:** ۱ علامه ابن اثیر رحمه الله هم دا بیان کړی دی ځکه چه میده دَ غنمو وی او غنم په هغه زمانه کښې کم وو.
۲ دَ اوړو چهاڼولو دَ پاره چهاڼونه هم نه وو. په یو روایت کښې دی یو صحابی رضی الله عنه فرمائی چه مونږ به دَ اوربشو په اوړو کښې داسې پوکې وهلواوهم داسې به مو اغیږل مونږ سره چهاڼونه نه وو.
۳ علامه ابن التین رحمه الله فرمائی چه دې نه مراد پراټې یاکیک دې خو چونکه په دغه زمانه کښې دَ سره دومره وسعت نه وو بل دا چه دا به دَ مالدارانو په خوراکونوکښې استعمالیدل. بله دا چه داڅیزونه دَ إکثار طعام هم سبب دې په دې وجه رسول الله ﷺ دې نه پرهیز فرمائیلې دې.
**قوله:** قِيلَ لِقَتَادَةَ: عَلَامَ يَأْكُلُونَ؟:
**د قیل د قائل مصداق:** دَ ترمذی په روایت کښې د دې تپوس کولو قائل یونس ذکر شوې دې.
**د سائل د تپوس کولو وجه:** یعنی چه کله راوی دا بیان اوکړو چه رسول الله ﷺ به په میز وغیره باندې خوراک نه خوړلو. ښکاره خبره ده چه خوراک معظم څیزدې دا خوپه زمکه باندې نشی کیخودې نوبیابه ئی په څه څیز باندې کیخودلو اوخوړلو به ئی؟
**قوله:** قَالَ: عَلَى السُّفَرِ:
**د سُفر مصداق:** سُفر هغه خوراک کوم چه مسافر دَ خپل خان سره دَ لارې دَ پاره په یوځلور ګوټه څرمن وغیره کښې راغونډه کړی بیا دا دَ څرمنې دسترخوانودَ پاره استعمال کړې شوه دې نه پس به بیا مطلق دسترخوان دَ پاره استعمالیدلو که دَ څرمن به وو اوکه دَ بل څه څیز به وو.
**د سائل د سوال جواب:** دَهغوی خوراک به دَ عام څرمنې په دسترخوانونو باندې کیخودلې شو کوم چه عام خلق استعمالوی نه چه دَبادشاهانو اوامیرانو په شان په اوچت څیز باندې

**[۴۱۷۰]د نبی علیه السلام پراته روټۍ نه خوړل**

۴۱۷۰–[۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «مَا أَعْلَمُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى رَغِيفًا مُرَقَّقًا [۳] حَتَّى لَحِقَ بِاللّٰهِ، [۴] وَلَا رَأَى شَاةً سَمِيطًا بِعَيْنِهِ قَطُّ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [۲] چې ماته نه ده معلومه چې نبي کريم ﷺ چيرته نرمه روټۍ يعنی چپاتي ليدلي هم وی، [۳] تر دي چې د خپل رب سره يې ملاقات وکړو ايعني حضور ﷺ په خپل ټول عمر کې چيرته د چپاتي صورت ليدلي هم نه وو، چيری دهغې خوړل) [۴] اونه يې هيڅ کله وريته چيلۍ په خپلو سترګو ليدلې ده (بخاري)

**حل اللغات:** ① رَغِيفًا: نرمه روټۍ، ② مُرَقَّقًا: د اوړو روټۍ، ③ سَمِيطًا: وريته شوې، کباب شوې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا رَأَى شَاةً سَمِيطًا:

**د وريته شوې غوښې خوراک:** په هغه زمانه کښې دَ چين په خلقو کښې داسې رواج وو چه دَ چيلئی دَ څرمن نه به ئی وينښته اخواکړل اودَ څرمن سره به ئی چيلئی دَ ګرمو اوبو په برا س باندې کيخودله. دا چائنيز خوراکونه به چينيانوخلقو جوړول. دې نه پس عام عياش خلقو دا طريقې خپلې کړې نبی کريم خودا ليدلې هم نه وې

**[۴۱۷۱] نبی کريم ﷺ د ميدې تيار کړې شوی هيڅ شې نه دې خوړلی**

۴۱۷۱–[۱۳] (۲) [۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «مَا رَأَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- النَّقِيَّ مِنْ حِينِ ابْتَعَثَهُ اللّٰهُ [۳] حَتَّى قَبَضَهُ اللّٰهُ. [۴] وَقَالَ: مَا رَأَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُنْخُلًا مِنْ حِينَ ابْتَعَثَهُ اللّٰهُ [۵] حَتَّى قَبَضَهُ اللّٰهُ [۶] قِيلَ: كَيْفَ كُنْتُمْ تَأْكُلُونَ الشَّعِيرَ غَيْرَ مَنْخُولٍ؟، [۷] قَالَ كُنَّا نَطْحَنُهُ وَنَنْفُخُهُ [۸] فَيَطِيرُ مَا طَارَ، [۹] وَمَا بَقِيَ ثَرَّيْنَاهُ فَأَكَلْنَاهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه وايي [۲] چه الله تعالى جل جلاله چې رسول الله ﷺ د څه وخت نه رسول جوړ کړو، حضور ﷺ د هغه وخت نه ميده هيڅ کله ليدلي نه وه. [۳] تر دي چې الله تعالى جل جلاله يي روح قبض کړو، [يعنى حضور ﷺ په مرتبهٔ رسالت باندې د فائز کيدو د وخت نه د خپل ژوند تر آخري لمحي پورې د ميدې تيار کړي څه شي نه ده خوړلې] روټۍ هيڅ کله نه ده ليدلې، تر دی چی الله تعالى جل جلاله وفات کړوا [۴] اوفرمائی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم غلبيل (د اوړو چنړولولوښې) نه وو ليدلې د

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة /باب الخبز المرقق والأكل على الخوان والسفرة (رقم-۵۳۸۵) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة /باب الشواء (رقم-۳۳۰۹) واحمد فی المسند: ۱۲۸/۳

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة /باب ما كان النبی صلى الله عليه وسلم وأصحابه يأكلون(رقم-۵٤۱۳) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة /باب الحوارى (رقم-۳۳۳۵) واحمد فی المسند: ۳۳۲/۵

کوم وخت څخه چې الله تعالى هغوى پيغمبر جوړ کړې وو [۵] تر دې چې الله تعالى ﷻ يې روح قبض کړو، [۶] د حضرت سهل ﷺ نه پوښتنه وشوه چې بيا تاسو خلقو د وريشو د اوړو روټۍ د چڼلو بغير څرنګه خوړله؟ [۷] حضرت سهل اوويل چې مونږ به وريشې د ټکولو نه پس هغه پوکلې، [۸] هغې نه به څه څيز چې الوتونکې وو. [يعنې بوس] هغه به والوتل، [۹] او کوم څيز چې به باقې پاتې شو (يعنې وړه) هغه به مو په اوبو کې واغيړل (او بيا د هغې نه روټۍ پخولو سره) به مو خوړل. (بخاري)

**حل اللغات:** ① النَّقِيُّ: دَ سپينې ميدې اوړو ته نقى وائي دَهغې روټۍ مراد ده. ② قَبَضَهُ: چه وائې خستلو، وفات شو. ③ مُنْخُلًا: دَ اوړو چهانړ ته منخل وائى. په دې سره چهانړ کړې شوې اوړو ته منخل اومنخول وائى. ④ الشَّعِيرَ: اوربشې. ⑤ فَيَطِيرُ: نو وابه لوتل، ⑥ ثَرَّيْنَاهُ: هغه به مو واغګل.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَيْفَ كُنْتُمْ تَأْكُلُونَ الشَّعِيرَ غَيْرَ مَنْخُولٍ:

**د مذكوره تپوس وجه:** يعنى دَ اوربشو په اوړو کښې خو ډير بوڅرى وى هغه دَ ازغوپه شان وى دَچهانړ کولو نه بغيربه ئې څنګه خوړل؟ فرمائى پوکې به مو ورکولو چه کوم غټ بوڅرى به وو هغه به الوتل باقى به مو په اوبو کښې لمدول او پخول به مو اوخوړل به مو "ثرينا" لمدول

**[۴۱۷۳] خوراک ته د بدو ونيلو ممانعت**

۴۱۷۳- [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] "«مَا عَابَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَعَامًا قَطُّ، [۳] إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ [۴] وَإِنْ كَرِهَهُ تَرَكَهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به هيڅ کله يو طعام ته بد نه ويل، [۳] که حضور ﷺ ته به رغبت وو [يعني مينه به يي ورته کيدله] نو هغه به يي خوړلو، [۴] او که خوښ به يي نه وو، نو هغه به يي پريخودلو. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① عَابَ: عيب او بد ئې نه وو ونيلى، ② قَطُّ: هيچرې، هيڅکله هم،

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا عَابَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَعَامًا قَطُّ:

**دخوړک باره کښې د نبى عليه السلام عادت مبارک:** په حديث الباب کښې دَحبيب پاک عادت مبارک بيان کړې شوې دې چه په يومباح او حلال خوراک کښې به ئې عيب نه راوستلو

(۱) اخرجه البخارى فى كتاب الأطعمة/باب ما عاب النبى صلى الله عليه وسلم طعاما (رقم-۵۴۰۹) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب لا يعيب الطعام (رقم-۱۸۷ - (۲۰۶۴) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب فى كراهية ذم الطعام (رقم-۳۷۶۳) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ترك العيب للنعمة(رقم-۲۰۳۱) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب النهى أن يعاب الطعام (رقم-۳۲۵۹) واحمد فى المسند: ۴۲۷/۲

بلکه دَخواهش مطابق به ئې خوړلو ګني پرېخودلو به ئې خو خوراک ته به ئې خراب نه وېلي
**په خوراک کښې دعیب دوه قسمونه:** ① **دَ خلقت په اعتبار**: یوسړي د یو حلال خوراک کښې دَخلقت به اعتبار سره عیب لګوی نودا بالکل ناجائز دی خکه چه الله تعالی کوم څیزونه حلال پیدا کړی دی په هغې کښې عیب نشته بلکه سراسر فائده ده په دې وجه یوحلال څیز باندې خلقةً عیب لګول په الله تعالی باندې اعتراض کولو لره مستلزم دی کوم چه ناجائز دې
② **دَ صنعت یعنی د جوړولو په اعتبار**: که دَ صنعت یعنی جوړولو یا دَ هغې په پخولو کښې عیب بیان کړې شی مثلاً چه داسې اووائی مالګه په کښې زیاته شوې ده مرچکې زیات شوې دي یا روټئی کچه ده نودَ دې ګنجائش شته
**تحقیقی خبره:** خو حافظ رحمه الله فرمائی چه دَ روایت نه دَعیب لګولو ممانعت عام معلومیږی نه په اعتبار دَ خلقت عیب لګول صحیح دی اونه په اعتبار دَ صنعت خکه چه په دې صورت کښې دَ جوړونکی او پخونکی زړه ماتیدل لازمیږی او ښکاره خبره ده چه دا هم جائز نه دی
**د علامه نووی رحمه الله رائې:** علامه نووی رحمه الله فرمائی دَ طعام په آداب مؤکده کښې دا هم دی چه په حلال خوراک باندې دَ هیڅ قسم عیب نه دی لګول پکار مثلاً چه مالګه زیاته ده یا کمه ده البته که دَ پخونکی تنبیه یا د هغه اصلاح او تربیت مقصود وی نو بیا بدی نشته بلکه دیانةً ضروری دی. خاص کر په هغه خوراکونو کښې چه دَ ډیرو خلقو دَ پاره پخولې شی چه داسې خبره اوکړی چه په کومې سره چه زړه هم مات نشی بهرحال د روایت عموم مستفاد کیږی په دې وجه بهترهم دغه دی چه په خوراک کښې هیڅ قسم عیب اونه لګولې شی

**[۴۱۷۳] مؤمن په یوې کولمې سره او کافر په اوو کولمو سره خوري**

۴۱۷۳—[۱۵] ( )[۱][۲] «أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْكُلُ أَكْلًا كَثِيرًا، [۳] فَأَسْلَمَ، فَكَانَ يَأْكُلُ قَلِيلًا، [۴] فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۵] " إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ، [۶] وَالْكَافِرَ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی [۲] چې یو سړي وو چې مخکې به یې ډیر زیات طعام خوړلو. [۳] خو کله چې مسلمان شو، نو کم خوړل یې شروع کړل. [۴] د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مخکې د هغه ذکر وشو، نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۵] حقیقت دا دي چې مؤمن په یوه کولمه سره خوراک کوی. [۶] او کافر یې په اوو کولمو سره خوري (بخاري)
**حل اللغات:** ① أَكْلًا: خوراک، ② مِعًى: د دې جمع أمْعَاء راځی، کلمې ته وائی

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب: المؤمن یأکل فی معی واحد فیه أبو هریرة، عن النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۵۳۹۶) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة/باب المؤمن یأکل فی معی واحد، والکافر یأکل فی سبعة أمعاء (رقم-۳۲۵۶)

۳۱٤۷-( )۳۱٤٥-( ) [۱] وَرَوَى مُسْلِمٌ عَنْ أَبِي مُوسَى، وَابْنِ عُمَرَ [۲] الْمُسْنَدَ مِنْهُ فَقَطْ.

**ترجمه:** [۱] او مسلم دا روايت د حضرت ابوموسي رضی الله عنه او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل كړي دي. اچې په هغې كې داواقعه مذكورنه ده [۲] بلكي محض د حضور ﷺ ارشادمذكوردي.

۳۱٤۷-( ) [۱] وَفِي أُخْرَى لَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ضَافَهُ ضَيْفٌ وَهُوَ كَافِرٌ، [۳] فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ، [٤] فَشَرِبَ حِلَابَهَا، [٥] ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ، [٦] ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ [۷] حَتَّى شَرِبَ حِلَابَ سَبْعِ شِيَاهٍ، [۸] ثُمَّ إِنَّهُ أَصْبَحَ فَأَسْلَمَ، [۹] فَأَمَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ، [۱۰] فَشَرِبَ حِلَابَهَا،

**ترجمه:** [۱] ليكن مسلم رحمه الله د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه يو بل روايت نقل كړي دي. [په هغې كې داسې دي] [۲] چې [يوه ورځ] رسول الله ﷺ ته يو ميلمه راغې ، چې كافر وو، [۳] رسول الله ﷺ د هغه د پاره د يوې بزې (چيلۍ) د لوشلو حكم وكړو. بزه (چيلۍ) ولوشل شوه، [٤] هغه كافر هغه شو ده اوڅكل، [٥] بيا د حضور ﷺ په حكم سره دويمه بزه (چيلۍ) ولوشل شوه، هغه شوده يې هم اوڅكل، [٦] بيا د حضور ﷺ په حكم سره دريمه بزه (چيلۍ) ولوشل شوه [۷] تردې چې اووه بزې (چيلۍ) ولوشل شوې هغه يې هم اوڅكل [۸] بيا چې سحر شو. نو هغه مسلمان شو، [۹] رسول الله ﷺ هغه وخت هم د هغه د پاره د يوې بزې (چيلۍ) د لوشلو حكم وكړو بزه (چيلۍ) ولوشل شوه، [۱۰] هغه شوده اوڅكل

[۱] ثُمَّ أَمَرَ بِأُخْرَى، [۲] فَلَمْ يَسْتَتِمَّهَا، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: الْمُؤْمِنُ يَشْرَبُ فِي مِعًى وَاحِدٍ [٤] وَالْكَافِرُ يَشْرَبُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ".

**ترجمه:** [۱] بيا حضور ﷺ د دويمې بزې (چيلۍ) د لوشلو حكم وكړو [بزه (چيلۍ) ولوشل شوه] [۲] هغه اوس د هغې پوره شوده ونه څكلې شو، [۳] نو رسول الله ﷺ وفرمايل مؤمن يې په يوه كولمه كې څكي [٤] او كافر يې اووه كولمو كې

**حل اللغات:** ① ضَيْفٌ: ميلمه. ② فَحُلِبَتْ: نو اولوشلې شوه. ③ فَلَمْ يَسْتَتِمَّهَا: نو پوره نې اونه څكلې شو

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ:

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۱۸٤ - (۲۰٦۱) والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۱۸۱۸)

[۲] اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۱۸٥ (۲۰٦۲)وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۳۲٥۸)

[۳] اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۱۸٦ (۲۰٦۳)والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المؤمن يأكل فى معى واحد. والكافر يأكل فى سبعة أمعاء (رقم-۱۸۱۹)

**دَ لفظ معنیٰ تحقیق:** حافظ فرمائي چه دا په کسرې دَ میم سره مقصوراً دې او هم دغه معنٰ مشهوردې دې کښې نول لغات هم شته د اختصار په هغه پریږدو

**د حدیث په مفهوم کښې لس اقوال:** حافظ ابن حجر فرمائي چه دا روایت بالاتفاق په خپل ظاهر معنی نه دې حمل خکه چه ډیر کافران دَ مسلمانانو په مقابله کښې دَ کوم خوراک څښاک کونکي دی علامه زرقاني فرمائي علماؤ دَ دې روایت دَ لسو نه زیات توجیهات بیان کړي دی

① داحدیث دَغالب احوالو په اعتبارسره دې اودَ شمیر تعین مقصود نه دې بلکه مراد دَ مؤمن کم خوراک کول اودکافر زیات خوراک کول بیانول دی کما قال تعالی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَتَمَتَّعُوْنَ وَيَأْكُلُوْنَ كَمَا تَأْكُلُ الْاَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ﴾ او په روایت کښې دَ اووه عدد صرف دَ تکثیر دَ پاره دې کما فی قوله تعالی ﴿وَالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾

حاصل دا چه دَ مومن شان په خوراک څښاک کښې کمې اختیارول پکاردي خکه چه هغه په عبادت کښې ډیر مشغول وي اودَهغه خوراک کول هم صرف دَ اولګې بندولو اودَ عبادت دَ پاره د امداد حاصلولو دَ پاره وي بل دَ ده دا ویره وي چه که زیات اوخوري نو حساب به زیات ورکول وي په خلاف دَ کافر چه هغه زیات خوراک کوي خکه چه دَ هغه مقصد جدا دې علامه قرطبي وائي چه دا قول ارجح الاقوال دې

② علامه نووي رحمه الله فرمائي چه دَ روایت مطلب دادې چه کافر خودَ خواهش نفساني په وجه خوراک کوي اوترکومې چه اووه واړه کولمې ډکې شوي نه وي نو خوراک کوي دَ دې په خلاف مومن په اندازه دَ ضرورت خوري چه صرف دَ یوې کولمې په ډکیدو باندې مړیږي

③ مومن دَ الله تعالی نوم اخلي اوخوراک څښاک کوي نو شیطان هغه سره نه شریکیږي نودَهغه دَ پاره هم لږ خوراک کافي شي اوکافردَ الله تعالی نوم نه اخلي نو شیطان هغه سره په خوراک کښې شریک شي بیا په دې کښې برکت هم نه وي زیات خوراک کوي چنانچه په روایاتوکښې وارد شوي دي أن الشيطان يستحل الطعام إن لم يذكر اسم الله تعالى عليه أخرجه مسلم نور هم روایات دي کوم چه په دې مضمون باندې دلالت کوي

④ په روایت کښې دَ مسلم نه مراد کامل اسلام والا مسلمان دې خکه چه دَ چا ایمان اواسلام مکمل وي نوهغه به یقیناً مرګ ا ودَ مرګ نه پس حالاتو طرف ته مائل وي چه سخته ویره او ډیر فکر او خپل نفس دَ شهواتو نه رامنع کولو کښې لګیا وي نو لامحاله دَ ده په خوراک کښې به کمې وي

كما ورد في الحديث عن أبي أمامة رضي الله عنه مرفوعًا من كثر تفكره قل طعامه ومن قل تفكره وكثر طعامه وقسا قلبه يعني چه کوم سړي زيات فکرمندوی دَ هغه خوراک به کم وی اوڅوک کم فکرمندوی دَهغه خوراک به زيات وی اودَهغه زړه به سخت وی دَ ابوسعيد الخدری رضي الله عنه نه هم روايت دې إن هذه المال حلوة حضرة فمن أخذه بإشراف نفس كان كالذي يأكل ولا يشبع

⑤ دَ روايت معنی دا ده چه مسلمان صرف حلال خوراک کوی اوکافرحرام خوری اوښکاره خبره ده چه حلال په نسبت دَ حرام کم وی نقله ابن التين

⑥ به اصل کښې په روايت کښې مؤمن ته دَ کم خوراک کولو ترغيب ورکول دی خکه چه کله مومن ته دامعلومه وی چه کافر زيات خوراک کوی نوښکاره خبره ده چه هغه به دَ کافردَ دې خراب صفت نه پرهيزکوی.

⑦ علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه دَ طعام شهوات اووه دی شهوت طبع، شهوت نفس. شهوتِ عين، شهوت فم، شهوت اذن، شهوت انف او شهوت جوع (١) داآخری شهوت جوع ضروری دې. مؤمن هم دَ دې خواهش په وجه خوراک کوی په خلاف دَ کافرسړی چه دَ اووه واړو شهوتونو او خواهشونو په وجه خوراک کوی.

⑧ حافظ ابن عربی فرمائی چه اووه کولمې کنايه ده حواس خمس او د شهوت او د حاجت نه مطلب دا دې چه کافر حواس خمس شهوت او حاجات ټول اووه واړه په خيال کښې ساتی نو خوری په خلاف دَ مومن چه هغه صرف يو حاجت ملحوظ ساتلو سره خوراك كوی

⑨ په اصل کښې دا حديث دَ مخصوص کسانو باره کښې فرمائيلې شوې دې لکه چه په راتلونکی روايت کښې صراحةً مذکور دی نو په الکافر باندې الف لام دغه شان په المؤمن باندې عهدی دې نه چه جنسی به جزم ابن عبدالبر.

---

(١) اختلفوا في حدالجوع على رائين ذكر هما فى الاحياء احدهما ان يشتهى الخبز وحده نمتى طلب الادم فليس بجائع ثانيهما انه اذا وقع ريقه على الارض لم يقع عليه الذباب وكذر ايضا مراتاب الجوع نحوعلى سبعة الاول مايقوم به الحياة الثاني ان يزيد حتى يصلى قائما ويصوم وهذا ان واجبان الثالث ان يزيدحتى يقوى على اداء النفل الرابع ان يزيدحتى يقدرعلى الكسب وهذا ان مستحبان الخامس ان يملاء الثلث وهذا جائز. السادس ان يزيدبه يثل البدن ويكثر النوم وهذا مكروه السابع ان يزيدحتى يتضرر وهذا احرام ١٢ اوجز.

قال ابن التين ان الناس في الاكل على ثلث طبقات. طائفة تاكل كل معظوم من حاجة وبغيرحاجة وهذا فعل اهل الجهول وطائفة تاكل عندالجوع بقدر مايسدالجوع حسب وطائفة يجوعون انفسهم يقصدون بذالک قمع شهوة الانفس واذاا كلوا كلواما سدالرمق ١٢ فتح.

قول ابونضرة في التحفه اماحديث ابی نصرة فلم اقف عليه اعلم ان قدوقع فى النسخ الحاضرة عن ابى نضرة بالنون والضاد المعجمه ولم اقف هوحميل بالحاء المهمله مثل حميدلكن فى آخره لام وقيل بفتح اوله وقيل بالجيم ابن بصرة بفتح الموحده ابن وقاص ابوبصرة الغفارى صحابى سكن مصرومات بها انتهى وقدروى عنه ما يتعلق بالباب ففى مسنداحمدعن ابى بصرة الغفارى قال اتيت النبى صلى الله عليه وسلم لما هاجرت وذالک قبل ان اسلم فحلب لى شويهة كان يحلبها لاهله فشربتها فلما اصبحت اسلمت. الحديث وفيه ان الكافر ياكل فى سبعة معاء. الخ ١٢.

⑩ حافظ ابن حجر عسقلاني يوبل قول هم نقل کړي دي چه دراصل په رواياتوکښي د مؤمن اوکافر د دواړو مثال بيانول مقصود دی چه دمؤمن حال په دنياکښي د زهد دي اود کافر حال دحرص دي يعنی مؤمن دنيا په اندازه د ضرورت اختياروی اود ده د دنياسره اود دنيا متاع سره په اندازه د ضرورت تعلق وی اود کافر دنيا اود دنيا د متاع حرص وی چه د دې طرف ته هروخت مائل وی نو ظاهر دا دی چه دا قول مستقل نه دې بلکه هم د اول قول خلاصه ده دغه شان نور اقوال هم متقارب المعنی دی چه د بعضو تداخل په بعضوکښي کيدې شی والله أعلم وعلمه أتم وأكمل

**[۴۱۷۷] د لږ خوراک د زياتو کسانو دپاره کفايت**

۴۱۷۷–[۱۶] (۱)۱ وَعَنْهُ قَالَ، قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«طَعَامُ الِاثْنَيْنِ كَافِي الثَّلَاثَةِ، ۳ وَطَعَامُ الثَّلَاثَةِ كَافِي الْأَرْبَعَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ۲ چې د دوو کسانو خوراك دريوته کافي کيږی ۳ اود دريو خوراك څلوروته کافي کيږی (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حديث د مضمون وضاحت په راروان حديث نمبر(۲۱۷۸) کښې اوګورئ.

**[۴۱۷۸] د ضرورت په وخت د يو کس خوراك د دوو دپاره کافی کيدل**

۴۱۷۸–[۱۷] (۲)۱ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ «طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ، ۳ وَطَعَامُ الِاثْنَيْنِ يَكْفِي الْأَرْبَعَةَ، ۵ وَطَعَامُ الْأَرْبَعَةِ يَكْفِي الثَّمَانِيَةَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت جابر رضي الله عنه وايي ۲ چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي ۳ چې د يو سړي خوراك دوو لره کافي کيږی. ۴ او د دوو خوراك څلورو لره کافي کيږی. ۵ او د څلورو خوراك اتو کسانو لره کافي کيږی (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ:

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب: طعام الواحد يكفی الاثنين (رقم-۵۳۹۲) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب فضيلة المواساة فی الطعام القليل. وأن طعام الاثنين يكفی الثلاثة ونحو ذلک (رقم-۱۷۸ - (۲۰۵۸) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی طعام الواحد يكفی الاثنين (رقم-۱۸۲۰)

[2]) اخرجه مسلم فی كتاب الأشربة/باب فضيلة المواساة فی الطعام القليل. وأن طعام الاثنين يكفی الثلاثة ونحو ذلک(رقم-۱۷۹ - (۲۰۵۹) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی طعام الواحد يكفی الاثنين (رقم-۱۸۲۰) وابن ماجه فی كتاب الأطعمة/باب طعام الواحد. يكفی الاثنين (رقم-۳۲۵۴) واحمد فی المسند:۳۰۱/۳

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې څلور اقوال:**

① په شرح السنه کښې اسحاق بن راهویه دَ جریر نه دَ روایت تاویل دا نقل کړې دې چه دَ یو سړی په مړ کیده خوراک دَ دووکسانودَ پاره کافی دې دغه شان دَ دوو کسانو خوراک دَ څلورو دَپاره او دَ څلورو خوراک دَ اتو دَپاره کافی کیږی

② عبدالله بن عمر رضی الله عنهما وائی چه دَ دې روایت تفسیر هغه دې کوم چه عمر فاروق رضی الله عنه فرمائیلې دې. چه زما اراده داده چه دَ هر کور والا په ذمه دومره کسان نور زیات کړم څومره چه په دې کور کښې دی ځکه چه سړې په خپل نیم خوراک کولو باندې هلاک کیدې نشی

③ علامه نووی رحمه الله فرمائی په دې روایت کښې هم دَ خوراک په سلسله کښې دَ یوبل سره دَ همدردئی ترغیب ورکولې شی. که خوراک هر څومره کم وی خوچه دَ همدردئی په نیت سره اوخوړلې شی نوکفایت مقصوده به حاصل شی اوپه دې خوراک کښې به داسې برکت نازل شی چه دَ ټولو حاضرینو دَ پاره به کافی شی.

④ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت هم په دې باندې دلالت کوی کوم طرف ته چه ترمذی اشاره کړې ده. دَ هغې الفاظ دادی کلوا جمیعا ولاتفرقوا فان طعام الواحد یکفی الاثنین (الحدیث) یعنی په یوځائ خورئی جدا جدا مه خورئی نولږ خوراک به دَ ډیرو کسانو د پاره د اجتماع په برکت کفایت اوکړی. معلومه شوه چه منشاء د کفایت برکت د اجتماع دې نوچه ګنړه څومره زیاته وی نوبرکتونه به هم دومره زیات وی

**دحدیث د ظاهری مطلب عدم صحت:** دَ حدیث مطلب دانه دې چه دَ دوو کسانو خوراک به دَ دریو کسانودَپاره په ډکه خیټه کافی شی بلکه مطلب دادې چه که د قناعت نه کار واخستې شی نوهغه خوراك دَ دریودَپاره په توګه دکفایت پوره کیږی اودَ څلورو خوراك دَ اتو دَپاره په توګه دکفایت کافی کیږی. لکه چه راتلونکی روایت کښې دَ دوچند خبره کړې شوې ده چه دَ څلورو خوراك دَ اتو دَپاره په توګه دکفایت او قناعت کافی کیږی په نیمه خیټه خوراك سره سړې نه مری او دویم پړې ژوندې پاتې کیږی په دې دواړو حدیثوکښې په یوځائی دَ خوراك کولو ترغیب ورکړې شوې دې

**[۴۱۷۹] د تلبینه فوائد**

۴۱۷۹—[۱۸] (١) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا"-قَالَتْ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [۳]"«التَّلْبِينَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيضِ، [۴] تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بی بی عائشه صدیقه رضی الله عنها وایی [۲] چې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۳] چې

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب التلبینة (رقم-۵۴۱۷) ومسلم فی کتاب السلام/باب التلبینة مجمة لفؤاد المریض (رقم-۹۰ - (۲۲۱۶) واحمد فی المسند:۸۰/۶

تلبينه دبيمار زړه ته تسكين او قوت وركوي.[۴] او بعضې غمونه لرې كوي (بخاري مسلم)

**حل اللغات** : ① التَّلْبِينَةُ : د اوړو او پيو حلوه. ② مُجِمَّةٌ : أي مريحة مفرحة" خوشحالي وركونكې اوراحت وركونكې. ③ الْحَزَنِ : غم

**تسهيلات:**

**قوله**: التَّلْبِينَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيضِ:

**د تلبينه پيژندګلو**: داد هغه حريرې نوم دې چه د اوړو اوپيئونه جوړولې شي چونكه د پيئو مقدار په كښې زيات وي په دې وجه دې ته تلبينه اووئيلې شو دكوم ماده چه لبن دې په دې كښې شات وغيره خواړه هم يوځائي كولې شي نرم وي څكلې شي د پيئومينځې كومې چه په اخترونوكښې وي داهم دغه شان وي او شيرخرمه هم د دې مصداق دې

**د مجمة وضاحت**: د مجمة معنى ده خوشحالي وركونكې اوراحت وركونكې په كوم سره چه زړه خوشحاله شي او مضبوط شي هم د دې بيان په وړاندې جمله كښې راغلې دې لكه چه هغه د دې د پاره بيان دې

**[۴۱۸۰] د نبي عليه السلام كدو لره خوښول**

۴۱۸۰—[۱۹] (¹)[۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "[۲] «أَنَّ خَيَّاطًا دَعَا النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِطَعَامٍ صَنَعَهُ[۳] فَذَهَبْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۴] فَقَرَّبَ خُبْزَ شَعِيرٍ وَمَرَقًا[۵] فِيهِ دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ[۶] (قَالَ أَنَسٌ - رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ -): فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۷] يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ[۸] فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ يَوْمِئِذٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] اوحضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چې يوه ورځ يو درزي په خپل تيار كړي طعام نبي كريم ﷺ ته دعوت وركړو[۳] د نبي كريم ﷺ سره زه هم ورغلم.[۴] هغه د وربشو روټئ او ښوروا راوړلو سره (په دستر خوان) كيخودل.[۵] چې په هغې كې كدو او وچه (غوښه) وه.[۶] [انس رضي الله عنه وائي چې] ما وليدل چې حضور ﷺ [۷] د كاسې د غاړو كښې كدو لټولو سره خوړلو.[۸] په دې وجه د هغې ورځې نه پس زه هم كدو ډير خوښوم، اځكه چې هغه د حضور ﷺ ډير خوښ وو! (بخاري مسلم)

**حل اللغات** : ① خَيَّاطًا : درزي. ② خُبْزَ : روټئ. ③ شَعِيرٍ : اوربشې. ④ مَرَقًا : خوروا. ⑤ دُبَّاءٌ : كدو. ⑥ قَدِيدٌ : اوچه غوښه. ⑦ يَتَتَبَّعُ : لټولو او تلاش كولو به ئې. ⑧ حَوَالَيِ : غاړې. ⑨ الْقَصْعَةِ : كاسه.

¹) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة/باب من تتبع حوالي القصعة مع صاحبه. إذا لم يعرف منه كراهية (رقم-۵۳۷۹) ومسلم في كتاب الأشربة/باب جواز أكل المرق. واستحباب أكل اليقطين. وإيثار أهل المائدة بعضهم بعضا وإن كانوا ضيفانا إذا لم يكره ذلك صاحب الطعام (رقم-۱۴۴ - (۲۰۴۱) وابوداود في كتاب الأطعمة/باب في أكل الدباء (رقم-۳۷۸۲) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في أكل الدباء (رقم-۱۸۵۰)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ:

**اشكال:** دَ دې روايت نه معلومه شوه چه دَ نبی علیه السلام په پیالې کښې لاس وهل دَ کدو دَ ټکړو دَ لټون دَ پاره وو په دې باندې اشکال دادې چه رسول الله ﷺ خوصحابی ته فرمائیلی وو کل ممایلیك چه دَ خپلې مخې نه خوره نوبيا رسول الله ﷺ پخپله په پیاله کښې ولې لاس تاؤکړو؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دَ رسول الله ﷺ په پیالې کښې دَلاس تاوولونه مراد دادې چه حبیب پاک هم خپلې مخې ته دَ کدو دکرې لټولې

② هغوی دَ پیالې په ټولو طرفونو کښې دکدو ټکرې لټولې اوپاتې شو دَ ممانعت والا روایت نو دَ هغې محمل دې وخت کښې دادې چه کله دَ نورو خلقو کرکه وی اوبنکاره خبره ده چه دَ حضورپاک نه به دَ چاکرکه کیدې شی که یا داسې اوونیلې شی چه نهې هله ده کوم وخت کښې چه خوراک په شریکه وی اودلته به حضورپاک سره څوک شریک نه وی.

**[۴۱۸] په چړې سره د غوښې کټ کول**

۴۱۸—[۲۰] ()① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -② «أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -③ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِي يَدِهِ،④ فَدُعِيَ إِلَى الصَّلَاةِ⑤ فَأَلْقَاهَا وَالسِّكِّينَ الَّتِي يَحْتَزُّ بِهَا،⑥ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى،⑦ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عمرو بن اميه ﷺ نه روايت دې ② چې هغه نبي كريم ﷺ وليدلو. ③ چې حضور ﷺ د بزي (چيلۍ) ورون چې د حضور ﷺ په لاس كې وو، په چاړې سره يې كټ كولو. ④ بيا په دې دوران كې حضور ﷺ د مانځه د پاره وبلل شو. ⑤ نو حضور ﷺ ورون او هغه چاړه چې په هغې سره يې ورون پريكولو، هلته پريخودل ⑥ او پاڅيدو او مونځ يې وكړو ⑦ حضور ﷺ هغه وخت اودس ونه كړو. [څكه چې حضور ﷺ اودس كړي وو] (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① يَحْتَزُّ: پريكول نې ② السِّكِّينَ چاړه

**تسهيلات:**

**قوله:** يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِي يَدِهِ:

**په چاړې سره د غوښې كټ كول او خوړل:** دَ روايت نه معلومه شوه چه غوښه په چاړه ئ سره پرې

---

() اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة/باب إذا حضر العشاء فلا يعجل عن عشائه (رقم-۵۴۶۲) ومسلم فی کتاب الحيض/باب نسخ الوضوء مما مست النار(رقم-۹۳ - (۳۵۵) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء عن النبی صلی الله عليه وسلم من الرخصة فی قطع اللحم بالسكين (رقم-۱۸۳۶) واحمد فی المسند:۲۸۸/۵

كولې او خوړلې شي علامه ابن حزم وائي غوښه او روټئ په چاړه سره پرې كول اوخوړل جائز دی په دې كښې ﺩ هيڅ قسم ممانعت نشته ځكه چه ﺩ ممانعت متعلق هيڅ يوصريح نص وارد شوې نه دې

**دوؤ رواياتونو سره د تعارض اشكال:** ① د ابن عباس رضي الله عنهما او ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دې (انه قال عليه السلام لاتقطعوا الخبز بالسكين كما تقطعه الأعاجم واذا أراد ان يأكل أحدكم اللحم فلا يقطعه بالسكين ولكن ليأخذ بيده فلينهسه بفيه فإن أهنأ وأمرأ) كذا في الطبراني)

② د عائشه څخه روايت دې قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتقطعوا اللحم بالسكين فانه من صنيع الأعاجم فانهسوه فإنه أهنأ وأمرأ د دې رواياتو نه صراحةً روټئ او غوښه په چاړه پرې كولو سره خوړلو نه ممانعت راغلې دې؟ (ابوداؤد)

**د اشكال درې جوابونه:** ① اول ﺩ طبراني په روايت كښې ابومعشر راوی باره كښې امام نسائي فرمائيلی دی چه هغه منكرروايات نقل كوی ابن عدی وائی ﺩ ابومعشر هيڅ څوك متابع نشته

② په رواياتو كښې ممانعت په هغه كس باندې محمول دې چه په چاړه سره ﺩ پرې كولو اوخوړلو عادت جوړكړی. البته كه غوښه ښه نه وی پخه شوې او اتفاقاً ئې په چاړه پرې كوی او خوری ئ‍ونو ده ﺩ پاره اجازت دې

③ ﺩ ممانعت والا روايات په عدم فرصت باندې محمول دی يعنی كه وخت نه وی او تندی وی نو بيا دې په غاښونو باندې راشوكولو سره زر زر اوخوری چه فارغ شی اوكه وخت وی نو په تسلئ سره دې په چاړه سره پرې كړی او خوری دې. فلاتعارض

**قوله: ثم مضىٰ الى الصلوة ولم يتوضأ:**

**د مماست النار په خوړلو سره د اودس عدم نقض:** بيا حضورپاك بغير د اودس كولو ﺩ مانځه ﺩ پاره تشريف يوړلو دا يوه مستقله مسئله ده چه مامسته النار سره به اودس كولې شی كه نه جمهور په اتفاق سره ﺩ عدم توضی قائل دی سره ﺩ دې چه په سلفو كښې ﺩ دې باره كښې اختلاف دې مگر آخرالامرين ترك وضو ممامسته النار دې

**[۴۱۸۳] د نبی عليه السلام خوږ څيز لره خوښول**

۴۱۸۳–[۲۱] (١)وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: (٢)«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة باب الحلواء والعسل (رقم ٥٤٣١) ومسلم في كتاب الطلاق باب وجوب الكفارة على من حرم امرأته. ولم ينو الطلاق (رقم ٢١ - (١٤٧٤)) وابوداود في كتاب الأشربة باب في شراب العسل (رقم ٣٧١٥) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في حب النبي صلى الله عليه وسلم الحلواء والعسل (رقم ١٨٣١) وابن ماجه في كتاب الأطعمة باب الحلواء (رقم ٣٣٢٣) واحمد في المسند: ٥٩/٦

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها وايي [۲] چې حضور ﷺ به خوږ شي او شات ډير خوښول (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ:

**د حلوا د خوښولو مطلب:** علامه خطابی فرمائی دَ رسول الله ﷺ دَحلوا خوښول دَ كثرت خواهش په وجه باندې نه ووچه الله تعالى دې نه كړى ګنى دَ رسول الله ﷺ دَ زياتې حلوا خوړلو شوق اوخواهش وو اوهغوى دا پخوله اوخوړله ئ بلكه مطلب دادې چه كله به دَ هغوى مخې ته حلوا پيش كولې شوه نو حضورپاک به دا خوښوله او په ښه شان سره به ئى خوړله

**دَحلواء په مصداق كښې درې اقوال:** ① علامه نووى رحمه الله وائى دلته دَ حلوا نه هرخوږ څيز دې اودَ شاتو تذكره شرافةً اوكرامةً ده لكه دا ذكر الخاص بعد العام دَ قبيلې نه دې

② حافظ فرمائى چه په كتاب ثعالبى كښې دى چه رسول الله ﷺ چه به كومه حلوا خوښوله هغه به مجيع على وزن عظيم وه چه كهجورې به نرې نرې پرې كړې شوې او په پئيوكښې به ئى واچولى شى او جوړولى به ئى.

③ بعض فرمائى دَ دې نه مراد فالوده ده.بعضې خلقود حلوا نور تعريفونه هم كړى دى خو هغه صحيح نه دى.

**قوله:** يُحِبُّ.... الْعَسَلَ:

**په شاتو كښې شفاء:** العسل په د معنى شاتو. په قرآن كريم كښې هم دَ شاتو تعريف شوې دې اوفرمائيلې شو ﴿فِيهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ شات كه يوطرف ته طاقتور خوراک دې اودَ خوند ذريعه ده نوبل طرف ته دَ بيمارو دَ پاره دَ شفاء نسخه هم ده. څكه چه الله تعالى په جړو بوټوكښې دَ شفاء او د داء سامان كيخودې دې په نودَ دې جواهر او عرق كښې به كوم چه دَ شاتو مچنى راكاړى شفا به ولې نه وى. په بلغمى بيمارو كښې شات بلاواسطه شافى دى او په نورو بيماروكښې نورو څيزونو سره يوځائ كول اودَ دارو په توګه استعمالول ډير فائده مندى دى.

**دشاتوخصوصيات:** ① طبيبان په معجوناتو كښې په خاص توګه شات استعمالوى دَ دې يوخاصيت داهم دې چه پخپله خرابيږى هم نه او دَ نورو څيزونوتراوږدې مودې پورې حفاظت كوى هم دغه وجه ده چه طبيبان دَ زرګونوكالونونه دَ الكوهل په ځاى دَ شاتو استعمال كوى

② شات مسهل هم دى او دَ خيټې نه فاسد مادې ويستلو دَ پاره ډير مفيد دى په ترمذى كښې روايت دې چه كله يوصحابى دَ خپل رور دَ خيټې دَ بيمارئى ذكر اوكړو نو رسول الله

ﷺ د شاتو د استعمال مشوره ورکړه هغه بیا هم شکایت ورکړو نو رسول الله ﷺ بیا هم هغه مشوره ورکړه په دریمه ورځ چه هغه اوونیل چه هیڅ فرق رانغلو نورسول الله ﷺ اوفرمائیل صدق الله وکذب بطن اخیك دَ الله تعالی قول بې شکه رښتوني دي اوستا دَ رور خیټه دروغژنه ده مراد دادې چه دَ دوائی څه قصور نشته بلکه دَ مریض دَ خاص مزاج په وجه زر اثر ښکاره نه شو دې نه پس نی پرې بیا اوځکل نو بیمار جوړشو که یقین محکم او مضبوط وی نوبیا دَ هرمرض د پاره شات کافی دی تردې چه دَ پولو دانو او د سترګې او د بدن دَ نورو بیمارو علاج هم په شاتوسره اوکړې شی نو شفابه ملاؤ شی دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه متعلق په روایاتو کښې دی چه که دَهغه په بدن به چرته پولئی راوتله نو په هغې به نی هم شات لګول کله چه بعضې خلقو دَ هغه نه دَ دې دَ وجې تپوس اوکړو نو په جواب کښې نی اوفرمائیل ولې په قرآن پاک الله تعالی کښ دَدې متعلق ﴿فِيهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ نه دی فرمائیلی

## [۴۱۸۳] سرکه بانديد غوره ترکاری اطلاق

۴۱۸۳ - [۲۲] (١) ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَأَلَ أَهْلَهُ الْأُدُمَ، ③ فَقَالُوا: مَا عِنْدَنَا إِلَّا خَلٌّ، ④ فَدَعَا بِهِ، ⑤ فَجَعَلَ يَأْكُلُ بِهِ ⑥ وَيَقُولُ: نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ، ⑦ نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** ① او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دي ② چې یوه ورځ نبي کریم ﷺ خپل کور والو نه سالن وغوښتلو. ③ کور والؤ اوویل چې زمونږ سره سالن نشته البته سرکه شته ④ نو حضور ﷺ هغه سرکه وغوښتله، ⑤ او د هغې سره یې روټۍ خوړل شروع کړل. ⑥ او وې فرمایل چې سرکه بهترین سالن دي ⑦ سرکه بهترین سالن دي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْأُدُمَ: سالن. ② خَلٌّ: سرکه.

**تسهیلات:**

**قوله:** نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ:

**دَ لفظ ادام تحقیق:** علامه نووی رحمه الله فرمائی ادام بکسر الهمزه مایؤتدم به هغه څیز چه دَ سالن په توګه اَستعمال کړې شی وئیلی شی

**سرکې ته د نعم الإدام وئیلو مطلب:** علامه نووی وائی چه علامه خطابی او قاضی عیاض دواړو دَ روایت معنی دا بیان کړې ده چه رسول الله ﷺ په ماکولاتو کښې دَ اختصار تعریف

[1] ( اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة /باب فضیلة الخل والتأدم به (رقم-۱۶۶ - (۲۰۵۲) وابوداود فی کتاب الأطعمة /باب فی الخل (رقم-۳۸۲۰) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی الخل (رقم ۱۸۳۹) واحمد فی المسند: ۴۰۰/۳

فرمائیلي دي اود خوندورو خوراکونو طرف ته د نفس مائل کیدلو نه ئ ممانعت فرمائیلي دي اومطلب دادي چه سرکه اود دې په شان معمولي څیزونوسره روټئي خوړئي د شهواتو او لذاتذو طرف ته مائل کیږئي مه خکه چه شهوات د دین د پاره د فساد ذریعه اود بدن د پاره د بیمارو یوه لار ده چونکه ښکاره خبره ده چه خوندور خوراک به ډیر خوړلې شي په کوم سره به چه په اعمالوکښې سستي وی کوم چه د دین د تباهئي ذریعه ده اوبیا زیات خوراک کولوسره بیماری پیداکیږی کوم چه د بدن د خرابوالي ذریعه ده

لکه څنګه چه علامه نووی فرمائی چه په روایت کښې د سرکې تعریف دې فقط پټې شو په خوراکونو کښې اختصار او د شهواتو پریخودل نودا د نورو روایتونونه هم معلومه شوې ده

**امت ته د زهد تعلیم:** حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائی په روایت کښې امت ته د زهد تعلیم ورکړې شوې دې چه په مباحاتو کښې هم ډیر ځان مه راګیروئی سرکه چه عرفًا او شرعًا سالن نه دې خوبیا هم د روټئی سره د خوړلو د پاره کافی ده اوداهم داسې دی لکه چه رسول الله ﷺ په یوه موقع باندې اوفرمائیل د غنمو روټئی د خپل سالن سره ده یعنی د غنمو روټئی د پاره د سالن ضرورت نشته لکه چه د اُوربشو وغیره د روټئی د پاره د سالن ضرورت وی

**په یمین کښې په سرکه باندې د ادام د اطلاق حکم:** کله چه د روایت مطلب د زهد تعلیم ورکول دی اود سرکې سالن ثابتول مقصود نه دی نو د دې روایت نه په سرکه باندې شرعاً د سالن کیدو استدلال نشی کولې په خاص توګه باندې په باب الأیمان کښې خکه چه د أیمان مبنی په عرف اولغت باندې دې اود رسول الله ﷺ مقصد عرف اولغت بیانول نه د ی بلکه شرعی احکام بیانول مقصود دی.

**[۴۲۴۳] د خرېړې فضیلت او خاصیت**

۴۲۴۳ - [۲۳] (¹) [۱] وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ [۳] وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۴] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: " «مِنَ الْمَنِّ الَّذِي أَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى مُوسَى - عَلَيْهِ السَّلَامُ» - ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعید ابن زید وایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] خرېړي د مَن [یو قسم بوټئ چه د وازګئ په شان وی او اکثر په باران کښې پخپله پیدا کیږی، په عربی کی حشم الارض [د زمکې وازګه] هم ورته وایې] یو قسم دې.[۳] او د دې اوبه د سترګو د پاره شفاء ده.(بخاري مسلم) [۴] او د مسلم رحمه الله په یو روایت کې دي چې خرېړي د هغه مَن نه

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب: المن شفاء للعین (رقم-۵۷۰۸) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب فضل الکمأة ومداواة العین بها (رقم-۱۵۷ - (۲۰۴۹) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلى الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکمأة والعجوة (رقم-۲۰۶۷) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب الکمأة والعجوة (رقم-۳۴۵۳) واحمد فی المسند: ۲۰۳/۱

دي كوم چې الله تعالى په حضرت موسى علیه السلام نازل كړې وو

**حل اللغات:** ① الْكَمْأَةُ ددې جمع اَكْمُؤٌ ده خريړى، كهمبى. ② اَلْمَنّ: مرزان.

**تسهيلات:**

**قوله** الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ:

**د"الكماة "لغوى وضاحت:** په زمكه اوغركښې سخاشوى لرگى اودبعضو ونوجرړو سره دا بوټې پيدا كيږى دَدې ډير قسمونه دى زمونږ خائى كښې دوه مشهور دى دې ته په اردو كښې كهمبى او زمونږ ژبه كښې خريړى وائى داد پشكال په موسم كښې وى نبى كريم ارشاد اوفرمائيلو چه دا دَ سترگودپاره شفاء ده دې ته شحم الأرض هم وائى خكه چه دا دَ وازگې په شان يودَ زمكې بوټې دې پينو يا اوبوكښې پخولې شى دا دَ ښې غوښې په شان مزيدار وى

**په خريړى باندې د "من" د اطلاق وجوهات:** ① دا دَ الله تعالى داسې نعمت دې چه هغه په بنيادمو باندې نازل كړې دې چه بغيردَ مشقت اوتكليف نه حاصليږى لكه څنگه چه بنى اسرائيلو ته من بغيردَ مشقت نه حاصليدل. قاله ابوعبيد وجماعة

② خريړى په اصل كښې دَ دغه من نه دى كوم چه په بنى اسرائيلوباندې نازل شوې وو چه په بناخونو باندې به لكه دَ پرخې په شكل كښې راپريوتل كوم چه به جمع كولې شو او خوړلې به شو دلته هم دغه مقصود دې لكه څنگه چه به بنى اسرائيلو ته بغيردَ مشقت نه من حاصليدل دغه شان كمأة هم دَ من دَ قبيل نه دى چه دَ البغدادى دَ حاصليدلو دَ پاره مشقت نشى كولې

③ عبداللطيف البغدادى اودَ هغوى تابعدارانو فرمائيلى دى چه په اصل كښې كوم من په بنى اسرائيلو باندې نازل كړې شوې وو دَ هغې مختلف صورتونه ووبعض دَ پرخې په شكل بعض دَ سبزيانو په شكل كښې بعض دَ ښكار په شكل كښې دغه شان خريړى هم دى كوم چه دَ معهود من نه يوقسم دې كوم چه دَ من په صورت كښې په دوى نازل كړې شوې وو

**قوله:** وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ

**د خريړى اوبوته د سترگوشفا وئيلوكښې اقوال:** علامه ابن قيم رحمه الله فرمائى چه دَ دې باره كښې مختلف اقوال دى

① دَ خريړى اوبه نورو دوايانوسره ملاول دَسترگودَ مرضونودَپاره شافى دى. ذكره ابوعبيده

② يادَ دې معنى داده چه دَ خريړى اوبه په اُور پخې كړى په سترگوكښې واچولې شى نو دَ سترگو دَ پاره فائده مند دى. دَ اُور په ذريعه دَ دې فضلات او نقصانى ماده او ټول موذى رطوبات ختميږى او دَ پخيدونه پس به نفع وركونكې شى.

③ دَ بعض حضراتو رائې داده دَ دې د اوبونه مراد دَ باران هغه اولنۍ څاڅکي دي کوم چه په دې باندې رابريوخى نو اوس اضافت. اضافت اقتران به وى نه چه اضافت الى الجزء
④ ملاعلى قارى رحمه الله فرمائي شرح مسلم للنووى كښې دى چه دې نه مراد يا خودَ خرېرى خالص اوبه دى يا پورتنى مركب بالادويه بعض فرمائي كه په سترګوكښې ګرمى وى نو صرف اوبه مفيد او شافى دى اوكه په بله وجه په سترګوكښې تكليف وى نو نورو دوايانو سره ملاوول مفيد دى
**فائده:**
**په سترګوکښې د خرېرى اوبو اچولوسره متضاد نتائج راوتل:** ① ابراهيم حربى رحمه الله دَ صالح رحمه الله او احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل كړى دى چه هغوى خرېرى نچوړ كړل او دَرد منو سترګو باندې اولګولې نو په سترګوکښې ئې تكليف زيات شو
② ابن عبدالباقى نه نقل كړى دى چه بعض خلقو دَ خرېرى اوبه په سترګوكښې دَ رانجو په ځائ استعمال كړې دى، نودَ هغوى نظر ختم شو دَ دې په مقابله كښې دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كوى چه هغه دَ ړندې وېنځې په سترګوكښې دا اوبه استعمال كړې نوسترګې ئې ټيک شوې
③ ملاعلى قارى رحمه الله فرمائي چه مونږ مشاهده كړې ده دَ بعض خلقو نظر بالكل ختم شوې وو خودَ خالص اوبو په لګولو سره ئې نظر واپس راغلو
**د نتائجو د تضاد په مينځ كښې تطبيق:** علماء كرام فرمائي چه اصل مدار په عقيده او نيت باندې دې بعض فرمائي چه دَ خرېرو مختلف قسمونه دى بعض فائده مند او بعض نقصانى دى بهر حال دَ طبيب تجويز ضرورى دې چه دَ طب نبوى ﷺ دَ پاره عقيده هم پاكه پكار ده او بدن هم پاک ﴿وَالطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالطَّيِّبُوْنَ لِلطَّيِّبٰتِ﴾

**[۴۱۸۰] بادرنګ او قجورې يوځائې خوړل**

۴۱۸۰-[۲۳] ( )[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲]«رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنهما وايي[۲] چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې تازه قجورې ئې د بادرنګ سره يوځائې خوړلې (بخاري مسلم)
**حل اللغات:** ① الرُّطَبَ: كجورې. ② الْقِثَّاء: بادرنګ.

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الأطعمة/باب الرطب بالقثاء (رقم ۵۴۴۰) ومسلم فى ۱۴۷ (۲۰۴۳) وابوداود فى كتاب الأشربة/باب فى إيكاء الآنية (رقم-۳۷۳۵) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب القثاء والرطب. يجمعان (رقم-۳۳۲۵) واحمد فى المسند ۱/ ۲۰۳

تسهيلات:

**قوله** يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ:

**د قجورو او د بادرنګ يوځائې خوړلو فائده:** بادرنګ ته وائي دا يو قسم سلاط دی اکثرني خلق د خوند دپاره د روټي په دوران کښي خوري چونکه قجوري ګرمي وی او بادرنګ يخ وی دغه شان دواړه يوځائې کولوسره اعتدال پيدا کيږي په قجورسره د بادرنګ يخوالي او په بادرنګ سره د قجوري ګرموالي ختم شي اوپه غزا کښي اعتدال پيدا شي

**[۳۱۸۲] د کارکوندی خوراک**

۸۰— [۲۵] ( )[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَرِّ الظَّهْرَانِ[۳] نَجْنِي الْكَبَاثَ[۴] فَقَالَ: عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ مِنْهُ،[۵] لِأَنَّهُ أَطْيَبُ "[۶] فَقِيلَ: أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ؟[۷] قَالَ: نَعَمْ، وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا رَعَاهَا؟»» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي [۲] چې په يوه موقع مونږ د رسول الله ﷺ سره په مقام مر الظهران کې وو، اچې مکي ته نزدې يو ځائې دي[۳] او کارکندې پخې ميوې مو جمع کوني.[۴] چې حضور ﷺ وفرمايل د دې چې کومه ميوه توره وي. هغه اخلئ.[۵] ځکه چې هغه ښه وي (او فائده هم رسوي) [۶] مونږ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ آيا تاسو بزې څرولي دي؟[۷] حضور ﷺ وفرمايل چې هو. داسې يو نبي نه دې تير شوي چې هغه بزې نه وي څرولي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① بِمَرِّ الظَّهْرَانِ: مکې سره نيزدې د يومقام نوم دې. هم په دغه ځائې کښې د فتح مکې په موقع سی کريه ډيره اچولې وه ② نَجْنِي: اي النضيج من ثمر الاراك: د راغونډولو او راشکولو په معنی کښې دې ③ الْكَبَاثَ: د کارکوندي پخې ميوې ته وائي

تسهيلات:

**قوله** وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ:

**د صحابه کرامو قياس:** صحابه کرامو چه دنبی کريم ﷺ نه دا واوريده چه د کارکوندی دميونه تورې خوړنی هغه ډيرې مزيدارې وی نو په دې باندې صحابه کرامو دا اندازه اولګوله چه دا معلومات صرف هغه خلقوته وی څوك چه په صحرا کښې ګډې څره وی. په دې وجه صحابه کرامو تپوس هم اوکړو چه آيا تاسو چيلئی څرولې دی؟

**د ګډوپه څرولوکښې حکمت:** نبی کريم د يوې ضابطې طرف ته اشاره اوکړه چه هريونبی ګډې څرولې دی په دې کښې داحکمت وی چه ګډې يوعاجزاوکمزورې ځناورډې خو په طبعی

( ) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة/باب الكباث، وهو ثمر الأراك (رقم-٥٤٥٣)ومسلم في كتاب الأشربة/باب فضيلة الأسود من الكباث (رقم-١٦٣ - (٢٠٥٠) ومالک في الموطا كتاب الاستئذان/باب ما جاء في أمر الغنم (رقم-١٨)

توګه باندې په څرن کښې متحرك وی د ونې يوه پاڼړه د يوځائی نه خوری او د سترګو په رپ کښې بل ځائی ته رسيدلې وی که په معمولی کاڼړې باندې اوويشتلې شی نو ګوره مړه کيږی په ځنګل کښې د ګډې دښمنان هم ډيرزيات وی ځکه چه لومړه هم دا ښکار کولې شی په دې وجه د ګډو څرونکی په مزاج کښې عاجزی اعتدال اود سخت برداشت ماده پيداکيږی او هم دغه څيزونه دی د کوم چه انبياء کراموته ضرورت وی دې دپاره چه په راتلونکی وخت کښې عوامو له لاړښی په ارته سينه اويخو دماغو سره هغوی پوهه کړی چيلو څرولوسره په نظم وضبط کښې هم مهارت حاصليږی په کوم سره چه انسانان منظم کول اود هغوی ګرمې نرمې برداشت کول آسانيږی

**فائده: موسی عليه السلام ته د نبوت ملاويدو يوه وجه:** ملاعلی قاری رحمه الله په مرقت کښې ليکلی دی چه د حضرت موسی عليه السلام نه الله تعالی تپوس اوکړو تاته پته ده چه ما تاته ولې نبوت درکړو؟ حضرت موسی په نفی کښې جواب ورکړو نو الله تعالی اوفرمائيل يوځل تاچيلئی څرولې يوه چيلئی اوتختيده تا هغې پسې بې منډې اووهلې اوستړې شوې مګر تا هغه چيلئی اونيوله اوهغې ته دې اووئيلې اې غريبې تاخو خپل ځان هم په مصيبت کښې واچولو اوزه دې هم ما چه کله اوکتل چه يوځناور سره ستا دومره شفقت دې نوته ما د انسانانودپاره نبی جوړکړې اوومې ليږلې

**[۴۱۸۲] د کجورو خوړلو مسنون طريقه**

۴۱۸۲ـ[۲۱] (١) [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُقْعِيًا يَأْكُلُ تَمْرًا». [٣] وَفِي رِوَايَةٍ: «يَأْكُلُ مِنْهُ أَكْلًا ذَرِيعًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [٢] چې ما حضور صلی الله عليه وسلم په کوناتو ناست کوندی اوچتونکی حالت کښې په ناستې په کجورو خوړلو ليدلې دې. [٣] او په يو روايت کې دا دي چې حضور صلی الله عليه وسلم کجورې زر زر خوړلې، (مسلم)

**حل اللغات:** ① مُقْعِيًا: د إقعاء نه دې، چه سرې په کوناتو باندې کينی او زنګونان اودروی دا يومتواضع صورت دې ② أَكْلًا ذَرِيعًا: زر زر ئې خوراك کولو کيدې شی چه د څه وجهې نی تادی وه.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ګرانو الفاظو وضاحت په حل اللغات کښې اوشو باقی د حديث مضمون آسان دې

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب استحباب تواضع الآکل. وصفة قعوده (رقم-۱۴۸ - (۲۰۴۴))واحمد فی المسند:۲۰۳/۳

## [۳۱۸۸] په ګڼه کښې د دوو دوو قجورو د خوړلو حکم

۳۱۸۸-[۲۷] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَقْرِنَ الرَّجُلُ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ[۳] حَتَّى يَسْتَأْذِنَ أَصْحَابَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما وايي[۲] چې رسول الله ﷺ منع فرمايلي ده چې يو سړي دوه کجوري جمع کړي. ايعنى په يو ځاى دوه دوه کجوري اوخوري[۳] خو دا چې د خپلو ملګرو نه اجازت واخلي. ،بخاري مسلم،

**حل اللغات**: ①أَنْ يَقْرِنَ: د ضرب او نصر دواړونه راځي قران دوه کهجوري يوځائ کول او يه يوځائ خوړلوته ونيلى شوى دى

**تسهيلات: قوله**: أَنْ يَقْرِنَ الرَّجُلُ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ:

**د اقتران بين التمرتين د حکم نسخ**: علامه سيوطى رحمه الله فرمائي دا د هغه وخت خبره ده کوم وخت چه په خوراك کښې سخته تنګى وه بيا چه کله وسعت راغلو نودا حکم موقوف او منسوخ شو اوس دوه کهجوري يوځائى خوړلې شي

**استحبابى خبره**: د ادب تقاضا هم دغه ده چه ملګرو سره په محفل کښې يوه يوه قجوره خوړل مستحب دى اوکه څوك ئې ځان له خورى نوهغه دړې درې هم يوځائى خوړلې شي اوکه د مجلس ټول ملګرى اجازت ورکړى بې اهم دوه يوځائى خوړلې شى لکه څنګه چه په دې حديث کښې ذکر دى.

## [۳۱۸۹] د قجورو فضيلت

۳۱۸۹-[۲۸] ( )[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «لَا يَجُوعُ أَهْلُ بَيْتٍ عِنْدَهُمُ التَّمْرُ». [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: [۴] «يَا عَائِشَةُ بَيْتٌ لَا تَمْرَ فِيهِ[۵] جِيَاعٌ أَهْلُهُ» [۶] قَالَهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [۲] د هغه کور خلق اوږي نشي پاتې کيدي. په کوم کور کې چې کجوري وى. [۳] او په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل[۴] چې اې عائشې رضي الله عنها په کوم کور کى چې کجوري نه وي. [۵] دهغه کور او سيدونکي اوږي دي. [۶] حضور ﷺ دا الفاظ دوه يادرې ځلې وفرمايل. ،مسلم،

**حل اللغات**: ①لَا يَجُوعُ. اوږي نه پاتې کيږي.

---

) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة /باب القران فى التمر بين [ص:۱۳۹] الشركاء حتى يستأذن أصحابه (رقم-۲۴۸۹) ومسلم فى كتاب الأشربة /باب نهى الأكل مع جماعة عن قران تمرتين ونحوهما فى لقمة إلا بإذن أصحابه (رقم-۱۵۱ (۲۰۴۵)

) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة /باب فى ادخار التمر ونحوه من الأقوات للعيال (رقم-۱۵۳ - (۲۰۴۶) وابوداود فى كتاب الأشربة /باب فى إيكاء الآنية (رقم-۳۷۳۱) والترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى استحباب التمر (رقم ۱۸۱۵ وابن ماجه فى كتاب الأطعمة /باب التمر (رقم-۳۳۲۷)

**تسهيلات: قوله**: لَا يَجُوعُ أَهْلُ بَيْتٍ عِنْدَهُمُ التَّمْرُ:

**دحديث پس منظر**: داحديث دَهغه خلقوسره متعلق دي كوم چه په مدينه منوره كښې آباد وو دَ هغوی گذاره به صرف په كهجوروباندې وه يعنی نودهغوی دتسلی دپاره نبی علیه السلام دا حدیث اوفرمائل كه تاسو سره قجورې وی نوكه بل څه نه وی هم تاسو غريبانان او فقيران نه يې

**د حديث فوائد**: ① په دې حديث كښې دَ كهجورو دَ فضيلت بيان دې چه په كوركښې دكهجوروموجودكيدل دَ بركت سبب دي

② كه كهجورې په كوركښې ذخيره كول جائزدی اوداهم معلومه شوه چه كه صرف كهجورې وی نوبياهم سړی له داشكايت جائزنه دې چه په كوركښې دَ خوراك دپاره هيڅ نشته دي

**[۳۰] د عجوه كهجورو تاثير**

—[۲۹]( )① وَعَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ③ «مَنْ تَصَبَّحَ بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ ④ لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَلَا سِحْرٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت سعد ﷺ وايي ② چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ③ چه كوم سړي چې د سحر په وخت كې د څه بل شي د خوړلو نه مخكې اووه عجوه كجورې وخورې ④ نو هغه ته په هغه ورځ زهر او جادو هيڅ نقصان نشي رسولي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① عَجْوَةٍ: دَمديني منورې اعلى او ښه كهجورې دی، ② سَمٌّ: زهر، ③ سِحْرٌ: جادو

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ تَصَبَّحَ بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سَمٌّ وَلَا سِحْرٌ:

**دعجوه پيژندگلو**: عجوه دَمدينې منورې دَ ښه كهجورونه ده دَ تور رنګ وی اوپه خوړوالی كښې دومره خوږه نه وی بلكه معتدل وی دَ دې هدوكې ګول وی دانه نی هم ګول وی ديرې قيمتی وی په يوه زمانه كښې به په سل ريال باندې يوكلو خرڅيدې

**دسحرپه وخت د عجوه د خوړلو فائده**: په دې كښې الله تعالى يوخاصيت كيخودې دې چه د سحرپه وخت كښې دَدې اووه دانې په نهاره خوړلو سره سړې دَ زهر اوسحر نه بچ كيږی نبی كريم كيدې شی چه دَعجوه دَ پاره دعا غوښتې وی چه په عجوه كښې دې دا تاثيروی دَ اووه دَشمير خبره دَ الله تعالى په علم باندې ده چه په دې كښې څه حكمت دې وړاندې دَ عجوه نور تفصيل راځی

( ) اخرجه البخاری فی كتاب الأطعمة/باب العجوة (رقم-۵۴۴۵) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب فضل تمر المدينة (رقم-۱۵۵ - (۲۰۴۷) وابوداود فی كتاب الطب/باب فی تمرة العجوة (رقم-۳۸۷۶)

## [۳۳] د عجوه قجورې فضيلت

۳۰—[۳۰] (۱)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«إِنَّ فِي عَجْوَةِ الْعَالِيَةِ شِفَاءً،[۳] وَإِنَّهَا تِرْيَاقٌ[۴] أَوَّلَ الْبُكْرَةِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشي ﷺ نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د عاليه عجوه په كجورو كې شفاء ده.[۳] او هغه اد زهرو وغيره د پاره) د ترياق (يعنى د زهرو اثر لري كولو د دارو) خاصيت لري.[۴] هر كله چې هغه د ورځې په ابتدايي حصه كې (يعني په نهاره خېټه) وخوړل شي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْعَالِيَة: دمديني منورې اطرافو علاقوته عوالي واني ② تِرْيَاقٌ: زهر مهره يعنى: زهرو اثر لرې كولو دارو ③ اَلْبُكْرَة: ابتدانى حصه.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دحديث مطلب واضح دې باقى د ګرانو ټكو وضاحت په حل اللغات كښې اوشو

## [۳۴] يوې مياشتې پورې كټوئ نه پخول

۳۱—[۳۱] (۲)[۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ يَأْتِي عَلَيْنَا الشَّهْرُ[۳] مَا نُوقِدُ فِيهِ نَارًا،[۴] إِنَّمَا هُوَ التَّمْرُ وَالْمَاءُ،[۵] إِلَّا أَنْ يُؤْتَى بِاللُّحَيْمِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي [۲] چې بعضې مياشتى به په مونږ داسې تيريدى. [۳] چې مونږ به په هغې كې اورنه بلولو [يعني بعضې مياشتى به كله كله داسې پوره پوره تيريدى. چې زمونږ په كور كې به د خوراك سامان د نشوالى په وجه په نغري كې اور نه بليدو] [۴] او په دې موده كې به زمونږ د غذا انحصار يواځې په كجورو او اوبو وو.[۵] خو دا چې چيرته به لږ شان غوښه راغله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① نُوقِدُ: اور بلوو مونږ. ② اللُّحَيْم: لږه شان غوښه.

**تسهيلات:**

### قوله: إِلَّا أَنْ يُؤْتَى بِاللُّحَيْمِ:

**د نبى عليه السلام زهد:** دادلحم تصغيردې د تقليل دپاره دې يعنى چه د بهرنه به كله چاتحفه راليږله نوبيابه مونږ غوښه خوړله ګنى په كهجوروا وپه اوبوباندې به مونږ وخت تيرولو

(۱) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب فضل تمر المدينة (رقم-١٥٦ - (٢٠٤٨) واحمد فى المسند:١٠٥/٦
(۲) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب: كيف كان عيش النبى صلى الله عليه وسلم وأصحابه. وتخليهم من الدنيا (رقم ٦٤٥٨) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٧١) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب معيشة آل محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-٤١٤٤) واحمد فى المسند:١٠٨/٦

**د نبی علیه السلام د لوړې حیثیت:** یادلرئی چه د نبی کریم دا اولګې اختیاری وې داد سرم موجب نه دی بلکه د فخرسبب دې دې دپاره چه د نبی کریم په ذات کښې د ټولو پیغمبرانو خوبیانې راشی

حسن یوسف دم عیسیٰ ید بیضا داری　　　آنچه خوباں ہمہ دارند تو تنہا داری

د رسول الله ﷺ د فقیرئی په شان کښې شان قیصری وو سلام دې وی په هغوی چچه په بادشاهئی کښې فقیری اختیار کړې

**[۳۳] د نبی علیه السلام فقیری**

۳۳-(۳۲)(۱) ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: «مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ يَوْمَيْنِ مِنْ خُبْزِبُرٍّ ② إِلَّا وَأَحَدُهُمَا تَمْرٌ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ① او بې بې عائشه ﷺ وایې ② چې داسې هیڅ کله نه دي شوي. چې د حضور ﷺ کور والو دوه ورځې په ډک نس (خیټه) د غنمو روټۍ خوړلې وي. ③ او په هغه دوو ورځو کې د یوې ورځې غذا کجور نه وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① شَبِعَ: په مړه خیټه روټۍ خوړل، مړیدل. ② خُبْز: روټۍ. ③ بُرّ: غنم

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ يَوْمَيْنِ مِنْ خُبْزِبُرٍّ:

**د غنمو روټۍ نه ملاویدل:** یعنی د غنمو په روټئی سره ئې خیټه نه ده مړه شوې په اوربشو سره به مړه شوې وی نبی کریم د فقر وفاقې اودنیا د ترک کولو دپاره کښې یوه ضابطه د خپل ذات د پاره مقرر کړې وه اودویمه ضابطه داهل بیت دپاره وه اودریمه ضابطه دعم امت دپاره وه د خپل خان د پاره ئې خالص فقر وو د اهل بیت دپاره د لږ څه ساتلو اجازت وو اود امت دپاره ئې آسانتیا وساتله

**[۳۴] په اوبواو کهجورولی چرته خیټه نه ده مړه شوې**

۳۴-(۳۳)(۲) ① وَعَنْهَا قَالَتْ: ② «تُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ وَمَا شَبِعْنَا مِنَ الْأَسْوَدَيْنِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)

**ترجمه:** ① بې بې عائشه ﷺ وایې ② چې رسول الله ﷺ د دنیا نه تشریف یووړو ③ او مونږ هیڅ کله (د هغه ﷺ په ژوند کې) د دوو تورو څیزونو. (یعنی د کجورو او اوبو) نه خیټه ډکه نه کړله (بخاری مسلم)

**حل اللغات:** ① الْأَسْوَدَيْنِ: دوه تور څیزونو نه مراد اوبه اوکهجورې دی

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق /باب: كيف كان عيش النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه، وتخليهم من الدنيا (رقم ۶۴۵۵) وابن ماجه في كتاب الأطعمة /باب خبز البر (رقم-۳۳۴۴) واحمد في المسند: ۱۰۸/۶

(۲) اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة /باب من أكل حتى شبع (رقم-۵۳۸۳) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق (رقم-۳۱ - ۲۹۷۵) واحمد في المسند: ۱۵۸/۶

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمَا شَبِعْنَا مِنَ الْأَسْوَدَيْنِ

**داسودين څخه مراد:** اسودين د اسود تثنيه ده تورته وائي دلته ترې مراد قجوري او اوبه دي يعنى تروفاته پورې نبى عليه السلام او د دوى اهل په قجورو او اوبه باندې ماړه شوى نه وو او دلته د اسودين لفظ په توګه د تغليب دې ګڼى اوبه تورې نه وى

**اشكال او د هغې جواب:** د اوبو ملاويدل څه ګران وو چه په دې سره نى هم خيټه نه ده مړه شوې؟

د دې جواب دا دې چې سړې په نهاره خيټه اوبه نه شى څكلې كله چه په خيټه كښې كهجورې وغيره څه خوراك نه وى نو په نهاره باندې اوبه هم نه شى استعماليدې په دې وجه د كهجورو نه ملاويدلې لكه چه اوبه هم نه ملاويدې چه خيټه مړه كړې شى

**[۳۳۵] د نبى عليه السلام د فقيرى بيان كول**

| |
|---|
| ۵۰۳۰—[۳۳] ( )① وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ②«أَلَسْتُمْ فِي طَعَامٍ وَشَرَابٍ مَا شِئْتُمْ؟ ③لَقَدْ رَأَيْتُ نَبِيَّكُمْ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④وَمَا يَجِدُ مِنَ الدَّقَلِ ⑤مَا يَمْلَأُ بَطْنَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** ① او حضرت نعمان ابن بشير رضي الله عنه نه روايت دې چې هغه په يوه موقع وفرمايل ② چې آيا تاسو خلق په خپل خوراك او څښاك كې چې څرنګه غواړئ عيش نه كوئ ايعنى تاسو د خپل خوراك او څښاك په څيزونو كې د خپل خواهش مطابق وسعت او افراط اختيارولو سره د عيش او راحت ژوند تير وئ ③ حال دا چې ما ستاسو نبي ﷺ په داسې حال كې ليدلي وو. ④ چې حضور ﷺ ته چيرى ردي (ناكاره) كجورې هم دومره نه وې ملاوشوې. ⑤ چې په مړه خيټه يې خوړلى وى (مسلم)

**حل اللغات:** ① الدَّقَل: ردى بې كاره كهجورې. ② يَمْلَأُ: چه خيټه پرې ډكه كړى، مورشى

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمَا يَجِدُ مِنَ الدَّقَلِ مَا يَمْلَأُ بَطْنَهُ

**دحديث پس منظر:** نعمان بن بشير رضي الله عنه ياداكلام د نبى كريم د وصال نه پس صحابه كرامو ته كړې دې يائى تابعينو ته كړې دې نبى كريم دې فانى جهان ته دعيش اوعشرت دپاره نه وو راغلې هم په دې وجه نبى كريم د دنيا د خوندونونه ډډه اوكړه څه چه به ورسره وو هغه به نى په نورو باندې قربانى كول اوپخپله به نى فقر اوفاقې برداشت كولې دااختيارى فقر

---

( ) اخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق(رقم-۳۴ - (۲۹۷۷)والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى معيشة أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۳۷۲) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب معيشة آل محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۱۴۶) واحمد فى المسند: ۲۶۸/۴

وو چنانچه په بعضو روایاتو کښې دی چه نبی کریم به صرف په کهجورو باندې گذاره کوله بل هیڅ خوراك به نه وو. بیا په یوحدیث کښې دی چه کهجورې به هم په ډیر لږ مقدار کښې وې بیانی اوفرمائیل چه هغه کهجورې به هم دَ ردی قسم وې. نبی کریم دَ زهداوقناعت ژوند تیرولو سره امت ته دَترك دنیا تعلیم اوتربیت نمونه ورکړه.

## [۳۴۴] داوږې د خوراك څخه پرهيز كول

۳۴۴—[۳۵] ( ) ① وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أُتِيَ بِطَعَامٍ ③ أَكَلَ مِنْهُ وَبَعَثَ بِفَضْلِهِ إِلَيَّ، ④ وَإِنَّهُ بَعَثَ إِلَيَّ يَوْمًا بِقَصْعَةٍ ⑤ لَمْ يَأْكُلْ مِنْهَا لِأَنَّ فِيهِ ثُومًا، ⑥ فَسَأَلْتُهُ: أَحَرَامٌ هُوَ، ⑦ قَالَ: لَا، وَلَكِنْ أَكْرَهُهُ مِنْ أَجْلِ رِيحِهِ"، قَالَ: فَإِنِّي أَكْرَهُ مَا كَرِهْتَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو ایوب انصاري رضی الله عنه وايي② چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته چې به طعام راوړل شو، ③ نو حضور صلی الله علیه وسلم به د هغې نه اوخوړل. او پاتې شوي به يې ماته راليږل. ④ يوه ورځ حضور صلی الله علیه وسلم ماته يوه داسې پياله (كاسه) راوليږله، [چې په هغې کې طعام وو] ، ⑤ او د هغې نه يې هيڅ نه وو خوړلي، ځکه چې په هغه کې اوږه وه، ⑥ ما پوښتنه وکړه چې آيا اوږه حرامه ده؟ ⑦ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې نا، بلکې د دې د بوئ په سبب د دې خوړل نه خوښوم، ⑧ حضرت ابو ايوب رضی الله عنه عرض وکړو چې بيا ازه هم هغه طعام نه خورم. ځکه چه کوم طعام تاسو صلی الله علیه وسلم ناخوښه کړو، زه هم هغه طعام نه خوښوم (مسلم)

**حل اللغات:** ① قَصْعَةٍ: کاسه، ② ثُومًا: اوږه.

**د حضرت ابو ايوب خالدبن زيد مختصر تعارف:** نوم خالد كنيت ابوايوب قبيله خزرج او دَ نجارخاندان سره ئې تعلق لرلو. پوره سلسله نسب دا دې. خالد بن زيد بن كليب بن ثعلبه بن عبد عوف خزرجی. په بيعت العقبه کښې مسلمانيدونکو کښې وو. مدينې منورې ته دَ راتلونه پس حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دَ هغوی په کور کښې قيام کړې وو. نبی کريم صلی الله علیه وسلم سره هميشه په غزواتوکښې شريك شوې وو. په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې فقهاؤ صحابه کرامو کښې شمير وو. دَ خپل مينځ دَ اختلاف په صورت کښې صحابه کرامو به هم دَهغوی طرف ته رجوع کوله. (۲)

په هغوی کښې درې خبرې ښکاره وې. ①دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم محبت ② دَ ايمان جوش ③ حق وينا كول. په دې سلسله کښې ډير زيات واقعات دَهغوی په ژوندکښې ملاويږی. حيا اوشرم په کښې ډير زيات وو. دَ بخاری په روايت کښې راځی چه کله به هغوی په کوهی باندې غسل کولو نو څلورو وارو طرفوته به ئې کپړا زوړندوله.

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب الأشربة /باب إباحة أكل الثوم، وأنه ينبغی لمن أراد خطاب الكبار تركه، وكذا ما فی معناه (رقم-۱۷۰ - (۲۰۵۳) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی كراهية أكل الثوم والبصل (رقم-۱۸۰۷) واحمد فی المسند:۱۰۳/۵

**وفات:** قسطنطنیه (ترکی) باندې دَحملې دَ پاره ۵۳ﻫ کښې دَ یزیدبن معاویه په مشرئی کښې تشریف اوړلو. په سفرکښې عام وبا خوره شوه ډیر خلق شهیدان شول په هغوی کښې دوی هم وفات شو. هغه دَ قسطنطنیه دیوال سره نیزدې خښ کړې شو چه ترننه پورې دَ خلقو زیارت گاه دې.

**مرویات:** دَ هغوی نه ۱۵۰ روایات نقل دی په ۷ باندې دَ بخاری اومسلم اتفاق دې. بخاری کښې یو او مسلم شریف کښې هم یو ځان له ځان له دې.

**تسهیلات:**

**فائده: د تبع بادشاه په مدینه کښې کورجوړل:** دَ یمن بادشاه تبع په مدینه باندې حمله اوکړه په کوم کښې چه دَهغه خوني اووژلې شو. هغه مدینې منورې دَ وړانولوقسم اوخوړلو دَ مدینې بعضې یهودیانو عالمانو هغه ته اوونیل داسې مه کوه ځکه چه دادَ نبی آخرزمان دَ هجرت ځائی دې هغه به دَمکې نه هجرت کوی او دلته به راځی بادشاه توبه اوکړه او یومکان ئی جوړکړو چه کله هغه مدینې ته راشی نو دې مکان کښې به اوسیږی. هغه یوه رقعه هم اولیکله په کوم کښې چه یوځو اشعار وو دوه شعرونه دادی

| | |
|---|---|
| شهدت علی أحمد أنه | رسول من الله باري النسم |
| فلو مد عمري الی عمره | لكنت وزیرا له وابن عم |

**د حدیث پس منظر:** حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه هم دَدغه بادشاه دَ خاندان نه وو او اتفاق سره هم په دغه مکان کښې اوسیدلو. حضور پاك چه کله مدینې منورې ته تشریف راوړو نو هریوانصاری غوښتل چه نبی کریم دې دَهغه په کورکښې حصار شی نبی کریم اوفرمائیل زما اوښه آزاده پریږدئی دا چه چرته کیناسته زه به هم هلته حصاریږم نواوښه راغله اودَ حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه دکور مخې ته کیناسته

**قوله:** إِذَا أُتِيَ بِطَعَامٍ: دَمدینې انصارو چه به کله دعوت کولو نوخوراك پخولو سره به ئی هم دغه مکان ته راوړلو اونبی کریم به خپلو صحابه کرامو سره خوړلو هم دې طرف ته په دې حدیث کښې اشاره ده چه "إذا أتي بطعام" یعنی کله چه به خوراك راوړلې شو

**قوله:** لَا، وَلَكِنْ أَكْرَهُهُ مِنْ أَجْلِ رِيحِهِ:

**د اوګې نه خوړلو وجه:** دَ اوګې دَ وجهې نبی کریم خوراك قبول نه کړو اوپه ملګروباندې ئی اوخوړلو معلومه شوه چه کچه اوګه خوړل حرام نه دی البته مکروه دې

## [۳۸۴] د بدبو داره څيز د خوړلو په وجه جمات ته د تللو ممانعت

۳۸۴ - [۳۶] () ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ قَالَ: - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ بَصَلًا ③ فَلْيَعْتَزِلْنَا، ④ أَوْ قَالَ: فَلْيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا. ⑤ أَوْ لِيَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ» ". ⑥ «وَإِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أُتِيَ بِقِدْرٍ ⑦ فِيهِ خَضِرَاتٌ مِنْ بُقُولٍ ⑧ فَوَجَدَ لَهَا رِيحًا ⑨ فَقَالَ: "قَرِّبُوهَا إِلَى بَعْضِ أَصْحَابِهِ - ⑩ وَقَالَ: " كُلْ، فَإِنِّي أُنَاجِي مَنْ لَا تُنَاجِي» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت جابر ﷺ نه روايت دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې اوږه يا [اوم] پياز خوړلي وي، ③ هغه ته پکار دي چې زمونږ نه جدا وسيږي. [يعنی زمونږ مجلسونوته دي نه راځي] ④ يا دا يي وفرمايل چې هغه ته پکار دي چې هغه دي زمونږ د مسجد نه لرې اوسيږي. [يعنی زمونږ مسجد ته دي نه راځي] ⑤ يا دا يي وفرمايل چې هغه ته پکار دي چې (چيرته د تلو په ځای) دي په خپل کور کې ناست وسی ⑥ او د يوې ورځې واقعه ده، چې) نبي کريم ﷺ ته يوه کټوئ راوړل شوه. ⑦ په هغې کې هر قسم ترکاريانی سبزيانی وي [يعني اوږه، پياز او ګندنه وغيره] ⑧ حضور ﷺ ته د هغې بوئ محسوس شو، ⑨ نو [په خپلو صحابه ؤ ﷺ کې يو سړي ته اشاره کولو سره يو خادم ته يي] وفرمايل چې دا هغه فلاني سړي ته يوسه، ⑩ او بيا هغه سړي ته مخاطب کولو سره يي وفرمايل چې دا ته وخوره، زه يي نه خورم، ځکه چې زه د کوم ذات سره سرګوشئ (کې خبرې) کوم، د هغه سره ته سرګوشي نه کوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① ثُومًا: اوږه، ② بَصَلًا: پياز، ③ قِدْرٍ: کټورې، کټوئ، ④ خَضِرَاتٌ: قسم قسم سبزياني. ⑤ بُقُولٍ: د بقل جمع ده، سبزی، ترکاری، ⑥ أُنَاجِي: ملاقات کوم، مناجات (پټې خبرې) کوم

**تسهيلات:**

**راوی ته په روايت کښې شک:** راوی ته دَ روايت بيانولوکښې دوو ځايونوکښې شک شوې په دې وجه ئی أو ذکرکړې دې کوم چه دَ شك دَپاره راځی هرهغه سړې چاچه کچه پياز يا اوږه يا ګندنه يا تمباکو استعمال کړې وی اودَ خلې نه ئی بدبوئی راوځی يا هسې دَ بيمارئی دَ وجهې دَهغه دَ خولې نه بدبوئی راځی نودَداسې سړی جمات ته تلل مکروه دی ترکومې چه بدبوئی ختمه شوې نه وی. دَ جمات نه علاوه دَعامو خلقو مجمع کښې ورداخليدل هم مکروه دی

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب ما جاء فی الثوم النی والبصل والكراث (رقم-۸۵۵) ومسلم فی كتاب المساجد/باب نهی من أكل ثوما أو بصلا أو كراثا أو نحوها (رقم-۷۳ - (۵۶٤) وابوداود فی كتاب الأشربة/باب فی الشرب من ثلمة القدح (رقم-۳۷۲۲) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية أكل الثوم والبصل (رقم-۱۸۰۶)

**قوله**: مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْبَصَلًا، فَلْيَعْتَزِلْنَا:

**ه بوكي خوړلو مشروط ممانعت**: دَ "قربوا" او "كل" په الفاظو كښې تعارض نشته جدا جدا مخاطب كيدې شي جمع هم او مفرد هم. په دې حديث كښې نبى كريم پخپله دَ نه خوړلو علت دابيان كړې دې چه زما ملاقات دَ فرښتوسره كيږى په دې وجه احتياط كوم ستاسو معامله داسې نه ده تاسو ئې خورئى.

**[۳۹۸] د خوراك څيزو لو كښې په تللو سره بركت پيدا كيدل**

۳۹۸-[۳۷] ()① وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«كِيلُوا طَعَامَكُمْ ③ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ① او حضرت مقدام ابن معديكرب ﷛ د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② د خوراك څښاك څيزونه ناپ او تول كوئ، ③ تاسو د پاره به په دې كې بركت وركړې كيږي (بخاري)

**حل اللغات**: ① كِيْلُوا: ناپ تول كوئ. دَ كيل نه دې دَ پيمانې په معنى كښې دې.

**تسهيلات**:

**قوله**: كِيْلُوا: چه كوم څيز پيمانه كيږى هغه غله وى اوغله خوړلې شى. په دې وجه په اطعمه كښې ذكركړې شو گنى دادَ كتاب البيوع مسئله ده هلته ليكلې شوې ده.

**قوله**: كيلوا طعامكم، مطلب دا دې چه خريد وفروخت او قرض وركولو او اخستلو په وخت كښې كيلى او د وزنى څيزونو ناپ تول ضرور كوئ، دې دپاره چه كمى بيشى رانشى او د يو په ذمه د بل حق پاتې نه شى ، او هم دغه شان خوراك هم په ناپ سره پخوئ چه كم يا ذيات نه نشى.

**اشكال**: ملا على قارى رحمه الله هم د امام مظهر رحمه الله نه داسې خبره نقل كړې ده كه دا سوال وكړې شي چه په دې حديث كښې او د حضرت عائشه رضي الله عنها په حديث كښې تطبيق څنگه ممكن دې چه په دې حديث كښې نبى كريم ﷺ فرمائيلى دې چه د خوراك د څيزونو ناپ تول كوي او د حضرت عائشه رضي الله عنها په حديث كښې دې چه كله نبى كريم ﷺ وفات شو نو ما سره هيڅ څه نه وو مگر صرف يو خائى كښې وربشى وې كوم نه چه به ما لږ لږ راغستل خوراك به مى ترې كولو نو ډير وخته پورې ما ترې نه خوراك راخستلو او هغه نه ختميدلو ليكن كله چه ما هغه خوراك وزن كړو نو د هغې بركت ختم شو.

---

۱) اخرجه البخارى فى كتاب البيوع/باب ما يستحب من الكيل (رقم-۲۱۲۸) وابن ماجه فى كتاب التجارات/ باب ما يرجى فى كيل الطعام من البركة (رقم-۲۲۳۲) واحمد فى المسند: ۱۳۱/۴

**اشكال جواب:** د ناپ تول حکم د خريد وفروخت په وخت کښې دې دپاره چه ميانه روی او مساوات راشي او په دې کښې برکت وی البته د نفلی صدقه او خيرات په وخت کښې ناپ تول يا شمير کول د بخل علامه ده او ددې نه ئې منع فرمائيلې ده چه برکت په کښې ختم نشي په يو بل روايت کښې دي چه نبی کريم ﷺ حکم وکړو چه اې بلال ته خرچ کوه، صاحب عرش نه د کميدو ويره مه لره (التعليق الصبيح ج۴، ص۳۶۹)

## [۳۴] د خوراک نه پس د الله تعالى جل جلاله حمد ويل

۳۴— [۳۸] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا رَفَعَ مَائِدَتَهُ [۳] قَالَ: "الْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيرًا [۴] طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، [۵] غَيْرَ مَكْفِيٍّ [۶] وَلَا مُوَدَّعٍ [۷] وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو امامه نه روايت دي [۲] چې د نبي کريم ﷺ د مخې نه چې به دسترخوان پورته شو. [يعنی هر کله چې به حضور ﷺ د طعام د خوړو نه فارغه شو[۳] نو د الله تعالى جل جلاله په حمد او ثناء کې به يې داسې فرمايل تول تعريفونه الله جل جلاله لره دي. داسې تعريف چې ډير دي،[۴] او پاکيزه (يعني د ظاهر داري او د ښودني نه خالي دي) چې په هغه کې برکت اچول شوي دي،[يعنی هغه داسې بابرکته حمد دې چې هميشه جاري او قائم وي][۵] او هيڅ کله منقطع نه وي،[۶] نه د هغه نه کفايت کړل شوي وي.[۷] او نه د هغه نه بې پروايي وي اي زمونږ ربه!، (بخاري)

**حل اللغات:** ① مَائِدَتَهُ: دسترخوان، ② غَيْرَ مَكْفِيٍّ: هيڅ کله منقطع نه وي، ③ وَلَا مُوَدَّعٍ: نه دهغه نه کفايت کړل شوي وي. ④ لَامُسْتَغْنًى: نه د هغه نه بې پروايي وي.

**تسهيلات:**

**قوله: غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مُوَدَّعٍ وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا:**

**په دعا کښې په موصوف کښې دوه احتمالات:** ددې لفظ نه واخله تر آخره پورې تولې جملې او پوره کلام دَ حمدصفت هم جوړولې شی اودَ طعام صفت هم جوړيدې شی په دواړو صورتونو کښې به په مطلب کښې فرق راځی

**د حمد لره د موصوف گرځولو په صورت کښې ترجمه:** ((غَيْرَ مَكْفِيٍّ))چه دا حمدبه مونږ هميشه دَ الله تعالى دَ پاره قائم اودائم ساتو په يوه مرحله به مونږ دا کافی نه گنړو بلکه مسلسل به ئې جاری ساتو ((وَلَا مُوَدَّعٍ))يعنی دا تعريف به مونږ ترک کولوسره نه پريږدو بلکه مسلسل به

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الأطعمة /باب ما يقول إذا فرغ من طعامه (رقم-۵۴۵۸) وابوداود فی کتاب الأطعمة /باب ما يقول الرجل إذا طعم (رقم-۳۸۴۹) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما يقول إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۴۵۶) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة /باب ما يقال، إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۲۸۴)

نې جاري ساتو «وَلَامُسْتَغْنًى عَنْهُ» اونه مونږ دَدې حمدنه مستغنی کیدې شو بلکه دَدې طرف ته به مونږ هروخت محتاج یو خلاصه دا چه دا حمدبه په یوحدباندې کافی نه شی ګڼرلې نه به دا ترک کولې شی اونه به دَدې نه بې پروائی کولې شی

**د طعام لره د موصوف ګرځولوپه صورت کښې ترجمه:** که چرې دا جملې دَ طعام اوخوراك صفت جوړکړې شی نوبیابه دَدې جملومطلب داسې شی «غَيْرَ مَكْفِيٍّ» یعنی خوراك دَ الله تعالی نعمت دې یووخت به دا کافی نه شی ګڼرلې بلکه هروخت دَدې طرف ته حاجت ساتل پکاردی «وَلَامُوَدَّعٍ» یعنی نه به دَدې لتپون اوطلب ترک کولې شی اونه به دَدې نه استغنا اختیارولې شی

**[۳۲۰] په شکرکولو سره د الله تعالی راضی کیدل**

۳۲۰—[۳۹] ( )[۱] وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَيَرْضَى عَنِ الْعَبْدِ[۳] أَنْ يَأْكُلَ الْأَكْلَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا،[۴] أَوْيَشْرَبَ الشَّرْبَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۵] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَيْ عَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا:[۶] "مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ،[۷] وَخَرَجَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مِنَ الدُّنْيَا فِي "بَابُ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ"، إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] الله تعالی د بنده ددې خبرې نه راضي او خوشحالیږي،[۳] چې هغه یوه نوړۍ وخوري، او په هغې د الله جل جلاله حمد او شکر اداء کړي،[۴] یا یو ګوټ اوبه وڅکي او په هغې د الله جل جلاله حمد او ثناء اووائي. «مسلم»[۵] او دوه روایتونه چې په هغې کې یو روایت د بي بي عائشې رضي الله عنها دي [۶] ماشبع آل محمد ﷺ الخ [۷] او دویم روایت خرج النبي ﷺ الخ، د حضرت ابوهریره رضي الله عنه دي. دا دواړه روایتونه به مونږ انشاء الله باب فضل الفقراء کې نقل کړو. [یعنی دا دواړه روایتونه صاحب د مصابیح په کتاب الاطعمه کې نقل کړي وو، لیکن مونږ هغه په باب فضل الفقراء کې نقل کړي دي]

**حل اللغات:** ① الْأَكْلَةَ: نمړئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَأْكُلَ الْأَكْلَةَ:

**د همزې په اعراب کښې دوه احتمالات:** ① که په اکلة کښې د همزې په زبر سره شي نو معنی به نې دا شي چه کله لړ خوراک هم وکړي نو هم د الله تعالی حمد کوي

② که په اکلة کښې د همزې په پیش سره شی نو معنی به نې دا وی ، یوه نمړۍ نو مطلب نې دا شو چه په هره نمړۍ باندې د الله تعالی حمد کوی

( ) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب استحباب حمد الله تعالی بعد الأکل والشرب(رقم-۸۹(۲۷۳٤)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۴۲۰] په بسم الله سره په طعام كښې بركت

۴۲۰-[۳۰] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقُرِّبَ طَعَامٌ، [۴] فَلَمْ أَرَ طَعَامًا كَانَ أَعْظَمَ بَرَكَةً مِنْهُ أَوَّلَ مَا أَكَلْنَا، [۵] وَلَا أَقَلَّ بَرَكَةً فِي آخِرِهِ، [۶] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ هٰذَا؟ [۷] قَالَ: "إِنَّا ذَكَرْنَا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ حِينَ أَكَلْنَا، [۸] ثُمَّ قَعَدَ مَنْ أَكَلَ [۹] وَلَمْ يُسَمِّ اللّٰهَ فَأَكَلَ مَعَهُ الشَّيْطَانُ» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه وايي[۲] چې يوه ورځ مونږ خلق د نبي كريم ﷺ سره وو[۳] چې طعام مخې ته راوړل شو [د خوراك په دوران كې ما محسوس كړه چې][۴] ما په هغه طعام كې هغه وخت يو لوئ بركت وليدلو، هر كله چې مونږ خوړل شروع كړي وو، داسې بركت ما په بل طعام كې نه وو ليدلي،[۵] او د هغه طعام په آخر كې چې ما كومه بې بركتي وليدله، [داسې بې بركتي مې هم په بل طعام كې نه وه ليدلې].[۶] مونږ عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ د دې سبب څه وو؟ [چې د هغه طعام په شروع كې خو دومره زيات بركت وليدل شو، او په آخر كې دومره بې بركتي په نظر راغله][۷] حضور ﷺ وفرمايل چې په حقيقت كې د طعام په شروع كې مونږ د الله ﷻ نوم اخستي وو.[۸] ليكن وروسته يو سړي راغې، كينا ستو چې هغه طعام وخوړلو.[۹] خو د الله ﷻ نوم يې وانخستلو. نو د هغه سره شيطان هم طعام وخوړلو [په دې سبب په آخر كې بې بركتي راغله] شرح السنة

**حل اللغات:** ① قُرِّبَ: نژدې كړې شو راوړلې شو

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّا ذَكَرْنَا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ:

**د پوره بسم الله وئيل:** د الله نوم اخستلو نه مراد پوره بسم الله الرحمن الرحيم وئيل دي او صرف بسم الله وئيل كافي نه دي او په حالت د جنابت كښې يا دحيض په حالت كښې مستحب دا دي چه د تلاوت نيت دې ونه كړي بلكه د ذكر نيت دې وكړي. ګنې د حرامو مرتكب به شي

**د حرامو څيزونو په خوړلو د بسم الله وئيلو حرمت:** دارنګ د كومو څيزونو خوراک چه په شريعت كښې حرام دي نو ددې خوړلو په وخت كښې بسم الله وئيل هم حرام دي او كه يو كس د شراب څكلو په وخت كښې بسم الله ووائي نو دا به كافر شي (مرقات)

[۱] اخرجه البغوي في شرح السنة رقم الحديث ۲۸۴۴

[۳۲۰۲] د خوراک په اول او مینځ کښې بسم الله ونیل

۳۲۰۲—[۳۱] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] ((إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ [۳] فَنَسِيَ أَنْ يَذْكُرَ اللّٰهَ عَلَى طَعَامِهِ; [۴] فَلْيَقُلْ: بِسْمِ اللّٰهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ)). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې په تاسو كې يو سړي طعام خوړلو ته كيني، [۳] او په شروع كې په خپل طعام د الله جل جلاله نوم ورنه هير شي، [او د خوړلو په مينځ كې ورته را ياد شي] [۴] نو هغه ته پكار دي چې هغه دا اووائي بِسْمِ اللّٰهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ. (ترمذي ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** بِسْمِ اللّٰهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ:

**مذكوره جمله منصوب لوستلو كښې درې احتمالات:** ① ظرف كيدلو د وجهې نه منصوب دي نو عبارت به دا شي "أي في أوله واخره".

② منصوب بنزع الخافض "أي على أوله واخره"

③ دواړه اسمونه د فعل محذوف د مفعول كيدو د وجهې نه منصوب دي نو عبارت به دا شي "أي أكلت أوله وأكل أخره مستعينا بالله".

**د بسم الله أوله وآخره مطلب:** د"أوله" څخه مراد د خوراک نصف اول دي او "أخره" نه مراد د خوراک نصف اخر دې نو استقصاء واستيعاب حاصل دي. او د كلام حاصل دا شو چه كوم كس نه د ډوډئ په شروع كښې بسم الله ونيل هير شو نو هغه له پكار دي چه په مينځ كې "بسم الله اوله وآخره" ووائي

**په اودس كښې د بسم الله د هيريدلو حكم:** او په محيط كښې دا ليكلي شوي دي چه كوم كس نه د اودس په شروع كښې بسم الله ونيل هير شو نو په مينځ كښې بسم الله ونيلو سره سنت نه ادا كيږي په خلاف د خوراک چه كه چرې د خوراک په مينځ كښې چا بسم الله اوونيله نو دا به ورله كافي شي.

[۳۲۰۳] د بسم الله په ونيلو سره د شيطان طعام لره اولټې كول

۳۲۰۳—[۳۲] (۲) [۱] وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ مَخْشِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] ((كَانَ رَجُلٌ يَأْكُلُ [۳] فَلَمْ يُسَمِّ [۴] حَتَّى لَمْ يَبْقَ مِنْ طَعَامِهِ إِلَّا لُقْمَةٌ، [۵] فَلَمَّا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ [۶] قَالَ: بِسْمِ اللّٰهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ [۷] فَضَحِكَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ثُمَّ قَالَ: [۸] "مَا زَالَ الشَّيْطَانُ يَأْكُلُ مَعَهُ، [۹] فَلَمَّا ذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ [۱۰] اسْتَقَاءَ مَا فِي بَطْنِهِ)). رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

---

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام (رقم-۳۷٦۷) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في التسمية على الطعام (رقم-۱۸۵۸) واحمد في المسند: ۲۰۸/٦

[2]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام (رقم-۳۷٦۸) واحمد في المسند: ۳۳٦/٤

**ترجمه:** [۱] اوحضرت امیه ابن مخشي رضي الله عنه وایي[۲] چې یوه ورځ یو سړي طعام ته کیناستو.[۳] او د الله جل جلاله نوم یي وانه خستو ایعني د بسم الله ویلو نه بغیر یي خوراك شروع کړو! [۴] تر دې چې په هغه طعام کې سوا د یوې نوړۍ نه څه باقي پاتې نه شو.[۵] کله نې چه دغه یوه نوړۍ خلې ته اوچته کړه انو هغه ته یاد شو چې د طعام د شروع کولو په وخت زما نه بسم الله هیره شوي وه![۶] نو هغه په دغه وخت بسم الله اوله وآخره وویل.[۷] په دې لیدو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم په خندلو سره وفرمایل [۸] چې شیطان د دې سړي سره برابر طعام خوړلو، [۹] خو ده چې د الله جل جلاله نوم واخستلو.[۱۰] نو شیطان هغه هر څه قي کړل، کوم چې د هغه په خیټه کې وو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①لُقمَةٌ: نمړۍ، ②اسْتَقَاءَ: څه چه نی په خیټه کښې وو هغه نی قي کړل

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَمَّا ذَكَرَ اسْمَ اللهِ اسْتَقَاءَ مَا فِي بَطْنِهِ:**

**د شیطان په التي کولو کښې دوه احتمالات:** ① د شیطان خوراک اولتي (قي) کول په حقیقت باندې محمول دي

② د التي څخه مراد دا دي چه کوم برکت د بسم الله په نه وئیلو سره ختم شوي وو هغه د بسم الله په وئیلو سره واپس راغلو، نو ګویا چه دا برکت د شیطان په خیټه کښې د امانت په طور باندې وو نو کله چه هغه کس بسم الله ووئیله نو په خوراک کښې برکت هم واپس راغلو.

### [۴۲۰۴] د خوراک څخه روسته د حمد مسنون کلمات

۴۲۰۴-[۴۳] (¹)[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ قَالَ: [۳] " الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي [۴] أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا [۵] وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] وحضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه وایي[۲] چې رسول الله چې به دطعام نه فارغه شو.نو فرمایل به یي[۳] هر قسم تعریف هغه الله لره لائق دي.[۴] چې هغه مونږ ته د خوړلو د پاره راکړل،مونږ ته ئ دڅکلودپاره راکړل.[۵] اومونږ یي مسلمانان جوړ کړو (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب ما یقول الرجل إذا طعم (رقم-۳۸۵۰) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما یقول إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۴۵۷) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة /باب ما یقال. إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۲۸۳) واحمد فی المسند: ۳/ ۳۲

**تسهیلات:**

**قوله:** اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ:

**په جسماني او روحاني نعمت د الله تعريف كول:** د حديث حاصل دا دي چه انسان له پكاري دي چه د خوراک څخه روسته د الله تعالی حمد وشکر وکړي

دارنګ چه په جسماني نعمتونه خوراک څخاک باندې د شکر تعلیم دي نو روحاني نعمتونو په اسلام وایمان باندې به په طریق اولی د شکر وحمد تعلیم دي، او په قرآن کریم کښې ذکر دي چه په شکر سره نعمت زیاتیږي لئن شكرتم لازيدنكم.

**[٤٢٠٥] د مالدار شكر كذار د روژې په تكليف صبر كونكي سره برابری**

٤٢٠٥ — [٣٣] ( ) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٣] «الطَّاعِمُ الشَّاكِرُ [٤] كَالصَّائِمِ الصَّابِرِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٣] په طعام خوړلو سره د الله تعالی شکر اداء کونکي [٤] د صابر روژه دار په شان دي. (ترمذي)

٤٢٠٦ — ( ) [١] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ سِنَانِ بْنِ سَنَّةَ، عَنْ أَبِيهِ.

**ترجمه:** [١] ابن ماجه رحمه الله او دارمي رحمه الله دا روایت د سنان بن سنه نه اوهغه د خپل پلار نه نقل کړي دي

**تسهیلات:**

**قوله:** الطَّاعِمُ الشَّاكِرُ كَالصَّائِمِ الصَّابِرِ:

**د شکر درې درجات:** ① قولي شکر دا دي چه بسم الله سره خوراک شروع کړي شي او په الحمد الله سره ختم کړي شي او دا د شکر کمه درجه ده،

② عملي شکر دا دي چه د الله تعالی نعمتونه خوړلو نه پس د هغه عبادت اوکړي

③ دنعمتونو په وجه انسان دالله تعالی څخه غافله کیږي او ګناهونه کوی نوچې يو کس د نعمتونو په وجود کښې د الله تعالی د نافرمانی څخه ځان اوساتی، دا د شکر اعلی درجه ده

**د روژه دار درې درجات:** ① د روژه دار کمه درجه صبر دا دې چه کومو څیزونو سره روژه ماتیږي دهغې نه ځان اوساتی.

② درمیانی درجه صبر دا دې چه کومو څیزونو سره روژه مکروه کیږي دهغې نه ځان اوساتی،

---

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تعجيل اسم المولود (رقم-٢٨٣٢) واحمد في المسند: ٢/٢٨٣

[2]) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الجهاد/باب الاستعانة بالمشركين (رقم-٢٨٣٢) واحمد في المسند: ٢/٢٨٣

③ اعلی درجه صبر دا دي چه کومو څیزونو سره روژه غیر مقبول کړی د هغې نه ځان اوساتی یعنی سر نه واخلی تر خپو پوری د ټولو اعضا روژه پکارده

**د شکرگذار د روژه دار سره د برابری وجه:** د ایمان دوه ارکان دي ① شکر ② صبر نیم ایمان شکر دي او نیم ایمان صبر دي

صوفیاء کرام فرمائي چه صبر کونکې روژه دار په ترک د خوراک څښاک سره صبر کوي او خوړنکې شکر گزار په خوراک سره حاصل شده طاقت په ناجائز ځائي کښې نه خرچ کولو سره صبر کوي، هم دغه شان شاکر هم بالواسطه صابر دي

**[۴۲۰۷] دڅکاک څخه روسته مسنون کلمات ولیل**

۴۲۰۷-[۳۵] ()[1] ① وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَكَلَ أَوْشَرِبَ ③ قَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ ④ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى، ⑤ وَسَوَّغَهُ، ⑥ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو ایوب ﷛ وایي ② رسول الله ﷺ چې به خوړل او څکل، ③ نو فرمایل به یي چې هر قسم تعریف الله ﷻ لره لائق دي، ④ چې هغه راباندې وخوړل او اوڅکل، ⑤ او د هغه خوراك څکاك څیز یي په اسانۍ سره د حلق نه ښکته کړو، ⑥ او د هغې د وتلو لار یي پیدا کړه (ابوادؤد)

**حل اللغات:** ① سَوَّغَهُ: او د هغه خوراك څکاك څیز یي په اساني سره د حلق نه ښکته کړو

**تسهیلات:**

**قوله:** أَطْعَمَ وَسَقَى، وَسَوَّغَهُ:

**د خوراک څخه طاقت حاصلولو کښې د مختلفو اندامونو کردار:** هغه ذات په مونږ باندې خوراک او څښاک وکړلو، او په اسانی سره ئي بدن ته ښکته کړلو، نو مطلب ئي دا شو

① چه د خوراک میدا کولو دپاره ئي په خوله کښې غاښونه راکړي دي او خوراک لوندولو دپاره ئي په خوله کښې توکانړی راکړي دی

② د خوراک اړولو راړولو دپاره ئي ژبه راکړي ده

③ خیټی ته خوراک تللو دپاره ئي حلق راکړي دي

④ معده ئي د خوراک خزانه جوړه کړي ده او مثانه ئي د اوبو خزانه جوړه کړي ده

⑤ اود فضلاتو خارجیدو دپاره ئي کولمې او مقعد پیدا کړی دی

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب ما يقول الرجل إذا طعم (رقم-۳۸۵۱)

**[۴۲۰۸] د خوراک څخه وړاندې او روسته د لاسونه وينځل**

۴۲۰۸-[۳۶](۱) ۱ وَعَنْ سَلْمَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ «قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ ۳ أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ بَعْدَهُ، ۴ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-. ۵ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۶ "بَرَكَةُ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ وَالْوُضُوءُ بَعْدَهُ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت سلمان رضي الله عنه وايي ۲ چې ما د اسلام د قبلولو نه مخکې په تورات کې لوستلي وو، ۳ چې په طعام کې د برکت ذريعه د خوراك نه پس اودس کول دي. ۴ د اسلام د قبوليت نه پس يوه ورځ ما د نبي کريم ﷺ په مخکې (د تورات دا مضمون) ذکر کړو ۵ نو رسول الله ﷺ وفرمايل ۶ په طعام کې د برکت ذريعه د خوړلو نه مخکې اودس کول دي، او د خوړلو نه پس اودس کول دي (ترمذی ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْوُضُوءُ: اودس، (دلته ترې لاسونه وينځل مراد دی).

**تسهيلات:**

**قوله: قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ:**

**د خوراک څخه وروسته د لاس وينځل:** په تورات کښې دَ خوراك نه پس دَ لاسونو وينځل او په خله کښې غرغرې کولو بيان وو. صحابی هغه لوستلي وو نودَ نبی کريم په وړاندې ئی تذکره اوکړه.

**قوله: الْوُضُوءُ بَعْدَهُ:**

**د وضوء څخه مراد:** دلته دَ وضونه اصطلاحی دَ مونځ والاوضو يعنی اودس مراد نه دې بلکه دې نه لغوی وضو مراد دې چه صرف لاس وينځل او خله کښې اوبه اچول دی او هم دغه وضو "ممامست النار" دَپاره دې جلد اول کتاب الطهارة کښې دا مسئله په تفصيل سره ليکلې شوې ده

**دخوراک څخه وړاندې د لاس وينځل:** نبی کريم اوفرمائيل چه دَ خوراك نه مخکښې هم لاس وينځل دی اودَ خوراك نه پس هم دواړه دَ برکت سبب دی لکه چه نبی کريم اشاره اوکړه چه شريعت محمديه کامل مکمل بلکه اکمل دين دې په دې وجه دَ تکميل شريعت تقاضا ده چه دَ خوراك نه مخکښې هم لاس وينځل دی او روستو هم لاس وينځل دی

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب ما يقول الرجل إذا طعم (رقم-۳۸۵۱) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الوضوء قبل الطعام وبعده (رقم-۱۸۴۶) واحمد فی المسند:والنسائی فی ۱/۴۴۱

**[۴۲۰۹] د خوراك څخه وړاندې د شرعي اودس عدم مسنونيت**

۴۲۰۹-[۴۷] (۱)[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -[۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ،[۳] فَقُدِّمَ إِلَيْهِ طَعَامٌ،[۴] فَقَالُوا: أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ؟[۵] قَالَ: "إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دي[۲] چې ایوه ورځ نبي کریم ﷺ د بیت الخلاء نه واپس راغې،[۳] نو د حضور ﷺ مخې ته طعام راوړل شو.[۴] بعضو صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض وکړو چې آیا مونږ تاسو ته د اودس اوبه راوړو؟[۵] حضور ﷺ وفرمایل چې ماته (د حدث نه پس) د اوداسه کولو حکم (په طریق د وجوب) په دې صورت کښې راکول شوي دي، کله چې زه د مانځه د پاره د ودریدو اراده وکړم (ترمذي ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① اَلْخَلَاءِ: بیت الخلاء.

۴۲۱۰-(۲)[۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** [۱] او ابن ماجه رحمه الله دا روایت د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه نقل کړي دي

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ:

**خوراک څخه وړاندې د شرعي اودس حکم:** یعنې اصطلاحي شرعي اودس خوهغه وخت کیږي کله چه سړې د مونځ د پاره اودریږي او اودس ئې نه وي نو دغه وخت اودس فرض دې د خوراك کولو د پاره اصطلاحي اودس لازم نه دي.

**اشکال:** نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه د اودس حکم صرف د مونځ د پاره دي حالانکه د سجدهٔ تلاوت، د قرآن مسح کولو او طواف وغیره د پاره هم اودس ضروري دي

**د اشکال دوه جوابونه:** ① د نبي کریم ﷺ دا فرمان د اغلب او اکثر په اعتبار سره دي، قاعده کلیه په توګه ئې نه دي فرمائیلې چه صرف مونځ د پاره به اودس کولې شي

② صحابه کرامو به د روټې نه مخکې (وضو شرعي) اودس شرعي ته د وجوب درجه ورکوله نو نبي کریم ﷺ د صحابه کرامو د دې اعتقاد رد کولو په وجه دا ارشاد وفرمائیلو چه روټې خوړلو د پاره د وضو شرعي (اودس شرعي) ضرورت نشته بلکه د وضو عرفي (اودس عرفي) حکم هم استحبابي دي

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب في غسل اليدين عند الطعام (رقم-۳۷۶۰) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية البيتوتة وفي يده ريح غمر(رقم ۱۸۵۹) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في ترك الوضوء قبل الطعام (رقم-۱۸٤۷) والنسائي في كتاب الطهارة/باب الوضوء لكل صلاة (رقم-۱۳۲) واحمد في السند:۲۸۲/۱

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأضاحي/باب الذبح. بالمصلى (رقم-۳۱۶۱)

## [۳۳۴] د کاسې د طرفونو څخه خوراک کول

۴۳۳۴ - [۳۸] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «أَنَّهُ أُتِيَ بِقَصْعَةٍ مِنْ ثَرِيدٍ. ③ فَقَالَ: "كُلُوا مِنْ جَوَانِبِهَا ④ وَلَا تَأْكُلُوا مِنْ وَسَطِهَا ⑤ فَإِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ فِي وَسَطِهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، ⑥ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي ② چې ايوه ورځ د حضور ﷺ په خدمت کې د ثريد يوه پياله (کاسه) راوړل شوه. ③ حضور ﷺ (په مجلس کې موجود صحابه ؤ رضی الله عنهم ته) وفرمايل چې د دې پيالې د غاړو نه خورئ. ④ د دې د مينځ نه يې مه خورئ. ⑤ ځکه چې برکت د دې په مينځ کې نازليږي (ترمذي، ابن ماجه، دارمي) ⑥ ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

① وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: ② "«إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا ③ فَلَا يَأْكُلْ مِنْ أَعْلَى الصَّحْفَةِ ④ وَلٰكِنْ يَأْكُلْ مِنْ أَسْفَلِهَا؛ ⑤ فَإِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ مِنْ أَعْلَاهَا»".

**ترجمه:** ① ود ابوداؤد رحمه الله په روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې يو سړي طعام خولو ته کيني، ③ نو هغه ته پکار دي، چې د پيالې د سر نه يې نه خوري. ④ البته د پيالې د لاندې نه دې خوري. ⑤ ځکه چې برکت د پاسه حصه کې نازليږي

**حل اللغات:** ① قَصْعَةٍ: کاسه. ② ثَرِيدٍ: په خوروا کښې ماته کړې روټۍ. ③ الصَّحْفَةِ: د پاسه حصه

**تسهیلات:**

**قوله:** كُلُوا مِنْ جَوَانِبِهَا:

**د کاسې د طرفونو څخه خوراک کول:** دَ تالى اوبليت په مينځ کښې دَخوراك زياته حصه وى برکت او دَ طعام ادب دادې چه دَ دغه لوښى حصې دَ اطرافو او جوانبو نه خوراك اوکړې شى دانه چه دَخوراك شروع هم دَ مينځ نه اوکړى اوهغه راؤغورزوى په دې کښې شاړتوب اوشډلتوب اود برکت دپاره نقصان هم دې

**قوله:** فَلَا يَأْكُلْ مِنْ أَعْلَى الصَّحْفَةِ، وَلٰكِنْ يَأْكُلْ مِنْ أَسْفَلِهَا:

**د اعلى او اسفل څخه مراد:** دَ اعلى رکيبى نه هم دغه پورتنى حصه مراد ده اودَ اسفل رکيبئى نه دغه لاتدينى حصه او اطراف مراد دى

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب ما جاء في الأكل من أعلى الصحفة (رقم-۳۷۷۲) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الأكل من وسط الطعام (رقم-۱۸۰۵) وابن ماجه في كتاب الأطعمة/باب النهي عن الأكل من ذروة الثريد (رقم-۳۲۷۷) واحمد في المسند: ۳۴۳/۱

## [۲۲۳] په تكيه وهلو سره د خوراك نه كول

۴۲۲۳-[۴۹] (¹) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «مَا رُئِيَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ، ③ وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① اوحضرت عبدالله ابن عمرو ﷺ وايي ② چې رسول الله ﷺ هيڅ كله په تكيه لګولو سره په طعام خوړلو نه دي ليدل شوي، ③ او حضور ﷺ پسې به دوه سړي هم نه تلل [يعني ځوكيداران يې نه ګرځول] (ابوداود)

**تسهيلات**: مُتَّكِئًا: دوه لګولوسره خوراك كول دَمتكبرينو او متجبرينو عادت دې چه خوراك هم كوي او بې احتياجي هم ښكاره كوي لكه چه دوى دَ الله تعالى اودَ هغه دَرزق نه بالكل بې پرواه دي.

**قوله**: وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ:

**د مذكوره جملې مفهوم**: يعنى نبى كريم به په خلقونه وړاندې وړاندې ملګرو سره نه تللو بلكه په مينځ كښې به وو كله كله به داسې كيدل چه نبى كريم به بالكل په آخره كښې وو او دوه كسان به هم دَهغوى نه شاته نه وو دَ زياتوخو څه خبره نه وه او كه چرته يوكس به وو نودَهغې نفى نه ده لكه چه حضرت انس ﷺ به ځان له وو. بهرحال عام معمول او ضابطه نه ده بلكه كله به يوصورت وو اوكله به بل صورت. عقب: پوندې ته وانى مرادترې نه شاته كيدل دى.

## [۲۲۴] په جمات كښې د خوراك څكاك حكم

۴۲۲۴-[۵۰] (²) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِخُبْزٍ وَلَحْمٍ ③ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ، ④ فَأَكَلَ وَأَكَلْنَا مَعَهُ، ⑤ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، وَصَلَّيْنَا مَعَهُ ⑥ وَلَمْ نَزِدْ عَلَى أَنْ مَسَحْنَا أَيْدِيَنَا بِالْحَصْبَاءِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ① او حضرت عبدالله بن حارث بن جزء وايي ② چې [يوه ورځ] د رسول الله ﷺ په خدمت كې په روټۍ او غوښه مشتمل طعام راوړل شو، ③ كوم وخت چې حضور ﷺ په مسجد كې تشريف فرما وو، ④ د حضور ﷺ سره مونږ هم هغه طعام وخوړلو، ⑤ بيا حضور عليه السلام ودريدلو. او حضور ﷺ مونځ وكړو او مونږ هم ورسره مونځ اداء كړو ⑥ او د دې نه زيات مونږ هيڅ ونه كړل، چې د طعام د فارغيدو نه پس خپل لاس مو په هغه كنكرو (وړو شګو) سره اوچ كړل، كوم چې په مسجد كې پرتې وى (ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① مَسَحْنَا: اومږل مونږ. اوچ مو كړل، ② الْحَصْبَاءِ: نرى واړه واړه كاڼړى

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة /باب ما جاء في الأكل متكئا (رقم-۳۷۷۰)
²) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأطعمة /باب الأكل في المسجد (رقم-۳۳۰۰)

تسهيلات:

**قوله: بِخُبْزٍ وَلَحْمٍ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ، فَأَكَلَ وَأَكَلْنَا مَعَهُ:**

**په جمات کښې د خوراک د جواز صورتونه:** په عاموحالاتوکښې په جمات کښې خوراک کول ټیک نه دی البته په بعضې صورتونو کښې جواز لري خودا هم په دې شرط چه په جمات کښې څه ګندګی وغیره خوریدلو احتمال نه وی که ګندګی خورېږی نو بیا خوراك كول حرام یا مکروه دی

① که چرې مجبوری اوضرورت وی نو په جمات کښې خوراك څښاك جائز دې

② څوك مسافر دې دَهغه څه ځائی وغيره نشته دې

③ دینی طالبان دی یا دَ محلې یوسړې دې خو په کورکښې ئی ځائی تنګ دې اوهغه مجرد دې یعنی ناواده کړې دې

④ څوك معتكف دې نودَدې خلقودَپاره په جمات کښې خوراك كول جائزدی

**[۴۲۴] په غابښونو سره د غوښې د شوکولو حکم**

۴۲۴ـــ[۵۱] () ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ بِلَحْمٍ، ۳ فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ ۴ وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ، ۵ فَنَهَسَ مِنْهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷜ وايي ۲ چې [يوه ورځ] د رسول الله ﷺ په خدمت کې پخه یا وریته شوی غوښه راوړل شوه. ۳ د هغې نه حضور ﷺ ته د لیچی غوښه ورکړې شوه. ۴ خکه چې د لیچی (لاس) غوښه يي ډیره خوښه وه. ۵ حضور ﷺ د هغې نه په غابښونو سره شوکولو شوکولو سره وخوړله. (ترمذی ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الذِّرَاعُ: لاس (د چیلۍ دمخکښنې خپې د پتون غوښه مراد ده) ② فَنَهَسَ: په غابښونوسره ئي رابنکل او وي خوړل

تسهيلات:

**قوله: فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ، فَنَهَسَ مِنْهَا**

**د رسول الله صلی الله علیه وسلم خوښه غوښه:** رسول الله ﷺ دَ دې باوجود چه دَ مختلفو ځایونو غوښه خوړلې ده لکه څنګه چه دَ وړاندینی روایت نه هم معلومیږی خودَ روایت الباب نه معلومه شوه چه دَ رسول الله ﷺ دَ ټولو نه خوښه غوښه دَ مټ وه ځکه چه په دې کښې مختلف حکمتونه او مصالح وی

() اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب ﴿ذرية من حملنا مع نوح إنه كان عبدا شكورا﴾ [الإسراء: ۳] (رقم-۴۷۱۲) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب أدنى أهل الجنة منزلة فيها (رقم-۳۲۷ - (۱۹۴)) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في أي اللحم كان أحب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۸۳۷) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة/باب أطايب اللحم (رقم-۳۳۰۷)

**دَ متې دَ غوښې د خوښولو وجوهات:** ① دَ متې غوښه زر پخيږي او هغه ثقيل يعنی درنه نه وی په دې وجه هضميږی هم کومه چه دَ صحت دَ پاره ډيره مفيده ده اودَ کوم په وجه چه په طبيعت کښې تازه والی او آرام پيدا کيدو سره دَ طاعاتو او عباداتو ډيره موقع ملاويږی
② دا غوښه ډيره ښانسته مزيداره اوښکلې خوندوالا وی رسول الله ﷺ ته به دَ غوښې خوړلو موقع کله ناکله چرته ملاويدله نوچه کله به هم ملاو شوه نوهغه به زر پخه شوه او مخې ته به کړې شوه په دې وجه طبعًا به ئې دَ دې طرف ته رغبت کيدلو
③ دَ دې په خوراک کښې تواضع هم ده ځکه چه دا دَ اعضاء رئيسه نه نه دې اودَ نجاست دَ مواقع نه هم لرې دې دَ دې وجوهاتو په وجه دَ رسول الله ﷺ دَ متې غوښه خوښه وه

## [۴۲۱۵] په چاړې سره د غوښې کټ کول او خوړل

۴۲۱۵–[۵۲] (¹)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تَقْطَعُوا اللَّحْمَ بِالسِّكِّينِ؛[۳] فَإِنَّهُ مِنْ صُنْعِ الْأَعَاجِمِ،[۴] وَانْهَسُوهُ[۵] فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ» ".[۶] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" وَقَالَا: لَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه:**[۱] او بي بي عائشه رضی الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] په چاړې سره غوښه مه پريکوئ. [يعنی په چاړه کټ کولو کټ کولو سره يې مه خورئ][۳] ځکه چې دا د عجميانو طريقه ده.[۴] بلکه غوښه په غاښونو سره شوکولو شوکولو سره خورئ.[۵] ځکه چې غاښونو سره شوکولو سره خوړل زيات لذت ورکونکې او زيات خوش ګوار دي.[۶] دا روايت ابوداؤد رحمه الله او بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړې دي، او دواړو ويلي دي چې دا حديث د سند په اعتبار سره قوي نه دي [بلکه ضعيف دي]

**حل اللغات:** ① صُنْعِ الْأَعَاجِمِ: د عجمی خلقو طريقه، ② انْهَسُوهُ: په غاښونو ئې شوکوئ. ③ أَهْنَأُ: آسان. خوشګوار. ④ وَأَمْرَأُ: خوند کونکې، مزيدار.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث سره متعلقه تشريح دحديث نمبر (۴۱۸۱) په وضاحت کښې تيره شوې ده.

## [۴۲۱۶] په بيماری کښې د پرهيز اهميت

۴۲۱۶–[۵۳] (²)[۱] وَعَنْ أُمِّ الْمُنْذِرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَعَهُ عَلِيٌّ،[۳] وَلَنَا دَوَالٍ مُعَلَّقَةٌ،[۴] فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْكُلُ وَعَلِيٌّ مَعَهُ يَأْكُلُ،[۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِعَلِيٍّ: [۶] "مَهْ يَا عَلِيُّ، فَإِنَّكَ نَاقِهٌ"،[۷] قَالَتْ: فَجَعَلْتُ لَهُمْ سِلْقًا وَشَعِيرًا،[۸]

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة /باب في أكل اللحم (رقم-۳۷۷۸)
²) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب /باب في الحمية (رقم-۳۸۵۶) والترمذي في كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في الحمية (رقم-۲۰۳۷) وابن ماجه في كتاب الأطعمة /باب الخبز الملبق بالسمن (رقم-۳۴۴۲)

فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ! مِنْ هَذَا فَأَصِبْ ;[۹] فَإِنَّهُ أَوْفَقُ لَكَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام منذر انصاريه ﷞ وايي [۲] چې [يوه ورځ] رسول الله ﷺ مونږ كره تشريف راوړو، حضرت علي هم ورسره وو، [۳] هغه وخت زمونږ په كور كې د كجورو وږي زوړند وو، [۴] رسول الله ﷺ د هغې نه خوړل شروع كړل، او حضرت علي هم ورسره خوړل، [۵] رسول الله ﷺ حضرت علي ته وفرمايل [٦] چې اي علي! ته د دې كجورو د خوړلو نه پرهيز وكړه، ځكه چې تاته كمزوري رسيدلي ده، [يعني ته اوس اوس د بيمارى نه راپورته شوى يې، او په تا د ضعف اثر غالب دي، ځكه ستا د پاره پرهيز ضروري دي] [۷] بي بي ام منذر ﷞ وايي چې ما د حضور ﷺ او د هغه د ملګرو د پاره چقندر او وربشي تياري كړي وى، [۸] نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې اي علي! ته د دې نه خوره، [۹] ځكه چې دا ستا د پاره ډير مفيد او موافق دي. (احمد ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① دَوَالٍ: دَدې مفرددالية دې دَ كهجورو كچه او نيم پخته غونچې، ② مَهْ: مه خوره. مه كوه ③ نَاقِهٌ: كمزورى، ④ سِلْقًا: چقندر

**تسهيلات:**

**قوله: فَجَعَلْتُ لَهُمْ سِلْقًا وَشَعِيرًا:**

دچقندرو خواص سلقاً په كسري سره معنى ئې چقندر ده دا دَ يوقسم وبنو جرړه ده مشهوره تركارى ده زمونږ په ملک پاکستان كښې ترې په وافرمقدار سره چينى هم جوړيږى.
داخوړ وى د پيچس او دَ قولنج درد پيداكوى. دَدې مصلح غوښه اومسور دى جلا پيدا كوى دَ پړسوب او بادو دَ پاره محلل دې دَ طبيعت دَ پاره ملين، بلغمى ماده پخه وى نفخ پيدا كوى قليل الغذاء دې پوخ شوې محرک باه دې دَ ګردې درد ګهټيا او رږج دَ پاره نافع دې.

**قوله: فَإِنَّهُ أَوْفَقُ لَكَ:**

**د موافقت وجه:** يعنى دا سبزى (چقندر) ستادَ پاره زيات مناسب دى دااستعمالوه. ته اوسه پورې بيمارۍ او صحت ياب شوې كمزورى باقى ده او كهجور ثقيل دى ممكن دى چه هغه نقصانى ثابت شى.

**په بيمارۍ كښې د پرهيزكولومسئوليت:** د روايت نه معلومه شوه چه حضورپاک دَ پرهيزپه توګه دَ كهجورو استعمال منع فرمائيلي دې او دَ چقندردَ خوړلو حكم ئى كړې دې نوپرهيزكول ثابت شو اوهم دَ دې مقصد دَ پاره امام ترمذى ترجمة الباب قايم كړې دې.

[۴۲۱۷] د نبي عليه السلام د كټولی لاندینی ترکاری خوښول

۴۲۱۷-[۵۴] (¹) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعْجِبُهُ الثُّفْلُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [۲] چې د حضور صلی الله علیه وسلم كويلې (د ديګ په ويخ كې پاتې طعام) ډيرخوښ وو (ترمذي بيهقي)

**حل اللغات:** (۱) يُعْجِبُهُ: خوښ ني وو، (۲) الثُّفْلُ: دكټوئ په ويخ كښې پاتې شوې طعام.

**تسهيلات:** **قوله:** يُعْجِبُهُ الثُّفْلُ:

**د ثفل خوښولو وجه:** په اصل كښې ،،ثفل،، دَ كټوئى په بيخ كښې دَ لګيدلې ځيزنوم دې كوم ته چه ته ډيګى هم وائى په هغې كښې دَ سوزيدو معمولى شان اثر هم وى دا مزيدار وى اوددې په خوراك كښې تواضع اوانكسارى هم ده. كبرژن خلق دې ته لاس نه لګوى اودا ته ډيګى زيات دَ روژو پخولوكښې كيږى.

[۴۲۱۸] د خوراک نه پس پيالي او پليټ صفا كول د مغفرت او بخشش ذريعه ده

۴۲۱۸-[۵۵] (²) [۱] وَعَنْ نُبَيْشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "مَنْ أَكَلَ فِي قَصْعَةٍ فَلَحِسَهَا [۳] اسْتَغْفَرَتْ لَهُ الْقَصْعَةُ". [۴] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نبيشه رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت كوي [۲] چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل كوم سړي چې د پيالۍ [يا غاب نه] وخوري او بيا هغه په ګوتو سره وڅټي، [۳] نو هغه پيالۍ د هغه د پاره استغفار كوي، [۴] (احمد، ترمذي، ابن ماجه، دارمي) او ترمذي رحمه الله ويلي دي دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** (۱) قَصْعَةٍ: كاسه، (۲) فَلَحِسَهَا: په ګوتوسره ئى لوښې اوڅټلو او لوښې ئى صفا كړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَكَلَ فِي قَصْعَةٍ فَلَحِسَهَا:

**دخوراک نه روسته دلوښي څټل:** په كسر ي دَ حاء دَ سمع يسمع نه دَ كوم معنى چه څټل دى دلته مراد پياله څټل اوصفا كول د ی. په دې روايت كښې حبيب پاک عليه الصلوة و السلام دَ خوراک دَ لوښى متعلق يو اهم خبره خودلې ده چه كوم سړې خوراک اوكړى اولوښې بنه صفا كوى نوهغه لوښې دَهغه دَ پاره دَمغفرت دعاكوى.

¹) اخرجه احمدفى المسند: ۳/۲۲۰

²) اخرجه الترمذى فى كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى اللقمة تسقط (رقم-۱۸۰٤) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب تنقية الصحفة (رقم-۳۲۷۱)

**قوله: اسْتَغْفَرَتْ لَهُ الْقَصْعَةُ:**

**په کاسې په استغفار وئیلو کښې دوه اقوال:** ① د کاسې استغفار په حقیقت باندې محمول دی خکه چه داخبره ثابته ده چه هرځیز د الله تعالی تسبیح بیانوی کما قال تعالی ﴿وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا﴾ علامه عینی رحمه الله فرمائی ممکن دی چه الله تعالی په پیاله کښې داسې تمیز او نطق پیداکړی په کوم سره چه دا دَخپلې صفائی کونکی دَ پاره مغفرت غواړی بل په بعضې آثار کښې وارد شوی دی چه پیاله وائی أجرك الله كما أجرتني من الشيطان

② دَ استغفار نسبت قصعه طرف ته مجازی وی علامه توربشتی رحمه الله اوملاعلی قاری فرمائی دَ پیالئی څټل دَ تواضع علامت او دَ مغفرت سبب دې نو په دې وجه چه کوم سړې متواضع وی هغه به دَ کبر نه لرې وی اودَالله تعالی په نیز به مغفور وی لهذا لحس قصعه د دَه دَ مغفرت سبب دې

**[۳۳] د خوب څخه وړاندې د لاس دغوړوالی صفا کولوترغیب**

۴۲۳۰–[۵۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ بَاتَ وَفِي يَدِهِ غَمَرٌ لَمْ يَغْسِلْهُ [۳] فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] کوم سړې چې په داسې حالت کې شپه تیره کړي، چې د هغه په لاس غوړوالي وي. [۳] چې ا د خوراك نه پس ا هغه نه وي وینځلي. [۴] او بیا هغه ته یو ضرر ورسیږي. (یعنی ضرر رسونکي حیوان چې د خوراك بوی یا غوړوالي ته راځي، او هغه ورته ضرر ورسوي) نو هغه دي خپل ځان پخپله ملامت کړي. اځکه چې غوړ لاس سره اوده کیدل. هغه د دې ضرر سبب پخپله جوړ شوي دي) ترمذي. ابوداؤد. ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① بَاتَ: شپه تیره کړی. ② غَمَرٌ: غوړ والي. ③ فَلَا يَلُومَنَّ: نو نه دي ملامته کوی

**تسهیلات**

**قوله: وَفِي يَدِهِ غَمَرٌ لَمْ يَغْسِلْهُ**

**د خوب څخه وړاندې د لاسونو د وینځلو فائده:** رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې روایت کښې دَخوراک کولو يوبل ادب بیان اوفرمائیلو چه دَ خوراک کولونه پس د اوده کیدونه وړاندې لاسونه وینځل پکاردی خکه چه په لاسونوپورې دَ خوراک بونی غوړوالې وغیره لګیدلې وی په کوم سره

---

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة باب فی غسل الید من الطعام (رقم ۳۸۵۲) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب ما جاء فی کراهیة البیتوتة وفی یده ریح غمر (رقم-۱۸۶۰) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة باب من بات وفی یده ریح غمر (رقم-۳۲۹۷)

چه دَ موذي ځناور دَ چیچلوخطره وي

**وبدن پاک ساتلو اهتمام**: دَ آداب معاشرت تقاضا هم دغه ده چه لاسونه اووینځلي شي او خله پاکه کړي ځکه چه خلقو سره به ملاقات په وخت کښې مصافحه او ناسته پاسته وغیره کیږي نوچه کله دَ لاس اوخلې نه بوئ راځي نوخلقوته به تکلیف وي بل دَ پاکوالي او طهارت تقاضا هم دغه ده

**دلاس نه وینځلوکښې د برګي خطره**: په طبي لحاظ سره هم خله اولاس وینځل پکار دي چنانچه بعض روایاتوکښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه دَ لاس نه وینځلو په صورت کښې دَ برص یعني برګي مرض اندیښنه ده دا روایت امام طبراني دَ ابوسعید خدري رضي الله عنه نه نقل کړې دې دکوم الفاظ چه دا دي من بات وفي يده ريح غمر فأصابه وضح أي برص الخ (الحديث)

**قوله**: فَأَصَابَهُ شَيْءٌ:

**د شي په مصداق کښې اقوال**: ① دځیز ځخه مراد ضرري ځناور دې یعني که دې د لاس وینځلوځخه بغیراوده شي نو کیدې شي چې موذي ځناور به ئي لاس اوچیچي

② دځیزځخه پیریان مراد دي ځکه چې په روایت کښې شیطان ته حساس لحاس وئیلې شوې دې نودا په حقیقت باندې محمول دي یا مطلب دادې چه هغه موذي ځناور په چیچلو راپاره کوي

**قوله**: فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ:

**دځپل ځان ملامته کولو وجه**: ځکه چه کله هغه لاس اونه وینځلو اوچرته ځناور هغه اوچیچلو نودا کوتاهي هم دَ هغه پخپله ده په دې وجه دې هغه ځپل ځان پخپله ملامته کړي

**[۴۲۲۰] ثرید د نبی کریم ﷺ دیر خوښ وو**

٤٢٢٠ــ[٥٧] (¹) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «كَانَ أَحَبَّ الطَّعَامِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الثَّرِيدُ مِنَ الْخُبْزِ، وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [٢] چه د رسول الله ﷺ د روټئ ثرید او د حیس ثرید د ټولو نه زیات خوښ وو (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① الثَّرِيدُ: په خوروا کښې ماته کړې روټئ، ② الْحَيْسِ: چوارې، غوړي او پنیر نه پخ کړې حلوا.

**تسهیلات**:

**قوله**: الثَّرِيدُ مِنَ الْخُبْزِ، وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ:

**د ثرید دوه قسمونه**: ① دَ روټئ اوخوروا ثرید دې د دې طریقه دا ده چې دَ روټئ ټکړې په

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب في أكل الثريد (رقم-٣٧٨٣)

خوروا کښې ماته کړی او ثرید جوړ کړی او بیا ئې اوخوری
④ دحیس په نوم ثرید وی دا هغه خوراك ته وائی په کوم کښې چې چوارې غوړی او پنیر وغیره ملاؤ کړی دیوخائی کولو په شان ئې جوړه کړی

**د ثرید د خوبنولو وجوهات:**

① نبی ﷺ دا خکه خولوچې دواړه زر هضمیدونکی مزیدار اود کمې خرچې والا دی
② ما شاه فیصل په کور کښې دا د خوروا ثرید خوړلوڅخه روسته دا خبره اوکړه چې ماته شوې روټی یعنی کښې خوند زیات وی خکه به نبی کریم ﷺ دا خوښوله نود ژوند ملګرې راته دا خبره هم اوکړه چې کله زه ثرید یعنی ماته شوې روټی اوخورم نو زر مړیږم ددې څخه دا هم معلومه شوه چې په دې کښې طاقت زیات وی تاسو به کتلی وی چې طاقت واله څیز سړې زیات نشی خوړې بلکه زر مړیږی.د سیب په خوراک سره د ګېډ د غوښې په خوراک سره مړیدل زر کیږی.

**[۳۳۳]د زیتون فضیلت**

۳۳۳—[۵۸] ()① وَعَنْ أَبِي أَسِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-② «كُلُوا الزَّيْتَ وَادَّهِنُوا بِهِ، ③ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① وحضرت ابو اسید انصاري رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② روغن زیتون خورئ، او بدن پرې مالش کوئ، ③ خکه چې دا د یوې برکت ناکې ونې (زیتون) تیل دي (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ① الزَّيْتَ: زیتون خوړلې هم شی او په بدن باندې دډې د تیلو مالش هم کولې شی

**تسهیلات:**

**قوله: كُلُوا الزَّيْتَ وَادَّهِنُوا بِهِ، فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ:**

**د زیتون د ونې برکت:** الزیت د دې معنی روغن زیتون د زیتون ونه تر زرو کالوپورې وی دې ته په قرآن کریم اواحادیثو کښې مبارکه ونه ونیلې شوې ده د الله تعالی ارشاد دې ﴿يُوقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ [سورة نور: ۳۵] په حدیث کښې هم دې آیت طرف ته اشاره ده خکه چه دا ډیر منافع لرې اوالله تعالی دا په داسې زمکه باندې پیداکړې ده په کومه کښې چه الله تعالی د ټول عالم د پاره برکت ایخودې دې یعنی د شام ملک خکه چه هلته لوئ لوئ پیغمبران علیهم السلام مثلاً ابراهیم علیه السلام غوندې حضرات مبعوث شوی دی اوهغوی د دې ونې څخه فائده اخستې ده

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أكل الزيت (رقم-۱۸۵۲) واحمد فی المسند:۳/۴۹۷

**دَزيتون دَ استعمال ترغيب ورکولووجه:** رسول الله ﷺ د روټئي سره د خوړلو او په بدن باندې دَ استعمالولو ترغيب دَ دې دَ پاره ورکړو چه دا دَ برکتی کیدو سره سره ډیر مزیدار تیل هم دی په بدن کښې طاقت او خوشبوپیداکوی بل دې سره په بدن کښې غوړوالې پیداکیږی او دَ ډیرو بیمارو دَ پاره شافی دی کلوالزیت دې نه مراد روټئي سره خوړل دی ادهنوا به ماخوذ من الادهان صیغه دَ امر ده دَ کوم معنی چه استعمال دهن دې یعنی دا استعمالونی هم

**د زیتون خواص:** ① حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی په زیتون کښې ډیرې فائدې دی دَ دې تیل په چراغونوکښې بلولې شی

② دادَ ترکارئی په ځای کارورکوی

③ دَ دې تیل په بدن باندې مږلې شی

④ دَ دباغت په کارکښې هم دا په کارراوستلې شی

⑤ دَ دې لرګی او پوستکی هم سوزولې شی.

په زیتون کښې یوداسې څیز نشته چې په کاربه نه راځی تردې چه دَ دې په ایرې سره ریښم وینځلې شی

⑥ په دنیاکښې دَ ټولونه ړومبې راټوکیدلې ده

⑦ دَ طوفان نوح نه پس په دنیاکښې دا ونه دَ ټولونه اول په وجود کښې راغلې ده

⑧ دَ انبیاء علیهم السلام په منازل او مقدس زمکوکښې دا په کثرت سره راټوکیږی

⑨ اویا پیغمبرانو علیهم السلام دَ دې پاره دعاکړې ده تردې چه حضرت ابراهیم علیه السلام اونبی کریم ﷺ هم دَ دې دَ پاره دعاکړې ده. رسول الله ﷺ فرمائیلی دی اللهم بارك في الزيت والزيتون

⑩ دا د میوه یعنی دَتفکه په توګه خوړلې شی

⑪ دا داسې تیل دی چه دَ دې دَ ویستلودَ پاره دَ مشین یا څرخئ وغیره ضرورت نه وی بخپله دَ دې د میوې نه راوځی

⑫ زیتون په بدن کښې ګرمی پیداکوی

⑬ زیتون متیازې راولی کانړې ماتوی او راؤباسی ئ

⑭ زیتون دَ خُلې د اوری اونورو اندامونه مضبوطوی

⑮ زیتون خوله جاری کوی کوم چه دَ بدن دَ پاره مفید دی

## [۳۳۳۳] د سرکې فضیلت

۳۳۳۳-[۵۹] (۱) ① وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② «دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَقَالَ: "أَعِنْدَكِ شَيْءٌ؟" ④ قُلْتُ: لَا، إِلَّا خُبْزٌ يَابِسٌ وَخَلٌّ. ⑤ فَقَالَ: "هَاتِي ⑥ "مَا أَقْفَرَ بَيْتٌ مِنْ أُدْمٍ فِيهِ خَلٌّ» ". ⑦ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او بي بي ام هاني ﷞ (د ابو طالب لور او د حضرت علي خور) وايي ② چې ایوه ورځ نبي کریم ﷺ زما کور ته تشریف راوړو، ③ حضور ﷺ زما نه پوښتنه وکړه چه د خوراك د پاره تا سره څه شته؟ ④ ما اوویل د وچې روټې او سرکې نه علاوه نور هیڅ نشته. ⑤ حضور ﷺ وفرمایل چې هغه راوړه، ⑥ هغه کور د سالن نه خالي نه دي چې په هغې کې سرکه وي. ⑦ امام ترمذي ﷫ دا روایت نقل کړي دي او ویلي يې دی چې دا حدیث حسن غریب دي

**حل اللغات:** ① مَا أَقْفَرَ: محتاجه نه دی ② أُدْمٍ: سالن، ③ خَلٌّ: سرکه

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَقْفَرَ بَيْتٌ مِنْ أُدْمٍ فِيهِ خَلٌّ:

**د ما اقفر لغوی تحقیق:** قفار هغه زمکې ته هم وائی چه خالي وی اوپه هغې کښې واښه او اوبه وغیره نه وی فیه خل دا دَ بیت صفت دي اومعنی ده اي ماخلامن الادام ولاعدم اهله الادام

**لفظی اشکال:** دلته یو لفظی اشکال دادې چه لفظ بیت موصوف دې اوفیه خل صفت دې حالانکه دَموصوف اوصفت په مینځ کښې من ادم دِ اجنبی فصل راغلي دي کوم چه ناجائز دې

**داشکال درې جوابونه:**

① ملاعلی قاری فرمائی چه ممکن دی چه دا اوونیلې شی چه فیه خل حال دې صفت نه دې

② دَموصوف او صفت په مینځ کښې فصل جائز دې.

③ حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه من اُدم په هراعتبارسره اجنبی نه دې ځکه چه څنګه اقفر په بیت کښې عامل دې دغه شان دَ دې په صفت کښې هم عامل دې اودَ دې په منیځ کښې په من ادم کښې هم عامل دې نودَ اقفر دریواړه معمول دی نوهغه اجنبی پاتې نه شو

**د حدیث فوائد:** ① رشته دارانواو دوستانوکره تلل راتلل پکار دی

② رشته دارانواو دوستانو ته بې تکلفه دَضرورت اظهار کول معلوم شو کوم چه جائز امر دې

③ رشته دارانواو دوستانو له پکاردی چه کوم څیز حاضر وی بې تکلف میلمه په اجازت وراندې دي پیش کړې

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخل (رقم-۱۸٤۱)

④ سرکه د ترکاری قائم مقام ده
⑤ په کوم کور کښې سرکه وی نو هغې ته به دانه شی وئیلې چه دغه کور دَ سالن نه خالی دې
**نوټ:** د سرکې سره متعلق مزید بحث د حدیث نمبر (۴۱۸۳) په شرح کښې تیرشوې دې.

**[۴۲۲۳] قجورې د ترکارۍ په ځائې**

۴۲۲۳-[۶۰] (¹) ① وَعَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَخَذَ كِسْرَةً مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ، ③ فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً، فَقَالَ: ④ "هَذِهِ إِدَامُ هَذِهِ" وَأَكَلَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت یوسف بن عبد الله ابن سلام ﷺ وایي ② چی (یوه ورځ) نبي کریم ﷺ د وربشو د روټۍ یوه ټکړه واخسته ③ او په هغې یې کجوره ایخودلو سره وفرمایل ④ چې دا کجوره د دې روټۍ د ټکړې سالن دې، اوهغه ئې اوخوړله (ابوداؤد)
**حل اللغات:** ① كِسْرَةً: ټکړه، حصه.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَخَذَ كِسْرَةً مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ، فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً

**دنبی علیه السلام کفایت شعاری:** ددې حدیث څخه معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ په دنیا کښې د زهد اوغریبۍ ژوند تیر کړې دې چې څه به هم ورته ملاؤ شو په هغې به ئې شکر ویستلو، اوپه خپل عمل سره ئې خپل امت ته هم د کفایت شعارۍ تعلیم ورکړو چې تاسو ته په هر وخت کښې دالله تعالی څخه راضی اوسیدل پکار دی په تنعم اودنیاوی لذاتو کښې مه مشغوله کیږئ.

**[۴۲۲۴] د غیر مسلم داکټر څخه دعلاج کولو جواز**

۴۲۲۴-[۶۱] (²) ① وَعَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «مَرِضْتُ مَرَضًا أَتَانِي النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَعُودُنِي، ③ فَوَضَعَ يَدَهُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ ④ حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَهَا عَلَى فُؤَادِي، ⑤ وَقَالَ: "إِنَّكَ رَجُلٌ مَفْئُودٌ، ⑥ ائْتِ الْحَارِثَ بْنَ كَلَدَةَ أَخَا ثَقِيفٍ، ⑦ فَإِنَّهُ رَجُلٌ يَتَطَبَّبُ، ⑧ فَلْيَأْخُذْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ مِنْ عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ، ⑨ فَلْيَجَأْهُنَّ بِنَوَاهُنَّ، ⑩ ثُمَّ لِيَلُدَّكَ بِهِنَّ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت سعد ﷺ وایي ② چی یو ځل زه ډیر سخت بیمار شوم، نو نبي کریم ﷺ زما پوښتنې ته تشریف راوړو. ③ حضور ﷺ [هغه وخت] زما د دواړو تینو په منځ کې (یعني په سینه) خپل لاس مبارك کیخودو. ④ چې د هغې یخوالي ما په خپل زړه کې محسوس کړو. ⑤ بیا حضور ﷺ وفرمایل چی ته یو داسې سړې یې چې د زړه په درد کې

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی التمر (رقم-۳۸۳۰)
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب /باب فی تمرة العجوة (رقم-۳۸۷۵)

مبتلا یي ایعني ته د زړه مریض یي![٦] نو ته حارث بن کلده ته ورشه، چې د قبیلۀ ثقیف سره تعلق لري،[٧] ځکه چې هغه سړي طب (علاج او معالجه کول) پیژني،[٨] هغه ته پکار دي، چې هغه د مدینې د ټولونه اعلی قسم عجوه کجورو نه اووه کجورې واخلي،[٩] بیا هغه د هډوکو سره وټکوي [١٠] او د دې نه پس هغه (د دوا په صورت کې) ستا په خُله کې واچوی (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مَفْئُودٌ: دادَ فؤادنه دې دَ زړه مریض ته وائی. لکه چه نبی کریم صحیح تشخیص اوکړلو چه ته دَ زړه مریض نې ② يَتَطَبَّبُ: هغه دَ طبابت په کارکښې ماهر دی ③ فَلْيَجَأْهُنَّ: وجأ دَ بوجاء نه دې ماتولواو ټکولو په معنی کښې دي ④ بِنَوَاهُنَّ: دَ نواة جمع ده دکهجورې هډوکی ته وائی ⑤ لِيَلُدَّكَ: دَنصر ينصرنه لدوداً هغه دوائی ته وئیلې شی چه دَ په خلې په ذریعه په مریض باندې خوړلې شی

**تسهیلات:**

**قوله:** الْحَارِثُ بْنُ كَلَدَةَ:

**د حارث تعارف:** دادَ عربو مشهور حکیم وودَ کوم تعلق چه بنوثقیف سره وو.

**قوله:** فَإِنَّهُ رَجُلٌ يَتَطَبَّبُ:

**د غیرمسلم ډاکټر څخه د علاج حکم:** دَدې حدیث نه دا معلومه شوه چه دَ غیرمسلم حکیم اوډاکټر نه علاج کول اوهغه له تلل جائزدی. په دې حدیث کښې دَ فليأخذ نه تر آخره پورې دَ غائب ټول ضمائر دَ طبیب طرف ته راګرځی

**قوله:** فَلْيَأْخُذْ سَبْعَ تَمَرَاتٍ مِنْ عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ:

**اشکال:** نبی علیه السلام حضرت سعد رضي الله عنه ته اول دَ حکیم تللومشوره اوکړه اوبیائی پخپله دوائی تجویزکړه او بیائی دَنسخې جوړولوکار حکیم ته حواله کړو داسې ئی ولې اوکړه؟

**د اشکال جواب:** نبی کریم صلی الله علیه وسلم اول حضرت سعد رضي الله عنه ته حکیم له دَتللو مشوره ورکړه لیکن بیا نبی کریم ته دَ نسخې علم اوشوچه دَ زړه دَ بیماردپاره دانسخه آسانه او فائده ورکونکې ده نونبی کریم نسخه ورتجویزکړه، د دې دَ پاره چه حکیم هغه دَ ډیرو زیاتو جررو بوټو په چکر کښې وانه چوی. بیا نبی کریم دَنسخې ترکیب اومعجون جوړولو کار په حکیم باندې پریخودو ځکه چه هغه په دې کښې ماهروو اودَهغه پیشه وه

**تنبیه:** عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ: معلومه شوه چه دَدې نسخې دپاره دَمدینې عجوه ضروری ده.

**په مذکوره نسخه د زړه د مریض علاج:** په اخباراتو ،بعضې کتابونو او فیس بک وغیره کښې د دې نسخې تشهیرهم شوې دې او چا چې دا استعمال کړې ده هغوی د خپلې تجربې په بنیاد ددې نسخې افادیت خودلې دې نو که څوک د زړه بیمار وی هغه دې دا نسخه استعمال کړی انشاء الله د زړه بند رګونه به ئې الله تعالی خلاص کړی

## [۴۲۲۵] خربوزه د کجورو سره خوړل

۴۲۲۵-[۶۲] (¹) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [۳] وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: وَيَقُولُ: [۵] "«يُكْسَرُ حَرُّ هَذَا بِبَرْدِ هَذَا [۶] وَبَرْدُ هَذَا بِحَرِّ هَذَا»". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشه ﷛ نه روایت دی [۲] چې نبي کریم ﷺ به خربوزه د تازه کجورو سره خوړله (ترمذي) [۳] او ابوداؤد ﷬ په دې روایت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي. او حضور ﷺ به دا هم فرمایل [۵] چې د کجوري ګرمي د خربوزې یخوالي ماتوی، [۶] او د خربوزې یخوالې د کجورو ګرمي ماتوی او ترمذي ﷬ ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دی.

**حل اللغات:** ① اَلْبِطِّيخ: تربوز، ② الرُّطَب: تازه کجوره، ③ يُكْسِرُ: ماتوی، ختموی

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ:

**د بطیخ په تفسیر کښې دوه اقوال:** ① معنی د خربوزه، حضرت ګنګوهی ﷫ دا راجح ګرځولې ده اوفرمائی چه کوموخلقو دَ بطیخ تفسیر په تربوز سره کړې دې هغه غلط دې اوکیدې شی چه دَ غلطئی منشاء دا وی چه دَ ابوداؤد په روایت کښې دا اقع شوی دی چه دَ دې په یخوالی سره به دَ کهجورې ګرمی ختمه شی اوتربوز یخ وی نه چه خربوزه حالانکه په روایت کښې دا مراد نه دې نوچه څنګه تربوز یخ وی دغه شان خربوزه هم یخه وی

② دَ ملاعلی قاری میلان په شرح شمائل کښې دادې چه دَ بطیخ نه دلته مراد تربوز دې اودَ نورو شراحو میلان هم دې طرف ته دې. خوحافظ دَ بطیخ تفسیر په خربوزه سره کړې دې لکه څنګه چه دَ ګنګوهی ﷫ رائې ده دَ اهل لغت موافقت هم په دې کښې دې صاحب دَ محیط اعظم هم دَ بطیخ تفسیر په خربوزه سره کړې دې.

**د خربوزې خواص:** ① خربوزه دَ ګردې دَ پاره مصلح دَ متیازو راوستونکې مولدلین دې دَ کانړی دَ پاره نافع

② خربوزه دَ زیړی دَ پاره دافع دې. غوټې کولاووی دَ دې دَ پوستکو لیپ (اوبو وغیره کښې اچول او په مک مږل) دَ مخ ګونجی لرې کوی

③ خربوزه د ګرمی تیزی، صفراء ویني اودَ تندې دَ پاره دَ آرام سبب دې. متیازې راوستونکې دې

---

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة/باب فی الجمع بین لونین فی الأکل (رقم-۳۸۳۶) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أکل البطیخ بالرطب (رقم-۱۸۴۳)

④ دَ ګرمئی دَ تبې دَ پاره نافع دې اودَ دې اوبه دَ ګرم مزاج والادَ پاره نافع دی
⑤ ډیروخت پس هضمیږی په کومه ورځ چه اوریږې اوخورې په هغه ورځ خربوزه مه خوره خکه چه مضر دې.

**دَ خربوزې او لوندې (تازه) کجورې یوځائې خوړلوحکمت:** نبی کریم ﷺ کهجورې او تربوز دواړه یوځائ خوړلی دی. خکه چه دواړه یوځائ کړې شی نوخوږیږی اودَ خربوزې پیکه والې ختمیږی. بل خربوزه یخه اوکهجوره ګرمه وی دَ دواړو ملاوولوسره معتدل شی چه دَ ګرم مزاج دَ پاره مفید دی. امام طبرانی او ابونعیم دَ رسول الله ﷺ کهجوره او خربوزې خوړلو کیفیت دَ حضرت انس رضی الله عنه نه نقل کړې دې چه ما رسول الله ﷺ اوکتلو چه کهجوره او خربوزه ئی په یوځائ کړې اوخوړلې ئی.

**یوه طبی ضابطه:** علامه خطابی فرمائی دې روایت سره دَ طب اوعلاج هم ثبوت کیږی اوداهم معلومه شوه چه دَ مضار څیز مقابله دې دَ هغې په ضد سره اوکړې شی دې دَ پاره چه اعتدال پیداشی. طبیبان حضرات چه کله معجون جوړوی نودَ هغې دَ مفرداتو جدا جدا خواص وی خوچه کله دا یوځائ کړې شی نوهغه دَ یوبل دَ پاره مصلح جوړیږی او یو خاص قسم معجون په اعتدال سره تیار شی کوم چه دَ امراضو دَ پاره ډیر فائده ورکونکې وی. نو لکه چه دَ روایت نه دَ معجون جوړولو ثبوت هم معلوم شو.

**[۳۳۳] د کجورو وغیره څیزونود ننه حصه لټولومسنونیت**

۳۳۳ــ[۱۳] (¹) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «أُتِيَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِتَمْرٍ عَتِيقٍ، [۳] فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ وَيُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي [۲] چې يوه ورځ د نبي کريم ﷺ په خدمت کې پخواني (زړې) کجورې راوړل شوې (چې هغې چينجې کړي وو) [۳] حضور ﷺ به هغه شلولې او د هغې نه به يې چينجې غورځول (ابوداؤد).

**حل اللغات:** ① عَتِيقٍ: زړې کهجورې ② يُفَتِّشُهُ: تفتیش به ئې کولو، لټولې به ئې، ③ السُّوسَ: چینجی (کوم چه په میوو یا سبزیانو کښې کیږی).

**تسهیلات:**

**قوله:** وَيُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ

**د کجورومینځ لټول:** په میووکښې بعضې وخت چینجی کیږی او په خوراك کښې سړی ته پته نه لګی. دَنبی کریم په یو حدیث کښې دی چه "دودالثمرکالثمر" دا دَدې خبرې طرف ته اشاره ده

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة/باب فی تفتیش التمر السوس عند الأکل (رقم-۳۸۳۲) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة/باب تفتیش التمر (رقم-۳۳۳۳)

چه میوه نجس کیږی نه لهذا که چا په غفلت کښې د چینجی سره میوه اوخوړله نو حرج نشته دي

**دچینجی لوړ لو څخه پس دهغې د خوراک جواز:** په زیربحث حدیث کښې دومره خبره ده چه نبی کریم د کهجورونه چینجی صفا کړل او کهجورې ئې استعمال کړې دی دکوم نه چه دَدې قسم کهجورو د استعمال جواز معلومیږی

**[۴۲۲۷] د پنیر (چُسته) د خوراک حلت**

۴۲۲۷–[۶۳] (١) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِجُبْنَةٍ فِي تَبُوكَ، [۳] فَدَعَا بِالسِّكِّينِ، فَسَمَّى وَقَطَعَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي [۲] چې د غزوهٔ تبوك په دوران کې (په يوه موقعه) د نبي کريم ﷺ په خدمت کې د پنير يوه ټکړه راوړل شوه. [۳] نو حضور ﷺ چاړه را وغوښته او په بسم الله ويلو سره يي هغه پريکړله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① جُبْنَةٍ: دَ پنیرټکړې ته وائی په نون باندې شد هم لوستلې شوې دې او بغير د شد نه هم دې

**تسهیلات:**

**قوله:** فَسَمَّى وَقَطَعَ:

**د لرې د پاکوالی دلیل:** علامه مظهر رحمه الله فرمائی چه دا حدیث په دې دلالت کوی چه چسته يعنى اوبښ يا بيزې د بچی لرې پاک دې خکه چه که چرې لرې ناپاک وی نو پنير به هم ناپاک وې او ددې نه بغير پنير نه جوړيږی

**[۴۲۲۸] په څیزونو کښې د اصل په اعتبار سره حلت**

۴۲۲۸–[۶۵] (٢) [۱] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ السَّمْنِ وَالْجُبْنِ وَالْفِرَاءِ، [۳] فَقَالَ: "الْحَلَالُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ فِي كِتَابِهِ، [۴] وَالْحَرَامُ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فِي كِتَابِهِ، [۵] وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَا عَنْهُ» ". [۶] رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَمَوْقُوفٌ عَلَى الْأَصَحِّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سلمان رضی الله عنه وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ نه د غوړو، پنير او پوستين (څرمن) ايا ګور خر (ځنګلي خره) باره کې پوښتنه وشوه (چې دا څيزونه حلال دي که حرام دي؟) [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل چې (د حلت او حرمت په سلسله کې دا اصول په نظر کښې ساتئ) حلال هغه شي دي، کوم چې الله تعالى په خپل کتاب کې حلال ګرځولي دي [يعني

---

١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة /باب أكل الجبن (رقم-۳۸۱۹)

٢) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی لبس الفراء (رقم-۱۷۲۶) وابن ماجه فی كتاب الأشربة /باب النهی عن الخليطين (رقم-۳۳۹۷)

د هغه حلال کیدل په قرآن کریم کی بیان شوي وي[۴] او حرام هغه شي دي چې الله تعالی په خپل کتاب کې حرام کړي دي.[۵] او د کوم څیز نه یې چې سکوت (خاموشي) فرمایلي ده ایعني کوم څیز یې چې نه حلال فرمایلي دي او نه حرام) هغه د دې قسم نه دي چې معاف شوي دي. (یعنی د هغې استعمالول یې مباح کړي دي)[۶] دا روایت ابن ماجه رحمه الله او ترمذي رحمه الله نقل کړي دي، او ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث غریب دی. لیکن زیاته صحیح خبره دا ده چې دا حدیث موقوف دي

**حل اللغات:** ① السَّمْن: غوړی. ② الْجُبْن: پنیر. ③ الْفِرَاء: ځنګلی خر. یا څرمن

**تسهیلات: قوله:** الْفِرَاءِ:

**د فراء په مصداق کښې دوه اقوال:** ① بعضې شارحینو الفراء دَ فرو جمع ګرځولې ده کوم چه: پوستین په معنی کښې دې. په دې صورت کښې سوال ځکه اوکړې شو چه دَ څرمن نه به کافرانو پوستین تیارولو نوکیدې شي چه دَمردارې څرمن وي

② عامو شارحینو لیکلی دی چه الفراء دَ فاء په کسرې اومد سره جمع دې اوالفراء دَ ف. فتحې سره مفرد دې. ځنګلی خر حمار وحشی زیبرا ته وائی دَدې دَ حلال اوحرام کیدو په کښې دَ سوال ضرورت وو.

**قوله:** وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَا عَنْهُ:

**په څیزونو کښې د اباحت اصلیت:** نبی کریم صحابه دَ زیاتو سوالونو کولو او تجسس اولتیون نه منع کولو سره اوفرمائیل دَ حرام څیزونو اوحلال څیزونو تذکره په قرآن اوحدیث کښې راغلې ده لکه چه ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [سورة الحشر: ۶] اودکومو څیزونو نه چه قرآن اوحدیث خاموش دې هغه مباح دی. دَدې حدیث نه فقهاؤ دا ضابطه راویستې ده چه په څیزونوکښې اصل اباحت دې دَ حرمت او دَحلت حکم ثانوی امر دې

**[۴۲۲۹] د سره د خوراک خواهش کولو جواز**

۴۲۲۹-(۲۶)([۱]) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «وَدِدْتُ أَنَّ عِنْدِي خُبْزَةً بَيْضَاءَ سَمْرَاءَ[۳] مُلَبَّقَةً بِسَمْنٍ وَلَبَنٍ" [۴] فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَاتَّخَذَهُ، فَجَاءَ بِهِ[۵] فَقَالَ: "فِي أَيِّ شَيْءٍ كَانَ هٰذَا؟" [۶] قَالَ: فِي عُكَّةِ ضَبٍّ.[۷] قَالَ: "ارْفَعْهُ». [۸] رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ أَبُودَاوُدَ: هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې (یوه ورځ) نبي کریم ﷺ (په مجلس کې) وفرمایل [۲] زه خوښوم چې زما په مخې ته سپین رنګ د غنمو روټی وي.[۳] چې هغه په غوړو او شودو کې لونده شوي وي [۴] (په دې اوریدو سره) د جماعت نه یو سړي پاڅیدو، او

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة/باب فی الجمع بین لونین من الطعام (رقم-۳۸۱۸) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة/باب الخبز الملبق بالسمن (رقم-۳۳۴۱)

لاړلو او مذکوره روټۍ يې تيارولو سره راوړله. [۵] حضور ﷺ د هغه په ليدو سره وفرمايل چې دا روټۍ چې غوړي ورته لګيدلي دي، په کوم لوښي کې وو؟ [۶] هغه اوويل چې د سمساري د څرمن په کپي کې وو. [۷] حضور ﷺ وفرمايل چې زه دا نه خورم. دا زما د مخې نه لرې کړه [۸] ابوداؤد ابن ماجه، او ابوداؤد رحمه الله ويلي دي چې دا حديث منکر دی

**حل اللغات:** ① وَدِدْتُ: خوښوم ② خُبْزَةٌ بَيْضَاءُ: سپينه روټۍ. ③ سَمْرَاءُ: غنم. ④ مُلَبَّقَةٌ: د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده ګډ وډکول او نرم جوړول. ⑤ سَمْنٌ: غوړي. ⑥ عُكَّةٌ: دڅرمن کوپۍ، لوښي. ⑦ ضَبٌّ: سمساره.

**تسهيلات: قوله: خُبْزَةٌ بَيْضَاءُ**

**د خبزه بيضاء معنى:** يعنی د سرو غنمو سپينه روټۍ وی په پينواو غوړو کښې خوشته وی د نه سرو غنمو اوړه سپين وی خلق نن صبا په اشتهارونوکښې ليکی د سرو په شان غنم او د چندنی په شان اوړه

**قوله: قَالَ: "ارْفَعْهُ:**

**دحديث مفهوم:** سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ يو ورځ دا خواهش ښکاره کړو چه که ما سره د سپينو اوريشو ډوډئ وې په پيواو غوړو کښې ګډه شوې نو څومره به ښه وې. په دې باندې يو صحابی رضي الله عنه اودريدلو او هم د دې قسم يو ډوډئ ئې راوړله رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا کوم غوړی چه په دې پورې دی دا په څه کښې وو؟ (قال فی عكة ضب) هغه جواب ورکړو چه د ضب په څرمن کښې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا ډوډئ زما د مخې نه اوچته کړئ او هغه ئې نه او نه خوړله

**د سمسرې حرمت:** په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقرير نه نقل کړې دی چه د دې حديث نه د سمسارې عدم جواز په فهم کښې راځی ځکه چه که هغه حلال وې نو رسول الله ﷺ به د هغه خوراک د خوړلو نه انکار نه کولو او که څوک داسې اوائی د شوافعو د طرف نه چه هغوی داسې د طبعی تنفر د وجهې اوکړل نه د عدم حل د ضب د وجهې نو د هغه جواب دا دې چه دا توجيه صحيح نه ده ځکه چه د ضب د څرمنې هيڅ اثر په غوړو کښې نه وو (والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری)

**[۴۲۳۰] د کچه اوږې د خوړلو ممانعت**

۴۲۳۰ - [۶۷] (۱) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ أَكْلِ الثُّومِ [۳] إِلَّا مَطْبُوخًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأطعمة/باب فی أكل الثوم (رقم-۳۸۲۸) والترمذی فی كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أنس بن مالک رضی الله عنه (رقم-۳۸۲۸)

**ترجمه:** [۱] او د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دي [۲] چې رسول الله ﷺ د اوږي د خوړلو نه منع وفرمايله، [۳] خو هغه وخت جائز ده چې پخه شوي وي. (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الثُّومِ: اوږه

**تسهيلات:** **قوله:** عَنْ أَكْلِ الثُّومِ إِلَّا مَطْبُوخًا:

## داوږي (لهسن) د خوراک په حکم کښې مذاهب:

① علامه عيني دَ ظاهريه نه دَدې سبزيانو مطلقًا حرمت نقل کړې دې

② جمهور علماء فرمائي چه جمات ته دَ داخليدو په وخت اوږه پياز او داسې نورې سبزې په کوم کښې چه بوئي راځي دَهغې خوړل مکروه تحريمي دي

خو داسې (۱) مريض دَ چادَ پاره چه دَ پياز استعمال ضروري وي دَهغه په حق کښې دَ پيازواستعمال بغيردَ کراهته صحيح دې.

**داول فريق دلائل:** اول فريق په خپله مدعاباندې دَ هغه مختلفو رواياتونه استدلال کړې دې په کوم کښې چه حضورپاک ﷺ دَ اوږې او پيازو خوړونکي جمات ته دراتلو نه منع فرمائيلې دې دَ رواياتو مختلف الفاظ داسې مروي دي فلا يقربنا مسجدنا أخرجه البخاري ومسلم والترمذي ولا يصلين معنا. أخرجه البخاري ومسلم لا يغشانا في مسجدنا أخرجه مسلم والبخاري فلا يأتين المساجد أخرجه مسلم

**دَ استدلال طريقه:** وجه داده چه کله دَ جمع مونځ دَ هغوي په نيز فرض عين دې اوکوم څيز دَ فرض دَ ترک ذريعه وي هغه يقينًا واجب الترک او حرام دې. په دې وجه دَ دې سبزيانو خوړل حرام کيدل پکاردي

**داول فريق د دلائلو جوابونه:** ① دَ ظاهريه دَ پيش کړې شوو روايتونو نه خودَ دې څيزونو دَ خوراک جواز ثابتيږي نه چه حرمت اکل کما يدل عليه قوله من اکل الخ البته په جمات کښې دَ حاضرئ ممانعت هم معلوميږي اوجمهور حضرات هم دَ دې قائل دي چه په داسې حالت کښې جمات کښې حاضريدل مکروه تحريمي دي

② د دې روايتونونه دَ جمات دَ ادب وجوب اودَدې دَ نظامت خاص اهتمام معلوميږي فقهاء حضرات فرمائي چه دا تاکيدي صيغې دَ ادب په وجوب باندې محمول دي

③ دَ رواياتونه معلوميږي چه د ممانعت اصل وجه تأذي بني آدم وملائکه (انسانانو او فرشتو ته تکليف رسول) دې او دا په اجتماعي شکل کښې مونډلې کيږي دَ دې څيزونودَ خوړلو د حرمت دَ دې روايتونوسره څه تعلق دې؟

---

(۱) کماروى ابن حبان في صحيحه عن المغيرة بن شعبة انتهيت الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فوجدمنى ريح الثوم فقال من أكل الثوم قال فأخذت يده فادخلتها فوجد صدرى معصوبا قال إن لک عذرا وفى الطبرانى فلم يعنفه صلى الله عليه وسلم. ۱۲ فتح الملهم.

④ په دې روايتونوسره دَ مذكوره څيزونو حرمت قطعاً نه ثابتيږي ځکه چه دَ ډيرو مباح امورو په وجه دَ جماعت دَ ترک کولو اجازت دې مثلاً که دَ وړی کس مخی له خوراک راشي نوحکم دې که زياته اولګه وی نواول خوراک اوکړه اوجمع ترک کړه

⑤ علامه ابن حزم ظاهری دَ دې څيزونو دَ حلال كيدو قائل دې سره دَ دې چه هغه هم جمع نه فرض عين وائی

⑥ دَ جمهورو حضراتو په مذهب باندې دا ټول روايات منطبق کيږی چه دَ ممانعت دَ رواياتو محمل هغه سړې دې چه دا څيزونه اوخوری او زر جمات کښې داخل شی اودَ اجازت روايات په هغه سړی باندې محمول دی چه جمات ته زر لاړنه شی يا دَ دې بوئی پخولوسره يا په څه بله طريقه ختم کړی ونی خوری.

**د دويم فريق دلائل:** ① دَ حضرت ابوسعيدالخدری ﷺ روايت دَ کوم تخريج چه امام مسلم ﷫ کړې دې کله چه رسول الله ﷺ دَ دې ونې نه خوړونکی ته فلايقربنا المساجد اوفرمائيل نوخلقو ونيل حرمت حرمت نو دا خبره رسول الله ﷺ ته معلومه شوه نوونی فرمائيل أيها الناس إنه ليس بي تحريم ما أحل الله لي ولكنها شجرة أكره ريحها. دا روايت په عدم حرمت په صراحت سره دال دې

② دَ ابوايوب انصاری ﷺ روايت دَ کوم تخريج چه امام ترمذی ﷫ کړې دې کله چه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړې شو چه احرام وی نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل لاولكني أكرهه من أجل ريحه دا روايت هم په عدم حرمت باندې صراحت سره دلالت کوی اودکراهت وجه دَدې بوئی دې

③ هم حضوراکرم ﷺ يوصحابی ﷺ ته اوفرمائيل كل فاني اناجي من لاتناجي يعنی ونی فرمائيل چه ته ئی خوره زه ئی په دې وجه نه خورم ځکه چه څه داسې مخلوق يعنی فرښتوسره خبرې کوم چاسره چه ته خبرې نه کوې اودَ دې په بوئی سره فرښتوته تکليف وی. دَ دې روايت نه هم معلومه شوه چه اوږه او پياز وغيره حرام نه دی ګنی رسول الله ﷺ به صحابی ته دَخوراک حکم ولې ورکولو

④ باب الرخصة في أكل الثوم مطبوخًا لاندې امام ترمذی ﷫ په مرفوع روايت سره دَ حضرت علی ﷺ اثرهم ذکر کړې دې په کوم سره چه دَ اكل الثوم مطبوخًا اجازت معلوميږی

⑤ امام موصوف دَ حضرت ابوالعاليه مقوله هم ذکرکړې ده چه هغوی فرمائی الثوم من طيبات الرزق اوږه دَ حلال اوښو خوراکونونه ده.

⑥ دَ حضرت قره ﷺ روايت دَ کوم تخريج چه امام ابوداؤد کړې دې ان النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن هاتين الشجرتين وقال من أكلهما فلايقربنا مسجدنا وقال ان كنتم لابد أكلهما فأميتوهما طبخًا. دَ دې روايت نه هم دَ اوږې او پياز دَ خوړلو اجازت معلوميږی.

## [۴۲۳۱] د پیاز خوړلو حکم

۴۲۳۱-[۶۸] (¹) ⑴ وَعَنْ أَبِي زِيَادٍ، قَالَ: ⑵ «سُئِلَتْ عَائِشَةُ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - عَنِ الْبَصَلِ. ⑶ فَقَالَتْ: إِنَّ آخِرَ طَعَامٍ أَكَلَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - طَعَامٌ ⑷ فِيهِ بَصَلٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت ابو زیاد وایي ⑵ چې د بي بي عائشې رضي الله عنها نه د [پخ کړي] پیاز متعلق پوښتنه وشوه (چې د دې خوړل څرنګه دي؟) ⑶ هغې وفرمایل چې رسول الله ﷺ (په خپل ژوند کې) چې د ټولونه آخري کوم طعام خوړلي وو، ⑷ په هغې کې (پخکړي) پیاز وو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑴ الْبَصَلِ: پیاز.

**تسهیلات:** **قوله:** إِنَّ آخِرَ طَعَامٍ أَكَلَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - طَعَامٌ فِيهِ بَصَلٌ

**د تعارض اشکال:** دنوروا حادیثو څخه د پیاز خوړلو کراهت معلومیږی اوپه دې حدیث کښې نقل دی چې نبی علیه السلام د خپل ژوند په آخری طعام کښې پیاز خوړلي وو نودا ښکاره تعارض دي.

**د تعارض دوه جوابونه:** ⑴ دا حدیث که دَ پیازودَ خوړلوپه جواز باندې حمل کړې شي او دَ ممانعت احادیث په مکروه تنزیهي باندې حمل کړې شي نوهیڅ تعارض به پاتې نه شي ځکه چه دَمکروه تنزیهي مطلب خلاف اولی دې.

⑵ دَ زیربحث حدیث تعلق پوخ کړې شوی پیاز سره دې نوښکاره خبره ده چه دَدې اجازت دې

## [۴۲۳۲] د نبی علیه السلام کجو لره خوښول

۴۲۳۲-[۶۹] (²) ⑴ وَعَنِ ابْنَيْ بُسْرٍ السُّلَمِيَّيْنِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - ⑵ قَالَا: «دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑶ فَقَدَّمْنَا زُبْدًا وَتَمْرًا، ⑷ وَكَانَ يُحِبُّ الزُّبْدَ وَالتَّمْرَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⑴ او د بسر دواړو ځامنو (حضرت عبدالله او حضرت عطیه) چې اسلمیان [او صحابیان] دي، د هغوئ نه روایت دي، ⑵ دواړو اوویل چې یوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ کور ته تشریف راوړو. ⑶ نو مونږ ورته کُچ او کجوري پیش کړي، [حضور ﷺ وخوړلې]، ⑷ د حضور ﷺ کُچ او کجوري خوښې وې (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑴ السُّلَمِيَّيْنِ: سلم قبیلې ته منسوب دوه کسان ⑵ فَقَدَّمْنَا: نو مونږ ورته پیش کړل ⑶ زُبْدًا: کُچ

**تسهیلات:**

**نوټ:** دحدیث مفهوم واضح دې د مزید وضاحت څخه خاص ضرورت نشته.

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی أکل الثوم (رقم-۳۸۲۹) واحمد فی المسند:۶/۵۹
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة /باب فی الجمع بین لونین فی الأکل (رقم-۳۸۳۷) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة /باب التمر بالزبد (رقم-۳۳۳٤)

## [٣٣٣] په كټوره كښې د دوه قسمه خوراكونو جدا جدا طريقه

٣٣٣-[٤٠] (١) ① وَعَنْ عِكْرَاشِ بْنِ ذُؤَيْبٍ، قَالَ: ② «أُتِينَا بِجَفْنَةٍ كَثِيرَةِ الثَّرِيدِ ③ وَالْوَذْرِ ④ فَخَبَطْتُ بِيَدِي فِي نَوَاحِيهَا ⑤ وَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ ⑥ فَقَبَضَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى عَلَى يَدِي الْيُمْنَى ⑦ ثُمَّ قَالَ: "يَا عِكْرَاشُ! كُلْ مِنْ مَوْضِعٍ وَاحِدٍ ⑧ فَإِنَّهُ طَعَامٌ وَاحِدٌ" ⑨ ثُمَّ أُتِينَا بِطَبَقٍ فِيهِ أَلْوَانُ التَّمْرِ ⑩ فَجَعَلْتُ آكُلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ ⑪ وَجَالَتْ يَدُ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الطَّبَقِ،

**ترجمه:** ① او حضرت عكراش بن ذويب ﷺ وايي ② چې په يوه موقع زمونږ مخې ته يوه لويه پياله راوړل شوه، چې په هغې كې ډير ثريد وو [يعني په ښوروا كې روټۍ ماته كړې وه] ③ او د غوښې پوټې وو، ④ د خوراك په دوران كې ما خپل لاس د پيالي هر طرف ته زغلولو [يعني د خپل طرف نه د نمړۍ پورته كولو په ځاى هر طرف ته مې لاس اچوي] ⑤ او رسول الله ﷺ د خپلې مخې نه طعام خوړلو، ⑥ نو حضور ﷺ خپل چپ لاس سره زما ښي لاس ونيولو، ⑦ او وي فرمايل چې اي عكراشه! د خپلې مخې نه يې خوره. ⑧ ځكه چې دا يو قسم طعام دي، ⑨ بيا زمونږ مخې ته يو طباق راوړل شو، چې په هغې كې قسم قسم كجورې وې، ⑩ ما د حضور ﷺ د هدايت مطابق د خپل مخې نه كجورې خوړل شروع كړل، ⑪ ليكن اوس د رسول الله ﷺ لاس د طباق (تالي) هر طرف ته ګردش كولو. [يعني د خپلې خوښې مطابق د تالي د هرې غاړې نه يې كجورې خوړلې. او د دې مقصد خلقو ته دا ظاهرول وو چې كه هغوى غواړي، نو هر د طرف نه كجورې خوړلې شي] ؛

**حل اللغات:** ① جَفْنَةٍ: كاسه. غټه پيالۍ. ② وَالْوَذْرِ: دَ وذرة جمع ده دَ غوښې هغه ټكړې په كوم كښې چه هډوكې نه وى. ③ فَخَبَطْتُ: نو ما لاس وهل شروع كړل. ④ طَبَقٍ: تال، غټ لوخې. ⑤ جَالَتْ: ګردش كولو. تاويدلو.

① قَالَ: "يَا عِكْرَاشُ! كُلْ مِنْ حَيْثُ شِئْتَ; ② فَإِنَّهُ غَيْرُ لَوْنٍ وَاحِدٍ" ③ ثُمَّ أُتِينَا بِمَاءٍ فَغَسَلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَيْهِ ④ وَمَسَحَ بِبَلَلِ كَفَّيْهِ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ وَرَأْسَهُ، ⑤ وَقَالَ: "يَا عِكْرَاشُ! هَذَا الْوُضُوءُ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① بيا حضور ﷺ [محض د دې خپل فعل په ذريعه بيان ونه كړو، بلكې د خپل قول په ذريعه يې هم تعليم وركړو وي] فرمايل چې اي عكراشه! اوس چې د كوم طرف نه غواړې خوره، ② ځكه چې دا كجورې د يو قسم نه دي، ③ د دې نه پس مونږ ته اوبه راوړل شوې، رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه وينځل ④ او د خپل لاسونو لوندوالي يې په خپل مخ او تر څنګلو په لاسونو او په سر ومږلو، ⑤ او وي فرمايل چې اي عكراشه! دا د هغه طعام نه پس

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى أى اللحم كان احب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-١٨٣٨) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة /باب الأكل مما يليك (رقم-٣٢٧٤)

دا اودس دي، چې اور متغير کړي وي ايعني لا او خله وينځل چې هغه ته د طعام اودس وئيل کيږي، د دې طعام په وجه دي، کوم چې په اور پوخ شوي دي] ترمذي.

**حل اللغات:** ⑥بَلَّل: لوندوالي

**تسهيلات:** **قوله:** فَتَخَبَّطَتْ بِيَدِي فِي نَوَاحِيهَا:

**په يوقسم خوراک کښې د خپلې مخې څخه خوراک کول:** يعنی ما دَ پيالئی په هرطرف کښې لاس اچول شروع کړه نبی کريم زما لاس اونيولواو وئی فرمائيل دا يوقسم خوراك دې لهذا دَخپلې مخې نه خوره

**قوله:** ثُمَّ أُتِيْنَا بِطَبَقٍ فِي أَلْوَانِ التَّمْرِ:

**په مختلفو خوراکونو کښې د بل د مخې د څخه راخستلو جواز:** راوی فرمائی د دې نه پس دَ مختلفو قسمونو کهجورو يو تال راوړلې شو ما دَخپلې مخې نه کهجورې اوچتولې اونبی کريم دَمختلفو ځايونو نه دَ لاس په تاوولوسره اوچتولې. نبی کريم اوفرمائيل چه دادَ کوم ځائی نه غواړې نوخوره ځکه چه دا يوقسم څيزنه دې. بلکه په جدا جدا رنګونو باندې مشتمل دی

**قوله:** ثُمَّ أُتِيْنَا بِمَاءٍ فَغَسَلَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د روټی خوراک څخه روسته لغوی اودس کول:** بيا دې نه پس اوبه راوړلې شوې نبی کريم مخ لاس اووينځل او بيائی اوفرمائيل عکراش! دَمامست النار سره چه دَ کوم اودس حکم دې هغه هم دغه لاس وينځل او خله کښې اوبه اچول دی. يعنی لغوی اودس مراد دې

**دَحديث فوائد:** ① دَ بزرګانو په خدمت کښې حاضريدل پکاردی.

② ميلمه سره دې حسن سلوک اوکړې شی

③ هغه دې خپل خان سره کينولې شی او خوراک دې پرې اوکړې شی

④ کبيرله دَ صغيردَ تربيت خيال ساتل پکاردی

⑤ دَ خوراک نه پس دَ تفکه په توګه نور څيزونه ميوې وغيره خوړلې شی اودا په ترغه کښې داخل نه دی

⑥ دَ خوراک نه پس خله او لاس وينځل پکاردی لکه څنګه چه دَ دې تاکيد په راتلونکی روايت کښې مذکوردې

**[۳۳۳] د حريري فائدې**

۴۲۲۳-[۱۷]()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]«كَانَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أَخَذَ أَهْلَهُ الْوَعْكُ[۳] أَمَرَ بِالْحَسَاءِ فَصُنِعَ،[۴] ثُمَّ أَمَرَهُمْ فَحَسَوْا مِنْهُ،[۵] وَكَانَ يَقُوْلُ: "إِنَّهُ لَيَرْتُوْ فُؤَادُ الْحَزِيْنِ،[۶] وَيَسْرُو

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الطب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يطعم المريض (رقم-۲۰۳۹)، وابن ماجه فی السنن رقم الحديث ۳۴۴۵

عَنْ فُؤَادِ السَّقِيمِ [۷] كَمَا تَسْرُو إِحْدَاكُنَّ الْوَسَخَ بِالْمَاءِ عَنْ وَجْهِهَا» ". [۸] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ كوروالو ته چې به تبه راغله. [۳] نو حضور ﷺ به د حريرى د تيارولو حكم كولو، هغه به تياره شوه. [۴] بيا به حضور ﷺ هغه مريضانو ته د حريره څكلو حكم كوي، چې هغه مريض به څښله. [۵] حضور ﷺ به فرمايل چې په حقيقت كې حريره غم ځپلي زړه ته طاقت وركوي. [۶] او د بيمار د زړه نه غم او تكليف داسې لرې كوي، [۷] لكه څرنګه چې په تاسو ښځو كې څوك د خپل مخ نه خيري په اوبو سره صفا كوي. [۸] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

**حل اللغات:** ① الْوَعْكُ: سخته تبه. ② الْحَسَاءِ: نرمه شيره، د اوړو او غوړونه جوړه شوې نرمه حلوا. ③ يُرِتُّو: "رتي يرتو" "اى يقوى القلب" يعنى دَ غمګين زړه قوى كوى ④ فَحَسَوْا: خلقو هغه اوڅكله. دا دَ جمع صيغه ده ⑤ فُؤَادُ الْحَزِينِ: د غمګين زړه. ⑥ وَيَسْرُو: (يسرو يكشف ويرفع) معنى كښې دې يعنى بوج لرې كوى ⑦ فُؤَادِ السَّقِيمِ: د بيمار زړه. ⑧ الْوَسَخَ: خيرې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهُ لَيُرِتُّو فُؤَادُ الْحَزِينِ، وَيَسْرُو عَنْ فُؤَادِ السَّقِيمِ

**دحريرې فوائد:**

① حريره دا زړه قوى كوى

② خيرې لرې كوى

## [۴۲۳۵] د خريړى اوبه د ستركو شفاء

د۴۲۳ـــ[ ۴۲ ] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «الْعَجْوَةُ مِنَ الْجَنَّةِ، [۳] وَفِيهَا شِفَاءٌ مِنَ السَّمِّ، [۴] وَالْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ، [۵] وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] عجوه (چې د كجوررو د ټولونه ښه قسم دي) د جنت كجور ده. [۳] او په دي كې د زهرو نه شفاء ده. [۴] او خريړي اد من دقسم] نه دي. [۵] د دې اوبه د ستركو د پاره شفاء ده (ترمذي)

**حل اللغات:** ① الْعَجْوَةُ: د مديني اعلى ښه كجورې. ② السَّمِّ: زهر. ③ الْكَمْأَةُ: خريړى. ④ الْمَنِّ: مرزان

**تسهيلات:**

**قوله:** الْعَجْوَةُ مِنَ الْجَنَّةِ:

---

( ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الطب عن رسول الله كتاب الطب/باب التلبينة (رقم-۳۴۴۵)صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الكمأة والعجوة (رقم-۲۰۶۶)

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې اقوال:** ① حضرت آدم علیه السلام د جنت نه دنیا ته راولیګلې شو نو هغه سره د دنیا د میوو زر قسمه تخمونه وو په جمع الفوائد کښې په روایت د بزار ابوموسی اشعری نه مرفوعًا روایت دې لما اخرج آدم من الجنة زوده من ثمار الجنة وعلمه صفة کل شئ فثمارکم هذه من ثمار الجنة غیر ان هذه تتغیر وتلک لم تتغیر

د دې مطلب دادې لکه څنګه چه د عجوه کهجورې اصل مقام جنت دې دغه شان د ټولو میوو اصل هم د جنت نه دې نو ښکاره خبره ده چه دې ته به څه خاص اهمیت نه وی اوکه چرې دا اوونیلې شی په ټولو میوو کښې دنیا ته د راتلونه پس بدلون راغلې دې او په دې کښې کم بدلون شوې دې نو د عجوه فضیلت بیانول به مقصود شی

② علامه صاوی رحمه الله فرمائی د دې مطلب دادې چه عجوه کهجوره د جنت د عجوه کهجورې په رنګ او شکل کښې مشابهت دې نه چه په خوند او مزه کښې علماء فرمائی چه مقصود د دې نه د دې کهجورې فضیلت دې څکه چه په حجاز کښې ټولې کهجورې فائده مندې دی خو دا کهجورې آلَذ و اَطیب او اَلیَن شمیر کړې شوی دی اودا د بدن طاقت زیاتوی

**قوله:** وَفِيهَا شِفَاءٌ مِنَ السُّمِّ:

**په عجوه کښې د زهرو څخه د شفاء وجه:** ① په عجوه کښې د زهرو اثر لرې کیدو دا اثر الله تعالی پخپله پیدا کړې دی

② په عجوه کښې د زهرو اثر لرې کیدو دا اثر د نبی کریم ﷺ په دعا سره پیدا شوې دی

③ په عجوه کښې د زهرو اثر لرې کیدو په دې وجه وه چې نبی کریم ﷺ په خپل لاس مبارک باندې دا لګولې وه په دې وجه الله تعالی په دې کښې دا برکت کیخودې دې

**نوټ:** خرېزې سره متعلق بحث د حدیث نمبر ۴۱۸۴ په تسهیل کښې تیرشوې دې هغې ته مراجعت اوکړی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۲۳۶] په چاړې سره د غوښې د کټ کولو او خوړلو جواز**

۴۲۳۶-[۴۳]()[۱] عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«ضِفْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ لَيْلَةٍ،[۳] فَأَمَرَ بِجَنْبٍ فَشُوِيَ،[۴] ثُمَّ أَخَذَ الشَّفْرَةَ فَجَعَلَ يَحُزُّ لِي بِهَا مِنْهُ،[۵] فَجَاءَ بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ،[۶] فَأَلْقَى الشَّفْرَةَ،[۷] فَقَالَ: "مَا لَهُ تَرِبَتْ يَدَاهُ؟"[۸] قَالَ: وَكَانَ شَارِبُهُ وَفَاءً.[۹] فَقَالَ لِي: "أُقُصُّهُ لَكَ عَلَى سِوَاكٍ؟ -[۱۰] أَوْ - "قُصَّهُ عَلَى سِوَاكٍ"» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطهارة/باب فی ترک الوضوء مما مست النار(رقم-۱۸۸) واحمد فی المسند: والترمذی فی/۲۵۲

**ترجمه:** [۱] حضرت مغيره بن شعبه ﷺ وايي[۲] چې يوه شپه زه د رسول الله ﷺ سره د يو سړي ميلمه شوم، [هغه زمونږ د پاره] يوه بزه (چيلۍ) ذبح كړه[۳] او رسول الله ﷺ د هغه بزې (چيلۍ) د يو اړخ (ورون) د وريتولو حكم وكړو كوم وخت چې هغه وريت شو،[۴] نو حضور ﷺ يوه چاړه واخستله بيا د هغه په ذريعه د هغه اړخ نه يې زما د پاره ټكړې [پوټې] كټ كول شروع كړل،[۵] په دې كې حضرت بلال ﷺ حضور ﷺ ته د مانځه اطلاع وركولو د پاره راغې ،[۶] نو حضور ﷺ چاړه كيخودله،[۷] او (بطريق تعجب يې) وفرمايل چې بلال ﷺ ته څه وشو (چې داسې وخت بللوله راغې) د هغه دواړه لاسونه دې په خاورو ككړ شي،[۸] حضرت مغيره ﷺ وايي چې هغه وخت د هغه شونډې يعنې بريت اوږده شوي وو، [۹] حضور ﷺ وفرمايل چې زه تا دپاره ستا شونډې (بريت) په مسواك كوشنى [واړه] كړم،[۱۰] يا يې وفرمايل چې شونډې (بريت) په مسواك اينبودلو سره پريكړه، (ترمذي)

**حل اللغات:** ① ضِفْتُ: ميلمه شوم. ② جَنْبٍ: اړخ (ورُون مراد دې) ③ فَشُوِيَ: نو وريت كړې شو. پوخ كړې شو، ④ الشَّفْرَةَ: چاړه، ⑤ يَحُزُّ: پريكوله ئې، ⑥ تَرِبَتْ يَدَاهُ؟: ككړ دې شي دواړه لاسونه دده، ⑦ شَارِبُهُ وَفَاءً: بريت ئې اوږده شوی وو. ⑧ أَقُصُّهُ: آيا پريكړم، كم كړم

**تسهيلات:**

**دحديث د مختلفو جملو وضاحت:**

① يَحُزُّ: په چاړه سره دَ غوښې پرې كولو په معنى كښې دې. كله چه غوښه سخته وى نو دَ چاړې استعمال جائز دې ګنې دا طريقه دَ اعاجم اهل فارس ده.

② يُؤْذِنُهُ: دا دَ ايذان نه دې دَ خبرداري وركولوپه معنى كښې دې يعنى حضرت بلال ﷺ رسول الله ﷺ ته اطلاع وركوله چه دَ مونځ وخت شو

③ شَارِبُهُ وَفَاءً: يعنى دَ مغيره بن شعبه ﷺ بريت غټ شوې وو په دې كښې مغيره بن شعبه ﷺ دَ شاربې په ځائې شاربه ونيلې دې دا التفات دې

**قوله:** أَقُصُّهُ لَكَ عَلَى سِوَاكٍ؟:

**دمذكوره جملې مطلب:** يعنى زه به ستا بريت په مسواك سره پرې كړم يائې ته پخپله په مسواك باندې كيخودوسره پرې كړه

**په مسواك سره د بريت كټ كولو دوه مفهومه:** ① يعنى چه په شونډو باندې مسواك وى اوهغې سره برابر كړې شى او دَ بريتو وينښته په قينچئى سره پرې كړې شى دې دپاره چه په يو كرښه كښې پرې كړې شى

② يعنى چه قينچى نه وى بلكه په مسواك باندې وينښته برابر كړې شى او په چاړه يا چاقو سره پرې كړې شى

## [۴۲۳۷] د بسم الله نه ويلو په وجه د شيطان په خوراک کښې شرکت

۴۲۳۷-[ ۴۳ ] (¹)[۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«كُنَّا إِذَا حَضَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَعَامًا[۳] لَمْ نَضَعْ أَيْدِيَنَا حَتَّى يَبْدَأَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] فَيَضَعُ يَدَهُ، [۵] وَإِنَّا حَضَرْنَا مَعَهُ مَرَّةً طَعَامًا، [۶] فَجَاءَتْ جَارِيَةٌ كَأَنَّهَا تُدْفَعُ، [۷] فَذَهَبَتْ لِتَضَعَ يَدَهَا فِي الطَّعَامِ، [۸] فَأَخَذَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِيَدِهَا،

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذيفه رضي الله عنه وايي[۲] کله چې به مونږ رسول الله ﷺ سره په يو طعام کښې شريک [حاضرا] وو، [۳] نو مونږ به تر هغه وخته د طعام طرف ته لاس نه مخکې کولی، تر څو چې رسول الله ﷺ به شروع نه وه کړي، [۴] حضور ﷺ به طعام ته لاس مبارک ورمخکې کړو [نو د هغه نه پس به مونږ خپل لاس ورمخکې کووا] [۵] د يو ځل واقعه ده، چې مونږ د رسول الله ﷺ سره يو طعام ته کيناستلو، [۶] په دې کې يوه جنۍ طعام ته داسې راغله، ګوياچې را ديکه کول کيږي، [يعنې هغه د لوږې د شدت نه بې اختياره کيدو سره په طعام داسې راغله لکه چې چا د شا د خوانه ديکه کړې وي]. [۷] بيا کله چې هغې دا وغوښتل چې [د بسم الله ويلو نه بغير] طعام ته لاس کړي، [۸] نو رسول الله ﷺ د هغې لاس ونيولو،

[۱] ثُمَّ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ كَأَنَّمَا يُدْفَعُ، [۲] فَأَخَذَهُ بِيَدِهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۳] «إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ، [۴] وَإِنَّهُ جَاءَ بِهَذِهِ الْجَارِيَةِ لِيَسْتَحِلَّ بِهَا، [۵] فَأَخَذْتُ بِيَدِهَا، [۶] فَجَاءَ بِهَذَا الْأَعْرَابِيِّ لِيَسْتَحِلَّ بِهِ، [۷] فَأَخَذْتُ بِيَدِهِ، [۸] وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، [۹] إِنَّ يَدَهُ فِي يَدِي مَعَ يَدِهَا». [۱۰] زَادَ فِي رِوَايَةٍ: "«ثُمَّ ذَكَرَ اسْمَ اللهِ وَأَكَلَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بيا يو باندچي (کليوال) هم دغه شان په بې تابۍ سره راغې ګويا چې هغه هم طعام ته راديکه کول کيږي. [او هغه هم د بسم الله ويلو نه بغير طعام ته لاس کولو]. [۲] حضور ﷺ د هغه لاس هم ونيولو، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل [۳] حقيقت دا دې چې شيطان هغه طعام ځان د پاره حلالولي. [او د هغې په خوړلو قادر کيږي] په کوم چې د الله تعالی نوم نشي اخستې. [۴] شيطان هغه جنۍ راوسته چې د هغې بسم الله نه ويلو په سبب هغه طعام ځان د پاره حلال کړي. [۵] ليکن ما د هغې لاس ونيولو. [۶] بيا شيطان دا باندچي (کليوال) راوستو چې د ده په ذريعه طعام ځان د پاره حلال کړي. [۷] خو ما د ده لاس هم ونيولو. [۸] قسم دې په هغه ذات پاک چې د هغه په لاس کې زما ساه ده. [۹] بلا شبه دا وخت د شيطان لاس د دې جنۍ د لاس سره زما په لاس کې دې. [۱۰] په يو روايت کې (حذيفه يا مسلم)

(¹) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب واحكامهما(رقم-۱۰۲ - (۲۰۱۷) وابوداود في كتاب الأطعمة/باب التسمية على الطعام(رقم-۳۷۶۶) واحمد في المسند: ۳۸۳/۵

دا الفاظ هم نقل كړي دي چې د هغې نه پس حضور ﷺ د الله ﷻ نوم واخستلو، [يعنى بسم الله يې ووېله] او طعام يې وخوړلو، (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَسْتَحِلُّ: حلال گڼړی، ② الاعرابيُّ: کلی وال، د باندې اوسيدونکې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَجَاءَتْ جَارِيَةٌ كَأَنَّهَا تُدْفَعُ

**د مذكوره جملې مطلب:** د شرلوپه معنى کښې دې لکه چه هغه وينځه او باندچی چاپه ديکو ديکوسره د خوراك دپاره حاضرول

**قوله:** إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ:

**د مشرځغه وړاندې په خوراک شروع نه کول:** ددې حديث د کله (اجتماعی) خوراک کولو متعلق دا ادب معلوميږي چه کله د خوراک په موقع يو معزز او قابل احترام کس موجود وی نو تر هغې پورې دې باقی کسان خوراک نه شروع کوی تر څو پورې چه هغه کس خوراک شروع کړی نه وی.

**قوله:** إِنَّ يَدَهُ فِي يَدِي مَعَ يَدِهَا

**تعارض:** په دې روايت کښې د «يدها» لفظ دې او بعضی رواياتو کښې "معيدهما" الفاظ ذکر دي دا په ظاهره تعارض ښکاری.

**د تعارض دوه جوابونه:** ① يد مفرد دی او ددې اطلاق په جنس باندې کيږی. په يو. دوه يا زياتو باندې هم کيږی

② نبی کريم ﷺ د هغه باندچی لاس ئی هم نيولی وو او د هغه جينی لاس هم نيولی وو.

**په دويم جواب باندې اعتراض:** کله چه نبی عليه السلام ددې د واړو لاسونه نيولی وو نو "مع يدها" په ځائی معيدهما" پکار وو.

**د اعتراض جواب:** هغه جينی اول راغلی وه نو ځکه د هغې ذکر يې جدا "معيدهما" سره وکړو.

**دحديث دوه فائدې:** ① که خوراک کونکو په جماعت کښې که يو کس هم بغير د بسم الله نه شريک شي نو شيطان په دې خوراک کښې شريک کيږی.

② که ورکوتې ماشوم که بسم الله ونيلی شي نو ضرور بسم الله دې وائي او که بسم الله ونه وائي نو شيطان په خوراک کښې شريک کيږی

**[۳۳۳۸] د زيات خوراك په وجه غلام واپس كول**

۳۳۳۸-[۴۵] (١) [١] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَرَادَ أَنْ يَشْتَرِيَ غُلَامًا [٣] فَأَلْقَى بَيْنَ يَدَيْهِ تَمْرًا [٤] فَأَكَلَ الْغُلَامُ، فَأَكْثَرَ، [٥] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "إِنَّ كَثْرَةَ

(١) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۵۶۶۱

الْأَكْلِ شُؤْمٌ"[٦] وَأَمَرَ بِرَدِّهِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيْمَانِ".

**ترجمه:** [١] او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دي [٢] چې يو خل رسول الله ﷺ د يو غلام اخستلو اراده وفرمايله.[٣] نو [د ازمانش په طور يې] د هغه په مخکې کجوري کيخودلې. [٤] نو هغه غلام (د خوراك نه) ډيري زياتي کجوري وخوړلې.[٥] رسول الله ﷺ [په دې ليدو سره] وفرمايل چې زيات خوړل د بې برکتئ سبب او د بې برکتئ علامه ده.[٦] بيا حضور ﷺ د هغه غلام د واپس کولو حکم وکړو (بيهقي)

**حل اللغات:** ①شُؤْمٌ: بې برکتي،

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَمَرَ بِرَدِّهِ:**

**د واپس کولو د علت دوه صورتونه:** ①د حديث مطلب دا دي چه نبی کريم ﷺ غلام اخستلې وو. او کثرت اكل په دې غلام کښې عيب وو، نو نبی کريم ﷺ د خيار عيب په وجه هغه غلام واپس کړو،

② نبی کريم ﷺ غلام لا اخستلې نه وو، بلکه د اخستو په نيت ئې خپل خوا ته راغوښتلې وو. او د هغه نه يې د امتحان اخستلو طريقه دا اختيار کړه چه د هغې مخکې ئې خوراک کيښودلو. نو هغه ډير خوراک اوکړو، نو نبی کريم ﷺ ته معلومه شوه چه دا ډير خوراک کونکې دي او کوم کس چه ډير خوراک کوي نو هغه هيڅ کار نشي کولې نو په دې وجه ئې د واپس کولو حکم وکړو

**د ډير خوراک څخه مراد:** د ډير خوراک کولو څخه مراد دا دي چه د اعتدال نه ډير زيات خوراک کول. او ډير خوراک کول چونکه د کافرانو علامه ده، نبی کريم ﷺ فرمائيلي دي چه کافر په اووه کولمو سره خوراک کوی او په مومن کښې د کفر علامت (ډير خوراک کول) موجوديدل نحوست دي.او د دې وجهې نه نبی کريم ﷺ د هغې غلام د واپس کولو حکم وکړو

**[۴۲۳۹] مالګه بهترينه ترکاري دي**

۴۲۳۹-[٤٦] ([١])[١] وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «سَيِّدُ إِدَامِكُمُ الْمِلْحُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس بن مالك رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] ستاسو په سالنونو کې بهترين سالن مالګه ده (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ①سَيِّدُ: سردار، بهترين. ②إِدَامِكُمْ: اِدام سالن ته وائی. ③الْمِلْحُ: مالګه.

[١]) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الأطعمة /باب الملح (رقم-۳۳۱۵)

**تسهيلات: قوله:** سَيِّدُ إِدَامِكُمُ الْمِلْحُ:

**مالګې ته د ټوره ترکارۍ وئيلو دوه توجيهات:** ① شيخ فضل محمد صاحب په توضيحات کښې ددې حديث مطلب دا بيان کړې دې مثلاً په کورکښې سالن نشته دې مګرمالګه موجودده نوډجوارو يا دَ غنمو روټئى په مالګه کښې ککړ کولو سره په بهترين طريقه خوړلې شى دَ ښکار په موقع خلق په څنګلوکښې هم دغه شان روټئى خورى ډيره مزه کوى.
② زما احقر شاه فيصل په نيز د حديث مطلب دا دې چې په ترکارۍ کښې مالګه نه وى نو د هغې هڅو خوند نه وى اوچې مالګه په کښې وى نو مزيداره وى لګه څنګه چې د يو قوم سردار نه وى نو هغه قوم بې اتفاقه وى اوکمزورې وى اوچې د يوقوم سردار او مشروى نو هغه قوم په معاشره کښې عزتمند وى دا مفهوم زما په خيال زيات واضح دې څکه چې په دې کښې تشبيه د سيد سره ورکړې شوې ده

**[۳۳۳۰] څپلو سره د خوراک کولو کراهت**

۳۳۳۰–[۴۷] (¹)[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] («إِذَا وُضِعَ الطَّعَامُ فَاخْلَعُوا نِعَالَكُمْ. [۳] فَإِنَّهُ أَرْوَحُ لِأَقْدَامِكُمْ»).

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس بن مالك رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هر کله چې ستاسو په مخکې طعام کيخودل شي (او تاسو خوراك ته کينئ) نو څپلې څپلې (پيزار) اوباسئ، [۳] څکه چې څپلې اوخکل د پښو د پاره ډير راحت رسونکى دي

**حل اللغات:** ① فَاخْلَعُوا: اوباسئ، ② نِعَالَكُمْ: پيزار، ③ أَرْوَحُ: آرام او راحت رسونکې،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا وُضِعَ الطَّعَامُ فَاخْلَعُوا نِعَالَكُمْ. فَإِنَّهُ أَرْوَحُ لِأَقْدَامِكُمْ:

**د روټۍ په وخت کښې د څپلو ويستلو فائده:** کله چه سړې روټئى خورى نودَ بدن ټولو اندامونوته لذت حاصليږى تردې چه څپو ته هم راحت رسيږى. که څپې په څپلوکښې محبوس اوبندې وى نوهغه دَ راحت نه محروم پاتې کيږى په کوم سره چه د پوره بدن لذت مکدر کيږى

**[۳۳۳۱] په يخ طعام کښې برکت**

۳۳۳۱–[۴۸] (²)[۱] «وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: [۲] أَنَّهَا كَانَتْ إِذَا أُتِيَتْ بِثَرِيدٍ[۳] أَمَرَتْ بِهِ فَغُطِّيَ[۴] حَتَّى تَذْهَبَ فَوْرَةُ دُخَانِهِ، [۵] وَتَقُولُ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۶] هُوَ أَعْظَمُ لِلْبَرَكَةِ». رَوَاهُمَا الدَّارِمِيُّ.

¹) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۲۰۸۰
²) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ۲۰۴۷

**ترجمه:** [۱] او د بي بي اسماء بنت ابي بكر رضي الله عنها باره كې روايت دي [۲] هر كله چې د هغې مخې ته به ثريد راوړل شو، [۳] نو د هغې د پټولو حكم به يې كولو، نو هغه به پټولو سره كيخودل شو، [۴] تر دې چې د هغې لوګي او جوش به ووتلو (يعني د هغې د ګرمۍ شدت به ختم شو، [د هغې] نه پس به يې هغه خوړلو) [۵] او هغې به فرمايل چې ما د نبي كريم ﷺ نه اوريدلي دي چې [٦] طعام نه د ګرمۍ وتل د بركت د زياتوالي موجب دي. (دا دواړه روايتونه دارمي رحمه الله نقل كړي دي.)

**حل اللغات:** ① فَغُطِّيَ: نو پټ به كړې شو، ② فَوْرَةُ: جوش او ګرمي. ③ دُخَانِهِ: د لوګي دهغې

**تسهيلات:**

**قوله:** هُوَ أَعْظَمُ لِلْبَرَكَةِ:

**په ګرم طعام كښې عدمِ بركت:** يعنى كوم بهړاس او لوګي چه دَ ګرمئى دَ وجهې اوچتيږي دَ هغې دَ يخولودپاره دَ پاسه سر كيخودې شي دې دَپاره چه خوراك لږ شان يخ شي اوبيا اوخوړلې شي ځكه چه په زيات ګرم خوراك كولوسره خله هم سوزيږي اودَ كولمودپاره هم مضر دى. لږ شان انتظار كوى او كتهونى له دم وركولوسره خوراك فائده مند او خونده وړ كيږي او په دې كښې بركت هم راځي. په جامع صغير كښې ليكلى دى "أبردوا بالطعام فان الحار لا بركة فيه"

**[۳۳۳] د كاسې د خپل صفا كونكى دپاره دعا**

۴۲۳۳-[۴۹] (١) [۱] وَعَنْ نُبَيْشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَنْ أَكَلَ فِي قَصْعَةٍ، [۳] ثُمَّ لَحِسَهَا، [۴] تَقُولُ لَهُ الْقَصْعَةُ: "أَعْتَقَكَ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ [۵] كَمَا أَعْتَقْتَنِي مِنَ الشَّيْطَانِ"». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نبيشه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د پيالۍ [يا غاب وغيره] نه څه وخوري، [۳] او بيا هغه [په ګوتو سره] وځټي، [۴] نو هغه پيالي [په زبان حال سره يا زيات صحيح دا دي چې په زبانِ قال سره] هغه سړي ته وايي چې الله تعالى دې دغه شان تاته د دوزخ د اور نه نجات دركړي، [۵] څرنګه چې تا د شيطان [د خوړلو نه يا د هغه د خوشحالولو] نه ماته نجات راكړو (رزين)

**حل اللغات:** ① قَصْعَةٍ: كاسه. ② لَحِسَهَا: اوځټي هغه.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَمَا أَعْتَقْتَنِي مِنَ الشَّيْطَانِ:

**كاسه څټل د شيطان څخه حفاظت:** دَ حديث مطلب دادې چه دَ خوراك لوښي دعاهم كوى

---

(١) اخرجه رزين.

اوبد دعاهم کوی ځکه چه کله دالوښې ګنده پروت وی نوشیطان راخی اودا ځتی دغه وخت لوښې بددعا کوی چه زه دې دَ شیطان دَپاره ولې پریخودم اوکه څټلو نه ئی اوونځلونولوښې دعاکوی چه زه دې دَ شیطان دَ تسلط نه بچ کړم.

## [ ۱ ] بَابُ الضِّيَافَةِ

### دَمیلمستیابیان

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① التاكيد بإكرام الضيف: ۱، ۲، ۶، ۱۷-

② جواز أخذ الضيف حقه من المضيف عند الضرورة: ۳، ۵-

③ جواز التماس الضيافة عند الضرورة: ۴، ۱۱-

④ دعاء الضيف للمضيف: ۷-

⑤ فضيلة ضيافة الأتقياء: ۸-

⑥ الأكل مع الأضياف جمعا: ۹، ۱۰، ۱۵-

⑦ آداب الأكل مع الضيف : ۱۲، ۱۳ -

⑧ التحذير للجائع عن الكذب: ۱۴-

⑨ فضيلة المشي مع الضيف: ۱۶-

**دضیافت لغوی معنی:** ضاف يضيف ضيفا وضيافة اصل معنی دَ مائل کیدوده. میلمه هم یوطرف ته مائل کیږی ضیف میلمه ته وائی اومضیف کوربه ته دَ وئیلی شی اوضیافت میلمستیاته وائی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۲۴۳] ملمستیا او کمال ایمان

۴۲۴۳-[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ [۳] فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ، [۴] وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، [۵] فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ، [۶] وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ [۷] فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ". [۸] وَفِي رِوَايَةٍ بَدَلَ: (الْجَارِ): وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ [۹] فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب: من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يؤذ جاره (رقم-۶۰۱۸) ومسلم في كتاب اللقطة/باب الضيافة ونحوها (رقم-۷۵ - (۴۷) والترمذي في السنن رقم الحديث ۲۵۰۰ واحمد في المسند: ۲/ ۲۶۷

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] کوم سړي چې په الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان لري،[۳] هغه ته پکار دي چې دخپل ميلمه اکرام اوعزت وکړي .[۴] اوکوم سړي چې په الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان لري،[۵] هغه ته پکار دي چې خپل ګاونډي ته تکليف ونه رسوي،[۶] او کوم سړي چې په الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان لري،[۷] هغه ته پکار دي چې نيکه خبره کوي، يا چپ اوسي.[۸] او د بخاري رحمه الله په يو روايت کې د ګاونډي د ذکر کولو په ځاۍ دا دي چې کوم سړي چې په الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان لري،[۹] هغه ته پکار دي چې خپلوالي باقي وساتي[يعنى د خپلو عزيزانو سره حسن سلوك او د احسان معامله دې کوي] (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْجَار: ګاونډی، ② فَلْيَصِلْ: جوړ دې ساتي، ③ رَحِمَهٗ: رشته داري خپله

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ:

**ايمان سره د تعليق په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دا دَ ترغيب يوانداز دې اودَ دغه خصلتونو په خپلولو باندې راتيزول مقصود دی. لکه څنګه چه يوسړي خپل ځوئی ته وائی "إن كنت ابني فأطعمني" دادَ خوراك ورکولو ترغيب دې.

② په دې کښې دکامل مؤمن خبره کړې شوې ده چه کامل مؤمن هم هغه دې په چاکښې چه دا درې خصلتونه موجود وی.

**قوله:** فَلَا يُؤْذِ جَارَهٗ:

**د تکليف نه ورکولو د تخصيص وجه:** په اصل کښې دَ شريعت خوداحکم دې چه دَ ګاونډی دَ ټولو حقوقو خيال اوساتلې شی څکه چه "فليكرم جاره فليحسن جاره" الفاظ په حديث کښې دی ليکن که يوسړې دَ حقوقو خيال نه ساتی نوکم نه کم ګاونډی ته خودې تکليف نه ورکوی

**[۳۳۳] ګوربه سره د درې ورځو څخه زيات د ايساريدو ممانعت**

۳۳۳-[۲] (١) [۱] وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ[۳] فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ، [۴] جَائِزَتُهٗ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ، [۵] وَالضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ [۶] فَمَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ، [۷] وَلَا يَحِلُّ لَهٗ أَنْ يَثْوِيَ عِنْدَهٗ [۸] حَتّٰى يُحْرِجَهٗ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت شريح کعبي رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] کوم

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب: من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يؤذ جاره (رقم-٦٠١٩) ومسلم فی کتاب اللقطة/باب الضيافة ونحوها (رقم-١٥ - (٤٨) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی المنديل (رقم-٣٨٤٨) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الضيافة كم هی (رقم-١٩٦٧) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب حق الضيف (رقم-٣٦٧٥) ومالک فی الموطا فی کتاب الادب (رقم-٢٢ واحمد فی المسند: ٣٧٥/٦)

سري چې په الله ﷻ اود قيامت په ورځ ايمان لري،[۳] هغه ته پکار دي چې د خپل ميلمه تعظيم او خاطر داري وکړي،[۴] د ميلمه سره د [تکلف او] د احسان کولو زمانه يوه ورځ او يوه شپه ده،[۵] او د ميلستيا کولو زمانه دري ورځي ده،[۶] د دې [دريو ورځوا] نه پس چې څه ورکول شي، هغه به هديه او خيرات وي،[۷] اود ميلمه د پاره دا جائز نه دي، چې هغه د کوربه سره [د دريو ورځو نه پس د هغه د استدعا کولونه بغيرا] ايسارشي،[۸] چه هغه په تنګئ کې مبتلا کړي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: ① جَائِزَتُهُ: "أي عطيته" انعام يا د سفر خرچ، ② الضِّيَافَةُ: ميلمستيا، ③ أَنْ يَثْوِيَ: چه اوسيږي دهغه سره، ④ يُحْرِجَهُ: چه په تنګئ کښې ئې مبتلا کړي

**تسهيلات**:

**قوله: جَائِزَتُهُ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ**:

**د جائزته په اعراب کښې څلور اقوال**:

① جائزته منصوب دې د فليکرم مفعول ثاني کيدو په وجه

② جائزته منصوب دې چې دا په معنی د مصدر دې

③ جائزته منصوب دې چې دا ظرف شي

④ جائزته منصوب دې بنزع الخافض دې. أي ماجائزته؟ قال يوم وليلة أي جائزته يوم وليلة

**قوله: يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ**:

**د يوم وليلة په تشريح کښې دوه اقوال**: ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ددې روايت مطلب دا بيان کړې دې چه په اوله ورځ خو دي په تکلف سره خوراک پيش کړی او باقی دوه ورځې ماحضر يعنی چه څه موجود وی اوچه کوم وخت ځی نو يوه ورځ اوشپې دَ پاره دي جائزه ورکړی يعنی دومره خوراک دې ورکړی چه ترخپل ځای پورې اورسی په لارکښې ده ته پريشانی نه وی لکه د بل روايت أجيزوا الوفد بنحو ما أجيزهم نه معلوميږی ددې قول په بنياد د جائزته يوم وليلة تعلق دَ دريو ورځو دَ ضيافت نه روستو دې

② علامه خطابی فرمائی چه دَ روايت معنی داده چه ميلمستيا درې ورځې ده اوله ورځ دَ وس او طاقت مطابق دَتکلف خوراک پيش کول باقی دوه ورځې چه څه حاضر وی اوچه کله درې ورځې شپې تيرې شی نودَ ميلمستيا سره حدپوره شواوس په ده باندې خرچ کول صدقه کښې داخل دی. ددې قول په بنياد جائزته نه مراد دَ اولې ورځ دَتکلف خوراک دې خان له دَ تحفې په توګه څه ورکول مراد نه دی

**د ميلمستيا په حکم کښې (۳) مذاهب**:

① ليث بن سعد او شوکانی دَ مطلق ضيافت دَ وجوب قائل دی

② امام احمدبن حنبل فرمائی چه په کلي والو باندې ميلمستيا واجب ده ځکه چه ميلمه دَ خوراک انتظام په کلي کښې نشي کولې په خلاف دَ ښار چه هلته هوټل وغيره وی ميلمه دَ پاره انتظام ممکن دې

③ جمهورحضرات مالکيه، شوافع دَ ضيافت د سنت مؤکده کيدو قائل دی

**داول او دويم فريق دلائل:** ① ابوداؤد وغيره کښې مرفوعًا دَ ابوکريمه څخه نقل دی ليلة الضيف حق على كل مسلم فمن أصبح بفنائه فهو عليه دين إن شاء اقتضى وان شاء ترك

② په بل مرفوع روايت کښې دی أيما رجل أضاف قوما فأصبح الضيف محرومًا فان نصره حق على كل مسلم حتى يأخذ بقري ليلة من زرعه وماله

③ په بخاری شريف کښې دی عن عقبة بن عامر قلنا للنبي ﷺ إنك تبعثنا فننزل بقوم لا يقروننا فما ترى فيه فقال لنا رسول الله ﷺ إن نزلتم بقوم فأمروا لكم بما ينبغي للضيف فاقبلوا فان لم يفعلوا فخذوا منهم حق الضيف الذي ينبغي لهم وغيره.

حافظ فرمائی چه دې رواياتونه دَحقِ ضيافت وجوب ثابتيږی اوداهم معلوميږی چه که يوسړې ضيافت اونه کړی نو په زبردستئی دَ هغه نه دَ ضيافت حق وصولولې شی

**داول فريق د دلائلوتاويلات:** ① دَ مذکوره رواياتو محمل دَميلمه حالت اضطراری دې يعنی که يوسړې حد اضطرار ته اورسی او کلي وال هغه باندې خوراک اونه کړی نودَ هغه دَ پاره جائز دی چه په زور باندې دَ هغوی نه په اندازه دَ ضرورت خوراک واخلی

البته دا اختلاف شته چه دَ دې عوض واجب دې که نه نو دواړه اقوال دی.

② دَ دې رواياتو محمل دَ اسلام په شروع کښې دی چه دَ تنګئی وخت وو دې نه پس چه کله فتوحات اوشو نودا حکم منسوخ شو.

③ دا روايات دَهغه عمالو په حق کښې دی چه دَ صدقاتو وصولولودَ پاره د حاکم دَ طرف نه ليږلې شوی وی او اصحاب صدقات هغوی سره ښه سلوک نه کوی تردې چه په هغوی باندې خوراک نه کوی نوهغوی له دَ ضيافت حق په زور بقدر ضرورت اخستل جائز دی.

④ دا روايات دَ اهل ذمه په حق کښې دی چه دَهغوی نه حق ضيافت په زور سره وصول کولې شی.

⑤ د خذوا: معنی طعام اخستل نه دی بلکه هغوی ته په ژبه باند بدې رد ونيل دی يعنی په خلقو کښې د دوی داخراب کار بيانول مراد دی.

**د دويم فريق دليل:** داول فريق دلائل هم د دويم فريق فريق دلائل دی ځکه چې دويم فريق خو هم د ضيافت د ښه والی اومسنونيت څخه انکار نه کوی.البته د وجوب څخه ئې انکار کوی اودعدم وجوب دپاره جوابونه د تاويلاتوپه صورت کښې ذکرشول.

## [۴۲۳۵] د میلمستیا وجوب

۴۲۳۵-[۳] (¹) [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قُلْتُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكَ تَبْعَثُنَا [۳] فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ لَا يَقْرُونَنَا [۴] فَمَا تَرَى؟ [۵] فَقَالَ لَنَا: "إِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ [۶] فَأَمَرُوا لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِي لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوا، [۷] فَإِنْ لَمْ يَفْعَلُوا [۸] فَخُذُوا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ [۹] الَّذِي يَنْبَغِي لَهُمْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عقبه ابن عامر ﷛ وايي [۲] چې ما نبي کريم ﷺ ته عرض وکړو چې کله تاسو ﷺ مونږ [جهاد يا د يو بل کار د پاره] ليږئ، [۳] نو داسې هم کيږي، چې د داسې خلقو سره زمونږ قيام کول راځي، کوم چې زمونږ ميلمستيا نه کوي، [۴] په داسې صورت کې تاسو ﷺ څه حکم کوئ؟ (آيا مونږ په هغوئ په زبردستي خپله مهمان نوازي کولی شو يا نه؟) [۵] حضور ﷺ مونږ ته وفرمايل که تاسو [د خپل سفر په دوران کې] د يو قوم سره قيام کوئ، [۶] او هغوی تاسو ته هغه څيزونه درکړي، کوم چې يو ميلمه ته د ورکولو لائق دي، نو تاسو هغه قبول کړئ، [۷] او که هغوی داسې ونه کړي [يعني د مهمان نوازي حق اداء نه کړي] [۸] نو تاسو د هغوئ نه د مهمان نوازي هغه حق اخستي شئ، [۹] کوم چې د يو ميلمه لائق دي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① لَا يَقْرُونَنَا: دا دَ قرا نه جوړدي ميلمستياته وائی ② فَمَا تَرَى؟: نو ستاسو څه رائې ده

**تسهيلات: قوله:** لَا يَقْرُونَنَا:

**د میلمستیا د وجوب دلیل:** دَدې حديث مطلب دادي چه کله کوربه دَ ميلمستيا حقوق ادانه کړي نوميلمه دَهغه نه خپل حق په زور اخستې شي. دا حديث دَهغه حضراتو دليل دې چه دَ يوې ورځې ميلمستيا ته واجب وائي.

**نوټ:** ددې حديث څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۲۴۴) په تشريح کښې ددې جواب تيرشوې دې

## [۴۲۳۶] قابل اعتماد کورته د غیر مدعو بوتلو جواز

۴۲۳۶-[۴] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ يَوْمٍ أَوْ لَيْلَةٍ، [۳] فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ فَقَالَ: [۴] "مَا أَخْرَجَكُمَا مِنْ بُيُوتِكُمَا هَذِهِ السَّاعَةَ؟ [۵] ! قَالَا: الْجُوعُ. [۶] قَالَ: "وَأَنَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَخْرَجَنِي الَّذِي أَخْرَجَكُمَا، [۷] قُومُوا"، فَقَامُوا مَعَهُ، [۸] فَأَتَى رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ، [۹] فَإِذَا هُوَ لَيْسَ فِي بَيْتِهِ، [۱۰] فَلَمَّا رَأَتْهُ الْمَرْأَةُ، قَالَتْ: مَرْحَبًا وَأَهْلًا.

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب قصاص المظلوم إذا وجد مال ظالمه (رقم-۲۴۶۱) ومسلم فی کتاب اللقطة/باب الضيافة ونحوها (رقم-۱۷ - (۱۷۲۷) وابوداود فی کتاب الأطعمة/باب ما جاء فی الضيافة (رقم-۳۷۵۲) والترمذی فی کتاب السير عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما يحل من أموال أهل الذمة (رقم-۱۵۸۹) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب الاطلاء بالنورة (رقم-۳۷۵۲)

²) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب جواز استتباعه غيره إلى دار من يثق برضاه بذلک. وبتحققه تحققا تاما. واستحباب الاجتماع علی الطعام (رقم-۱۴۰ - (۲۰۳۸) وابن ماجه فی کتاب الذبائح/باب النهی عن ذبح ذوات الدر(رقم-۳۱۸۱)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې [يو ځل] رسول الله ﷺ د ورځې يا د شپې د كور نه ووتلو، [۳] ناڅاپه د حضرت ابوبكر صديق ﷺ او د حضرت عمر فاروق ﷺ سره يې ملاقات وشو، حضور ﷺ پوښتنه ورنه وكړه [۴] څه شي تاسو د كورونو نه را ويستلي يئ؟ [يعني دا وخت چې ستاسو د كور نه د وتلو عادت نه دي، نو داسې كوم ضرورت پيښ شو، چې ستاسو د كور نه د راوتلو باعث شوي دي؟] [۵] دواړو عرض وكړو چې لوږې موږ د كور نه په وتلو مجبوره كړي يو [يعني موږ د لوږې د شدت نه بيتابه كيدو سره د كور نه راوتلي يو] [۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې زما دي هم په هغه ذات قسم وي چې د هغه په لاس كې زما ساه ده، هغه شي د كور نه زه هم را ويستلي يم. كوم چې تاسو د كور نه را ويستلي يئ، [يعني زه هم د لوږې د وجې نه د كور نه راوتلي يم] ، [۷] راځئ، زما سره ځئ، نو هغه راولاړ شو، د حضور ﷺ سره ملگري شو، [۸] بيا حضور ﷺ د يو انصاري كور ته ورسيدلو، [چې د هغه نوم ابو الهيثم ﷺ وو] ، [۹] خو هغه په كور كې موجود نه وو، [۱۰] د هغه ښځې چې حضور ﷺ وليدلو، نو هغې ورته په خير راغلي (خوش آمديد) اوويل چې تاسو خپلو خلقو ته راغلي يي، ستاسو تشريف راوړل دي مبارك وي.

**حل اللغات:** ① الْجُوعُ: لوږه، ② مَرْحَبًا وَأَهْلًا: پخير راغلي ته هم خپل كورته راغلي دزمكې دا ټكړه دې ستادپاره هواره او خوشگواره وي.

[۱] قَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيْنَ فُلَانٌ؟ [۲] "، قَالَتْ: ذَهَبَ يَسْتَعْذِبُ لَنَا مِنَ الْمَاءِ. [۳] إِذْ جَاءَ الْأَنْصَارِيُّ، [۴] فَنَظَرَ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَصَاحِبَيْهِ، [۵] ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ، [۶] مَا أَحَدٌ الْيَوْمَ أَكْرَمَ أَضْيَافًا مِنِّي، [۷] قَالَ: فَانْطَلَقَ فَجَاءَ بِعِذْقٍ [۸] فِيهِ بُسْرٌ وَتَمْرٌ وَرُطَبٌ، [۹] فَقَالَ: كُلُوا مِنْ هَذِهِ، [۱۰] وَأَخَذَ الْمُدْيَةَ،

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ستا خاوند چيرته دي؟ [۲] هغې عرض وكړو چې هغه زمونږ د پاره د خوږو ابو راوړلو د پاره تللي دي، [۳] په دې كې هغه انصاري (يعني كوربه) هم راغي، [۴] هغه چې رسول الله ﷺ او دوه صحابه ﷺ [حضرت ابوبكر صديق ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ] په خپل كور كې وليدل، [نو د خپلې خوش بختۍ نه په جامو كې نه ځايدو، يعني ډير خوشحاله شو] ، [۵] او هغه اوويل چې الحمد لله د الله ﷻ شكر دي، [۶] د بزرگترو ميلمنو په اعتبار سره نن ورځ زما نه زيات خوش نصيبه څوك نشته، [يعنى نن ورځ زما ميلمانه د نورو خلقو د ميلمنو نه زيات بزرگ تر او معزز دي] ، [۷] راوي [يعنى حضرت ابوهريره ﷺ] وايي چې د دې نه پس هغه انصاري [دا حضرات خپل باغ ته بوتلل، هلته د هغوئ د پاره يو تغر (وغيره) خورلو سره هغوئ يې په هغې كينول، او خپله د كجورو و نو ته] ورغلي، او د هغه ميلمنو د پاره د كجوروو يو وږى (غنچك) يي راوړو، [۸] چې په هغې كې نيم پخته او ترو تازه هر قسم كجوري وي، [۹] بيا

هغه ورته اوويل چې تاسو دا خورئ ⑩ د دې نه پس هغه يوه چاړه واخسته. [او يوه بزه (چيلئ) يې ذبح کول غوښتل].

**حل اللغات:** ③يَسْتَعْذِبُ: خوږې اوبه راوړي. ④عِذْقٍ: دکجورو غونچکه. ⑤الْمُدْيَةُ: چاړه.

> ①فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِيَّاكَ وَالْحَلُوبَ" ②فَذَبَحَ لَهُمْ ③فَأَكَلُوا مِنَ الشَّاةِ ④وَمِنْ ذٰلِكَ الْعِذْقِ، وَشَرِبُوا ⑤فَلَمَّا أَنْ شَبِعُوا وَرَوُوا ⑥قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ: "⑦وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ⑧لَتُسْأَلُنَّ عَنْ هٰذَا النَّعِيمِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ⑨أَخْرَجَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمُ الْجُوعُ ⑩ثُمَّ لَمْ تَرْجِعُوا حَتّٰى أَصَابَكُمْ هٰذَا النَّعِيمُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ⑪ وَذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ: "كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ.." فِي "بَابِ الْوَلِيمَةِ".

**ترجمه:** ①رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د شيدو والاد بزې د ذبح کولو نه پرهيز کوه. ② آخر هغه د حضور ﷺ او د صحابه و ﷺ د پاره يوه بزه (چيلئ) ذبح کړه. [کوم وخت چې د هغه غوښه پخه شوه]. ③ نو ټولو د هغه بزې (چيلئ) غوښې وخوړلې. ④ د هغه غنچك نه يې کجورې وخوړلې، او اوبه يې اوڅکلې. ⑤ دغه شان چه کله په خوراك څکاك ماړه شو. ⑥ نو رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ ته وفرمايل ⑦ چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په لاس کې زما ساه ده. ⑧ د قيامت په ورځ به ستاسو نه د دې نعمتونو باره کې پوښتنه کيږي. ⑨ لوږې تاسو د خپلو کورونو نه را وېستلي وئ. ⑩ ليکن تاسو خپلو کورونو ته لاتللي هم نه وئ، چې د الله ﷻ د طرف نه تاسو ته دا نعمتونه ملاؤ شوه. (مسلم) ⑪ اوحديث دابومسعود انصاري ﷺ كان رجل من الانصار الخ په باب الوليمه کې ذکر شوي دي

**حل اللغات:** ⑥الْحَلُوبَ: پئيو والاچيلئ. ⑦رَوُوا: خړوب شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَرْحَبًا وَأَهْلًا

**د ميلمستيا بعضې آداب:** ①قابل اعتماد ملګرى اودوست له بغيردَ بللونه پخپله هم سرې تلې شى اوخپل ملګرى هم بوتلې شى لکه څنګه چه نبى کريم بوتلل

② دَ خپلې خوښې څيز غوښتل او کوربه دَ ښه څيز ورکولونه منع کول جائزدى لکه څنګه چه نبى کريم منع کړل

③ د خپلې اولګې تندې اوتکليف په پيشانئ اظهارکول خپلو دوستانوته جائزدى لکه څنګه چه نبى کريم صديق اکبر اوعمر فاروق ﷺ اوکړل

④ دَدنياوى نعمتونونه خوند اخستلو باندې به په قيامت کښې دَ دغه نعمتونوباره کښې سوال کيږى

⑤ دَميلمه نه پوښتنه کول چه ته به خوراك كوې كه نه مناسب نه دی بلکه زر پرې دَ څه خوړلو فکرکول پکاردی لکه څنگه چه دې انصاری صحابی اوکړه چه کهجورې ئی مخې ته کيخودې اودَ چيلئی ذبح کولودَپاره ئی ورمنده کړه.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٤٢٤٧] د ميلمستيا اهميت

۴۲۴۷-[۵] ()[۱] عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- سَمِعَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "[۲]«أَيُّمَا مُسْلِمٍ ضَافَ قَوْمًا،[۲] فَأَصْبَحَ الضَّيْفُ مَحْرُومًا؟[۳] كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ نَصْرُهُ[۴] حَتَّى يَأْخُذَ لَهُ بِقِرَاهُ مِنْ مَالِهِ وَزَرْعِهِ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.[۵] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: "«وَأَيُّمَا رَجُلٍ ضَافَ قَوْمًا فَلَمْ يَقْرُوهُ[۶] كَانَ لَهُ أَنْ يُعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ» ".

**ترجمه:** [۱] د حضرت مقدام ابن معديکرب ﷺ نه روايت دي چه هغه د نبي کريم ﷺ نه واوريدل[۲] کوم سړي چې په يو قوم کې [د چا سره] ميلمه شو،[۲] او هغه د محرومۍ په حالت کې صبا کړو (يعني کوربه د شپې د هغه ميلمستا ونه کړه)[۳] نو د هغه به په هر مسلمان دا حق وي، چې د هغه مدد وکړي،[۴] تر دې چې هغه [د کوم سړي ميلمه شوي دی]، د هغه د مال او د هغه د باغ باړي نه د مهمان نوازۍ په قدر (يعني د يو ميلمه د خوراك څکاك په قدر) وصول کړي (دارمي ابوداؤد)[۵] او د ابوداؤد ﷫ په يو بل روايت کې دا دي چې کوم سړي په يو قوم کې ميلمه شو، او هغه خلقو د هغه مهمان نوازي ونه کړه،[۶] نو هغه ته به دا حق حاصل وي، چې هغه خلقو پسې ولگيږي، او د هغوی د مال او اسباب نه د خپلې مهمان نوازۍ په قدر وصول کړي

**حل اللغات:** ① ضَافَ: ميلمه شو، ② مَحْرُومًا: هيڅ خيال نې پرې اونه ساتلو ③ بِقِرَاهُ: په برابرۍ د ميلمستيا، ④ زَرْعِهِ: دپټې يا باغ دهغه نه، ⑤ يُعْقِبَهُمْ: چه تعاقب اوکړی دهغوی، يعنی دهغوی نه خپل حق واخلی

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث څخه وړاندې دحديث نمبر (۴۲۴۴) په تشريح کښې ددې جواب تيرشوې دې

## [۴۲۴۸] يميلمستيا نه ورکولکی ته هم ميلمستيا ورکول

۴۲۴۸-[۶] ()[۱] وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ الْجُشَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [۲] قُلْتُ: «يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَرَأَيْتَ إِنْ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ [۳] فَلَمْ يَقْرِنِي وَلَمْ يُضِفْنِي،[۴] ثُمَّ مَرَّ بِي بَعْدَ ذٰلِكَ،[۵] أَأَقْرِيهِ أَمْ أَجْزِيهِ؟[۶] قَالَ: "بَلِ اقْرِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأطعمة /باب ما جاء فی الضيافة (رقم-۳۷۵۱) واحمد فی المسند: ۴/ ۱۳۱

[2]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الإحسان والعفو (رقم-۲۰۰۶) واحمد فی المسند: ۳/ ۴۷۳

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو الاحوص جشمي ﷺ د خپل پلار ،حضرت مالك ابن فضله صحابي ﷺ، نه روايت کوي،[۲] هغه اوويل چې ما يوه ورځ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ که زه په چا تيريږم، [يعنی د چا ميلمه شم] ،[۳] او هغه زما مهمان نوازي ونه کړي، او نه زما د مهمان نوازئ حق ادا کړي،[۴] بيا د دې نه پس هغه زما ميلمه شي،[۵] نو آيا زه د هغه مهمان نوازي وکړم؟ يا د هغه نه بدله واخلم؟ [يعنی زه هم د هغه سره هغه سلوك وکړم کوم چې هغه زما سره کړي دي؟] ،[۶] حضور ﷺ وفرمايل چې «نه د هغه نه بدله مه اخله» بلکې د هغه مهمان نوازي وکړه «ترمذي»

**حل اللغات:** ① فَلَمْ يَقْرِنِي: نو ميلمستيا اونه کړی زما ② وَلَمْ يَضِفْنِي: او حق ادا نه کړی د ميلمستيا زما، ③ أَأَقْرِيهِ: آيا ميلمستيا اوکړم دهغه، ④ أَجْزِيهِ؟: آيا بدل واخلم دهغه نه

**نوټ:** ددې حديث شخه وړاندې دحديث نمبر(۴۲۴۴) په تشريح کښې ددې جواب تيرشوې دې

## [۳۳۹] د اجازت نه ملاويدو په صورت کښې د کورڅخه واپس کيدل

۴۳۳۳—[۷] ()[۱] وَعَنْ أَنَسٍ - أَوْ غَيْرِهِ - [۲]«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اسْتَأْذَنَ عَلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ،[۳] فَقَالَ: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ" [۴] فَقَالَ سَعْدٌ: وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ،[۵] وَلَمْ يُسْمِعِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] حَتَّى سَلَّمَ ثَلَاثًا، وَرَدَّ عَلَيْهِ سَعْدٌ ثَلَاثًا، وَلَمْ يُسْمِعْهُ،[۷] فَرَجَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاتَّبَعَهُ سَعْدٌ،

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ يا د هغه نه سوا د يو بل صحابي نه روايت دې[۲] چې [يوه ورځ نبي کريم ﷺ د حضرت سعد ابن عباده ﷺ [کور ته رسيدو سره] د کور دننه ورتلو اجازت طلب کړو.[۳] نو حضور ﷺ (په دروازه ودريدو سره» اوفرمايل السلام عليکم ورحمة الله په تاسو دې د الله ﷻ سلامتيا او رحمت نازل شي [آيا زه دننه درتلې شم؟][۴] حضرت سعد ﷺ د کور نه جواب ورکړ وعليکم السلام ورحمة الله، او په تاسو ﷺ دې د الله ﷻ سلامتيا او د هغه رحمت نازل وي،[۵] ليکن هغه نبي کريم ﷺ ته دا جواب وانه ورولو.[۶] تر دې چې حضور درې ځلې سلام وکړو او حضرت سعد ﷺ هم حضور ﷺ ته درې ځلې جواب ورکړو ليکن حضور ﷺ ته يې وانه ورولو، يعنی حضرت سعد ﷺ د حضور ﷺ د سلام جواب درې ځلې قصداً په ډير قلار آواز کې ورکړو.[۷] حضور ﷺ [د هغه جواب نه اوريدو سره] واپس لاړو، حضرت سعد ﷺ [چې وليدل چې کوم څيز ما په حصول سعادت کې د زياتوالي ذريعه جوړول غوښتل، هغه زما د پاره د محرومئ باعث جوړ نه شي، او د سوء ادب شکل اختيار نه کړی، نو سمدستي د کور نه راووتلو، او] په حضور ﷺ پسې راغې،

(۱) اخرجه احمد فی المسند: ۱۳۸/۳

[۱] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي،[۲] مَا سَلَّمْتَ تَسْلِيمَةً إِلَّا هِيَ بِأُذُنِي،[۳] وَلَقَدْ رَدَدْتُ عَلَيْكَ وَلَمْ أُسْمِعْكَ،[۴] أَحْبَبْتُ أَنْ أَسْتَكْثِرَ مِنْ سَلَامِكَ وَمِنَ الْبَرَكَةِ،[۵] ثُمَّ دَخَلُوا الْبَيْتَ،[۶] فَقَرَّبَ لَهُ زَبِيبًا، فَأَكَلَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۷] فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ:[۸] "أَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ[۹] وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ،[۱۰] وَأَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:**[۱] او عرض يي وکړو يا رسول الله ﷺ زما مور پلار دي په تاسو ﷺ قربان شي. [۲] تاسو ﷺ چې څومره خله سلام وکړو زما دواړو غوږونو واوریدو. [۳] حقیقت دا دي چې ما به [هر خل] جواب هم درکولو، البته ما به دا جواب ستاسو ﷺ غوږونو ته نه رسولو. [۴] خکه چه ما دا خوښه کړه چې تاسو ﷺ څومره زيات سلام وکړئ، زما په حق کې به د زيات حصول برکت او سعادت ذريعه وي [د حضرت سعد رضي الله عنه د طرف نه د دې اظهار حقیقت او عذر خواهئ نه پس] [۵] حضور ﷺ او حضرت سعد رضي الله عنه په کور کې دا خل شو. [۶] حضرت سعد رضي الله عنه د حضور ﷺ د پاره وُچکې پیش کړې، چې نبي کريم ﷺ وخوړلې. [۷] کوم وخت چې حضور ﷺ فارغه شو [نو د حضرت سعد رضي الله عنه په حق کې دعاء کولو سره يې] وفرمايل[۸] د الله ﷻ نيك بندګان دي ستاسو طعام وخوري، [۹] ملائکې دي ستا د پاره استغفار وکړي، [۱۰] او روژه دار دي تاسو سره روژه ماتې وکړي، (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① بِأُذُنِي: ما په غوږونو واوريدو، ② وَلَمْ أُسْمِعْكَ: ستاسو غوږونو ته به مې آواز نه در رسولو. ③ فَقَرَّبَ: نو پيش ئې کړې، وړاندې ئې کړې. ④ زَبِيبًا: وُسکې، ⑤ الْأَبْرَارُ: نيکان.

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① أَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ داد ماضي صيغه ده مګردانشاء اودعادپاره په توګه داستقبال استعمال کړې شوې ده. يعنې دالله تعالى نيکان بنديګان دې ستاسو خوراك اوخوري.

② وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ داهم ددعاپه توګه ده يعنې فرښتې دې ستادپاره استغفار اوکړي

③ وَأَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ صائمون نه مراد هغه خلق دي چه خوراك ئې نه دې کړې که د اول نه ئې روژه وي اوکه نه وي داجمله هم ددعاپه توګه ده. يعنې روژه داردې تاسوسره روژې ماتې اوکړي. د خوراك نه پس دادعاګانې زباني وي څه خلق لاس اوچتولو سره دعاکوي معلومه نه ده چه هغوي دچرته نه داثابتوي.

دخوراك نه پس دا دعاهم نقل ده.

## [۳۲۵۰] پرهيزګارانو با ندې خوراک کول

۳۲۵۰ ـ [۸] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «مَثَلُ الْمُؤْمِنِ وَمَثَلُ الْإِيمَانِ كَمَثَلِ الْفَرَسِ ۳ فِي آخِيَّتِهِ يَجُولُ، ۴ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى آخِيَّتِهِ، ۵ وَإِنَّ الْمُؤْمِنَ يَسْهُو، ۶ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى الْإِيمَانِ، ۷ فَأَطْعِمُوا طَعَامَكُمُ الْأَتْقِيَاءَ، ۸ وَأَوْلُوا مَعْرُوفَكُمُ الْمُؤْمِنِينَ». ۹ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي "الْحِلْيَةِ".

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي، ۲ چې حضور ﷺ وفرمايل د مؤمن او د ايمان مثال د هغه اس په شان دي، ۳ چې په خپله رسئ سره تړل شوي وي، او شا وخوا ګرځي، ۴ او بيا خپلي رسئ ته راځي. ۵ او [دغه شان] مؤمن غفلت او کوتاهي کوي، ۶ ليکن بيا د ايمان طرف ته راځي، ۷ نو تاسو خپل طعام په متقي او پرهيز ګارو خلقو خورئ ۸ او په خپلو ورکړو سره ټول مسلمانان برخمن کوئ. [يعنې هغوی ته حصه ورکوئ] ۹ دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې او ابونعيم رحمه الله په حليه کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** ① آخِيَّتِهِ: ميخ، کونډه، ② يَجُولُ: ګرځي راګرځي، ③ يَسْهُو: غفلت او کوتاهي کوی، ④ الْأَتْقِيَاءَ: پرهيزګار او متقيان خلق، ⑤ الْحِلْيَةِ: دکتاب نوم دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَثَلُ الْمُؤْمِنِ وَمَثَلُ الْإِيمَانِ كَمَثَلِ الْفَرَسِ فِي آخِيَّتِهِ يَجُولُ:

**د آخيته مصداق:** دَدې آسانه ترجمه رسئ اوکونډه ده ليکن په اصل کښې دَ اخية بهترين مصداق دَ خناورو په باړه کښې چه کوم دَ سائيکل ټائر په زمکه کښې خښولې شی اوهغې سره رسئ اوتړی او خناور ورپورې تړلې شی هم دغه دې، دې ته کړئ هم وائی

**دحديث مطلب:** مؤمن خپل دَايمان مرکز سره تړلې شوې دې خناور خودَدغه کړئ نه ډير لرې هم ځي ليکن رسئ موجود وی او په آخره کښې واپس بيا کړئ ته راځي هم دغه شان مثال دَ مؤمن دې چه دَ ايمان کړئ سره تړلې شوې دې که دَ ګناه طرف ته په غلطئ سره لاړشي نوبيادَخپل ايمان مرکزطرف ته واپس راګرځي دَ مسلمان مرکز ايمان اوقرآن دې، بيت الله اودَ رسول الله ﷺ مدينه ده مساجد مدارس اوعلماء دی ګمراه شوې مسلمان هم دَدغه مقاماتونه هدايت حاصلولې شی.

**قوله:** فَأَطْعِمُوا طَعَامَكُمُ الْأَتْقِيَاءَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** دافاء جزائيه ده دَدې شرط محذوف دې يعنی کله چه دَ مسلمانانو مرکزيو دې نوپه دغه مرکزباندې ټولوله جمع کيدل پکاردی. لهذا دغه مرکز مضبوط

(۱) اخرجه احمد فی المسند: ۵۵/۳

کړنی ددې صورت به داوی چه دیوبل میلمستیاکونی محبت او اتحاد پیداکړنی په پرهیزګارانو باندې د خوړلوتخصیص ددې دپاره اوکړې شو چه کله هغوی خوراك کوی نو عبادت به کوی او چه عبادت کوی نو تاسوته به دعاګانې کوی او دهغوی دعاګانې قبلیږی.

**قوله**: وَأَوْلُوامَعْرُوفَكُمُ الْمُؤْمِنِينَ:

**مسلمانانوته د هديو ورکولو ترغيب**:داد ایلاء نه دې د والی اومتولی جوړولو په معنی کښې دې یعنی مسلمانان خپلې عطا سره خاص کړنی د کافرانواو منافقانو په چکرکښې مه پریوځنی

## [۴۲۵۱] په خوراك كښې د تشهد په شكل كيناستل

۴۲۴۸—[۹] (۱)[۱] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲]«كَانَ لِلنَّبِيِّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَصْعَةٌ، [۳]يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ، [۴]يُقَالُ لَهَا: الْغَرَّاءُ، [۵]فَلَمَّا أَضْحَوْا[۶] وَسَجَدُوا الضُّحَى، [۷]أُتِيَ بِتِلْكَ الْقَصْعَةِ وَقَدْ ثُرِدَ فِيهَا، [۸]فَالْتَفُّوا عَلَيْهَا، [۹]فَلَمَّا كَثُرُوا، جَثَا رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۱۰]فَقَالَ أعرابِيٌّ: مَا هَذِهِ الْجِلْسَةُ؟،

**ترجمه**: [۱] حضرت عبدالله ابن بسر رضی الله عنه وایي[۲] چې د رسول الله ﷺ سره یو لوئ چوبي خانك (لوی دلرګي لوښی) وو، [۳] چې څلورو کسانو به پورته کولو، [یعنی هر کله چې په هغه کې به طعام کیخودل شو، نو هغه به دومره دروند شو، چې څلورو سړو به اوچتولو. یا هغه خالي دومره لوئ یا د روند وو، چې د څلورو سړو نه بغیر نه شو اوچتیدلو. لوي خانك ته غرًا ونیل کیږي] . [۵] هر کله چې به د څاښت وخت شو، [۶] او خلقو به د څاښت مونځ وکړو [۷] نو هغه لوئ خانك راوړل شو، په هغه کې ثرید تیاریدلو، [۸] بیا به خلق په جمع کیدو سره د هغې نه چاپیره کینا ستل. [۹] تر دي چې د خلقو تعداد به ډیر زیات شو (او د ناستي ځاي به تنګ شو) نو رسول الله ﷺ په زنګونو کیناستو، [۱۰] (یوه ورځ حضور ﷺ دغه شان ناست وو. چې یو بانډچي (کلیوال، ولیدلو) نو هغه اوویل چې دا څرنګه ناسته ده؟ [یعنی داسې ناسته ستاسو د شان سره مناسب نه ده]

**حل اللغات** : ① قَصْعَةٌ: د لرګی کاسه. ② الغَرَّاءُ: روښانه، د لرګی لوښي خانک. ③ أَضْحَوْا: د ساخت وخت شو. ④ ثُرِدَ: ثرید جوړ کړئ شوي وه. ⑤ فَالْتَفُّوا: خلق تاو راتاو چاپیره کیناستل ⑥ جَثَا: په زنکونو باندې کیناستوته وائی

[۱] فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنَّ اللهَ جَعَلَنِي عَبْدًا كَرِيمًا، [۳]وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا عَنِيدًا" [۴]ثُمَّ قَالَ: "كُلُوا مِنْ جَوَانِبِهَا، [۵]وَدَعُوا ذِرْوَتَهَا يُبَارَكْ فِيهَا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] په دي اوریدو سره نبي کریم ﷺ وفرمایل[۲] حقیقت دا دي چې الله تعالی ﷻ زه

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة /باب ما جاء في الأكل من أعلى الصحفة (رقم-۳۷۷۳) وابن ماجه في كتاب الأطعمة /باب الأكل متكئا (رقم-۳۲۶۳)

تواضع او انکساری کونکي جوړ کړي يم،[۳] سرکشه او ضدي يې نه يم جوړ کړي (او داسې ناسته د تواضع او انکساري اختيارولو نژدې لاره ده)[۴] بيا حضور ﷺ (تول مخاطب کولو سره) وفرمايل چې د دې لوښي خانك د غاړو نه (يعنې د خپلې مخې نه يې) خورئ.[۵] د دې بلندي پريږدئ، يعنې درمياني حصه خوړلو ته مخکې لاس مه اچوئ. ستاسو د پاره به په دې کې برکت ورکړې کيږي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑦جَبَّارًا: سرکش، زورآور، ⑧عَنِيدًا: ضدي، ⑨ذِرْوَتَهَا: د خوراک منځ يا پورته حصه.

**تسهيلات:**

**قوله: قَصْعَةٌ، يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ، يُقَالُ لَهَا: الْغَرَّاءُ:**

**د نبي عليه السلام د صحابؤ سره په لوټ لوښي کښې خوراک کول:** يعنې رسول الله ﷺ او د هغوی صحابه کرام ﷢ چه به په کوم لوښي کښې خوراک فرمائيلو هغه يو لويه پياله وه کومه چه به څلورو کسانو راوړله او په هغې کښې به ثريد اچولې شوې وو د دې پيالې نوم غرّاء وو، پس چه کله به د څاښت وخت شو او صحابه کرام ﷢ به د څاښت مونځ اوکړو نو دا پياله به راوړلې شوه ټول حضرات به د هغې نه چاپيره د حلقې په شکل کښې کيناستل

**قوله: جَثَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

**باندیچې ته د نبي عليه السلام جواب:** يوکرت چه کله خوراک کونکي زيات شو نو رسول الله ﷺ راغونډ په دواړو کونډو باندې کيناستلو (ښکاره خبره ده چه دا ډير د تواضع هيئت دې هم په دې وجه) يو اعرابي اووې دا د ناستې څنګه هيئت دې؟ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل (إِنَّ اللَّهَ جَعَلَنِي عَبْدًا كَرِيمًا وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا عَنِيدًا) چه الله پاک زه شريف الطبع انسان پيدا کړې يم. او متکبر او سخت خوئي والائې نه يم جوړ کړې بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل د دې پيالې د څلورو واړو طرفونو نه خوراک کوئ، او د دې د مينځ حصه پريږدئ چه په دې کښې برکت نازليږي.

**د نبي عليه السلام دوه قسمه لرګې پيالې:** په شمائل ترمذي کښې د رسول الله ﷺ د قدح ذکر هم راغې چه په هغې باندې امام ترمذي ﷫ مستقل باب تړلې دې چه په هغې کښې دا دی (عن ثابت قال اخرج الينا انس بن مالك ﷜ قدح خشب غليظ مضببا بحديد الحديث) يعنې د رسول الله ﷺ د لرګي يو پياله وه چه په هغې کښې د اوسپنې پټرې لګيدلې وو. چه د هغې په باره کښې انس ﷜ دا هم فرمائي چه رسول الله ﷺ به د څکلو ټول څيزونه په دې پياله باندې څکل (الماء والنبيذ والعسل واللبن) او دا غراء د کوم چه په حديث الباب کښې ذکر دې د يو لوئې لوښي نوم دې چه په هغې کښې به رسول الله ﷺ او صحابه کرام ﷢ يو ځائې ثريد خوړلو. والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري.

[۳۲۵۳] په شريکه خوراک کولو کښې برکت

۳۲۵۳-[۱۰] (¹) [۱] وَعَنْ وَحْشِيِّ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، [۲] «أَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [۳] إِنَّا نَأْكُلُ وَلَا نَشْبَعُ. [۴] قَالَ: "فَلَعَلَّكُمْ تَفْتَرِقُونَ؟ [۵] " قَالُوا: نَعَمْ. [۶] قَالَ: "فَاجْتَمِعُوا عَلَى طَعَامِكُمْ، [۷] وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت وحشي ابن حرب رضی الله عنه د خپل پلار نه او هغه (د خپل پلار او) د وحشي د نيکه نه نقل کوي، [۲] چې حضور ﷺ ته څه صحابه ؤ رضی الله عنهم [يوه ورځ] عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ [۳] مونږ [اګرچه خه ډيرا] طعام خورو، ليکن مونږ نه مړيږو، [حالانکه مونږ غواړو چې يا خو دي زمونږ نس (خيټه) ډک شي، چې مونږ ته د عبادت او طاعت طاقت حاصل شي، يا مونږ ته د قناعت دولت حاصل شي] [۴] حضور ﷺ وفرمايل [په خاص مقدار کې د طعام خوړلو باوجود د نس د نه ډکيدو ظاهري وجه دا معلوميږي، چې] تاسو بې شايد جدا جدا خورئ، [۵] هغوئ عرض وکړو چې هو، [۶] حضور ﷺ وفرمايل چې بيا تاسو خپل طعام په جمع کيدو سره خورئ، [۷] او په هغې د الله جل جلاله نوم اخلئ (بسم الله وايئ) ستاسو د پاره به په هغه طعام کې برکت درکول کيږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَفْتَرِقُونَ: تاسو به جدا جدا خورئ.

**د حضرت وحشي بن حرب رضی الله عنه مختصر تعارف:** نوم وحشي، کنيت ابودسمه، دَحضرت جبير بن مطعم غلام وو. په جنګ بدرکښې حضرت حمزه رضی الله عنه دَ جبير بن مطعم تره طعيمه بن عدی قتل کړې وو په دې وجه جبيرته دَهغه دَ بدلې ډير زيات فکروو. دَاحد په جنګ کښې جبيروحشي ته اووئيل که تا حضرت حمزه رضی الله عنه شهيدکړې نوآزاد ئې. نو وحشي حضرت حمزه رضی الله عنه داسې په نيزه اووهلو چه دَ نوم نه ئې پورې راپورې اووتله او هم په هغه ځائ شهيدشو (بخاری کتاب المغازی)

دَمکې دَفتح نه پس مدينه منوره کښې حاضرشو اومسلمان شو. حضور ﷺ اوفرمائيل وحشي تاته په کتو سره ماته خپل تره حضرت حمزه رضی الله عنه راياديږی. دَحضرت حمزه رضی الله عنه قتل دَ وحشي په زړه باندې يوداسې زخم وو دَ کوم چه هغه تلافي کول غوښتله. نوچه کله مسيلمه کذاب سره جنګ اوشونووحشي هم هغه نيزه واخسته په کومه چه ئې حضرت حمزه رضی الله عنه شهيدکړې ووپه هغه نيزه باندې ئې دَ مسيلمه کذاب په سينه باندې داسې واراوکړو چه دَ سينې نه ئې پورې راپورې اووتلو.

**وفات:** حمص کښې وفات شو.

**مرويات:** بعضې وائي چه ۸ اودَ بعضوپه نيزدَ هغه نه څلور روايتونه نقل دي.

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة/باب في الاجتماع على الطعام (رقم-۳۷٦٤) وابن ماجه في كتاب الأطعمة/باب الاجتماع على الطعام (رقم-۳۲۸٦) واحمد في المسند: ۵۰۱/۳

**تسهيلات:**

**قوله: فَاجْتَمِعُوا عَلَى طَعَامِكُمْ:**

**دحديث مناسب محمل:** په ظاهره داسې معلومېږي چه په يوځائې كيناستل او په يولوښي كښې خوړلو ته يوځائې خوراك وئيلې شوى دى كيدې شي چه په يودسترخوان باندې كيناستل او په جدا جدا پليټونوكښې خوړلوسره به دا شرط پوره نه شي عرب خلق لس لس كسان په يوځائې كيني اوس هم په قبانلوكښې هم دغه شان رواج دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۲۵۳] دانسان ضروريات اصليه**

۳۲۵۳–[۱۱] ()عَنْ أَبِي عَسِيبٍ، قَالَ: ۲ "«خَرَجَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَيْلًا، ۳ فَمَرَّ بِي فَدَعَانِي، ۴ فَخَرَجْتُ إِلَيْهِ، ۵ ثُمَّ مَرَّ بِأَبِي بَكْرٍ فَدَعَاهُ، فَخَرَجَ إِلَيْهِ، ۶ ثُمَّ مَرَّ بِعُمَرَ فَدَعَاهُ، فَخَرَجَ إِلَيْهِ، ۷ فَانْطَلَقَ حَتَّى دَخَلَ حَائِطًا لِبَعْضِ الْأَنْصَارِ، ۸ فَقَالَ لِصَاحِبِ الْحَائِطِ: "أَطْعِمْنَا بُسْرًا" ۹ فَجَاءَ بِعِذْقٍ، فَوَضَعَهُ، ۱۰ فَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَصْحَابُهُ، ۱۱ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ بَارِدٍ، فَشَرِبَ، ۱۲ فَقَالَ: "لَتُسْأَلُنَّ عَنْ هَذَا النَّعِيمِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ"،

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو عسيب رضي الله عنه وايي چې ۲ [د يو خل واقعه ده] چه د شپې په وخت رسول الله ﷺ د كور نه بهر راووتلو، ۳ او زما كره يي تشريف را وړو. او زه يي وبللم. ۴ زه راوتلو سره د حضور ﷺ سره ملګري شوم، ۵ بيا د حضرت ابوبكر رضي الله عنه كره يي تشريف يوړو. او هغه يي وبللو، هغه هم د كورنه راوتلو سره د حضور ﷺ سره شو. ۶ بيا حضور ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه كره تشريف يوړلو، هغه يي وبللو، هغه هم د كور نه را وتلو سره د حضور ﷺ سره شو. ۷ بيا حضور ﷺ [مونږ ټولو سره] روان شو. تر دې چې يو باغ ته ورسيدو، چې د يو انصاري صحابي وو. ۸ حضور ﷺ د باغ مالك ته وفرمايل چې په مونږ كجوري وخوره. ۹ د باغ مالك د كجورو يو غنچك راوړلو سره زمونږ مخې ته كيخودو. ۱۰ د هغې نه رسول الله ﷺ هم وخوړلې او د هغه صحابه رضي الله عنهم [يعنى مونږ خلقو] هم وخوړلی. ۱۱ بيا حضور ﷺ يخې اوبه وغوښتلې. چې حضور ﷺ [او مونږ] اوڅكلې. ۱۲ د هغې نه پس حضور ﷺ وفرمايل چې يقينًا د قيامت په ورځ به ستاسو نه د دې نعمت باره كې پوښتنه كيږي،

**حل اللغات:** ① حَائِطًا: باغ. ② بُسْرًا: نيم پخته كجوري. ③ بِعِذْقٍ: د كجورو غونچک.

۱ قَالَ: فَأَخَذَ عُمَرُ الْعِذْقَ فَضَرَبَ بِهِ الْأَرْضَ ۲ حَتَّى تَنَاثَرَ الْبُسْرُ قِبَلَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۳ ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّا لَمَسْئُولُونَ عَنْ هَذَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ ۴ قَالَ: "نَعَمْ، إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ: ۵ خِرْقَةٍ لَفَّ بِهَا الرَّجُلُ عَوْرَتَهُ، ۶ أَوْ كِسْرَةٍ سَدَّ بِهَا جَوْعَتَهُ، ۷ أَوْ جُحْرٍ تَدْخُلُ فِيهِ مِنَ الْحَرِّ وَالْقُرِّ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ

() اخرجه احمد في المسند: ۸۱/۵

الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] راوي وايي چې (د دې اوريدو سره) حضرت عمر رضي الله عنه د كجوروو غنچك اوچت كړو او په زمكه يې وويشتلو، [۲] تر دې چې د هغې كچه كجوري د رسول الله ﷺ مخې ته وباشل [خوري وري] شوې، [۳] بيا هغه عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ آيا د قيامت په ورځ به زمونږ نه په دې باره كې پوښتنه كيږي؟ [۴] حضور ﷺ وفرمايل چې د هر نعمت باره كې به پوښتنه كيږي، كه هغه كم وي كه زيات، البته د دريو څيزونو باره كې به پوښتنه نه كيږي، [۵] يو خو هغې جامه چې په هغه سره سړي بدن پټ كړي، [۶] دويم د روټۍ ټكړه چې د هغه په ذريعه خپله لوږه لرې كړي، [۷] او دريم كور (مكان) چې هغه ته د ګرمۍ او يخنۍ نه د ساتنې د پاره ورننوځي. (احمد بيهقي)

**حل اللغات:** ③تَنَاثَرَ: اوښې شيندلې، ⑤خِرْقَةٍ: جامه، ⑥لَفَّ: پټ كړي، ⑥كِسْرَةٍ: د روټۍ ټكړه، حصه. ⑧سَدَّ: بند كړي، لرې كړي، ⑨جُحْرٍ: كور، ⑩الْقُرّ: يخني.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث د ګرانو لغاتو حل او شوباقي د حديث مضمون آسان دې.

**[۳۲۵۳] په جمع خوراك كولو كښې دوراندې بس كولو څخه ممانعت**

۳۲۵۳—[۱۳] (¹) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا وُضِعَتِ الْمَائِدَةُ [۳] فَلَا يَقُومُ رَجُلٌ حَتَّى تُرْفَعَ الْمَائِدَةُ، [۴] وَلَا يَرْفَعْ يَدَهُ وَإِنْ شَبِعَ [۵] حَتَّى يَفْرُغَ الْقَوْمُ، [۶] وَلْيُعْذِرْ، [۷] فَإِنَّ ذَلِكَ يُخْجِلُ جَلِيسَهُ [۸] فَيَقْبِضُ يَدَهُ، [۹] وَعَسَى أَنْ يَكُونَ لَهُ فِي الطَّعَامِ حَاجَةٌ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې دسترخوان وغوړيږي، [او خلق د خوراك د پاره كيني] [۳] نو يو سړي دې تر هغه وخته پورې نه پاڅيږي، تر څو چې څيزونه پورته نه شي، [۴] او د طعام نه دې تر هغه وخته پورې لاس نه نيسي، اګركه چيرى هغه موړ شوي وي، [۵] تر څو چې ټول خلق د خوراك نه فارغه نشي. [۶] او [كه د څه عذر په بناء د دسترخوان نه مخكې پاڅيدل ضروري وي، يا د نورو خلقو د خوراك نه فارغيدو نه مخكې خپل لاس نيول وي نو] پكار دې چې هغه عذر بيان كړي [يعني معذرت طلب كولو سره دې د دسترخوان نه ولاړ شي، يا دې خپل لاس ونيسي] [۷] څكه چې په دې [صورت كې د طعام نه خپل لاس رانيول، هر كله چې نور خلق په خوراك كې مشغول وي]، خپل ناست ملګري شرمنده كول دي. [۸] چنانچه [هر كله چې يو سړي د

(¹) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأطعمة/باب النهي أن يقام عن الطعام حتى يرفع، وأن يكف يده حتى يفرغ القوم (رقم-۳۲۹۵)

ويني، چې د هغه ملګرو خوړل پرېښي وي]، نو د شرم په وجه هغه به هم خپل لاس ونيسي،[۹] حالانکه ډېره ممکنه ده چې هغه لا اوس د نور خوراك خواهش لري، [يعنى هغه لاته وي موړ سوي] (ابن ماجه بيهقي)

**حل اللغات:** ①وَلْيُعْذِرْ: عذر دې اوکړي، ②يُخْجِلُ: شرمنده کوي.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا وُضِعَتِ الْمَائِدَةُ فَلَا يَقُومُ رَجُلٌ حَتَّى تُرْفَعَ الْمَائِدَةُ:

**په جمع کښې د مخکې پاسيدو ممانعت:** په حديث کښې يو ادب دا خودلې شوې دې که څوک موړ هم شي نو د ملګرو څخه دې نه پاسيږي چې دوى داسې پرېږدي اودې ترې پاسى په دې کښې به هغوى ته شرم محسوس شي چې په مونږ باندې به د زياتى خوړو ګمان اوکړى نوکيدې شي هغوى هم د شرم د وجهې پاسى.

**قوله:** وَلَا يَرْفَعْ يَدَهُ وَإِنْ شَبِعَ حَتَّى يَفْرُغَ الْقَوْمُ:

**د ملګرو څخه وړاندې د بس کولو څخه ممانعت:** په اجتماعى خوراك کښې يوسړې دَبل دوست نه وړاندې دَخوراك نه لاس رانه کاږى بلکه دآخره پورې دې هسې شغل کوى دې دَپاره چه دَ شرم دَ وجهې نور هم خوراك پرينږدى.

**قوله:** وَلْيُعْذِرْ:

**د مخکې پاسيدو په صورت کښې ملګروته عذر وړاندې کول:** يعنى که يوسړې زر پاسى ياڅه مجبورى وى نوهغه دې خپلو ملګروته معذرت اوکړى او اودې وائى چه رونړو تاسو خورئى ما مخکښې خوړلې ده. زه په تادئى کښې يم چرته روان يم. دا ځکه چه نورو ملګروته ئى دَ شرم وجهې په خوراك کښې مشکل نه وى. چه لاتردغه وخت پورې دَهغوى دَ خوراك طلب باقى دې مګر دَنورو دَ لاس رانښکلودَ وجهې هغه هم لاس راکاږى.

**[۴۲۵۵] نبى عليه السلام او د ټولو څخه روسته بس کول**

۴۲۵۵-[ ۱۳ ] (¹)[۱] وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَكَلَ مَعَ قَوْمٍ[۳] كَانَ آخِرَهُمْ أَكْلًا». [۴] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا.

**ترجمه:**[۱] او امام جعفر صادق ابن محمد رحمه الله د خپل پلار يعنى د امام محمد باقر رحمه الله نه روايت کوي، هغه اوويل[۲] رسول الله ﷺ چې به د خلقو سره طعام خوړلو،[۳] نو حضور ﷺ به د ټولو نه آخر سړى وو، چې له خوراك نه به يې لاس اخستلو.[۴] دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې بطور ارسال نقل کړي دي.

¹) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۶۰۳۷

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَاأَكَلَ مَعَ قَوْمٍ كَانَ آخِرَهُمْ أَكْلًا:

**د مقتدا دپاره په ملګرو کښې روسته بس کول:** د دي حدیث په شان ماقبل کښې هم یو حدیث تیر شو، چه نبی کریم ﷺ به په دسترخوان باندې موجود خلقو نه مخکښې خپل لاس مبارک نه ورستو کول بلکه اخر پورې به ئې خوراک کولو، او نبی کریم ﷺ به کم خوراک کولو او په دمه دمه به ئې کولو، هم دغه شان تر آخر پورې به تولو سره ناست وو. ځکه چه نور خلق د شرم او حیا دوجهې نه خوراک پرینږدي.

**[۴۲۵۶] د لوږې باوجود د طعام خوړلو نه تکلفًا انکار کول د دروغ ویلو برابر دي**

۴۲۵۶ — [۱۴] (۱) ۱ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ۲ «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِطَعَامٍ ۳ فَعَرَضَ عَلَيْنَا ۴ فَقُلْنَا: لَا نَشْتَهِيهِ. ۵ قَالَ: "لَا تَجْتَمِعْنَ جُوعًا وَكَذِبًا» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي اسماء بنت یزید رضي الله عنها وایي ۲ چې یوه ورځ نبي کریم ﷺ ته طعام راوړل شو، ۳ او بیا یې هغه طعام زمونږ مخې ته کیخودو [مونږ اګر چې اوږي وو. او د خوړلو خواهش مو وو، خو ځرنګه چې عادت دي محض تکلفًا] ۴ مونږ اوویل چې مونږ ته د خوړلو خواهش نشته، ۵ حضور ﷺ (د دي په اوریدو سره) وفرمایل لوږه او دروغ دواړه مه جمع کوئ. (ابن ماجه)

**تسهیلات: قوله:** فَقُلْنَا: لَا نَشْتَهِيهِ: یعنی زمونږ خوراك ته زړه نه کیږی حالانکه زړه ئی وو مطلب دا چه اوګې دې خو په تکلف سره وائی چه اوګې نه یم نو په دې کښې دَدوو ځیزونونقصان دې یو خو دَدنیا چه خوراك ئی اونه کړو بل دَ آخرت چه دروغ ئی اوویل دادَ امت دَ داسې کسانو دَپاره تنبیه ده څوك چه داسې کوی

**[۴۲۵۷] په جمع طعام خوړل د برکت باعث دي**

۴۲۵۷ — [۱۵] (۲) ۱ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ۲ «كُلُوا جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا، ۳ فَإِنَّ الْبَرَكَةَ مَعَ الْجَمَاعَةِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ طعام په جمع خورئ، جدا جدا یې مه خورئ، ۳ ځکه چې برکت د جماعت سره وي. (ابن ماجه)

(۱) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الأطعمة/باب عرض الطعام (رقم-۳۲۹۸)
(۲) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الأطعمة/باب الاجتماع علی الطعام (رقم-۳۲۸۷)

**[٣٣٥٨] ميلمه سره ترکور دروازې پورې تلل**

٣٣٥٨-[١٦] ()[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَخْرُجَ الرَّجُلُ مَعَ ضَيْفِهِ إِلَى بَابِ الدَّارِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] دا سنت دي چې سړي د خپل ميلمه [د استقبال كولو يا د رخصتولو] د پاره د كور د دروازې نه تر بهر راووځي (ابن ماجه)

٣٣٥٩-[١] وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" عَنْهُ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، [٢] وَقَالَ فِي إِسْنَادِهِ ضَعْفٌ.

**ترجمه:** [١] او بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كې دا روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړي دي[٢] او بيهقي رحمه الله ويلي دي چې د دې په سلسلهٔ سند كې ضعف دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَخْرُجَ الرَّجُلُ مَعَ ضَيْفِهِ إِلَى بَابِ الدَّارِ

**ميلمه دروازې پورې تلل:** مطلب دادې چه دَميلمه دَ رخصت كولويه وخت هغه سره دَدروازې پورې تلل دَ پخوانې زمانې يوعادت دې چه دَتهذيب او ښه والى يو حصه ده يامطلب دادې چه نبى كريم فرمائى چه داعمل زمادَ طريقې مطابق دې.

**[٣٣٦٠] د سخاوت والا کورته د خير راتلل**

٣٣٦٠-[١٧] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] («الْخَيْرُ أَسْرَعُ إِلَى الْبَيْتِ الَّذِي يُؤْكَلُ فِيهِ[٣] مِنَ الشَّفْرَةِ إِلَى سَنَامِ الْبَعِيرِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] په كوم كور كې چې [په ميلمنو] طعام خوړل كيږي، هلته خير [يعنى رزق، بركت او ښيګړه] دومره په تيزئ سره رسيږي،[٣] چې په دومره تيزي سره چاړه هم د اوښ قُب [بوك] ته نشي رسيدي، (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الشَّفْرَةِ: چاړه، ② سَنَامِ: قُب، ③ الْبَعِيرِ: اوښ

**تسهيلات:**

**قوله:** الْخَيْرُ أَسْرَعُ إِلَى الْبَيْتِ الَّذِي يُؤْكَلُ فِيهِ مِنَ الشَّفْرَةِ إِلَى سَنَامِ الْبَعِيرِ

**د اوښ قُب سره د تشبيه وركولو وجه:** اوښ چه كله ذبح كولې شى نودَ ذبح نه پس دَ ټولونه اول زر زر دَهغه دَ قب نه غوښه پرې كولې او پخولې شى او په شوق سره خوړلې شى. په دې

¹) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الأطعمة /باب الضيافة (رقم-٣٣٥٨)
²) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الأطعمة /باب الضيافة(رقم-٣٣٥٧)

حديث كښې ئې فرمائيلي دی چه دکوم سړی په کورکښې په ميلمه باندې خوراك اوكړې شو دهغه كورطرف ته خير اوبركت ددې نه هم زيات زر راځی لكه څنګه چه چاړه د ذبح شوی اوښ د قب طرف په تادئی سره راځی.

# [۲] بَابٌ فِي مَتَى يَكُونُ الْمَرْءُ مُضْطَرًّا الِتَحِلَّ لَهُ الْمَيْتَةُ

**سړې کله اضطراری حالت ته رسيږی چې دده دپاره مرداره جائز کيږی**

## وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الأَولِ وَالثَّالِثِ

په دې باب کې فصل اول او فصل دويم نشته

| **خلاصة الباب:** |
|---|
| **فيه حديثان كل واحد منهما مشتملان على حكم حالة الإضطرار** |

**په اصل مشكاة كښې د باب د عدم عنوان وجه:** ددې باب لاندې صاحب مشكوة هيڅ عنوان نه دې تړلې لكه چه داباب د سابقه باب د لواحقاتو څنې دې.

**د فصل اول او ثالث د عدم وجود وجه:** بله خبره دا چه په دې باب كښې فصل اول او فصل لثالث دواړه غيب دی صرف فصل ثانی ذكردې. چونكه صاحب مشكوة د مصابيح پيروی كوی اوصاحب مصابيح ته ددې متعلق څه حديث نه دې ملاؤ شوې. لهذا فصل اول ئې نه دې لګولې باقی فصل ثالث راوړل د صاحب مصابيح په نيزنشته دي په دې وجه د دې دنفی كولوضرورت نه وو.

**د مضطر عنوان ور كولو:** كه چرې دا باب نه هم وونوځه بنه به وه. دا احاديث به د سابقه باب په فصل ثانی كښې درج كيدل ليكن چونكه دمضامينو په اعتبارسره دا احاديث بالكل مختلف دی په دې وجه علامه طيبی رحمه الله اوملاعلی قاری رحمه الله دباب إلمضطر عنوان وركړوكوم چه ډيرښه دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۳۶۱] په حالت اضطراری كښې د مرداري د خوړلو حكم**

| |
|---|
| ۴۳۶۱-[۱] (۱) ۱ «عَنِ الْفُجَيْعِ الْعَامِرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ فَقَالَ مَا يَحِلُّ لَنَا مِنَ الْمَيْتَةِ؟ ۳ قَالَ: "مَا طَعَامُكُمْ؟ ۴ قَالَ: نَغْتَبِقُ وَنَصْطَبِحُ". ۵ قَالَ أَبُو نُعَيْمٍ: فَسَّرَهُ لِي عُقْبَةُ: ۶ قَدَحٌ غُدْوَةً، وَقَدَحٌ عَشِيَّةً. ۷ قَالَ: "ذَاكَ وَأَبِي الْجُوعُ" ۸ فَأَحَلَّ لَهُمُ الْمَيْتَةَ عَلَى هَذِهِ الْحَالِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |

**ترجمه:** ۱ د حضرت فجيع عامري رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه [يوه ورځ] د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو، ۲ او عرض يي وكړو چه دا اراته اووايه يه چې زمونږ د پاره په مرداره

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأطعمة باب في المضطر إلى الميتة (رقم-۳۸۱۷)

کې څه حلال دي؟ [۳] حضور ﷺ وفرمایل (مخکې دا راته اووایه چې) تاسو خلقو ته طعام په کوم مقدار کې ملاویږي؟ [۴] ما عرض وکړ مونږ ته یوه پیاله شوده په ماښام کې او یوه پیاله شوده په سحر کې ملاویږي [۵] (د حدیث راوي) ابونعیم وایي (زما استاذ او شیخ) حضرت عقبه (د نغتبق اونصطبح) دا وضاحت کړي دي. [۶] چې یوه پیاله شوده په سحر کې او یوه پیاله شوده په ماښام کې [۷] ابهر حال رسول الله ﷺ د فجیع رضي الله عنه جواب اوریدو سره] وفرمایل د طعام دا مقدار په خپل پلار قسم! لوږه واجبوي. ایعنی سحر او ماښام محض یوه یوه پیاله شو ده حاصلیدل د لوږې د ختمولو او د انساني ژوند د بقاء ذریعه نشي جوړیدي] [۸] حضور ﷺ په دې صورت کې د هغوئ د پاره مرداره حلاله کړله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① نَغْتَبِقُ: أي قَدَحٌ غُدْوَةً: مونږ ته د پښیو یوه پیالئ سحر ملاویږی ② وَنَصْطَبِحُ: أي وَقَدَحٌ عَشِيَّةً: اومونږ ته د پښو یوه پیالئ ماښام ملاویږی ③ قَدَحٌ: پیالئ. ④ غُدْوَةً: سحر. ⑤ عَشِيَّةً: ماښام ⑥ وَأَبِي الْجُوعُ: په الله تعالی قسم دا خو خالص اولګه ده.

**تسهیلات:**

**قوله:** نَغْتَبِقُ وَنَصْطَبِحُ

**دمذکوره جملې مطلب:** دَحدیث راوی ابونعیم وائی زما استاذ عقبه دَدې دواړو کلماتو داسې مطلب بیان کړې دې چه دَ پیئو یوه پیالئی سحر او یوماښام ملاویدله صبوح سحر او غبوق ماښام ته وائی.

**قوله:** ذَاكَ وَأَبِي الْجُوعُ

**د مذکوره جملې مفهوم:** ذاك مبتداء ده او الجوع دَدې خبردې او وأبي په مینځ کښې جمله معترضه قسمیه ده علامه طیبی رحمه الله فرمائی "وأبي جملة قسمية معترضة بين المبتدأ والخبر" (طیبی) یعنی په الله تعالی قسم داخوخالص اولګه ده یعنی حالت دَ اضطرار دې لهذا مرداره اوخوره اوخان بچ کړه

**د اضطرار په تعریف کښې ۲ مذاهب:**

① امام مالک رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله او په یوقول کښې دَ امام شافعی رحمه الله په نیزکه یوسړي دَخپل طبعی خواهش مطابق دومره خوراك نه مومی په کوم سره چه هغه موړشی نودې سړی له مرداره خوړل جائزدی دَمردارې خوړلو اودَ اضطراری تحقیق باره کښې ددې حضراتو په نیزډیر وسعت دې

② امام ابوحنیفه رحمه الله او په یوقول کښې دَ امام شافعی رحمه الله په نیز اضطراری حالت به هغه وخت متحقق کیږی چه سړی ته دَ اولګې دَ وجهې دَ هلاکت خطره وی نوبیادې مرداره دومره اوخوری چه ژوندې باقی پاتې شی صرف دَ قوت لایموت اورسد رمق دَحده پورې

دي اوخوري [الكاشف:۸/۱۹۲]

**داول فریق دلیل:** جمهورو دَ زیر بحث حدیث نه استدلال کړي دي. په دي کښې صبا بیګاه یوه پیالې پیو ملاویدو ته هم حالت اضطرار وئیلي شوي دي

**داول فریق د دلیل جواب:** دایوه پیالئی دَ پوره قوم دَپاره وه نودا عین اضطرار دي ځکه چې ټول قوم په یوه پیالې چرته مړیدي شو.

**د دویم فریق دلیل:** دَ حضرت ابوواقد لیثی رضی الله عنه حدیث د احنافو دلیل دي په کوم کښې چې راوي د حدیث د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ارشاد مطلب دا بیانوی که تاسو ټوله ورځ او ټوله شپه د خوراك څکاك څه شي بیا نه مومي، دغه شان تاسو ته د سبزي د قسم نه هم څه شي (تر دي چې وابنه او د وني پاڼي هم) میسر نشي، چې تاسو یي خوړی شي (او خپل ځان وساتلي شی) نو په دي صورت کې به مردار ستاسو د پاره حلال وي.

**[۳۳۳] د مخمصه په حالت کښې د مرداري د خوړلو حکم**

۳۳۳-[۲] ()[۱] وَعَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ[۲] «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ![۳] إِنَّا نَكُونُ بِأَرْضٍ فَتُصِيبُنَا بِهَا الْمَخْمَصَةُ[۴] فَمَتَى يَحِلُّ لَنَا الْمَيْتَةُ؟[۵] قَالَ: "مَالَمْ تَصْطَبِحُوا أَوْتَغْتَبِقُوا[۶] أَوْتَحْتَفِئُوا بِهَا بَقْلًا[۷] فَشَأْنُكُمْ بِهَا"[۸] مَعْنَاهُ: إِذَالَمْ تَجِدُوا صَبُوحًا أَوْغَبُوقًا[۹] وَلَمْ تَجِدُوا بَقْلَةً تَأْكُلُونَهَا[۱۰] حَلَّتْ لَكُمُ الْمَيْتَةُ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو واقد لیثي رضی الله عنه وایي[۲] چې یو سړي عرض وکړو چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم [۳] مونږ کله داسې زمکه [یعنی داسې ځای] ته رسو، چې [هلته مونږ ته د خوراك د پاره هیڅ نه ملاویږي، چې د هغه په وجه] مونږ د مخمصه (لوږي) په حالت کې مبتلا کیږو، [۴] په دي صورت کې مردار خوړل زمونږ د پاره کله حلالیږي؟[۵] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل هر کله چې تاسو تر سحر یا تر ماښامه د خوراك څکاك څه شي بیا نه مومئ، [په هغه زمکې یعنی په هغه ځاي کې کوم ځاي چې تاسو یئ][۶] د سبزئ د قسم نه هم څه شي تاسو ته ملاو نشي. احاصل دا چې تاسو ته څه داسې شي میسر نشي، چې لوږه ختمونکې یا نس (خیټه) ته سحره ورکونکي وي][۷] نو ستاسو حالت به د مرداري سره متعلق وي، [یعنی په داسې صورت پیش راتلو به مرداره خوړل ستاسو د پاره حلال وي] [اوس د دي نه پس راوي د حدیث ماحصل بیانوي چې][۸] د دي ارشاد ګرامي مطلب دا دي که تاسو ټوله ورځ او ټوله شپه د خوراك څکاك څه شي بیا نه مومئ،[۹] دغه شان تاسو ته د سبزئ د قسم نه هم څه شي [تر دي چې وابنه او د وني پاڼي هم] میسر نشي، چې تاسو یي خوړی شي (او خپل ځان وساتلي شئ)[۱۰] نو په دي صورت کې به مردار ستاسو د پاره حلال وي (دارمي)

[1] اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحدیث ۱۹۹۶واحمد فی المسند ۲۱۱/۵

**حل اللغات:** ① الْمَخْمَصَةُ: دلوږې حالت، اضطراری حالت، ② مَا تَصْطَبِحُوا: تر سحره پورې، ③ أَوْ تَغْتَبِقُوا :یا تر مابنامه پورې، ④ أَوْ تَحْتَفِئُوا : یا حاصل نه شی تاسو ته، ⑤ بَقْلًا: سبزی، ⑥ فَشَأْنُكُمْ بِهَا : نو ستاسو حالت به ددې په شان وی، حالت اضطراری به وی، ⑦ صَبُوحًا: سحروخت، ⑧ غَبُوقًا: مابنام وخت، ⑨ بَقْلَةً :سبزیانې

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّا نَكُونُ بِأَرْضٍ فَتُصِيبُنَا بِهَا الْمَخْمَصَةُ:**

**د اضطرار څو صورتونه دي.** ① د ولږې د وجهې مرګ ته نزدې کیدل.

② یو ظالم کس بل کس نه اووائی که دا حرام څیز دې اونه خوړلو نو قتل کوم دې

③ یوظالم کس بل کس نه اووائی که دا حرام څیز دې اونه خوړلو نوستا مور پلار قتل کوم دې

**د اجازت ملاویدو څخه پس د دوو څیزونو وجوب:**

① نه به په مرداره خوند اخلی

② نه به د ضرورت څخه زیاته خوری.

ددې نه دا معلومه شوه چه حرمت بحاله باقی وی صرف د عارضی اضطرار په وجه مباح کړې شوې دې.

**د مقدار دوه صورتونه:** باقی په څومره مقدار کښې خوړل جائز دي نو په دې کښې دوه صورتونه دی ① دومره خوراک کول پکار دی چه د مرګ نه بچ پاتې شي او ولږه ختمه نشي ② دومره خوراک کول پکاردي چه ولږه ختمه شی دولږې نه زیات دې هرګز ونه خوړلې شی

**دحدیثونو په مینځ کښې تعارض:** په دې حدیث کښې او په ماقبل حدیث کښې تعارض دې، ځکه چه په دې حدیث کښې ذکر دې چه تر کومه پورې ستا ګزاره په ګیاه (وابنوه) باندې کیږې نو مرداره مه خوره، او په ماقبل حدیث کښې ذکر دی چه د پیو یو پیاله سحر او مابنام ملاویږې نو دا اضطراری حالت دې او مرداره خوړل جائز دي، نو په دواړه احادیثو کښې تعارض دې؟

**دتعارض جواب:** په دې حدیث کښې چه کوم ذکر دې هغه د اضطرار یو حد دې چه ګیاه ملاویږی نو ګیاه د خوری او مرداره دې نه خوری.

او د ماقبل حدیث جواب دا دې چه هلته یوه پیاله ټول قوم ته څنګه رسیدله، یعنی یو یو ګوټ هم نه رسیدلو، نو هلته د اضطرار حالت موجود وو، لهذا په دواړو روایاتو کښې هیڅ تعارض نشته.

# [٣] بَابُ الأَشْرِبَةِ

## دَ څکلو د څیزو نو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① حكم التنفس في الشراب: ١، ۶.
② حكم الشرب من فم السقاء: ٢، ٣، ١٩.
③ النهي عن الشرب قائما: ۴، ۵.
④ جواز الشرب في بعض الأوقات قائماً: ۶، ٧، ١٣، ١۴.
⑤ شرب الماء المخلوط بالحليب: ٨، ١١.
⑥ النهي عن الشرب في آنية الفضة والذهب: ٩، ١٠، ٢٣.
⑦ إعطاء الإناء لصاحب اليمين في السقاية: ١١، ١٢.
⑧ النهي عن التنفس في الإناء: ١۵، ١۶، ١٧، ١٨.
⑨ أحب الماء إلى رسول الله الحلو البارد: ٨، ٢٠، ٢٢.
⑩ فضيلة شرب اللبن: ٢١.

**د باب ماقبل سره ربط:** مشروب چونکه دَطعام تابع وی په دې وجه دکتاب الاطعمه په ذیل کښې ئی تابع ذکرکړو اولباس دَ طعام تابع نه وو په دې وجه ئی هغه دَ جدا کتاب په عنوان کښې ذکرکړو.

**قوله:** أَشْرِبَة

**داشربة لغوی معنی:** دَ شراب جمع ده اوشراب دَمشروب په معنی کښې دې. مشروب هر یو دَ څکلو څیزته وئیلې شی که هغه اوبه وی که نبیذ وی که شربت وی یا جوس وی
په دې باب کښې دَ مشروباتو احکام حلال اوحرام جواز اوکراهت وغیره بیان کولې شی

## اَلْفَصْلُ الأَوَّلُ

**[٤٢٤٣] اوبه په درې ساګانو څکل**

٤٢٤٣-[١] (١) ① عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَنَفَّسُ فِي الشَّرَابِ ثَلَاثًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③ وَزَادَ مُسْلِمٌ فِي رِوَايَتَيْنِ ④ وَيَقُولُ: "إِنَّهُ أَرْوَى وَأَبْرَأُ وَأَمْرَأُ».

[١] اخرجه البخاري في كتاب الأشربة/باب الكرع في الحوض (رقم-٥٦٢١) ومسلم في كتاب الأشربة/باب كراهة التنفس في نفس الإناء، واستحباب التنفس ثلاثا خارج الإناء (رقم-١٢٣ - (٢٠٢٨) وابوداود في كتاب الأطعمة/باب في أكل الثوم(رقم-٣٨٢٧) والترمذي في كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرخصة في الشرب قائما (رقم-١٨٨٣) واحمد في المسند:٢١١/٣

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چي رسول الله ﷺ به د اوبو د څکلو په مينځ کي دري خلي ساه اخستله (بخاري ، مسلم) [۳] او مسلم رحمه الله په يو روايت کي دا الفاظ هم نقل کړي دي. [۴] او حضور ﷺ به فرمايل چي داسي (په څو ساه کي اوبه څکل) په ښه شان خړوب کوی، او تنده وژني، بدن ته صحت بخښي، او ښه هضميږي. او معدي ته په ډيري اساني سره خي

**حل اللغات:** ① يَتَنَفَّسُ: ساه به ئي اخستله، ② أَرْوَى: په ښه شان سره خړوب کوی ③ أَبْرَأُ: تنده وژني، بدن ته سحت ورکوی ④ أَمْرَأُ: "أي اقوى هضماً" په آسانه هضميږي، معدي ته په آسانه رسيږي

**تسهيلات:**

**قوله:** يَتَنَفَّسُ فِي الشَّرَابِ ثَلَاثًا:

**د ساه اخستلو دوه طريقي:** ① په دري ساګانو باندي اوبه څکل سنت دی لکه څنګه چي په دې حديث کښي ذکر دی خو دا دَغالب احوالو خبره ده

② په دوو ساګانو باندي اوبه څکل هم منقول دی په دې کښي څه کراهت نشته بلکه سنت دي دَ ترمذی شريف په يو روايت کښي په دوو ساګانو باندي دَ څکلو خبره هم ملاويږی هغه هم کله کله شوی دی

په يوېل حديث کښي دی چه اوبه دَ اوښ په شان مه څکئی بلکه په دوو ساګنو يا په دريو ساګانوباندي څکئی په دې کښي هم دَ دوو ساګانو ذکر دې (مرقات)

**قوله:** هُوَ أَمْرَأُ وَأَرْوَى:

**د مذکوره کلماتو لغوی معنی:** دَ هو مرجع يا خو تعددنفس دې ياتثليث دي أمرأ مرالطعام څخه ماخوذ دې کله چه خوراک دَ معدې موافقت اوکړی يعنی په ښه شان سره هضم شی په فارسی کښي دَ دې معنی ګواره تر دي اروی ری نه ماخوذ دې دَ کوم معنی چه تنده زياته ماتونکې په فارسی کښي دَ دې معنی ده زياده سيراب کننده

**دحديث مفهوم:** دَحديث شريف معنی داشی دغه شان په دريو ساګانو کښي څکل ډير مزيدار او مرض عطش نه براءت اوسلامتيا ذريعه ده يعنی دَ تندې دَ پاره ډير دافع او دَ هضم دَ پاره ډير معين اومددګاردې دَ معدې دَ پاره دَ ضعف علامت هم نه دي اودَ معدې دَ حرارت دَ پاره نافع هم دي افعل التفضيل صيغه په دې باندې دال دې داخصوصيات دَ تعددنفس او د تثليث نتيجه ده لهذا په يو ساه څکل به خړوبوالي هم نه کوی اومزيدار به هم نه وی اودَ معدې دَ پاره مضردی

**په دري ساګانو اوبو څکلو کښي فائدي:** ① دَ رسول الله ﷺ په دې عمل سره دَ اوبوڅکلو طريقه اواداب معلوم شو چه کله اوبه څکل وی نو په دريو ساګانو څکل پکار دی

② درې ساګانو باندې اوبه څکلو سره به اوبه بنه هم معلومیږي او مړیدل به هم کیږي که ر دې په مقابله کښې په یوه ساه اوبه اوڅکلې شي نو اول خو حضور پاک دَ داسې څکلو نه ممانعت فرمائیلې دې چه دغه شان څکلو کښې څاروو سره تشبه ده بل دَ ابن عباس رضي الله عنهما په قول دا دَ شیطان طریقه هم ده.

③ په یوه ساه اوبه څکلو په وجه دَ خلو معده دوجه دَ نقصان قوی اندیښنه ده چه کله دَ معدې په سخت حرارت په وخت کښې یودم اوبه معدې ته اورسی نو دَ معدې دَ پاره به ډیر نقصاني وی.

④ په مرئی کښې اوبه اینختلې شي په کوم سره چه دَ مرګ قوی ویره ده بل دا چه په یوه ساه اوبه څکلو سره داهم امکان دې چه دَ ضرورت نه زیاتې اوبه اوڅکلې شي نوهغه به یقینًا نقصاني وی.

**په یوه ساه د اوبو څکلو حکم:** جمهور علماء کرام په یوه ساه اوبه څکل مکروه تنزیهی او خلاف اولی ګرځوی او امام مالک، ابن المسیب، عطاء بن ابی رباح، عمر بن عبدالعزیز دَ جواز بلاکراهت قائل دی. بهرحال دواړه قسم روایات وارد دی مثلاً دَ زید ابن ارقم روایت کان یشرب صلی الله علیه وسلم بنفس واحدٍ رواه ابوالشیخ وکذا حدیث قتادة مرفوعًا اذا شرب أحدکم فلیشرب بنفس واحد رواه الحاکم وصححه وغیره.

**[۳۳۳] د مشک د خُلې څخه د اوبو څکلو ممانعت**

۳۳۳–[۲] (١) ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ②«نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مشك د خُلي نه د اوبو د څکلو نه منع فرمايلي ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①فِي السِّقَاءِ: "اى من فم القربة" دَمشکيزې خلې سره خله لګول اودَهغې نه اوبه څکل

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ فِي السِّقَاءِ:

**د مشکيزې څخه په خُله د اوبو څکلو نقصانات:** ① فی لفظ مشدد دې اصل کښې دَ فوه نه دې کوم چه دَ فم په معنی کښې دې "اى من فم القربة" دَمشکيزې خلې سره خله لګول اودَهغې نه اوبه څکل دې څخه منع کړې شوې ده. څکه چه ممکن دی چه دَمشکيزې خله کښې څه ګند

(١) اخرجه البخاري في كتاب الأشربة/باب الشرب من فم السقاء (رقم-٥٦٢٩) وابوداود في كتاب الأشربة/باب الشراب من في السقاء (رقم-٣٧١٩) والنسائي في كتاب الضحايا/باب النهي عن لبن الجلالة (رقم-٤٤٤٨) وابن ماجه في كتاب الأشربة/باب الشرب من في السقاء (رقم-٣٤٢١) واحمد في المسند: ٢٢٦/١

یا موذی ځیز یا چینجې وغیره پټ پروت وی یا دننه په اوبو کښې څه لال بیګ یا ګندګی وی
② په پټو سترګو باندې څکلو سره هغه خلې ته لاړشی بل دا چه اوبه دَمشکیزې دَ تیارې نه دَ خیتې تیارې ته یودم ورا ړولو سره دَ معدې دَ خرابیدو خطره هم ده
③ په یوه ساه سره اوبه ورا ړولو کښې ګیس دننه لاړشی چه دَ صحت دَپاره مضر کیدې شی.
④ دغه شان څکلوسره اکثر په کپړو باندې اوبه تونیږی ږیره لمدیږی
⑤ کله کله دَخلې نه دَ خوراك ذرې دَ اوبو په لوښی کښې وړیږوخی کوم چه دَ نظافت خلاف دی
⑥ نبی کریم دَ دې نه منع فرمائیلې ده اوداد مسنون طریقې خلاف دی دَمشکیزې په شان داحکم دَ لوټې هم دې تهیلئی نلکې بوتل یا دَ هرهغه لوښی هم دې دکوم دَ دننه حالت چه علم نه وی دې پسې حدیث تشریح او توضیح هم دغه شان ده
**اشکال:** هم دَدې باب راتلونکې حدیث نمبر (۴۲۸۱) کښې حضرت کبشه ﷺ فرمائی چه نبی کریم دَ مشکیزې دَ خلې نه پخپله اوبه څکلی دی نودَدې تعارض څه جواب دې؟
**د اشکال دریې جوابونه:** ① چې یوه وړه مشکیزه وی یوه لویه وی. دَ وړې نه نبی کریم اوبه څکلی دی په کوم کښې چه په یقینی توګه دَ څه موذی حشراتو دَ وجهې نه خطره نه وه
② په وخت دَ ضرورت او مجبورئ داسې کول جائز دی ګنی نه.
③ عام عادت جوړول ممنوع دی دَیوخل نیم څکلو ګنجائش شته دې.

**[۴۲۷۵] د مشک د خُلې را تاوولو سره د اوبو څکلو مما نعت**

۴۲۷۵-[۳] (¹) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ اخْتِنَاثِ الْأَسْقِيَةِ» ③ زَادَ فِي رِوَايَةٍ: "وَاخْتِنَاثُهَا": ④ أَنْ يُقْلَبَ رَأْسُهَا، ثُمَّ يُشْرَبَ مِنْهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو سعید خدري ﷺ وايي ② چې رسول الله ﷺ د مشك د خُلې تاؤلو سره د اوبو د څکلو نه منع فرمایلي ده. ③ او راوي په یو روایت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې د مشك د خُلې د تاؤلو نه مطلب دا دي ④ چې د هغه مشك سر (یعني خُله) راتاؤ کړل شي. او بیا د هغې نه اوبه اوڅکل شي (بخاري مسلم)
**حل اللغات:** ① اخْتِنَاثِ: دا دَخنث نه دي د مشکیزې خوله راتاوولو سره اوبه څکل ② الْأَسْقِيَةِ: مشکیزې.

(¹) اخرجه البخاري في كتاب الأشربة/باب اختناث الأسقية (رقم-٥٦٢٥) ومسلم في كتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب وأحكامهما (رقم-١١١ - (٢٠٢٣) وابوداود في كتاب الأشربة/باب في اختناث الأسقية (رقم-٣٧٢٠) والنسائي في كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في النهي عن اختناث الأسقية (رقم-١٨٩٠) وابن ماجه في كتاب الأشربة/باب اختناث الأسقية (رقم-٣٤١٨) واحمد في المسند: ٦٧/٣

**تسهيلات:**

**قوله** عَنِ اخْتِنَاثِ الْأَسْقِيَةِ:

**نوټ:** په مشک باندې خُله لګولوسره د اوبوڅکلو نقصانات د وړاندې حديث نمبر (۴۲۱۴) په وضاحت کښې تيرشو

**[۳۳۲] په ولاړه د اوبو څکلو حکم**

۴۲۲۳-[۴] ( ) ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ «أَنَّهُ نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي ۲ چې حضور ﷺ د دې نه منع فرمايلې ده، چې يو سړې دې په ولاړه اوبه وڅکي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّهُ نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا:

**په ولاړه د اوبو څکلو کراهت:** په دې حديث کښې په ولاړ باندې دَ ابوڅکلو دَممانعت ذکردې اودې سره روايت کښې دی چه که چا په هيره سره داسې اوکړه نوهغه له پکار دی چه اوبه دې قې کړی دَدې په شان دَاحاديثوتعلق دَ اصل او دَ قاعدې سره دې چه دَ شريعت قاعده هم دغه ده چه اوبه په ناستې اوڅکلې شی اوهم دغه دَنبی کريم عادت شريف هم وو اودَامت محمدی عمل هم په دې باندې دې

**په احاديثو کښې تعارض:** د مشکاة په فصل ثاني کښې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنه حديث نمبر (۴۲۷۵) کښې په ولاړه دَ ابوڅکلو ذکرموجوددې

**د تعارض اووه جوابونه:** ① قاضی عياض فرمائی چه په ولاړه د اوبو څکلو ممانعت د اولی او د بهتر طريقې د تعليم او ددې په خلاف کولو باندې د تاديب او د تنبيه په توګه دې نهی تحريمی نه ده

② شرب قائماً والا روايات ضعيف دي

③ بعضی حضراتو فرمائيلی دي چه د نهی والا احاديث د جواز په احاديثو سره منسوخ شوي دي. يعنی اول په ولاړه اوبو څکلو ممانعت وو نو ورستو بيا دا ممانعت منسوخ شو

④ جواز والا احاديثو لره به په نهی والا احاديثو باندې ترجيح حاصل وي، ځکه چه د جواز احاديث د نهی د احاديثو په مقابله کښې أقوی او أثبت دي

( ) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب کراهية الشرب قائما (رقم-۱۱۳ - (۲۰۲۴) وابوداود فی کتاب الأشربة/باب فی الشرب قائما (رقم-۳۷۱۷) والترمذی فی کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن الشرب قائما (رقم-۱۸۷۹) وابن ماجه فی کتاب الصيد/باب ما ينهی عن قتله (رقم-۳۲۲٤) واحمد فی المسند: ۱۶۹/۳

⑤ بعضي حضراتو فرمائيلى دي چه احاديث نهى نه نهى تنزيهى مراد ده كوم چه د جواز منافى هم نه ده

⑥ بعضى حضراتو فرمائيلى دي چه احاديث نهى په طبى نقصان او احاديث جواز په اباحت شرعى باندې محمول دي

⑦ په ولاړه اوبه څكل ممنوع دي ليكن دوه قسمه اوبه ترينه مستثنى دي

(الف) د زمزم اوبه (ب) د اودس نه پاتي شوي اوبه

**اشكال:** په ترمذى كښې د عبدالله بن عمر رضى الله عنهما څخه روايت دي

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَأْكُلُ عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَمْشِي وَنَشْرَبُ وَنَحْنُ قِيَامٌ

په دې حديث كښې خو په ولاړه او په روانه د اوبو څكلو ثبوت دي او په حديث الباب كښې په ولاړه د اوبو څكلو ممانعت دې دا ښكاره تعارض دې دغه علامه ابن نجيم او علامه شامى رحمه الله تصريح كړې ده چه په لارو كوڅو كښې دَ خلقو په وړاندې په ښكاره خوراک څښاک كول دَ قلت مروت په وجه مسقط شهادت دى نو بيا دَ صحابه كرامو حضراتو نه دا عمل څنګه اومندلي شو. علماء كرامو دَ دې مختلف جوابونه وركړي دى

**داشكال جوابونه:** ① ممكن دى چه دا دَ سفر دَحالت واقعه وى علماء كرامو حضراتو دَ تُندئى اودَ سفر په وجه باندې په لارو كښې دَ خوراک اجازت وركړې دې

② دراصل مسقط شهادت هغه امور دى چه دَ مروت مخل وى او بې مروت سړې دَ دروغو شهادت وركولو كښې متهم بالكذب وى او صحابه كرام رضي الله عنهم په امتثال دَ اوامرو په اجتناب د نواهى كښې دَ ټولونه وړاندېوالي كونكى وو دَهغوى عدالت دَمسلمات نه وو په هغوى باندې نور خلق نه شى قياس كولې

③ حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى چه مسقط شهادت خو په بازارونو كښې خوراک كول دى او دلته په روايت كښې دَ دې تصريح نشته

④ بعضو فرمائيلى دى چه كه يوسړې په بازارونو او سړكونو كښې خوراک كوى خو قاضى دَ هغه باره كښې معلومات لرى چه دې دروغ نه وائى اودَ هغه شهادت قبول كړى نو څه بديت نشته خكه چه دَ قاضى علم دَ ده دظاهر حال دَ پاره دافع كيدې شى بهرحال صحابه كرام حضرات دَ سرنه واخله ترخپو پورې عدول دى كماقال النبى صلى الله عليه وسلم الصحابة كلهم عدول دَهغوى شهات ماشيًا وقائمًا په خوراک سره نه ساقطيږى.

## [۴۲۶۷] په ولاړه د څکلې شوي اوبو د اتلی کولو حکم

۴۲۶۷ـ[۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «لَا يَشْرَبَنَّ أَحَدٌ مِنْكُمْ قَائِمًا، [۳] فَمَنْ نَسِيَ مِنْكُمْ فَلْيَسْتَقِئْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په تاسو کې دې هیڅوك په ولاړه اوبه نه څکي، [۳] که چا په هیره په ولاړه اوبه اوڅکلي، نو هغه ته پکار دي چې هغه قي کړي، (مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلْيَسْتَقِئْ: هغه دې قې کړي.

**تسهیلات:**

**نوټ:** په ولاړه د اوبو څکلو پوره تفصیل ددې څخه وړاندې دحدیث نمبر (۴۲۶۷) په تشریح کښې تیرشو

## [۴۲۶۸] نبی کریم ﷺ د زمزم اوبه په ولاړه اوڅکلې

۴۲۶۸ـ[۶] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِدَلْوٍ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ، [۳] فَشَرِبَ وَهُوَ قَائِمٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ ویلي دي [۲] چې ما د نبي کریم ﷺ په خدمت کې د زمزم د اوبو یوه ډولچه راوړه، [۳] حضور ﷺ هغه په داسې حالت کې اوڅکلې چې هغه ولاړ وو. (بخاري ومسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** بِدَلْوٍ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ، فَشَرِبَ وَهُوَ قَائِمٌ:

**تعارض:** په ډیرو روایاتو کښې په ولاړه د اوبو څکلو نه ممانعت راغلی دي او په دې حدیث کښې جواز معلومیږي؟

**دتعارض پنځه جوابونه:** ① په ولاړه د اوبو څکلو نه د زمزم او د اودس نه پاتې شوي اوبه مستثنی دي

② د نبی کریم ﷺ په ولاړه زمزم څکل تبرک دپاره وو

③ د نبی کریم ﷺ په ولاړه زمزم څکل د عذر په وجه وو او هغه عذر اژدهام او رش وو

④ نبی کریم ﷺ چه کوم ځائي کښې زمزم څکل هغه ځائي کښې ختې وغیره وي نو ځکه

() اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب کراهیة الشرب قائما (رقم-۱۱۶ - (۲۰۲۶)

() اخرجه البخاری فی کتاب الأشربة/باب الشرب قائما (رقم-۵۶۱۷) ومسلم فی کتاب الأشربة/ باب فی الشرب من زمزم قائما (رقم-۱۲۰ - (۲۰۲۷) والترمذی فی کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی الشرب قائما (رقم-۱۸۸۲) وابن ماجه فی کتاب الأشربة/باب الشرب، من فی السقاء (رقم-۳۴۲۱)

ني په ولاړه او څکلې
⑤نبی کریم ﷺ د جواز بيان دپاره په ولاړه اوبه اوڅکلې
**دزمزم د څکلو طريقه او آداب**: ددې متعلق د علماء کرامو مختلف اقوال دي
① د بعضې حضراتو په نيز زمزم د عام اوبو په شان په ناسته څکل پکار دي او دا هم طريقه افضله ده او نبی کريم ﷺ چه په ولاړه څکلې وې د هغې توجيهات بيان شول
② بعضې حضرات فرمائي چه په ولاړه او په ناسته څکل دواړه برابر دی
③ د اکثر علماو په نيز زمزم په ولاړه څکل افضل دي
④ د زمزم څکلو په وخت مخ قبلې طرف ته کول پکار دی
⑤ اوبه په درې ساګانو سره څکل، او هر خل په شروع کښې بسم الله ونيل او په اخر کښې الحمد لله ونيل
⑥ خه په مره خيټه (ډيرې) څکل او زمزم هميشه په ولاړه څکل لازم ګنړل غلط دی
**زمزم د دعا د قبليدو او شفاء دپاره**: د زمزم څکلو يو مجرب عمل دا دې چه زمزم څکلو په وخت کښې چه کومه دعا وکړلی شي هغه قبليږي. او د بعضی علماو په نيز دا عمل هم مجرب دې چه زمزم څکلو په وخت کښې چه د کومی بيماری نه د شفاء نيت وکړي شي نو الله تعالی د هغی بيماری نه شفاء ورکوي.
**دزمزم څکلو دعا**: "اللهم إني أسئلك علما نافعا ورزقا واسعا وشفاء من كل داء".

## [۳۳۳]د اودس نه پاتې شوې اوبه په ولاړه څکل

۴۲۷۳—[۷] ()[۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّهُ صَلَّى الظُّهْرَ[۳] ثُمَّ قَعَدَ فِي حَوَائِجِ النَّاسِ فِي رَحَبَةِ الْكُوفَةِ[۴] حَتَّى حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ[۵] ثُمَّ أُتِيَ بِمَاءٍ، فَشَرِبَ[۶] وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ[۷] وَذَكَرَ رَأْسَهُ وَرِجْلَيْهِ[۸] ثُمَّ قَامَ فَشَرِبَ فَضْلَهُ وَهُوَ قَائِمٌ[۹] ثُمَّ قَالَ: إِنَّ أُنَاسًا يَكْرَهُونَ الشُّرْبَ قَائِمًا[۱۰] وَإِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

**ترجمه**: [۱] او د حضرت علي ﷛ نه روايت دې[۲] چې ايوه ورځ] هغه د ماسپښين مونځ وکړو [۳] بيا د خلقو د معاملاتو او د مقدماتو د فيصله کولو د پاره د کوفي په يو بلند او کشاده ځای خپل مجلس قائم کړو او د هغه خلقو جګړې او معاملې اوريدو اوريدو سره يې فيصلې کولې[.[۴] تر دې چې د مازيګر وخت راغې .[۵] هر کله چې د اودس د پاره اوبه راوړل شوې، نو هغه اوبو نه يې اوڅکلې[۶] او بيايې د اودس د پاره خپل مخ او لاسونه اووينځل.[۷] او راوي دا ذکر وکړو چې هغه د خپل سر مسح وکړله، او خپلې پښې يې اووينځلې.[۸] د دې نه پس حضرت علي ﷛ ودريدلو او د اودس نه پاتې شوې اوبه يې په

() اخرجه البخاري في كتاب الأشربة/باب الشرب قائما (رقم-۵۶۱۶)

داسې حالت کې اوڅکلي چې ولاړ وو. [۹] بيا يې وفرمايل چې بعضې خلق په ولاړه اوبه څکل په کراهت محمول کوي. ايعنی دا ګڼي چې په ولاړه اوبه څکل مکروه دي [۱۰] حالانکه حقيقت دا دې چې نبي کريم ﷺ داسې کړي دي څرنګه چې اوس ما وکړل (بخاري)

**حل اللغات:** ① رَحَبَة: اوچت فراخه ځائې

**تسهيلات:**

**قوله:** صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ:

**دوه قسمه اوبه په ولاړه د څکلو جواز:** حضرت علي رضي الله عنه داخودل غواړي چه ماڅنګه د اودس نه پاتې شوې اوبه اوڅکلې هم داسې عمل نبی کريم ﷺ کړې وو بهرحال د دې نه عام اوبه په ولاړه د څکلو د جواز خبره نه ثابتيږي ځکه چه د زمزم او د اودس د اوبو صورت خو د استثنائی صورتونو نه دي.

## [۴۲۷۰] په مشک کښې د شپه تيره کړې اوبو څکل

۴۲۷۰ــ[۸] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ [۲] وَمَعَهُ صَاحِبٌ لَهُ [۳] فَسَلَّمَ فَرَدَّ الرَّجُلُ وَهُوَ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطٍ [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ فِي شَنَّةٍ [۵] وَإِلَّا كَرَعْنَا؟" [۶] فَقَالَ: عِنْدِي مَاءٌ بَاتَ فِي شَنٍّ [۷] فَانْطَلَقَ إِلَى الْعَرِيشِ [۸] فَسَكَبَ فِي قَدَحٍ مَاءً.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې [يوه ورځ] نبي کريم ﷺ د يو انصاري يعنې د ابو الهيثم رضي الله عنه چې د هغه ذکر مخکې هم تير شوي دی باغ ته تشريف يوړلو. [۲] د حضور ﷺ سره يو صحابي [حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه] هم ملګري وو. [۳] حضور ﷺ باغ ته رسيدو سره سلام عليک وکړو هغه انصاري چې هغه باغ يې اوبه کولو. د حضور ﷺ سلام جواب يې ورکړو [۴] نبي کريم ﷺ هغه ته وفرمايل که تا سره په پخواني مشک کې اوبه وي چې شپه پرې تيره شوي وي. [نو رايې وړه. چې مونږ يې وڅښو] [۵] او که تا سره داسې اوبه نه وي نو بيا به مونږ په روانو اوبو خله لګولو سره اوبه وڅښو. [۶] هغه عرض وکړو چې هو. زما په دې پخواني مشک کې داسې اوبه موجودې دي. چه شپه پرې تيره شوې ده [۷] نو هغه جونګړې ته لاړلو. اچې هغه يې په باغ کې جوړه کړې وه. [۸] او پيالې کې يې اوبه واچولې

**حل اللغات:** ① يُحَوِّلُ الْمَاءَ: اوبه خور نې کولو. باغ ته نې اوبه ورکولې. ② بَاتَ: چه شپه پرې تيره شوې وی ③ شَنَّة: زړه مشکيزه ④ كَرَعْنَا: تالاب يا نهر سره خله لګولو باندې اوبه څکل ⑤ الْعَرِيش: جونګړه. سپر. ⑥ فَسَكَبَ: وائې چولې. ⑦ قَدَح: پيالې.

---

۱) اخرجه البخاري فى كتاب الأشربة /باب شرب اللبن بالماء (رقم ۵۶۱۳) وابوداود كتاب الأشربة /باب فى الكرع (رقم ۳۷۲٤) واحمد في المسند: ۳/۳۲۵.

[۱] ثُمَّ حَلَبَ عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ، [۲] فَشَرِبَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] ثُمَّ أَعَادَ فَشَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِي جَاءَ مَعَهُ». (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه:** [۱] او بيا يې هغه پيالې کې يې د کور د ساتلې بزې (چيلۍ) شوده (پې) ولوشل، او هغه پياله يې د حضور ﷺ په خدمت کې پيش کړه، [۲] چې نبي کريم ﷺ اوڅکلې، [۳] د دې نه پس هغه انصاري د مخکنې په شان يوه بله پياله راوړله، چې هغه صاحب اوڅکله کوم چې د نبي کريم ﷺ سره ملګرې راغلې وو (بخاري)

**حل اللغات:** ⑧ حَلَبَ: اوئې لوشله، ⑨ دَاجِن: په کور کښې ساتلې شوې چيلۍ

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَعَهُ صَاحِبٌ لَهُ:

**د رجل په مصداق کښې دوه احتمالات:** ① شارحين حضرات ليکې چه دَ دې نه حضرت ابوبکرصديق ﷺ مراد دې ځکه چه هغوی الله تعالى دَ صاحب په لقب سره ياد کړې دې (إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ)

② حافظ فضل محمد صاحب فرمائي: دَ شارحينو قول په سرسترګو باندې قبول دې ليکن ماچه په خپل زړه او دماغو باندې څومره زور ورکړو هم دومره دماغوانګ راوکړو چه دا سړې صديق اکبر ﷺ وى ځکه چه دَدې حديث په آخره کښې "فشرب الرجل الذی جاء معه" داسې الفاظ دَصديق اکبر ﷺ دَپاره ښکه استعماليدې شی دا خودَ يوغيرمعروف اجنبی سړی دَ استعمال الفاظ دی والله اعلم

**قوله:** إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ فِي شَنَّةٍ وَإِلَّا كَرَعْنَا:

**د نبی عليه السلام په مشک کښې شپه تيره کړې اوبه څوښول:** يوکرت رسول الله ﷺ سره د يو صحابی د يو انصاری باغ ته لاړو چه هغه خپل باغ ته اوبه ورکولې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل که تا سره د شپې زړې اوبه په مشک کښې پرتې وی (نو راوړه) ګينې مونږ به په دې ګودر باندې خوله اولګوو او اوبه به اوڅکو هغوی عرض اوکړو چه او يا رسول الله ﷺ ما سره د شپې په مشک کښې پرتې اوبه موجود دی

**دحديث دوه فوائد:** ① په دې واقعه کښې اګر چه د کرع ضرورت نه دې راغلې خو دا ده چه رسول الله ﷺ د هغې اراده اوفرمائيله،

② رسول الله ﷺ به په مشک يا لوښو کښې د شپې پرتې زړې اوبه څوښولې د ابود اود په کتاب الاشربه د آخری باب په آخری حديث کښې دا حديث دې ((کان يستعذب))

## [۴۲۷۱] د سرو سپينو زرو په لوښي کښې د څکلو حرمت

۴۲۷۱—[۹] (¹) ① وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " «الَّذِي يَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ ③ إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
④ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: "إِنَّ الَّذِي يَأْكُلُ وَيَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ".

**ترجمه:** ① او د بي بي ام سلمه رضی الله عنها نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې د سپينو زرو په لوښي کې د څکلو يو شی څکي، ③ نو (ا د هغه دا څکل علاوه د دې نه بله څه نتيجه نه پيدا کوي) چې هغه په خپل نس (خيټه) کې د دوزخ اور غړپ غړپ څکته کوي، بخاري مسلم، ④ او د مسلم رحمه الله په يو روايت کې دي چې کوم سړي د سپينو او سرو زرو په لوښي کې خوري او څکي [د هغه حشر به هم دا وي.]

**حل اللغات:** ① يُجَرْجِرُ: په غړپ غړپ باندې څکل.

**تسهيلات:**

**قوله:** الَّذِي يَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ:

**د سرو او سپينو زورو د لوښود استعمالولو حرمت:** دَ پوره امت په دې باندې اتفاق دې چه دَهر سړی اوښځې دَپاره دَ سرو او سپينو زرو لوښي استعمالول په هرحال کښې ناجائز او حرام دی که هغه په خوراک څښاک کښې استعماليږي يا دَ بل څه مقصد دَپاره وی.

**قوله:** إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ:

**د مذکوره جملې ترکيب:** راجح واضح او آسان ترکيب هم دغه دې چه "نارجهنم" دکلمې "يجرجر" دَپاره مفعول به دې "اى يجرجر نارجهنم فى بطنه" يعنى يو شان دَ دوزخ اور په خيټه کښې ورد کوی.

## [۴۲۷۲] سره او سپين زر د کافرانو دپاره

۴۲۷۲—[۱۰] (²) ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " ② «لَا تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ وَلَا الدِّيبَاجَ ③ وَلَا تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ④ وَلَا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا ⑤ فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي

¹) اخرجه البخارى فى كتاب الأشربة/باب آنية الفضة (رقم-٥٦٣٤) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال أوانى الذهب والفضة فى الشرب وغيره على الرجال والنساء (رقم-١ - (٢٠٦٥) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب الشرب فى آنية الفضة (رقم-٣٤١٣) ومالک فى الموطا كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب النهى عن الشراب فى آنية الفضة. والنفخ فى الشراب (رقم-١١)واحمد فى المسند: ٣٠٦/٦

²) اخرجه البخارى فى كتاب الأشربة/باب آنية الفضة (رقم-٥٦٣٣) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء. وخاتم الذهب والحرير على الرجل. وإباحته للنساء. وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-٤ - (٢٠٦٧) وابوداود فى كتاب الأشربة/باب فى الشرب فى آنية الذهب والفضة (رقم-٣٧٢٣) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الشرب فى آنية الذهب والفضة (رقم-١٨٧٨) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب الشرب فى آنية الفضة (رقم-٣٤١٤) واحمد فى المسند:٤٠٨/٥

الدُّنْيَا وَهِيَ لَكُمْ فِي الْآخِرَةِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذيفه رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چې ريښمي كپړه مه اغوندئ، او نه ديباج اغوندئ (چې يو قسم ريښمي كپړه ده) [۳] دغه شان د سپينو زرو او سرو زرو په لوښي كې د څكلو څه شي مه څكئ، [۴] او نه د سرو زرو او سپينو زرو په ركيبو او پيالو كې خوراك او څښاك كوئ، [۵] څكه چې دا ټول څيزونه په دنيا كې د كافرانو د پاره دي او ستاسو د پاره په آخرت كې دي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحَرِيرَ: نرى ريښم، ② الدِّيبَاجَ: پير ريښم، ③ صِحَافِهَا: ركيبئ ددې (سپينو او سرو زرو)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ:

**د ريښمو د استعمال حرمت:** ريښمى كپړى مه اچوى، ددې حكم نه د څلورو ګوتو په اندازه كپړا مستثنى ده كومه چه د نورو كپړو په غاړه كښې استعماليږى او دا په دې شرط چه د څلورو ګوتو د اندازې نه زياته نه وى.

**قوله:** وَلَا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا:

**د صحافها د ضمير په مرجع كښې دوه احتمالات:** ① ددې ضمير د "فضة" طرف ته د نزديكت يا كثرت استعمال د وجهې راجع دى. څكه چه سرو زرو په مقابل كښې سپين زر ډيره استعماليږى او د ذهب حكم په فضه باندې د قياس كولو نه معلوميږى

② د ها ضمير په تاويل د مذكورات. مذكورات ته راجع كيږي، او دا ددې ايت په شان دي "والذين يكنزون الذهب والفضة ولا ينفقونها" (التوبه: ۳۴)

**قوله:** فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا:

**د ،،ها،، په مرجع كښې دوه احتمالات:** ددې ضمير مؤنث په مرجع كښې دوه احتمالات دى

① يا خو "صحافها" طرف ته راجع كيږي.

② يا ماقبل كښې اشياء ثلاثه (حرير، آنيه، صحفه) ته راجع كيږى

**[۴۲۷۳] په تقسيم كښې د ښى طرف څخه شروع كول**

۴۲۷۳—[۱۱] (١) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «حُلِبَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَاةٌ دَاجِنٌ، [۳] وَشِيبَ لَبَنُهَا بِمَاءٍ مِنَ الْبِئْرِ [۴] الَّتِي فِي دَارِ أَنَسٍ، [۵] فَأُعْطِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْقَدَحَ،

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب المساقاة/باب فى الشرب. ومن رأى صدقة الماء وهبته ووصيته جائزة. مقسوما كان أو غير مقسوم (رقم-۲۳۵۲) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب استحباب إدارة الماء واللبن ونحوهما عن يمين المبتدئ (رقم-۱۲۵-۲۰۲۹) وابوداود فى كتاب الأشربة/باب فى الساقى متى يشرب (رقم-۳۷۲۶) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الأيمنين أحق بالشرب (رقم-۱۸۹۳) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب إذا شرب. أعطى الأيمن. فالأيمن (رقم-۳۴۲۵)

فَشَرِبَ[٦] وَعَلَى يَسَارِهِ أَبُوبَكْرٍ، وَعَنْ يَمِينِهِ أَعرابِيٌّ[٧] فَقَالَ عُمَرُ: أَعْطِ أَبَابَكْرٍ يَارَسُولَ اللهِ! [٨] فَأَعْطَى الأَعرابِيَّ الَّذِي عَنْ يَمِينِهِ[٩] ثُمَّ قَالَ: "الْأَيْمَنُ فَالْأَيْمَنُ "[١٠] وَفِي رِوَايَةٍ: "الْأَيْمَنُونَ الْأَيْمَنُونَ،[١١] أَلَا فَيَمِّنُوا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي چې ايوه ورځ نبي کريم ﷺ زمونږ کور ته تشريف راوړو نو! [۲] د حضور ﷺ د پاره د کورنۍ بزي (چيلۍ) شوده (پې) ولوشل شو. [۳] او هغه شوده د هغه کوهي د اوبو سره يو ځاي کړې شو، [٤] کوم چې د انس ﷺ په کور کې وو. [٥] بيا د هغه شيدو پياله د حضور ﷺ په خدمت کې پيش کړل شوه. چې د هغې نه حضور ﷺ څه شوده اوڅکل. [٦] هغه وخت د حضور ﷺ چپ طرف ته حضرت ابوبکر صديق ﷺ ناست وو، او ښي طرف ته يو بانډچي (کليوال) ناست وو. [۷] حضرت عمر ﷺ عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ پاتې شوي شوده حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته ورکړئ. [۸] ليکن حضور ﷺ هغه بانډچي (کليوال) ته عطا کړه، کوم چې د حضور ﷺ ښي طرف ته ناست وو، [۹] بيا يې وفرمايل چې ښي مقدم دي، [او بيا چپ، ګس] [۱۰] او په يو روايت کې دا دي چې حضور ﷺ په هغه موقع دا وفرمايل چې ياد ساتئ د ښي طرف والا زيات حقدار دي. د ښي طرف والا زيات حقدار دي، [۱۱] نو ښي طرف والؤ ته يې ورکوئ، [يعنی هر کله چې دا معلومه شوه، چې ښي طرف والا زيات حقدار دي، نو تاسو هم د ښي طرف والؤ زيات رعايت کوئ، چې په ورکولو کې هغوئ نه ابتداء کوئ] (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① دَاجِنٌ: په کور کښې ساتلې شوې چيلۍ ② شِيبَ: يوځاي کړې شو، ③ الْقَدَحَ: پيالۍ. ④ الْأَيْمَنُونَ الْأَيْمَنُونَ: ښی طرف والا زيات حقدار دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ قَالَ الْأَيْمَنُ فَالْأَيْمَنُ:

**په تقسيم کښې د ښی طرف استحقاق:** يعنی ښۍ لاس مقدم دي او د ښۍ لاس مطلب دا دې چه ښۍ طرف ته چه څوک ناست وی نو اول دي هغوي ته ورکړې شي او بيا چه کوم هغه ته نيزدې ناست وي نو بيا دي هغوي ته ورکړې شي او که ګس طرف ته لوي مرتبې والا څوک ناست وي نو بيا به هم ښۍ طرف مقدم کولی شي ليکن که ښۍ طرف والا اجازت وکړی چه اول دې ګس طرف والا ته ورکړې شی کو چه زما نه اعلی دې او بيا ما ته راکړه نو دا هم صحيح ده او هم ددې وجهې نه نبی کريم ﷺ هغه بانډيچی لره په حضرت ابوبکر صديق ﷺ باندې مقدم کړو ځکه چه هغه ښۍ طرف ته وو، نو ګويا چه دا حديث د نبی کريم ﷺ په کمال عدل وانصاف باندې دلالت کوی.

## [۳۷۴] د نبی طرف والا په اجازت سره کس طرف واله له ورکول

۴۲۷۳-[۱۲] ( ) [۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَدَحٍ، فَشَرِبَ مِنْهُ [۳] وَعَنْ يَمِينِهِ غُلَامٌ أَصْغَرُ الْقَوْمِ [۴] وَالْأَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهِ. [۵] فَقَالَ: "يَا غُلَامُ! أَتَأْذَنُ أَنْ أُعْطِيَهُ الْأَشْيَاخَ؟" [۶] فَقَالَ: مَا كُنْتُ لِأُوثِرَ بِفَضْلٍ مِنْكَ أَحَدًا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [۷] فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [۸] وَحَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ سَنَذْكُرُهُ فِي "بَابِ الْمُعْجِزَاتِ" إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت سهل ابن سعد ﷛ نه روايت دي [۲] چې [يو ځل] د نبي کريم ﷺ په خدمت کې (د اوبو يا د شيدو) يوه پياله راوړل شوه، چې د هغې نه حضور ﷺ اوڅکل. [۳] هغه وخت د حضور ﷺ ښي طرف ته يو نو عمر هلك وو (چې د مجلس په حاضرينو کې) د ټولونه کوچني وو (يعني حضرت ابن عباس ﷠) [۴] او کوم چې ډير سپين ږيری خلق وو، هغه ګس طرف ته وو. [۵] حضور ﷺ وفرمايل چې اي هلکه! آيا ته اجازت راکوي، چې زه دا (باقي مانده شوده يا اوبه) دي بوډاګانو ته ورکړم؟ [۶] هغه نو عمره اوويل چې (نه) يا رسول الله! ﷺ زه ستاسو پاتې شوي (شوده يا د اوبو) د ورکولو په سلسله کې په خان بل چا ته ترجيح نشم ورکولي، [۷] نو حضور ﷺ هغه پاتې شوي شوده يا اوبه هغه نو عمره ته ورکړې (بخاري مسلم) [۸] او د حضرت ابوقتاده ﷛ روايت (چې د مصابيح صاحب دلته نقل کړي وو) مونږ به يې انشاء الله په باب المعجزات کې نقل کړو.

**حل اللغات:** ① قَدَحٍ: پيالئ، ② الْأَشْيَاخُ: مشران، سپين ږيري، ③ لِأُوثِرَ: چه ترجيح ورکړم

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنْ يَمِينِهِ غُلَامٌ:

**د غلام مصداق:** دَ غلام نه حضرت ابن عباس ﷠ مراد دي دي ښي طرف ته ناست وو

**قوله:** فَقَالَ: مَا كُنْتُ لِأُوثِرَ بِفَضْلٍ مِنْكَ أَحَدًا يَا رَسُولَ اللّٰهِ!:

**د نبی عليه السلام جوټه بل چاته نه ورکول:** يعنی زه ستاسونه پاتې شوي اوبه يا پيئويه ورکولو کښې په خپل خان باندې بل چاته ترجيح نه شم ورکولې

**د ايثار بالطاعات مطلب:** دَدې حديث نه ايثار بالطاعات مسئله واضح کيږی.دَ ايثار بالطاعات مطلب دادې چه يوسړی ته نيکی ملاويږی اوهغه خپل خان پريږدی او بل ته موقع ورکړی دې دَپاره چه دغه نيکی هغه ته ملاؤشی

**د ايثار دوه قسمونه:** ① ايثارفی الطاعات بل چاته د طاعت او عبادت موقع ورکول اوخپله

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إثم من منع ابن السبيل من الماء (رقم-۲۳۵۸) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب استحباب إدارة الماء واللبن ونحوهما عن يمين المبتدیٔ (رقم-۱۲۷ - (۲۰۳۰) ومالک فی الموطا کتاب صفة النبی صلی الله عليه وسلم/ السنة فی الشرب ومناولته عن اليمين (رقم-۱۸) واحمد فی المسند: ۳۳۸/۵

روسته کیدل دي ته في الطاعات وائی مثلاً دَ جمعې په ورمبی صف کښې یوسړې ولاړ دې او روستوصف ته یومشر راشي نوهغه سړې شاته شي اوهغه مشر ته دَ اول صف دَ ثواب موقع ورکړی دې ته ایثاربالطاعات وائی ایثاربالطاعات که په واجباتوکښې وی نودا ناجائز دی اوکه طاعات غیرواجبه کښې وی نو مکروه دی

④ ایثارفی امورالدنیا په دنیاوی امور کښې ایثار کول مستحب دې مثلاًد سفر په دوران کښې نې خپل سیټ بل چاته پریخودلو او دې اودریدلو یاخپل نمبرنی بل ته ورکړو په خپل ځائی باندې نی بل کینولو نو په دې کښې دَ ادب ثواب ملاویږی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٤٢٧٥] په ولاړه او روانه د خوراک کولو حکم

٤٢٧٥-[١٣] (١) ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ② «كُنَّا نَأْكُلُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَنَحْنُ نَمْشِي ③ وَنَشْرَبُ وَنَحْنُ قِيَامٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ. ④ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وایي ② چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې به داسې هم کیدل. چې مونږ به په تلو تلو طعام خوړلو، ③ او د ولاړې په حالت کې به مونږ اوبه څکلې ترمذي ابن ماجه دارمي ④ او ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح غریب دي

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث د مضمون تفصیل وړاندې د حدیث نمبر(۴۲۶۶) په شرح کښې تیرشوي دي

### [٤٢٧٦] د نبی علیه السلام په ولاړه څکاک کول

٤٢٧٦-[١٤] (١) ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، ② قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَشْرَبُ قَائِمًا وَقَاعِدًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي، ② هغه اوویل چې ما رسول الله ﷺ په ولاړه او په ناسته هم په اوبو څکلو لیدلي دي (ترمذي)

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث د مضمون تفصیل وړاندې د حدیث نمبر(۴۲۶۶) په شرح کښې تیرشوي دي

---

(١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن الشرب قائما (رقم-١٨٨٠) وابن ماجه فی کتاب الأطعمة/باب الأکل قائما (رقم-٣٣٠١) واحمد فی المسند: ٢٢/١٠

(١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی الشرب قائما(رقم-١٨٨٣) واحمد فی المسند:١٧٤/٢

[۳۲۷۷] د څښلو په وخت په لوښي کښې د ساه اخستلو ممانعت

۳۲۷۷—[۱۵] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] «نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ، [٣] أَوْيُنْفَخَ فِيهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي[٢] چې رسول الله ﷺ د دې نه منع فرمايلي ده چې د اوبو وغيره د څښلو په وخت، په لوښي کې ساوي واخستل شي،[٣] يا پکې پوکړل شي (ابوداود، ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ، أَوْيُنْفَخَ فِيهِ

**په لوښي کښې د ساه اخستلو نقصانات:** ① کيدې شي چې د خلې څخه توکاڼړې يا نوڅه په اوبو کښې پريوځي اوطبيعت خراب شي

② کيدې شي دسږي په خله کښې بدبوئي وي اوهغه اوبوته لاړه شي نود ا مضرصحت هم دي او په طبيعت هم ښه نه لګي

③ په اوبو کښې دننه ساه اخستل د ځناورو عادت دې لهذا انسان له د ساه اخستلو په وخت خله د لوښي نه جدا کول پکار دي.

**دوه مسئلې:** ① د ګرم څيز د يخولو دپاره پوکې وهل هم منع دي

② دڅکلو په څيزونو کښې که چرته ډکې وغيره وي نوهغه د پوکې په ذريعه سره اخوا کول هم منع دي

[۳۲۷۸] د څکاک بعضې آداب

۳۲۷۸—[۱۶] (٢) [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «لَا تَشْرَبُوا وَاحِدًا كَشُرْبِ الْبَعِيرِ، [٣] وَلَكِنِ اشْرَبُوا مَثْنَى وَثُلَاثَ، [٤] وَسَمُّوا إِذَا أَنْتُمْ شَرِبْتُمْ، [٥] وَاحْمَدُوا إِذَا أَنْتُمْ رَفَعْتُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمايي[٢] تاسو په يوه ساه کې اوبه مه څکئ، لکه څرنګه چې يې اوښ څکي.[٣] بلکه په دوو يا دريو ساګانو کې يې څکئ.[٤] او هر کله چې اوبه څکئ، نو بسم الله وايئ.[٥] او هر کله چې لوښي د څکلو نه پس د خُلې نه لرې کړئ، نو حمد وايئ (يعني په هر خل کې يا په آخري خل کې) ترمذي

**حل اللغات:** ① سَمُّوا: په شروع کښې بسم الله وايئ ② وَاحْمَدُوا: اوپه آخره کښې حمد اوئنا وايئ

(١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأشربة /باب فی النفخ فی الشراب والتنفس فیه (رقم-٣٧٢٨) والترمذی فی کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی کراهیة النفخ فی الشراب (رقم-١٨٨٨)

(٢) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی التنفس فی الإناء (رقم-١٨٨٥)

**تسهيلات:**

**نوټ:** په لوښي کښې د ساه اخستلو تشريح ددې څخه وړاندې حديث نمبر (۴۲۷۷) په شرح کښې ياد ساتئ.

**[۴۲۷۹] په لوښي کښې د پوکې وهلو ممانعت**

۴۲۷۹—[۱۷] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ النَّفْخِ فِي الشَّرَابِ. [۳] فَقَالَ رَجُلٌ: الْقَذَاةُ أَرَاهَا فِي الْإِنَاءِ. [۴] قَالَ: "أَهْرِقْهَا". [۵] قَالَ: فَإِنِّي لَا أَرْوَى مِنْ نَفَسٍ وَاحِدٍ. [۶] قَالَ: "فَأَبِنِ الْقَدَحَ عَنْ فِيكَ، ثُمَّ تَنَفَّسْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې [۲] چې نبي کريم ﷺ په اوبو کې د پوکلو نه منع فرمايلې ده، [۳] يو سړي (دا ممانعت او ريدو سره) عرض وکړو چه که په اوبو کې خاشې بيشې پرېوتې ووينم (نو څه وکړم، که يې پوک نه کړم، نو هغه خاشې بيشې به څرنګه وځي؟) [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل ته هغه توې کړه، [يعنې د بره نه لږ شان اوبه توې کړه، چې هغه خاشې ماشې وغيره ووځي (او هغه سړي به د پوکلو ممانعت نه په دې هم پوهه شوې وي، چې په دې سره دا خبره هم ضروري شوه، چې د اوبو د څکلو په وخت مينځ کې دې ساه نشي اخستې، بلکې په يوه ساه کې دې اوڅکل شي، څکه) [۵] هغه عرض وکړو چې زه په يو دم يعنې په يوه ساه کې د څکلو سره نه مړيږم. [۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې [داسې اوبه څکه چې مخکې لږ شان وڅکه بيا] پياله د خلې نه لرې کړه (او د لوښي نه بهر ) ساه واخله. [او بيا دغه شان په دويمه او دريمه ساه کې باقي اوبه وڅکه] (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:** ① الْقَذَاةَ: دکې، بخرې. ② أَهْرِقْهَا: توې نې کړه ③ فَأَبِنِ: پس لرې کړه ④ الْقَدَحَ: پيالئ

**تسهيلات:**

**قوله:** الْقَذَاةُ أَرَاهَا فِي الْإِنَاءِ.

**د رجل د تپوس کولو وجه:** چونکه په حديث کښې دې نه منع کړې شوې ده چه په لوښي کښې ساه واخستلې شي يا پوکې اووهلې شي نودې سړی کيدې شی داسې ګنړلې وی چه اوبه هم په يوه ساه څکل پکاردی په دې وجه هغه سوال اوکړو "فإني لا أروى" يعنې زه خو په يوه ساه کښې نه مړيږم

---

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية النفخ فى الشراب (رقم-۱۸۸۷) ومالک فى الموطا كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب النهى عن الشراب فى آنية الفضة. والنفخ فى الشراب (رقم-۱۲)

**قوله: قَالَ: "فَأَبِنِ القَدَحَ عَنْ فِيكَ، ثُمَّ تَنَفَّسْ":**

**څله د لوښي څخه د اخوا کولو حکم:** نبي کريم اوفرمائيل لوښي دَ خلې نه اخوا کړه اوساه واخله. دغه سړي اول دا سوال کړې وو چه زه کله دَ اوبو په لوښي وغيره کښې څه ډکې وينم نوهغه به څنګه اخوا کوم؟ نبي کريم اوفرمائيل چه اوبو دَ پورته نه راؤغورزوه ډکې به اول پريوځي. علماؤ ليکلي دي چه دَ ډکي اخوا کولو طريقه داهم ده چه په څه بل لرګي وغيره سره دې ډکې اخواکړې شي.

**[۴۲۸۰] په مات شوي ځائي د څله لګولو ممانعت**

۴۲۸۰ــ[۱۸] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الشُّرْبِ مِنْ ثُلْمَةِ الْقَدَحِ [۳] وَأَنْ يُنْفَخَ فِي الشَّرَابِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د پيالۍ د کنډم خايي نه د اوبو څکلو نه منع وفرمايله. [۳] او حضور ﷺ په اوبو کې د پوکلو نه هم منع وفرمايله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① ثُلْمَةِ الْقَدَحِ: د پيالۍ مات طرف.

**تسهيلات:** عَنِ الشُّرْبِ مِنْ ثُلْمَةِ الْقَدَحِ

**د پيالۍ د مات ځائي څخه د څکاک کولو نقصان:** دَ پيالئ مات ځائي ته ثُلْمَةٌ وائي کوم ته چه دَ پيالئ سوري هم وائي. هغه وخت به دَ لرګي لوښي وو دَهغه پيالوغاړې به اکثرماتې وې په داسې ځائي دَ اوبو څکلو ممانعت دَدې وجهې ووچه داځائي خيرن خيچن پاتې کيږي او په خله کښې سم راځي هم نه، نو اوبه وغيره په کپړو باندې پريوځي. اوهسې هم دادَ تهذيب نه خلاف دی. دَ دې حديث مطلب دانه دې چه که دَ لوښي يوه حصه ماته وی نوهغه لوښي مه استعمالوئی بلکه مطلب دادې چه دغه مات ځائي مه استعمالوئی

**[۴۲۸۱] کله کله د مشک وغيره د خُلي نه په اوبو څکلو کې څه حرج نشته**

۴۲۸۱ــ[۱۹] ()[۱] وَعَنْ كَبْشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَشَرِبَ مِنْ فِي قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ قَائِمًا، [۴] فَقُمْتُ إِلَى فِيهَا فَقَطَعْتُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. [۵] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي کبشه [صحابيه ﷺ] وايي چې [۲] [يوه ورځ] رسول الله ﷺ زما کره تشريف راوړو. [۳] نو حضور ﷺ په ولاړه ولاړه د زوړند شوی مشک د خلي نه اوبه اوڅکلي. [۴] زه د مشک خلي ته ورولاړه شوم، او هغه مي [د تبرک په غرض] کټ کړه، [ولی

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأشربة /باب فی الشرب من ثلمة القدح (رقم-۳۷۲۲) واحمد فی المسند: ۸۰/۳

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأشربة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الرخصة فی ذلک (رقم-۱۸۹۲) واحمد فی المسند: ۸۰/۳

چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خُله ورباندې ايښې وه]، (ترمذي ابن ماجه) [۵] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن غريب صحيح دي.

**حل اللغات:** ① قِرْبَة: مشکيزه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَشَرِبَ مِنْ فِي قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ قَائِمًا:**

**نوټ:** په مشک باندې خُله لګولوسره د اوبوڅکلو نقصانات د وړاندې حديث نمبر (۴۱۴۶) په وضاحت کښې تيرشو.

**قوله: فَقُمْتُ إِلَى فِيهَا فَقَطَعْتُهُ:**

**د مشک د خلې کټ کولو دوه وجوهات:**

① دبرکت د حاصلولو دپاره ئې دا حصه پرې کړه اوخپل ځان سره ئې کيخوده.

② داهم وئيلې کيدې شي چه حضرت ام سلمه رضي الله عنها دا حصه پرې کړه چه په دې ځائې دَ چا خله اونه لګی کوم ځائې چه نبی عليه السلام شونډې مبارکې لګيدلې وې.

**[۴۲۸۴] د خوږ اويخ مشروب خوښول**

۴۲۸۴ـ [۲۰] (¹) [۱] وَعَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] «كَانَ أَحَبُّ الشَّرَابِ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْحُلْوَ الْبَارِدَ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زهري د حضرت عروه نه او هغه د بي بي عائشي صديقي رضي الله عنها نه نقل کوي چې هغې اوويل [۲] چې د رسول الله ﷺ په نزد د څکلو په څيزونو کې يخ خوږ شي ډير زيات محبوب وو. [۳] دا روايت ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ويلي يي دي چې هغه روايت صحيح دي چې بحوالهٔ زهري د حضور ﷺ نه بطريق ارسال نقل شوي دي

**حل اللغات:** ① الحُلْوَ: خوږ. ② البَارِدَ: يخ

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث سره متعلقه تشريح د حديث نمبر (۴۱۷۲) په وضاحت کښې تيره شوې ده

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أى الشراب كان أحب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۸۹۵) واحمد في المسند: ۳۸/۶

**[۴۲۸۳] په مشروباتو کښې د پيو فضيلت**

۴۲۸۳-[۲۱] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلْيَقُلْ: [۳] اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْهِ، وَأَطْعِمْنَا خَيْرًا مِنْهُ. [۴] وَإِذَا سُقِيَ لَبَنًا فَلْيَقُلْ: [۵] اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْهِ، وَزِدْنَا مِنْهُ. [۶] فَإِنَّهُ لَيْسَ شَيْءٌ يُجْزِئُ مِنَ الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ إِلَّا اللَّبَنُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷠ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې يو سړي طعام وخوري، نو دا دعا دې وکړي [۳] اَللّٰهُمَّ بَارِك لَنَا فِيْهِ وَاَطْعِمْنَا خَيْرًا مِنْهُ. اي الله! مونږ ته په دې طعام کې برکت راکړي، او د دې نه هم ښه طعام راکړي. [۴] او هر کله چې په تاسو کې يو سړي شوده وڅکي نو دا دعا دې وکړي [۵] اَللّٰهُمَّ بَارِك لَنَا فِيْهِ وَزِدْنَا مِنْهُ. اي الله! مونږ ته په دې شيدو کې برکت راکړي، او (د دې نه زيات د څکلو د پاره راکړي. [او د شيدو څکلو په دعا کې، د دې نه ښه د څکلو د پاره راکړي. الفاظ دې نه وايي]. [۶] ځکه چې د شيدو نه ښه هيڅ شي نشته، [چې د الله ﷻ نه وغوښتل شي. او د دې وجه دا ده، چې داسې شي نشته] چې د خوراك ځښاك بدل جوړ شي، علاوه د شيدو نه، [چې هغه د نس (خيټه) ډکولو خاصيت هم لري، او د خړوب کولو هم]. (ترمذي ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِنَّهُ لَيْسَ شَيْءٌ يُجْزِئُ مِنَ الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ إِلَّا اللَّبَنُ:

**پئ په يوځت مشروب او مطعوم:** يعني دَ پيئو متعلق دانه شی وئيلې کيدې چه په مشروباتو کښې دَدې نه بهتر څه څيز کيدې شی ځکه چه پيئی دَ تندې ختمولو دَپاره دَ اوبوکار هم کوی اودَ اولګې دَ لرې کولودَپاره دَ خوراك كار هم کوی. په دې وجه په دعا کښې "زدنا" وئيل پکاردی خيراً نه دی وئيل پکار "يجزئ" "أي يكفي" كافي كيدل.

**[۴۲۸۴] د نبی علیه السلام دپاره د خوږو اوبو راوړل**

۴۲۸۴-[۲۲] (²) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ مِنَ السُّقْيَا. [۳] قِيلَ: هِيَ عَيْنٌ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْمَدِينَةِ يَوْمَانِ» . رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بی بی عائشه رضی الله عنها فرمايی. [۲] چی د نبی کريم ﷺ د پاره به خوږی اوبه د سقيا نه راوړل کيدې. [۳] بعضی حضراتو بيان وکړو چی سقيا د يوې چينی نوم دی، چی د مدينی نه په دوه منزله فاصله واقع وه. (ابوداود)

---

¹) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأشربة/باب ما يقول إذا شرب اللبن (رقم-۳۷۳۰) والترمذی فی كتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما يقول إذا أكل طعاما (رقم-۳۴۵۵) وابن ماجه فی كتاب الأطعمة/باب الزيت (رقم-۳۳۲۲) واحمد فی المسند: ۶/۱۰۰

²) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأشربة/باب فی إيكاء الآنية (رقم-۳۷۳۵) واحمد فی المسند: ۶/۱۰۰

**حل اللغات:** ①يُسْتَعْذَبُ: خوږې اوبه به راوړلې شوې ②السُّقْيَا: د مدينې نه په دوه منزله فاصله کښې يوه چينه وه،

**تسهيلات:**

**قوله: يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ:**

**د خوږو اوبو څخه مراد:** "وهو الطيب الذي لا ملوحة فيه" خوږې اوبه. چونکه په مدينه منوره کښې خوږې اوبه کمې وې نو ددې وجهې نه نبی کريم ﷺ له به اوبه د سقيا نه راوړې شوې او سقيا د يوې چينې نوم دې کومه چه د مدينې منورې نه د دوه ورځو په مسافت باندې واقع ده

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۲۸۵] د سرو او سپينو زرو په لوښو کښې د څکاک ممانعت**

۳۲۸۵—[۲۳] ()[۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«مَنْ شَرِبَ فِي إِنَاءِ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ،[۳] أَوْ إِنَاءٍ فِيهِ شَيْءٌ مِنْ ذٰلِكَ،[۴] فَإِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ» "، رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې، چې نبي کريم ﷺ وفرمايل.[۲] کوم سړی چې د سرو يا سپينو زرو په لوښی کی څکل کوی،[۳] يا په يو داسې لوښي کې څکل کوي [چې کليةً د سرو سپينو زرو نه وي] خو په هغې کې د سرو يا سپينو زرو څه حصه وي،[۴] نو [د هغه څکل د دې نه علاوه نور هيڅ نتيجه نه پيدا کوي چې] هغه په خپل نس (خيټه) به د دوزخ اور غټ غټ سره خکته کوي. (دار قطني)

**حل اللغات:** ①يُجَرْجِرُ: په غرپ غرپ باندې څکل

---

[۱]) اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ۱ من كتاب الطهارة

# [۴] بَابُ النَّقِيعِ وَالْأَنْبِذَةِ

## دَ نقيع اودَ نبيذونو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① شرب النبيذ : ۱، ۲، ۳.

② ظروف النبيذ: ۳، ۴، ۵، ۸.

③ مفهوم النهي عن استعمال الظروف التي يتخذ فيها الخمر: ۶.

④ تبديل إسم الخمر: ۷.

**د نقيع تعريف:** چې انگور یاکهجورې په اوبو کښې اچولوسره صرف لمدولې شی اودَڅه وخت دَپاره پریخودلې شی دې دَپاره چه په اوبوکښې خوږوالې راشی بس هم دغه نقیع دې دَدې څکل جائز اودَ بدن او نظام هضم دَپاره مفیددی

**د نبیذ لغوی معنی:**

أنبذة د نبیذ جمع ده په معنی دَ منبوذ یعنی غورزولې شوی څیزته وائی

**د نبیذ جوړولو طریقه:** دَدې دَ جوړولوطریقه داده چه کهجورې په اوبوکښې واچولې شی او دَډیروخت دَپاره په اوبوکښې پریخودلې شی چه په اوبوکښې معمولی شان تیزوالې راشی خوچه دومره تیزی او بدلون رانه شی چه مُسکرجوړشی دا نبیذ دې دَدې څکل جائز اوحلال دی خوکه چرې مسکرجوړشی نو حرام دی

**د نبیذ درې قسمونه:** ① که کهجورې اوانگور په اوبوکښې واچولې شی اودَ خوږوالی راتلونه وړاندې وړاندې استعمال کړې شی نوداهم دَ اوبوپه حکم کښې دی دَ ټولو په نیزیه دې سره اودَس کول هم جائزدی اوعام استعمال ئې هم جائزدې

② که کهجورې اوانگوروغیره ئې په اوبوکښې واچول اودَ ډیر وخته پورې پریخودوسره په اوبوکښې سکر راغلویا ئې په اوربانديِ پاخه کړل او په اوبوکښې جوش اوسکر راغلو نودادَ ټولو په نیزحرام دی نه په دې سره اودس کول جائز دی اونه دا په عام استعمال کښې راوستلې شی

③ که په اوبوکښې کهجورې اوانگور وغیره واچولې شی په اوبوکښې معمولی شان خوږوالې راغلو جوش هم رانغلو او مزبدهم نه شوې

**د نبیذ په دریم قسم کښې اختلاف:** ① دَ جمهورو او صاحبینو په نیز دا دریم قسم استعمالول جائزنه دی

② دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدَدې عام استعمال هم جائز دې اودَ اودس دَپاره استعمال هم

جائزدي

**نوټ:** دَ وفات نه لږه موده وړاندې امام ابوحنيفه رحمه الله دَ صاحبينو او دَ جمهور قول ته رجوع اوکړه چه په دې سره اودس کول ناجائزدى دا مسئله وړاندې په كتاب الطهارة كښې په پوره تفصيل سره تيره شوې ده

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۳۲۸۶] د حضرت انس رضي الله عنه پياله

۳۲۸۶—[۱] (۱) [۱] عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَدَحِي هٰذَا الشَّرَابَ كُلَّهُ: [۳] الْعَسَلَ، وَالنَّبِيذَ، وَالْمَاءَ وَاللَّبَنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې [۲] چې ما په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې په خپلې دې پيالئ كې د څكلو ټول څيزونه څكولي دي، [۳] لكه شات نبيذ اوبه او شوده (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَدَحِي هٰذَا الشَّرَابَ كُلَّهُ:

**په اته لاکهه روپۍ د مذكوره پيالۍ خرڅيدل:** حضرت انس رضي الله عنه چه په نبى كريم باندې په كومه پيالئ دا څيزونه څكلې وو هغه پيالئ هغه سره وه. بيادا د حضرت نضر بن انس رضي الله عنه څخه په اته لاكهه درهم باندې اخستې شوې وه.

**دامام بخارى په مذكوره پيالۍ كښې څكاك كول:** حضرت امام بخارى رحمه الله په بصره كښې دا پيالئ ليدلې وه اودَ دوى دَ خوش قسمتئ به څه وايئ دوى ته په دغه مباركه پيالئ باندې دَ اوبو څكلو سعادت هم حاصل شوې وو

## [۳۲۸۷] د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د پاره د نبيذو جوړول

۳۲۸۷—[۲] (۲) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «كُنَّا نَنْبِذُ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سِقَاءٍ يُوكَأُ أَعْلَاهُ، [۳] وَلَهُ عَزْلَاءُ [۴] نَنْبِذُهُ غُدْوَةً، فَيَشْرَبُهُ عِشَاءً [۵] وَنَنْبِذُهُ عِشَاءً فَيَشْرَبُهُ غُدْوَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] چه مونږ به د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د پاره په يو مشك كې نبيذ جوړول. چې هغه به د پورته نه (ترلو سره) بندول كيدو، [۳] او د هغې په لاندې حصه كې به د هغې خله وه، [۴] مونږ به په دې مشك كې كجورې وغيره د سحر په وخت كې اچولې، نو حضور صلى الله عليه وسلم به د شپې په وخت هغه څكلې، [۵] اوكه په هغې كې به مو كجورې وغيره د شپې

(۱) واخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب إباحة النبيذ الذى لم يشتد ولم يصر مسكرا (رقم-۸۹ - (۲۰۰۸)

(۲) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب إباحة النبيذ الذى لم يشتد ولم يصر مسكرا (رقم-۸۵ - (۲۰۰۵) وابوداود فى كتاب الأشربة/باب فى صفة النبيذ (رقم-۳۷۱۱) والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الانتباذ فى السقاء (رقم-۱۸۷۱) واحمد فى المسند: ۲۴۰/۱

واچولې، نو حضور ﷺ به هغه د سحر په وخت کې څکلې (مسلم)

**حل اللغات :** ① نَنْبِذُ ، نبيذ دَ جوړولوپه معنى کښې دې يعنى موږ به نبيذ جوړولو ②سِقَاءٍ : مشکيزه. ③يُوكَأُ : په تسمې سره به تړلې شوه، ④عَزْلَاءُ : د مشکيزې لاندينۍ خوله ⑤نَنْبِذُهُ : موږ به پکښې نبيذ جوړول

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنَّا نَنْبِذُ لِرَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي سِقَاءٍ يُوكَأُ أَعْلَاهُ:

**د مذكوره جملې مطلب:** داسې ګنړل پکاردی چه دَ مشکيزې پورته حصې طرف ته يوه خله وى اوداپه هره يوه مشکيزه کښې وى ليکن دَدې مشکيزې يوه خله لاندې طرف ته هم وه چه نسبتًا وړه وه. دَ پورته خله به تړلې شوه لاندې خلې نه به نبيذ څکلې شو دا دَدې حديث مطلب دې.

**د موسم په اعتبار سره د نبيذ جوړولو طريقې:** ① حافظ فضل محمدصاحب ليکلى دى چې دَ نبيذ جوړولو داطريقه کيدې شى چه په ګرمئى کښې وه. په کوم کښې چه سحراومابنام نبيذ تياريدې شى

② دَ يخنئى په موسم کښې کله يوه ورځ اوکله درې ورځې هم لګيدلې لکه څنګه چه په نورو احاديثوکښې دَدې ذکردې.

**[۳۲۸۸] په نبيذ باندې د وخت تيريدو په وجه نه څکل**

> ۳۲۸۸-[۳] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُنْبَذُ لَهُ أَوَّلَ اللَّيْلِ، [۳] فَيَشْرَبُهُ إِذَا أَصْبَحَ يَوْمَهُ ذَلِكَ، [۴] وَاللَّيْلَةَ الَّتِي تَجِيءُ [۵] وَالْغَدَ، وَاللَّيْلَةَ الْأُخْرَى، [۶] وَالْغَدَ إِلَى الْعَصْرِ [۷] فَإِنْ بَقِيَ شَيْءٌ سَقَاهُ الْخَادِمَ [۸] أَوْ أَمَرَ بِهِ فَصُبَّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ د پاره چې کوم نبيذ به د شپې په ابتدايي حصه کې اچول کيدو، [۳] هغه به يې د راتلونکې ورځ په سحر کې څکل. [۴] بيا به يې په راتلونکې شپه کې څکل، [۵] بيا په دويمه ورځ او دويمه شپه به يې څکل، [۶] بيا د هغې نه پس راتلونکې [يعنى دريمه] ورځ به يې د مازيګر تر وخته به يې څکل، [۷] او که د هغې نه پس به هم په هغې کې څه باقي پاتې شو، نو په خادم به يې څکل [۸] يا د تويولو حکم به يې ورکولو، نو هغه به توې کړې شو (مسلم)

**حل اللغات :** ① فَصُبَّ : نو توني به کړې شو، اړولې به شو

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب إباحة النبيذ الذى لم يشتد ولم يصر مسكرا(رقم-۷۹ - (۲۰۰۴) واحمد فى المسند: ۲۴۰/۱

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنْ بَقِيَ شَيْءٌ سَقَاهُ الْخَادِمَ أَوْ أَمَرَ بِهِ فَصُبَّ:**

**په دریمه ورځ د نبیذ دوه صورتونه:** ① دا أوشك دپاره نه بلكه د تنويع دپاره دي يعنى نبى كريم ته به دريو ورځوپورې جوړشوې نبيذ وركولې شو په دريمه ورځ دمازيگر نه پس به چونكه دنبيذ هغه بيخ پاتې كيدلو په دې وجه به هغه په خادم باندې څكولې شوخوخادم باندې به هله څكولې شوكه په هغې كښې په نشه نه وه پيدا شوې يعنى مسكر به نه وو ② كه په دريمه ورځ د مازيگرڅخه پس به په هغې كښې د نشې پيدا كولوصفت پيدا شوې وو نوبيا به هغه ضائع كولې شو.

**په لوښي كښې د نبيذ ساتلو آخرى حد:** معلومه شوه چه د دريو ورځو پورې نبيذ ساتل آخرى حددي علماء ليكى چه په دې حديث سره دا خبره په پوهه كښې راغله چه غلام اوخادم ته د خوراك څښاك باقى پاتې وركولې شى اوداعمل هم جائزدې كوم چه په حديث كښې دې

**په احاديثوكښې تعارض:** دلته د روايت الباب نه په ظاهره دااشكال معلوميږى چه حبيب پاك به د سحر نبيذ ماښام اود ماښام نبيذ سحرڅكلو اودې نه زيات به ئې نه حصارولوحالانكه د ابن عباس رضي الله عنهما روايت د كوم تخريج چه ابوداؤد مسلم نسائى او ابن ماجه كړې دې د هغې نه معلوميږى چه رسول الله ﷺ به د مشكيزې نبيذ دريو ورځو پورې څكلو او د دريمې ورځ ماښام به ئې اوڅكلو او باقى پاتې به ئې توئى كړو په ظاهره په دواړو روايتونوكښې تعارض دې؟

**دتعارض درې جوابونه:** ① د حضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كښې هم د دغه ورځ ذكر دې دې سره د راتلونكې ورځ او دريمې ورځ څكلو نفى لازم نه راځى ځكه چه ذكر شئ نفى عماعداه نه مستلزم لره دې

② د ابن عباس رضي الله عنهما د روايت محمل هغه زمانه ده په كوم كښې چه به په دريو ورځوكښې هيڅ تغيرنه كيدلو موسم به يخ وو اود حضرت عائشه رضي الله عنها د روايت محمل د گرمنى موسم دې په دې كښې به فساد اوسكر زر راتلو

③ د حضرت عائشه رضي الله عنها د روايت محمل قليل نبيذ دې چه هم په يوخل كښې به ختميدلو اود ابن عباس رضي الله عنهما د روايت محمل هغه صورت دې چه هغه به په زيات مقداركښې وو

**[۴۲۸۹] د كانړى په لوښى كښې نبيذ جوړول**

۴۲۸۹ - [۳] (۱) ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي

(۱) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة/باب النهي عن الانتباذ في المزفت والدباء والحنتم والنقير، وبيان أنه منسوخ، وأنه اليوم حلال ما لم يصر مسكرا (رقم ۶۲ - (۱۹۹۹) وابوداود في كتاب الأشربة/باب في الأوعية (رقم-۳۷۰۲) والنسائي في كتاب الأشربة/باب الإذن في الانتباذ التي خصها بعض الروايات التي أتينا على ذكرها الإذن فيما كان في الأسقية منها (رقم-۵۶۴۸) وابن ماجه في كتاب الأشربة/باب صفة النبيذ وشربه (رقم-۳۴۰۰) واحمد في المسند: ۳۰۴/۳

سِقَايهِ ۳ فَإِذَا لَمْ يَجِدُوا سِقَاءً ۴ يُنْبَذُ لَهُ فِي تَوْرٍ مِنْ حِجَارَةٍ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر رضي الله عنه وايي ۲ چې رسول الله ﷺ د پاره به په مشک کې نبيذ جوړولې شو ۳ که څه وخت به مشک ملاو نه شو، ۴ نو بيا به د حضور ﷺ د پاره د کاڼي په لوښي کې نبيذ جوړولې شو (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَوْرٍ: د کاڼړي يا د پيتل لوښي

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث په مفهوم کښې څخه مشکل نشته.

**[۳۳۰] د نبيذ جوړولو د پاره ممنوعه لوښي**

۳۳۰- [۵] ( ) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: ۲ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ ۳ وَالْحَنْتَمِ ۴ وَالْمُزَفَّتِ ۵ وَالنَّقِيرِ ۶ وَأَمَرَ أَنْ يُنْبَذَ فِي أَسْقِيَةِ الْأَدَمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي ۲ چې رسول الله ﷺ د ډډ کدو په لوښي کې [د نبيذ جوړولو نه] منع وفرمايله، ۳ په غټ شين منګی کې ۴ او په رنګ شوي [روغن مړلي شوې] کټوئ کې ۵ اود ډډ لرګي په لوښي کې [د نبيذ جوړولونه]. ۶ او دا حکم يې وکړو چې د څمړې په مشک کې دې نبيذ جوړول شي (مسلم)

**حل اللغات:** ① الدُّبَّاءِ: اوچ ډډ کدو. ② الْحَنْتَمِ: چاټي، منګي، ③ الْمُزَفَّتِ: روغن مړلي شوې کټوئ. ④ النَّقِيرِ: ډډ تراشلي شوي د لرګی لوښې، ⑤ الْأَدَمِ: د څرمنې مشکيزه

**تسهيلات:** **قوله:** نَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ الخ

**په مذکوره لوښو د نبيذ جوړولو کښې د ممانعت نسخ:** نبي عليه السلام د اسلام د شروع په ورځو کښې په دې قسم لوښو کښې د نبيذ جوړلو ممانعت فرمائيلې وو دې د پاره چه لوښوته په کتلوسره دوباره د شرابو رغبت پيدانه شي. بل د دغه لوښو په خاص تاثيرسره نبيذ په شرابو کښې بدل نه شي. کله چه د شرابو نفرت په زړونوکښې کيناستو اوپه مسکر او غيرمسکرکښې فرق کول آسان شو نو حضور پاك په هرقسم لوښوکښې د نبيذ جوړولو اجازت ورکړو لکه څنګه چه دې پسې روايت کښې د دې ذکردې

**قوله:** وَأَمَرَ أَنْ يُنْبَذَ فِي أَسْقِيَةِ الْأَدَمِ

**د أَدَم څخه مراد:** دا لفظ مفرد دې په همزه او دال باندې فتحه ده څرمن ته وائی مراد د څرمن نه جوړه شوې مشکيزه ده

**نوټ:** د دې حديث تفصيل په کتاب الايمان کښې تيرشوې دې

( ) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة /باب النهي عن الانتباذ في المزفت والدباء والحنتم والنقير. وبيان أنه منسوخ. وأنه اليوم حلال ما لم يصر مسكرا (رقم-٤٦ - (١٩٩٧)

## [۳۳۹] د نبیذ دپاره د بعضي لوښو د حرمت نسخ

۳۳۹-[۶] (¹) [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«نَهَيْتُكُمْ عَنِ الظُّرُوفِ، [۳] فَإِنَّ ظَرْفًا لَا يُحِلُّ شَيْئًا وَلَا يُحَرِّمُهُ، [۴] وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ". [۵] وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: "نَهَيْتُكُمْ عَنِ الْأَشْرِبَةِ إِلَّا فِي ظُرُوفِ الْأَدَمِ، [۶] فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ وِعَاءٍ [۷] غَيْرَ أَنْ لَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت بریده ﷺ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ما تاسو (په مذکوره بالا) بعضو لوښو کې [د نبیذ جوړولو نه] منع کړي وئ، [او تاسو دا ګمان کړي وو، چې د حلت او حرمت حکم د لوښو سره تعلق لري، حالانکه داسې نه ده] [۳] بلکه حقیقت دا دي چې کوم څیز حرام دي، هغه هیڅ لوښي حلالولي نشي، او کوم څیز چې حلال دي، هغه هیڅ لوښي نه حراموي، [۴] اصل حکم خو دا دي چې کوم څیز نشه پیدا کړي، هغه حرام دي [که هغه په هر لوښي کې هم اوڅکل شي او کوم چې نشه نه پیدا کوی، هغه حلال دي، خوا که هغه په هر قسم لوښي کې وي)، [۵] او په یو روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل ما (په مذکوره بالا لوښو کې) تاسو [د نبیذ جوړولو او] څکلو نه منع کړي وئ، علاوه د چمړې د لوښو نه [لیکن اوس زه هغه حکم منسوخ ګرځولو سره په هر قسم لوښي کې نبیذ جوړول او څکل مباح ګرځوم] [۶] نو تاسو په هر قسم لوښي کې څکلي شي، [۷] لیکن کوم څیز چې نشه پیدا کونکي وي هغه هیڅ کله مه څکئ (مسلم)

**حل اللغات:** ① الظُّرُوف: د ظرف جمع ده لوښی، ② الْأَدَمِ: د څرمن لوښي (مشکیزه)، ③ وِعَاءٍ: لوښي،

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِنَّ ظَرْفًا لَا يُحِلُّ شَيْئًا وَلَا يُحَرِّمُهُ:**

**په مذکوره لوښوکښې د نبیذو جوړولو د ممانعت وجه:** دَ اسلام په شروع کښې په مدینه منوره کښې چه کله دَ شرابو دَحرمت حکم راغلو نومسلمانانو له دَ شرابو نه دَ نفرت پیداکولو په غرض نبی کریم دَدغه لوښو دَ ماتولو او دَ نه استعمالولو حکم ورکړو کله چه دَ شرابو حرمت په زړونوکښې کیناستو نونبی کریم دَهرقسم لوښودَ استعمالولو اجازت ورکړو اوونی فرمائیل چه لوښي یوڅیز حلال یا حراموی نه اوس هرقسم لوښی استعمالونی لیکن دَمسکراتو نه خان اوساتئ.

---

¹) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة /باب النهي عن الانتباذ في المزفت والدباء والحنتم والنقير، وبيان أنه منسوخ، وأنه اليوم حلال ما لم يصر مسكرا (رقم-) ٦٤ - (١٩٩٩) والترمذي في كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في الرخصة أن ينبذ في الظروف (رقم-١٨٦٩) واحمد في المسند، والنسائي في/٣٥٩

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۲۳] د هر نشه راوستونکی مشروب حرمت**

۳۲۳—[۷] (١) ① عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② "«لَيَشْرَبَنَّ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ ③ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① د حضرت ابو مالك اشعري نه روايت دي چې هغه د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② [داسې زمانه راتلونکې ده] چې زما د امت بعضې خلق به شراب څکي. ③ او د هغې نوم به د شرابو په ځاي بل څه ايږدي. (ابوداود ، ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله:** يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا:

**دحديث مصداق:** نبي عليه السلام د راروانې زمانې د خلقو پيشن ګوئي کوي چې زما به امت کښې به بعضې خلق شراب څکي خوبه دې کښې به تاويل کوي چې دا شراب نه دي بلکه نور نومونه به ورکوي.زما په خيال که نظر اوکړې شي نو اصل علت خود شرابو په حرمت کښې سکر او نشه ده.نوکه د نشې صفت په هرڅخه کښې وي که هغه مشروب وي اوکه غير مشروب نوهغه به د شرابو په حکم کښې وي نود دې قاعدې په رڼا کښې په موجوده وخت کښې پوډر ,آئس (دا يوه نوې نشه راوتې ده) وغيره د نشې څيزونه هم د دې حديث مصداق دې والله تعالى اعلم

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۲۴] په شين منګي کې د جوړ شوي نبيذ د څکلو ممانعت**

۳۲۴—[۸] (٢) ① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ نَبِيذِ الْجَرِّ الْأَخْضَرِ ③ قُلْتُ: أَنَشْرَبُ فِي الْأَبْيَضِ؟ قَالَ: لَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت عبدالله ابن ابي اوفي رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ په شين منګي کې د جوړ شوي نبيذ د څکلو نه منع اوفرمايله. ③ نو ما عرض وکړو چې آيا مونږ په سپين منګوټي کې جوړ شوي نبيذ څکلي شو ؟ حضور ﷺ وفرمايل چې نه. (بخاري)

**حل اللغات:** ① الْجَرِّ الْأَخْضَرِ: شنه چاټي، شين منګې

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأشربة/باب فى الداذى (رقم-٣٦٨٨) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب العقوبات (رقم-٤٠٢٠) واحمد فى المسند: ٥/٣٤٢

(٢) اخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث ٥٥٩٦. واحمد فى المسند ٤/ ٣٥٣

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ نَبِيذِ الْجَرِّ الْأَخْضَرِ:

**په حديث كښې د اخضره قيد نوعيت:** يعنى شنه كندولونه اوخُم. دَ لوښى دَپاره شين كيدل څه قيد احترازى نه وو بلكه دَزماني په لحاظ سره دا قيد اتفاقي ووځكه چه عموماً هغه وخت به دَ شرابو لوښى شنه اومرغن وو. حضرت عبدالله بن ابى اوفى ﷺ دا قيد احترازى اوګڼړلو نوسوال ئې اوكړو چه په سپين لوښى كښې جوړشوې نبيذ څكلې شو؟ نبى كريم جواب وركړو چه نه. چونكه هغه وخت دا ټول لوښى دَ نبيذ وغيره دَاستعمال دَپاره هم ممنوع ګرځولې شوې وو په دې وجه نبى كريم سپين لوښى هم منع كړل بيا دا ممانعت منسوخ شو.

## [۵] بَابُ تَغْطِيَةِ الْأَوَانِي

### دَلوښود پټولو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على مسئلتين:**

① الأمر بالتغطية: ۱، ۲، ۵.

② الحكم بإطفاء النارعند المنام: ۳، ۴، ۶.

**دباب مقصد:** رسول كريم ﷺ دنيا ته احكام شرع رسولوَ پاره مبعوث شوې وو خوددې سره سره دَ معاشرت آداب هم نبى كريم ﷺ ښه په تفصيل سره بيان فرمائيلى دى. دې دَپاره چه دَهغوى ﷺ منونكى مسلمانان خپل ژوندپه ښه طريقه اوپه آرام اوسكون سره تيركړى شى په دې باب كښې رسول الله ﷺ دَ اوده كيدو دَ وخت څه آداب بيان كړى دى.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۲۹۳] دشپى د داخليدو بعضى آداب

۴۲۹۳ — [۱] (۱) [۱] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ أَوْ أَمْسَيْتُمْ [۳] فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ، [۴] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ، [۵] فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ فَخَلُّوهُمْ [۶] وَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ، [۷] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا، [۸] وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ، [۹] وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ، وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ، [۱۰] [۱۰] وَلَوْ أَنْ تَعْرِضُوا عَلَيْهِ شَيْئًا، [۱۱] وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(۱) اخرجه البخارى فى كتاب بدء الخلق/باب صفة إبليس وجنوده (رقم-۳۲۸۰) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء. وإغلاق الأبواب. وذكر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وكف الصبيان والمواشي بعد المغرب (رقم-۹۷ - (۲۰۱۲) وابوداود فى كتاب الأطعمة/باب فى التمر (رقم-۳۸۳۱) واحمد فى المسند:۳/۳۰۶

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هر كله چې د شپې تياره خوره شي، يا داسې يې وفرمايل هر كله چې مابنام شي،[۳] نو خپل كوشنيان [د كور نه د وتلو نه او په لارو كوڅو كې د ګرځيدو نه] منع كړئ،[۴] ځكه چې دا وخت شيطان، [يعنى جنات ځلور طرف ته] خوريږي،[۵] بيا چې د شپې يو ساعت تير شي، نو كوشنيان چيرته د تلو راتلو د پاره په پريخودلو كې څه حرج نشته،[۶] او د الله ﷻ نوم اخستو سره [يعنى بسم الله ويلو سره] دروازې بندې كړئ،[۷] ځكه [بسم الله ويلو سره] بندې كړې دروازې شيطان نه شي خلاصولې [باوجود د دې چې شياطين او جناتو ته په دې قدرت حاصل دې چې هغوى په دروازو او په ديوالونو كې كيني، ليكن د الله ﷻ د ذكر په سبب هغوى د ناستې مجال نه لري][۸] او د الله ﷻ نوم اخستو سره د هغه مشكيزو خلې بندې كړې [چې په هغې كې اوبه موجودې وي، چې په هغې كې چينجې او پتنګان وغيره دننه نشي،[۹] او د الله ﷻ نوم اخستو سره خپل لوښې پټوئ (سر پرې ايږدئ)[۱۰] خواه كه په لوښو عرضاً يو شې كيږدئ، [يعنى كه د لوښو د پټولو د پاره داسې شې موجود نه وي، چې په هغې سره د هغه لوښې خله پوره پټه شي، نو په هغې عرضاً په پلنوالي څه لرګې وغيره ايږدئ، اګر كه په دې صورت كې لوښې پوره طور سره پټ نشي، ليكن داسې كم نه كم كراهت خو به ختم شي، او د دې حكم له بركته به په لوښې كې موجود د خوراك څكاك څيز د هغه ضرر او نقصان نه وساتل شي چې د لوښې بالكل خلاصيدو په صورت كې يقيني وي، لكه د شيطان تصرف].[۱۱] او [اوده كيدو په وخت] خپل چراغونه (ډيوې) مړې كوئ. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** (۱) جِنحُ اللَّيلِ: د شپې تياره، دَ شپې رومبې حصه، (۲) أَوْ أَمسَيتُم: يا مابنام شي، (۳) فَكُفُّوا: نو ايسار كړئ، منع كړئ، (۴) فَخَلُّوهُم: نو پريږدئ ئې، (۵) أَوكُوا: إيكاء نه دې دَ تسمې په ذريعه تړل، (۶) قِرَبَكُم: مشكيزې خپلې، (۷) وَخَمِّرُوا: او پټوئ (لوخى)، (۸) وَأَطفِئُوا: او مړه كوئ، (۹) مَصَابِيحَكُم: ډيوې خپلې

**تسهيلات:**

**دنبى عليه السلام امت ته معاشرتى هدايات:** رسول كريم ﷺ دنيا ته احكام شرع رسولو دَ پاره مبعوث شوې دي خودې سره سره دَ معاشرت آداب هم حبيب پاک ﷺ ښه په تفصيل سره بيان فرمائيلى دى دې دَ پاره چه دَهغوى ﷺ منونكى مسلمانان خپل ژوند په ښه طريقه اوپه آرام اوسكون سره تير كړى شى په دې روايت كښې رسول الله ﷺ دَ اوده كيدو دَ وخت څه آداب بيان كړى دى

**د مذكوره احكامو شرعى حكم:** علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه په دې روايت كښې كوم اوامر واقع شوى دى هغه ټول ارشادى دى ايجابى نه دى نودَ دې نه په دَ زيات نه زيات استحباب او ندب ثابتيږى نه چه وجوب.

**قوله: فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ:**

**د شپې په داخلیدو د ماشومانو بهر نه د پرېښودلو وجه:** یعنی ماښام وخت کښې شیطانان اوجنات خوریږی هغه وخت هغه په ماشومانو باندې اثرکولوسره نقصان رسولې شی. دغه شان څناورو ته هم نقصان رسولې شی. په دې وجه تیاره خوریدوسره ماشومان اوڅناور بهرته دڅه ساعت دپاره مه پریږدئی.

**په موجوده زمانه کښې ددې مسئلې حکم:** زما په خیال دا حکم د هغه زمانې سره ووچې آبادیانې کمې وې نن صبا په ښارونوکښې خلق ترناوخته پورې ویخ وی اوگرځی راگرځی نود شیطانانود حملې کولو ویره نه وی نوکه ماشومان په ښارونوکښې او د گنړې آبادۍ پ ځایونوکښې بهرته راوځی څه خطره به نه وی البته په بانډو او کلو کښې دا حکم اوس هم برقرار دې والله اعلم بالصواب

**قوله: وَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا:**

داوده کیدو په وخت دروازه بندول. دلته دا بیان دې چې داوده کیدو په وخت کښې دروازه بنده کړئی اودَ مسلم په روایت کښې واذکرواسم الله هم واقع شوې دې. یعنی دَ الله تعالی نوم هم واخلئی.

**د دروازې په بندولو کښې فوائد:** علامه ابن دقیق العید وائی چه دَ رسول الله ﷺ په دې حکم کښې دنیاوی او دینی دواړه مصالح دی.

① د دروازې په بندولو کښې دَ شیطان نه ځان او مال وغیره محفوظ کیږی. ځکه چه شیطان بندې دروازې نه شی کولاوولې

② اهل شروفساد هم په بندو دروازو کښې په آسانه داخلیدې نشی

**د شیطان په مصداق کښې دوه اقوال:** ① علامه ابن مالک وائی دَ بعض علماؤ رائې داده چه دَ شیطان څخه انسی شیطان مراد دې ② څه عالمان فرمائی چه د شیطان څخه مطلقاً جنس شیطان مراد دې که انسی وی او که جنی وی

**د بندولو په وخت کښې دوه اقوال:** ① داحکم عام دې که شپه وی اوکه ورځ کله هم چه دَ کور خلق اوده کیږی یا څه په داسې کارکښې مشغول وی چه دَ کور دَ سامان نه ئی خیال بدل شی نوپه داسې موقعو باندې دې دروازه بنده کړی اودَ الله تعالی نوم واخلئی.
دَ علامه باجی رائې هم دغه ده

② امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې لیل ملحوظ ساتلې دې ځکه چه په روایاتو کښې هم دَ لیل لفظ واقع دې خودَ مفهوم روایات نه داحکم عام دَ شپې ورځې دواړودپاره معلومیږی او احتیاط هم په دې کښې دې

**قوله**: وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ:

**د مشکیزې خُله بندول**: یوادب دا بیان کړې شو چه دَ مشکیزې خُله بنده کړنی بعض روایاتو کښې ((وَأَوْكِئُوا السِّقَاءَ)) لفظ هم وارد شوې دې کمافی الترمذی

**د مشکیزې خُله بندولو کښې فائده**: دَ مشکیزې خُله بند ساتلو حکم نی په دې وجه اوکړو چه قعقاع بن حکیم د جابر ﷺ نه روایت کوی چه په پوره کال کښې یوه شپه داسې وی په کومه کښې چه دَ آسمان نه مصیبت نازلیږی او په کولاؤ لوښو او مشکیزوکښې هغه بلا داخلیږی نوکه چرې خُله ئی بنده وی نو دَ دې څخه به حفاظت وی دې نه علاوه دَ زهریلا ځناور دَ داخلیدو نه به هم په حفاظت کښې وی

**قوله**: وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ، وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ، وَلَوْ أَنْ تَعْرُضُوا عَلَيْهِ شَيْئًا:

**دوه قسمه لوښی اودهریوه پټولو طریقه**: یو ادب نی دا اوخودلو چه لوښی اولټه کونی یا لوښی پټونی

① کوم لوښې چې خالی وی نودا دې الټه کړې شی

② کوم لوښې چې ډک وی نودا دې پټ کړې شی که بل څخه نه وی نو دې سره دې یرې ډکې کیخودې شی دا هم کافي کیږی د لوښی ټول سر پټول ضروری نه دی د ..وَلَوْ أَنْ تَعْرُضُوا عَلَيْهِ شَيْئًا .. مطلب هم دا دې

**د لوښو د پټولو فائدې**: علامه نووی رحمه الله فرمائی چه دَ لوښو د پټولو کښې علماؤ ډیرې فائدې خودلې دی

① دَ شیطانانونه حفاظت، ② دَ وبا نه صیانت،

③ دَ گندگو او پلیتوجفاظت ④ دَ حشراتو او زهریلا څیزونوڅخه حفاظت

**قوله**: وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ:

**د ډیوې مړه کول**: بل ادب نی دا بیان اوفرمائیلوچه کله اوده کیږنی نو ډیوه مړه کونی

**د ډیوې مړه کولوفائده**: داحکم رسول الله ﷺ ځکه اوفرمائیلو چه بعضې وخت دَ أور نه نقصان پیداکیږی پخپله ډیوه هم الټه کیدیشی او رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه اکثر مږې هم باتیې راکاږی او اوری ئ او په کپړو باندې ئ غورزوی

**نبی علیه السلام ته د ډیوې واقعې پیښیدل**: ځکه چه حضورپاک ﷺ سره داسې واقعه شوې وه چه دَ رسول الله ﷺ مصله دَ مږې باتئی رابنکلوسره په اندازه دَ درهم سوزیدلې وه حافظ ابن حجر وائی چه دا حکم هم عام دې چه کله دَ انسان یووخت په غفلت کښې وی نوهغه وخت ډیوه مړه کول پکاردی

**بلیوله د ډیوې په حکم کښې**: علامه قرطبی رحمه الله وائی که یوسړې په کورکښې ځان له اوده وی

نو هغه له پکار دی چه ډیوه دې مړه کړې یا دې په داسې طریقه سره اوده شی چه د نقصان نه کیدو تسلی ئې وی دې نه پس په دې پوهه ئ چه که یوه ډله په یو کور کښې اوده کیږی نو د کور د دروازې د بندولو وغیره حکم به آخری کس ته وی. په دې زمانه کښې د ډیوو په ځائې بلبونه او راډونه دی دا هم د بندولونه پس اوده کیدل پکاردی ځکه چه په دې باندې هم د چینجووغیره د پاره چمچورکئی اکثر وختونو کښې رادانگی اوپخپله د چینجو وغیره نه هم نقصان کیدیشی

**نوټ**: د گرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حدیث د مضمون پوره تشریح د حدیث نمبر (۴۲۹۵) په شرح کښې شوې ده.

۴۲۹۵ —(۱)[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ، قَالَ: "[۲]«خَمِّرُوا الْآنِيَةَ،[۳] وَأَوْكُوا الْأَسْقِيَةَ،[۴] وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ،[۵] وَاكْفِتُوا صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ الْمَسَاءِ،[۶] فَإِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَخَطْفَةً،[۷] وَأَطْفِئُوا الْمَصَابِيحَ عِنْدَ الرُّقَادِ.[۸] فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا اجْتَرَّتِ الْفَتِيلَةَ[۹] فَأَحْرَقَتْ أَهْلَ الْبَيْتِ»".

**ترجمه**: [۱] [اومذکوره بالا روایات خو په یو شان الفاظو کې په بخاري او مسلم کې منقول دي. لیکن مضمون په مختلفو الفاظو سره بخاري او مسلم جدا جدا هم نقل کړي دي] د بخاري په یو روایت کې داسې دي چه حضور ﷺ وفرمایل[۲] لوښي پټوئ [یعنی سرونه پرې ایږدئ] .[۳] د مشکیزو خلي ترئ،[۴] دروازې بندوئ [۵] او خپل کوشنیان د خان سره ماښت ساتئ. [هغه اخوا دیخوا یي مه پریږدئ] کله چې ماښام شي.[۶] ځکه چې هغه وخت جنات خلور طرف ته خوریږي. او تښتوي یي.[۷] او د اوده کیدو په وخت چراغونه مړه کوئ.[۸] ځکه اچې اکثره یا په بعضو وختونو کې داسې کیږي، چې[ منږکان باتئ راکاږي.[۹] او کور والاسوزوي

**حل اللغات**: ① خَمِّرُوا: پټوئ [لوخي]. ② أَوْكُوا: إیکاء نه دي د تسمې په ذریعه ترل. ③ الْأَسْقِيَةَ: د سقاء جمع ده. مشکیزه. ④ أَجِيفُوا: بندوئ [دروازه]. ⑤ وَاكْفِتُوا: د باب إفعال نه إکفات خپل خان سره کینول او بندول اوخان سره جوختول. ⑥ الْمَسَاءِ: ماښام. ⑦ انْتِشَارًا: خوریږي. ⑧ وَخَطْفَةً: او تختول کوئ. ⑨ وَأَطْفِئُوا: مړه کوئ [ډیوه]. ⑩ الْمَصَابِيحَ: ډیوه. ⑪ الرُّقَادِ: د اوده کیدو په وخت. ⑫ الْفُوَيْسِقَةَ: د فاسقه تصغیر دې مراد مږه ده. ⑬ اجْتَرَّتِ: د اجترار نه دې راښکل. ⑭ الْفَتِيلَةَ: باتئ.

**نوټ**: د گرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حدیث د مضمون پوره تشریح د حدیث نمبر (۴۲۹۴) په شرح کښې شوې ده

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب: خمس من الدواب فواسق. یقتلن فی الحرم (رقم-۳۳۱۶) وابوداود فی کتاب الأشربة/باب فی إیکاء الآنية (رقم-۳۷۳۳) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۸۵۷) واحمد فی المسند:۳/۳۸۸

۴۲۹۶—(۱) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: [۲] " «غَطُّوا الْإِنَاءَ، [۳] وَأَوْكُوا السِّقَاءَ، [۴] وَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ، [۵] وَأَطْفِئُوا السِّرَاجَ؛ [۶] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَحُلُّ سِقَاءً، [۷] وَلَا يَفْتَحُ بَابًا، [۸] وَلَا يَكْشِفُ إِنَاءً، [۹] فَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا أَنْ يَعْرُضَ عَلَى إِنَائِهِ عُودًا، [۱۰] وَيَذْكُرَ اسْمَ اللَّهِ فَلْيَفْعَلْ؛ [۱۱] فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ تُضْرِمُ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِمْ» ".

**ترجمه:** [۱] او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] لوښي پټوئ، [سرونه پرې ایږدئ] ، [۳] د مشکیزو خلې بند وئ، [۴] دروازې بندوئ. [۵] ډیوې مړې کوئ. [۶] ځکه چې د الله جل جلاله نوم اخستو په وجه شیطان بند مشکیزې نه خلاصوي، [۷] او نه (بندې) دروازې خلاصوي، [۸] او نه پټ شوي (سرپوښ د) لوښي خلاصوي. [۹] که په تاسو کې چا ته د پټولو د پاره څه شي ملاو نشي، او د لوښي په خله عرضاً څه لرګي ایخودلی شي. [۱۰] د الله جل جلاله نوم اخستو سره نو داسې وکړئ. [یعنی بسم الله ویلو سره د لوښي په خله یو لرګي کیږدي، او د اوده کیدو په وخت چراغ (ډیوه) ځکه مړه کوئ. چې] [۱۱] منږک (د مږې مذکر) د ډیوې باتۍ راخکلو سره په کور والؤ د هغوئ کور سوزوي [یعني منږک د ډیوی باتۍ اخستو سره په یو داسې ځاي کې غورځوي، چیرته چې په یو شي کې اور ونګیږي او بیا ټول کور وسوزي].

**حل اللغات:** ① غَطُّوا: پټوئ (لوخی). ② أَوْكُوا: ایکاء نه دې دَ تسمې په ذریعه تړل. ③ السِّقَاءَ: مشکیزه ④ أَطْفِئُوا: مړه کوئ (ډیوه). ⑤ السِّرَاجَ: ډیوه. ⑥ لَا يَحُلُّ: نه خلاصوی. ⑦ عُودًا: ډکې. لرګي، ⑧ الْفُوَيْسِقَةَ: دَ فاسقه تصغیردې مراد مږه ده، ⑨ تُضْرِمُ: دَباب إفعال نه دې اور لګول

**نوټ:** د ګرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حدیث د مضمون پوره تشریح د حدیث نمبر (۴۲۹۴) په شرح کښې شوې ده.

۴۲۹۷—(۲) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ، قَالَ: [۲] " «لَا تُرْسِلُوا مَوَاشِيَكُمْ وَصِبْيَانَكُمْ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ. [۳] حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يُبْعَثُ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ» "

**ترجمه:** [۱] اود مسلم په یو بل روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې نمر ډوب شي. نو خپل څاروي او ماشومان د کور نه وتلو ته مه پرېږدئ. [۳] تردې چې د شپې د ابتدایي حصې تیارې لاړې شي، [یعنی څه شپه تیره شي] ، [۴] ځکه د نمر ډوبیدونه پس د شپې د ابتدایي حصې د تیریدو تر وخته پورې شیطان (جنات) خوریږي.

**حل اللغات:** ① مَوَاشِيَكُمْ: د ماشیة جمع ده. څاروی. ② فَحْمَةُ: دَ شپې د تیارې ابتدائی حصه. ③ يُبْعَثُ: دَمجهول صیغه ده یعنی شیطانان خورولې شي یا خوریږی

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء، وإغلاق الأبواب. وذكر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وكف الصبيان والمواشي بعد المغرب (رقم-۹۶ - (۲۰۱۲) واحمد فی المسند: ۳/۳۸۶

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء، وإغلاق الأبواب. وذكر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وكف الصبيان والمواشي بعد المغرب (رقم-۹۸ - (۲۰۱۳) واحمد فی المسند: ۳/۳۹۵

**نوټ:** د ګرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حديث د مضمون پوره تشريح د حديث نمبر (۴۲۹۴) په شرح کښې شوې ده

۴۲۹۸—( )[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ، قَالَ: [۲] "«غَطُّوا الْإِنَاءَ، [۳] وَأَوْكُوا السِّقَاءَ; [۴] فَإِنَّ فِي السَّنَةِ لَيْلَةً يَنْزِلُ فِيهَا وَبَاءٌ [۵] لَا يَمُرُّ بِإِنَاءٍ لَيْسَ عَلَيْهِ غِطَاءٌ [۶] أَوْ سِقَاءٍ لَيْسَ عَلَيْهِ وِكَاءٌ [۷] إِلَّا نَزَلَ فِيهِ مِنْ ذَلِكَ الْوَبَاءِ»".

**ترجمه:** [۱] او د مسلم په يو بل روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] لوښې پټوئ، (يعنى سر پرې ايږدئ) [۳] د مشکيزې خله تړئ، [۴] ځکه چې په کال کې يوه شپه داسې راځي چې په هغې کې وبا نا زليږي، [۵] او کوم لوښې چې خلاص وي، [۶] يا د کومې مشکيزې خله بنده نه وي، [۷] د هغه وبا څه حصه په هغې کې داخليږي

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ګرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حديث د مضمون پوره تشريح د حديث نمبر (۴۲۹۴) په شرح کښې شوې ده.

**[۴۲۹۹] په کوم لوښي کې چې د خوراک څکاک څه شي وي هغه د سرپوښ کولو سره ورې راوړي**

۴۲۹۹—[۲] ( )[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ - رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ - مِنَ النَّقِيعِ بِإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُودًا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [۲] چې (يوه ورځ) ابو حميد رضي الله عنه چې يو انصاري سړي وو، د نبي کريم ﷺ په خدمت کې د مقام نقيع نه د شودو يو ډک لوښې اخستو سره راغې. [۳] حضور ﷺ چې هغه لوښې خلاص وليدلو، نو وي فرمايل چې تا دا لوښې پټ ولې نه کړو. اګرکه دپټولو دا صورت وي چې تا په دې لوښې عرضاً يو لرګې ايښې وې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① النَّقِيع: مدينې منورې سره نيزدې د يوځاى نوم دې ② خَمَّرْتَهُ: دا د تخمير نه دې د پټولو په معنى کښې دې ③ عُودًا: وړوکى لرګې ډکې،

**نوټ:** د ګرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اود حديث د مضمون پوره تشريح د حديث نمبر (۴۲۹۴) په شرح کښې شوې ده

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة /باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء. وإغلاق الأبواب. وذكر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وكف الصبيان والمواشى بعد المغرب (رقم-۹۹ - (۲۰۱٤)

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الأشربة /باب شرب اللبن (رقم-۵۶۰۵) ومسلم فى كتاب الأشربة /باب فى شرب النبيه وتخمير الإناء (رقم-۹۵(۲۰۱۱) وابوداود فى كتاب الأشربة /باب فى إيكاء الآنية (رقم-۳۷۳٤) واحمدفى المسند: ۳/۳۱٤

## [۳۳۰۰] د اوده کیدو په وخت د اور مړه کول

۴۳۰۰-[۳] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷺ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② هر کله چې تاسو اوده کيږئ، نو په کورونو کې (بل) اور مه پريږدئ (بخاري ، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ:**

**د اور مړه کولو حکم عموم:** دَ اور نه مراد داسې اور دې په کوم سره چه دَ يوځيز دَ سوزيدو خطره وي لکه ډيوه نغرې يا لګيدلې ګيس سلينډر په کوم سره چه په زرګونو خلق مړه شوی دی. دې نه هغه اور مراد نه دې چه دَ بجلئی دبلب په صورت کښې وی يا په فانوس کښې دننه وی په کوم کښې چه خطره نه وی.

## [۳۳۰۱] د خوب په وخت کښې اور مړ کول

۴۳۰۱-[۴] (۲) ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: ② «احْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِينَةِ عَلَى أَهْلِهِ مِنَ اللَّيْلِ، ③ فَحُدِّثَ بِشَأْنِهِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ④ "إِنَّ هَذِهِ النَّارَ إِنَّمَا هِيَ عَدُوٌّ لَكُمْ، ⑤ فَإِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوهَا عَنْكُمْ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو موسي ﷺ وايي ② چې يوه شپه داسې وشو چې په مدينه کې د يو سړي کور وسوزيدو، [او په کور والو کور راپريوتلو] ③ په دي باره کې د نبي کريم ﷺ په مخکې ذکر وشو، نو حضور ﷺ وفرمايل ④ چې دا اور [د دی نه علاوه نور هيڅ نه دي. چې دا] ستاسو په حق کې يو دښمن دي [چې جان ومال سوزوي] ⑤ کله چې تاسو اوده کيږئ، نو دا مړکوئ، [او د دې د ضرر نه ځان محفوظ ساتئ] (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: احْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِينَةِ عَلَى أَهْلِهِ مِنَ اللَّيْلِ:**

**د "على أهله" په ترکيب کښې دوه احتمالات:**

① دا حال دې نو عبارت به داسې شي "أى ساقطا عليهم".

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب: لا تترک النار فی البیت عند النوم (رقم-۶۲۹۳) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب الأمر بتغطية الإناء. وإيكاء السقاء. وإغلاق الأبواب. وذکر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وکف الصبيان والمواشی بعد المغرب (رقم-۱۰۰ - (۲۰۱۵) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی إطفاء النار بالليل (رقم-۵۲۴۶) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تخمير الإناء. وإطفاء السراج. والنار عند المنام (رقم-۱۸۱۳) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب إطفاء النار عند المبيت (رقم-۳۷۶۹) واحمد فی المسند: ۲/۷۰

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب: لا تترک النار فی البیت عند النوم (رقم-۶۲۹۴) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء. وإغلاق الأبواب. وذکر اسم الله عليها. وإطفاء السراج والنار عند النوم. وکف الصبيان والمواشی بعد المغرب (رقم-۱۰۱ - (۲۰۱۶) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب إطفاء النار عند المبيت (رقم-۳۷۷۰) واحمد فی المسند: ۴/۳۹۹

②دا د "احترق" متعلق دې نو په دې صورت کښې به عبارت داسې شي "أى ضرره عليهم"

**قوله**: إِنَّ هٰذِهِ النَّارُ:

**د نګر په مصداق کښې دوه اقوال**: ① د نار څخه مراد مخصوص نار دې، د کوم د خوريدو چې ويره وي

② ددې څخه جنس نار مراد دې

**قوله**: إِنَّمَا هِيَ عَدُوٌّ لَكُمْ:

**اورته د دشمن وئيلووجه**: او ددې د دښمن کيدو مطلب دا دې چه هغه زمونږ د مال وجان منافی دې اګر چه په دې کښې داسې منافع هم موجود دي کوم چه د اور نه بغير نه حاصليږي او اور ته دښمن وئيل دا مبالغه فی التحذير په توکه دې چه په دې کښې فوائد هم شته مګر مخصوص اوقاتو کښې او ددې نقصانات ډير دی نو ددې وجهې نه د اور نه اويرولی شو (مرقات)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۴۳۰۲] د سپي او خر آواز اوريدو سره د تعوذ حکم

۴۳۰۲ - [۵] ( ) ① عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ③ "«إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ ④ وَنَهِيقَ الْحَمِيرِ مِنَ اللَّيْلِ ⑤ فَتَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ; ⑥ فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لَا تَرَوْنَ. ⑦ وَأَقِلُّوا الْخُرُوجَ إِذَا هَدَأَتِ الْأَرْجُلُ; ⑧ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبُثُّ مِنْ خَلْقِهِ فِي لَيْلَتِهِ مَا يَشَاءُ.

**ترجمه**: ① حضرت جابر رضي الله عنه وايي ② چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. ③ کله چې تاسو د سپو غپا ④ او د خرونو آواز واورئ د شپې په وخت کې. ⑤ نو د شيطان مردود نه د الله تعالی ﷻ پناه غواړئ. ⑥ ځکه چې سپي او خره چې کوم څيز ويني. ايعنی شيطان اود هغه ذريات ا هغه تاسو نه وينئ. ⑦ او هر کله چې د خلقو ګرځيدل بند شي. نو هغه وخت تاسو هم اد کورنه ا کم ووځئ. ⑧ ځکه چې اهغه وخت ا په شپه کې چې الله عز وجل په خپل مخلوقاتو کې څوک غواړي ايعني جنات او شياطين او موذي حيوانات وغيره، هغه ځلوړ طرف ته خوروي

**حل اللغات**: ① نُبَاحٌ: د سپي آواز. غپ غپ کول. ② نَهِيقٌ: د خر آواز. ③ هَدَأَتِ الْأَرْجُلُ: کله چه قدم په آرام شي يعنی دخلقو تګ راتګ بند شي ④ يَبُثُّ: ليږي. خوروي.

① وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ، ② وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ ③ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا إِذَا أُجِيفَ ④ وَذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ. ⑤ وَغَطُّوا الْجِرَارَ ⑥ وَأَكْفِئُوا الْآنِيَةَ ⑦ وَأَوْكُوا الْقِرَبَ»". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما جاء في الديک والبهائم (رقم-۵۱۰۳) واحمد فی المسند:۳۰۶/۳

**ترجمه:** [۱] او خپلي دروازي بندوئ [۲] د الله ﷻ نوم اخستو سره. [يعنى په بسم الله ويلو سره ئې بندوئ] [۳] ځکه چې کومه دروازه بندول کيږي، شيطان د هغې په کهولاؤولو نه قادره کيږي، [۴] چه هغه د الله ﷻ په نوم اخستو سره بنده کړې شوې وي [۵] او هغه لوښي سرپوښ کوي [چې په هغې کې د خوراك څکاك څه وي]. [۶] او په کومو لوښو کې چې هيڅ نه وي، [يعنى هغه خالي وي] هغه نسکوروئ. [۷] او د مشکيزو خلې بندوئ (شرح السنة).

**حل اللغات:** ⑤ أجِيفُوا: بندوئ (دروازې). ⑥ غَطُّوا: پټوئ، سرپوښ ږدئ. ⑥ الجِرَار: کټوئ. ⑨ اكْفِئُوا: الته اړولي ږدئ. ⑨ أوْكُوا: ايکاء نه دې د تسمې په ذريعه تړل. ⑩ القِرَب: مشکيزه.

**تسهيلات:** **قوله:** **إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ الخ:**

**د سپي اوخر د شيطان سره تعلق:** د سپي او خر شيطان سره نيغ په نيغه رابطه ده دوى چه کله شيطان ګورى نو د خوشحالۍ نه ټوپونه وهى اوغاپى او هنړيږى

**[۴۳۰۳] د مږې په ذريعه د اور خوريدل**

۴۳۰۳—[۶] ([۱]) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «جَاءَتْ فَأْرَةٌ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ، [۳] فَأَلْقَتْهَا بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى الْخُمْرَةِ [۴] الَّتِي كَانَ قَاعِدًا عَلَيْهَا، [۵] فَأَحْرَقَتْ مِنْهَا مِثْلَ مَوْضِعِ الدِّرْهَمِ. [۶] فَقَالَ: "إِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوا سُرُجَكُمْ؛ [۷] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدُلُّ مِثْلَ هٰذِهِ عَلَىٰ هٰذَا، [۸] فَيُحْرِقُكُمْ"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷠ وايي [۲] چې [د يوې ورځې واقعه ده چه] يوې مږې د چراغ (ډيوې) بله باتۍ راخستې وه [۳] او هغه يې د رسول الله ﷺ په مخکې په هغه چيټ يې (پوزي، پوزې) وغورځوله، [۴] په کوم چې حضور ﷺ ناست وو. [۵] نو د يو درهم په قدر هغه چټائي وسوزوله. [۶] حضور ﷺ (د دې په ليدو سره) وفرمايل هر کله چې تاسو اوده کيږئ، نو چراغ (ډيوه) مړه کوئ. [۷] ځکه چې شيطان د مږې په شان موذي ځيزونه په داسې حرکت باندې اماده کوي. [۸] او [په دې صورت کې ګويا] هغه شيطان تاسو سوزوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَأْرَةٌ: مږه. ② الفَتِيلَةَ: باتۍ. ③ الخُمْرَةَ: پوزکې، پوزې، درۍ. ④ سُرُجَكُمْ: د سراج نه دې ډيوې ته وانې. ⑤ يَدُلُّ: اماده کوي، راضى کوى

**تسهيلات:** **قوله:** جَاءَتْ فَأْرَةٌ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ د مږې شرارت ته اوګورئ چه د نبى کريم په پوزى يعنى مصلى باندې ئې اور واچولو او اوتختيده د يودرهم برابر پوزې ئې اوسوزولو نبى کريم د دې نه پس خپل امت د حفاظتى تدابيرو نه خبر کړلو

## وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

دا باب د دريم فصل څخه خالي دې

([۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/ باب في إقطاع الأرضين (رقم-۳۰۶۰)

# [٢٢] كِتَابُ اللِّبَاسِ

## دَ لباس بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وسبعون حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① أحب الثياب إلى رسول الله : ١، ٢١، ٢٩، ٦٢، ٧٣.

② ذكر لباس النبي ﷺ وفراشه ووسادته : ٢، ٣، ٤، ٥، ١٨، ٥٠، ٥١، ٥٢، ٥٤، ٥٥.

③ كيفية لبس النبي ﷺ الثياب وأصحابه: ٦، ٢٢، ٢٨، ٢٩، ٣٠، ٣١، ٣٢، ٥٦، ٥٧، ٥٨، ٦١.

④ اللبسة الممنوعة : ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٢، ٢٤، ٢٧، ٣٩، ٥٩، ٦٠.

⑤ اللباس والفراش الممنوعان للرجال أوالنساء: ٧، ١٣، ١٤، ١٥، ١٦، ١٧، ٢٠، ٢٣، ٣٨، ٤٤، ٤٥، ٤٦، ٤٧، ٤٨، ٤٩، ٥٣، ٦٣، ٦٦، ٦٩.

⑥ الرخصة في استعمال اللباس الممنوع لعذر: ١٩.

⑦ البداية باليمين في اللبس: ٢٣.

⑧ الدعاء بعد لبس الجديد: ٣٤، ٣٥، ٦٣، ٦٥.

⑨ فضيلة التواضع في الثياب : ٣٦، ٣٧، ٤٠، ٦٧.

⑩ الترغيب في إظهار النعمة: ٤١، ٤٢، ٤٣، ٧٠، ٧١، ٧٢.

**دباب د مضامينو تعارف:** په كتاب اللباس كښې هغه احاديث جمع دی په كوم كښې چه دَ جائز اوناجائز تعين كړې شوې دې دَ لباس اغوستل او كوزول دَ آداب اوكيفياتو بيان دې دَدې په ضمن كښې دَ لوښوسره متعلق هم څه تذكره ده

**د لباس لغوى معنى:** لباس مصدر په معنى دَ ملبوس دې لكه كتاب په معنى دَ مكتوب استعماليږى دسمع يسمع نه دې ددې اصل مصدر لُبساً دې په لام باندې پيش دې كه چرې په لام باندې زبراولوستلې شى نوهغه دالتباس اوګډوډ كيدو په معنى كښې دې

**د سړو او ښځوپه مينځ كښې لباسى امتيازات:** ① هرسړې او ښځه اسلام ددې پابند جوړكړى دى چه دَ هغوى په لباس كښې د غيرمسلم اقوام شعارسره څه خاص مشابهت نه وى

② دَ سړو اوښځو دَ لباس په رنګ كښې فرق كيدل پكاردى

③ دَمسلمانانو لباس داسې كولاو او آسان كيدل پكاردى په كوم كښې چه دَ بدن دَ اندامونو نمائش نه وى يعنى داسې دَ پردې والا دې وى چه ددې دَ اغوستلو نه پس دَ جدا جدا اندام پته اونه لګى

④ دَ بدن اندامونه پټولوكښې دَسړو اوښځو په لباس كښې فرق دې. دَ سړو لباس دې دَ

ګيتونه ښکته نه وی او د ښځودې د ګيټونه پورته نه وی

**د لباس څلور درجې:**

حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په خپلو ملفوظاتو وغيره کښې د لباس پوځو درجات بيان کړی دی فرمائی د لباس څلور درجات دی

① د ضرورت درجه دې داهغه لباس دې چه دواجب په درجه کښې دې اودا هغه لباس دې چه د بدن دستر والاانداموته پټ کړی

② د آمان اوحفاظت درجه ده دا هغه لباس دې چه انسان د ګرمئی او يخنئی نه بچ کړی

③ د زيب وزينت درجه ده داهغه درجه ده په کوم سره چه زيب اوزينت حصل وی قرآن کريم کښې هم دې ته ريشاً ونيلی شوی دی

④ د نمائش درجه يعنی په کوم کښې چه تفاخراو خان خودل مقصودوی

**د څلوروواړه درجو حکم:** رومبی دوه درجې خو بې دوړو او بې کلام دی د دريمې درجې لباس په توګه د تحديث نعمت مستحب دې اود خوند او خوشحالئی په توګه مباح دی اود فخر اوتکبر په توګه حرام دې او د څلورمې درجې لباس مطلقاً ناجائزدې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳۰۴] حبری کپړه د نبی کريم ﷺ خوښه کپړه وه**

۳۳۰۴-[۱]() ① عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② "«كَانَ أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يَلْبَسَهَا - الْحِبَرَةَ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې د نبي کريم ﷺ په ټولو کپړو کې د اغوستلو د پاره انه چې د يو بل ضرورت. لکه په بستره د اچولو يا چا ته د ورکولو وغيره د پاره! حبری څادر د ټولو نه زيات خوښ وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحِبَرَةَ: يعنی نقشدار څادر

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَلْبَسَهَا -الْحِبَرَةَ:

**د حبره تعارف:** حبره يعنی برد يمانی يعنی څادر کوم چه د کتان يا د قطن وی. (سميت حبرة لانها محبرة ای مزينة والتحبير التزيين والتحسين.) (بذل) او په تحفة الاحوذی ۵ ۲ ۴۰ کښې دی چه

---

() اخرجه البخاری فی کتاب اللباس /باب البرود والحبرة والشملة (رقم ۵۸۱۳) وابوداود فی کتاب اللباس /باب فی لبس الحبرة (رقم-۴۰۶۰) ومسلم فی کتاب الأشربة /باب فضل لباس ثياب الحبرة (رقم ۳۲ (۲۰۷۹) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی أحب الثياب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۷۸۷) والنسائی فی کتاب الجهاد /باب: عدة الحامل المتوفى عنها زوجها (رقم ۳۵۱۵) واحمد فی المسند: ۳/ ۱۳۴

حبره د برود یمن یو قسم دې چه په هغې کښې سرې کرښې وی، او کله شنې یا اسمانی رنګ، دا د عربو په نزد اشرف الثیاب دې ځکه چه دا د تار څخه جوړولې شی. او یا په دې وجه چه د شین رنګ وی کوم چه د اهل جنت جامه ده پس په یو روایت کښې دی ((کان احب الالوان الیه الخضرة، علی ما رواه الطبرانی فی الاوسط وابن السنی وابونعیم فی الطب، والتعبیر التحسین)) او بعضو وجه د محبت دا لیکلې ده چه په دې کښې سادګی ده زیات زینت نشته. او دا هم چه داسې کپړه زر خیرنیږی نه آهد

**په احادیثوکښې تعارض:** راتلونکې حدیث نمبر(۴۳۰۲۵) کښې ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه نبی کریم ته په ټولو کپړوکښې قمیص زیات خوښ وو دلته د یمنی څادرد خوښوالی خبره ده دا په ظاهره تعارض دې.

**د تعارض جواب:** دَ په سرکولو څادرونو قسمونوکښې یمنی څادرد ټولو نه زیات خوښ وو او اغوستونکو څیزونوکښې دَ قمیص نوع دَ ټولو نه زیات محبوب وو هیڅ تعارض نشته دې

**[۴۳۰۵] د نبی کریم ﷺ نقش دار څادر**

۴۳۰۵—[۲] ()[۱] وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- "[۲]«أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَبِسَ جُبَّةً رُومِيَّةً[۳] ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ودحضرت مغیره ابن شعبه نه روایت دې[۲] چې نبي کریم ﷺ یوه رومي جبه واغوسته،[۳] چې د هغې لستوني تنګ وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① جُبَّةً: چوغه، ② الْكُمَّيْنِ: لستونړی،

**تسهیلات:**

**قوله:** لَبِسَ جُبَّةً رُومِيَّةً ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ:

**د تنګو او کولاؤ لستونړو چُغه اغوستل:** په سفر کښې نبی کریم دَ تنګو لستونړو والاجبه اچولې ده اوپه حضرکښې نی دَ کولاؤ لستونړو والا استعمال کړې ده دواړه جائز دی دَ حالاتو مطابق چه کوم مناسب وو هغه نی اچولې دې

**نوټ:** دلته صاحب د مظاهرحق دحدیث نمبر(۴۲۰۵) سره دَ حضرت عائشه رضی الله عنها یوحدیث په غلطئی سره نقل کړې دې هغه حدیث باب مناقب اهل البیت مشکوة صفحه ۵۶۸ باندې دې کتاب اللباس کښې نه دې اګرچه مصابیح کښې دلته ذکردې طیبی رحمه الله هم نقل کړې دې شیخ عبدالحق په دې باندې مکمل بحث کړې دې (تدبر)

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب من لبس جبة ضیقة الکمین فی السفر (رقم-۵۷۹۸) ومسلم فی کتاب الطهارة/باب المسح علی الخفین (رقم-۷۷ - (۲۷۴) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی لبس الجبة والخفین (رقم-۱۷۶۸) واحمد فی المسند: ۲۵۵/۴

[۴۳۰۶] د نبی علیه السلام د وفات په وخت دوه جامې

۴۳۰۶-[۳] (¹) ۱ وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ، قَالَ: ۲ «أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- كِسَاءً مُلَبَّدًا وَإِزَارًا غَلِيظًا، ۳ فَقَالَتْ: قُبِضَ رُوحُ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي هَذَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو برده رضی الله عنه وايي ۲ چې ايوه ورځ بي بي عائشې رضی الله عنها مونږ ته د خودلو د پاره يو پيوند لګيدلي څادر او يو غټې لنګ راويستلو. ۳ او وي فرمايل کله چې د رسول الله ﷺ روح قبض شو، نو حضور ﷺ په دي دوو کپړو کې وو (بخاري . مسلم)

**حل اللغات:** ① كِسَاءً: څادر، ② مُلَبَّدًا: دَ تلبيدنه دې پيوند لګيدلې څادر. ③ غَلِيظًا: پير، غټ.

**تسهيلات:**

**قوله: قُبِضَ رُوحُ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي هَذَيْنِ:**

**خپل امت ته دسادګۍ عملي تعليم** ايږ لنګ. دَدي حديث نه امت ته دا تعليم ملاويږي چه دَ دنيا دَ زيب اوزينت نه ځان ساتل دَ پاکيزه ژوندون حصه ده. سردار دوجهان ﷺ دَدنيانه دَ رخصت کيدو په وخت دَخپل امت مخې ته چه کومه نمونه پريخودې تلې دې امت له يکاردې چه کم نه کم دَ لباس په معامله کښې دَ اسراف اوتبذير نه ډډه اوکړي دَترک دنيا او تقوی په بنياد باندې نبی کريم دَ ښکلې مزيدارې کپړې عادت نه دې جوړکړې سره دَدې چه بعضې وخت دَ لږ ساعت دَپاره په توګه دَ تحديثِ نعمت به ئې ښکلې لباس اغوستې وی نوداسې جائز دې.

[۴۳۰۷] د نبی کریم ﷺ بستره

۴۳۰۷-[۴] (²) ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ۲ «كَانَ فِرَاشُ رسول الله -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الَّذِي يَنَامُ عَلَيْهِ ۳ أَدَمًا، حَشْوُهُ لِيفٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي ۲ چې د رسول الله ﷺ فرش چې په هغې به حضور ﷺ اوده کيدو. ۳ د څمړې وو، او په هغې کې د مالوچو په ځاي د کجورو پوستکي وو (بخاري مسلم)

¹) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب ما ذکر من درع النبی صلی الله علیه وسلم.(رقم-۳۱۰۸) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب التواضع فی اللباس، والاقتصار علی الغلیظ منه والیسیر فی اللباس والفراش وغیرهما، وجواز لبس الثوب الشعر، وما فیه أعلام (رقم ۳٤ - (۲۰۸۰) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی لبس الصوف (رقم-۱۷۳۳) واحمد فی المسند:۳۲/۶

²) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «تربت یمینک، وعقری حلقی»ومسلم فی کتاب الأشربة/باب التواضع فی اللباس، والاقتصار علی الغلیظ منه والیسیر فی اللباس والفراش وغیرهما، وجواز لبس الثوب الشعر، وما فیه أعلام (رقم-۳۸ - (۲۰۸۲) (رقم-۶۱۵۶) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی الفرش (رقم-٤۱٤۷) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ضجاع آل محمد صلی الله علیه وسلم (رقم-٤۱۵۱) واحمد فی المسند: ۲۰۷/۶

**حل اللغات:** ① فِرَاشُ: بستره، ② أَدَمًا: ادیم اوآدم هغه څرمن چه رنګ کړې شوې وی ③ حَشْوُهُ: په بستره کښې دننه دمالوچو په مثل اچولې شوې څیز، ④ لِيفٌ: دَ کهجورو پوستکی،

**تسهیلات:**

**په حدیثونوکښې تعارض:** په شمائل ترمذی کښې دَ حضرت حفصه رضي الله عنها نه روایت دې چه دَ نبی کریم توشك دَ ټاټ وو په ظاهره په دواړو روایتونوکښې تضاد دې

**دتعارض دوه جوابونه:**

① دَ اوده کیدو توشك به نې دَ څرمنې وی اودکیناستو دَ کهجورو دَ پوستکو

② یو زمانه کښې ټاټ وو په بله زمانه کښې بل قسم وو

**[۴۳۰۸] د نبی کریم ﷺ تکیه (بالښت)**

۴۳۰۸—[۵] ()[۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «كَانَ وِسَادُ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الَّذِي يَتَّكِئُ عَلَيْهِ [۳] مِنْ أَدَمٍ، حَشْوُهُ لِيفٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بی بی عائشه رضي الله عنها فرمائی[۲] چې د رسول الله ﷺ تکیه چې په هغې به حضور ﷺ تکیه لګوله، [۳] د چمړې وه، او هغه د کجوروو د پوستکو نه ډکه وه. (مسلم)

**تسهیلات:** په دې حدیث سره دَ تکیه ثبوت او دَدې استعمال ثابتیږی

**قوله:** الَّذِي يَتَّكِئُ عَلَيْهِ:

**د بالښت او تکیه استعمال:** یعنی د ناستی په وخت کښې به نې په دې باندې تکیه لګوله او د اوده کیدو په وخت کښې به نې د سر لاندې ایږدله ددې روایاتو نه دا معلومه شوه چه: اوده کیدلو او د آرام دپاره بستره او تکیه جوړول مستحب دی، په دې شرط چه عیش وعشرت او اسراف په کښې نه وی. او نبی کریم ﷺ به تکیه خوښوله او د اوده کیدلو په وخت کښې به نې د سر لاندې ایږدله او د ناستی په وخت کښې به نې پرې ډډه لګوله. او نبی کریم ﷺ به فرمائیل چه څوک تاسو ته تکیه او خوشبو درکړی نو ددې د قبلولوځخه انکار مه کوې

**[۴۳۰۹] په څادرکښې سر پټول**

۴۳۰۹—[۶] ()[۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: [۲] «بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي حَرِّ الظَّهِيرَةِ، [۳] قَالَ قَائِلٌ لِأَبِي بَكْرٍ: هَذَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُقْبِلًا [۴] مُتَقَنِّعًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب الأشربة/باب التواضع فی اللباس. والاقتصار على الغليظ منه واليسير فی اللباس والفراش وغيرهما. وجواز لبس الثوب الشعر. وما فيه أعلام (رقم-٣٧-٢٠٨٢)وابوداود فی كتاب اللباس/باب فی الفرش (رقم-٤١٤٦) والترمذی فی كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٦٩)

[2]) اخرجه البخاری فی كتاب اللباس/باب التقنع (رقم-٥٨٠٧) وابوداود فی كتاب اللباس/باب فی التقنع (رقم-٤٠٨٣) واحمد فی المسند: ١٩٨/٦

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي[۲] چې [د هجرت نه مخکې يوه ورځ چې] مونږ د غرمې په ګرمئ کې په خپل کور کې ناست وو،[۳] يو ويونکي حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اوويل چې ګوره هغه دي رسول الله ﷺ تشريف راوړو،[۴] چې په څادر سره يې خپل سر مبارک پټ کړی دي (بخاري)

**حل اللغات:** ①مُقْبِلًا: مخامخ راروان دي، ②مُتَقَنِّعًا: دَ څادر په پلو باندې مخ پټ کړې دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا:

**دحديث پس منظر:** دا واقعه کومه چه په دې حديث کښې ذکر ده قبل الهجرة د مکې مکرمې ده، سيده عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چه مونږ په خپل کور کښې عين د غرمې په وخت کښې ناست وو نو يو ويونکي راغلو او والد صاحب (ابوبکرصديق رضي الله عنه) ته ئې خبر ورکړو چه رسول الله ﷺ دلته تشريف راوړي په سر باندې کپړه اچولې. عائشه رضي الله عنها فرمائي چه هغه وخت د رسول الله ﷺ تشريف راوړل د عادت مبارک خلاف وؤ. يعنې عين د غرمې په وخت کښې چه کله رسول الله ﷺ دروازې ته راورسيدلو نو هغوی اجازت طلب کړو. په اجازت ملاويدو باندې دننه راغلل. دا اوږد حديث دې د هجرت د قصې متعلق کومه چه په بخاري کښې ذکر ده ، امام بخاري رحمه الله دا د کتاب المناقب په اخير کښې د کتاب المغازی نه مخکښې ذکر فرمائيلې ده،

**دبخاري روايت:** د بخاري په روايت کښې داسې دی ((فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا - فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ فِدَاءٌ لَهُ أَبِي وَأُمِّي وَاللَّهِ مَا جَاءَ بِهِ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ إِلاَّ أَمْرٌ قَالَتْ فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَدَخَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم لأَبِي بَكْرٍ أَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّمَا هُمْ أَهْلُكَ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَإِنِّي قَدْ أُذِنَ لِي فِي الْخُرُوجِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ الصَّحَابَةُ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: نَعَمْ قَالَ أَبُو بَكْرٍ فَخُذْ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِحْدَى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: بِالثَّمَنِ الحديث))

يعنې کله چه صديق اکبر رضي الله عنه ته اونيلې شو چه رسول الله ﷺ تشريف راوړی نو وې فرمائيل چه په تاسو دې زما مور او پلار قربان وی قسم په الله چه تاسو لره د دې وخت د معمول خلاف يو لوئې څيز راوستلې يئ، دننه د تشريف راوړلو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه غير متعلق کسان د دې خانې نه لرې کړه، هغوی عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ په تاسو باندې دې زما مور او پلار قربان وی دلته خو ټول ستاسو د کور خلق دی څوک هم پردی نشته. رسول الله ﷺ اوفرمائيل (بنه زه دا وايم) چه ماته د مکې مکرمې نه د خروج اجازت کړې شوې دې په دې باندې هغوی عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ زما مور او پلار دې په تاسو قربان وی ما هم ځان سره کړئ، رسول الله ﷺ اوفرمائيل بالکل ضرور بيا هغوی عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تاسو قربان وی زما په دې دوه سورلو

کښې يو تاسو واخلئ، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل صحيح ده خو په قيمت (يعنى هسې نه) ددې نه پس په بخارى کښې په اوږد حديث کښې د هجرت پوره واقعه ذکر ده.

**په مخ پټولو کښې دوه احتمالات:** ① يعنى نبى کريم دَ خادر په پلو باندې مخ پټ کړې راروان دې نبى کريم دَ نمر دَ ګرمئى نه مخ پټ کړې وو چه نن صبا دَ سعودى دَ اوسيدونکو دَپاره دَ رومال او دَ عقال دَاستعمال زبردست دليل دې.

② نبى کريم دَ دښمن نه مخ پټولو دَپاره داسې اوکړه کوم چه دَ مجاهدينو دَپاره دليل دې

**[۳۳۰] په کور کښې د بسترو ساتلو حکم**

٤٣٢٠—[٧] (١) ⓵ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ⓶ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَهُ: ⓷ "فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ، وَفِرَاشٌ لِامْرَأَتِهِ، ⓸ وَالثَّالِثُ لِلضَّيْفِ، وَالرَّابِعُ لِلشَّيْطَانِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⓵ او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې ⓶ چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل ⓷ يو فرش د سړي د پاره، دويم فرش د هغه د ښځې د پاره، او دريم فرش د ميلمه د پاره او څلورم فرش د شيطان د پاره وي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ، وَفِرَاشٌ لِامْرَأَتِهِ، وَالثَّالِثُ لِلضَّيْفِ، وَالرَّابِعُ لِلشَّيْطَانِ.

**په کور کښې د بسترو تعداد:** يعنى رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه درې بسترې په کور کښې کيدل کافى دى يو د خان دپاره او يو د ښځې دپاره، او يو د ميلمه دپاره، د دې نه مراد جنس فراش دې. يعنى د ميلمنو د ضرورت دپاره اوس چه هر څومره ضرورت وى د هغې اعتبار به کولې شى. او څلورمه د شيطان دپاره، يعنى کومه چه د ضرورت نه زياتى وى، چه دا د دنيا د سازوسامان تکثير دې کوم چه د شيطان د طرف نه دې.

**[۳۳۱] د تکبر په وجه د پرتوګ د ګيټو څخه لاندې ساتلو وعيد**

٤٣٢١—[٨] (٢) ⓵ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⓶ "«لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى مَنْ ⓷ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⓵ او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ الله

---

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة /باب كراهة ما زاد على الحاجة من الفراش واللباس (رقم-٤١ - (٢٠٨٤) وابوداود فى كتاب اللباس /باب فى الفرش (رقم-٤١٤٢) والنسائى فى كتاب الجهاد /باب الفرش (رقم-٣٣٨٥) واحمد فى المسند: ٢٩٣/٣

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب اللباس /باب من جر ثوبه من الخيلاء (رقم-٥٧٨٨) كتاب الأشربة /باب تحريم جر الثوب خيلاء، وبيان حد ما يجوز إرخاؤه إليه وما يستحب (رقم-٤٨ - (٢٠٨٧) وابن ماجه فى كتاب اللباس ، باب من جر ثوبه من الخيلاء (رقم-٣٥٧١) ومالك فى الموطا كتاب اللباس /باب ما جاء فى إسبال الرجل ثوبه (رقم-١٠) واحمد فى المسند: ٤٧٩/٢

تعالى ﷻ به د قيامت په ورځ هغه سړي ته [د رحمت په نظر] ونه ګوري، [۳] چې د غرور او تكبر دوجې خپل پرتوګ (لنګ وغيره) د پنړكو نه لاندې زوړندوي. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** ① جَرَّ: راښكل، بَطَرًا: غرور، تكبر

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الخ:**

**د عدم نظر په توجيه كښې درې اقوال:** ① د "نظر" نه مراد رحمت دې چه الله تعالى هغه ته د رحمت په نظر نه ګوري،

② دا حديث په هغه كس باندې محمول دې كوم چه د تكبر په وجه خپل څادر اوږدول حلال ګڼړي، ③ دا حديث په زجر او توبيخ باندې محمول دې

**قوله: مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا:**

**د بطر په مصداق كښې دوه اقوال:** ① ددې څخه تكبر مراد دې

② ددې څخه ا د غنا په وجه پيدا كيدونكې طغيان او خوشحالي مراد ده

**د پرتوګ لاندې ساتلو حكم:** پرتوګ او لنګ د ګيټو نه لاندې ساتل حرام دې او كوم كس چه د غرور او تكبر په وجه دا لاندې ساتي نودا په درجهٔ اولى سره حرام دې

**[۳۳۳] د تكبر په وجه د جامو په زمكه د راښكلو حرمت**

| |
|---|
| ۳۳۳-[۹] ([1]) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ [۳] لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د غرور او تكبر په طور د خپل [بدن] كپړې په زمكه راخكلو سره ګرځي [۳]. د قيامت په ورځ به الله تعالى ﷻ هغه ته [د رحمت په نظر] ونه ګوري (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① خُيَلَاءَ: غرور، تكبر

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د خيلاء قيد اتفاقى كيدل:** په حديث كښې د "خيلاء" قيد اتفاقى دې احترازى نه دې.

[1]) اخرجه البخاري فى كتاب اللباس/باب من جر إزاره من غير خيلاء (رقم-٥٧٨٤) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب تحريم جر الثوب خيلاء. وبيان حد ما يجوز إرخاؤه إليه وما يستحب (رقم-٤٤ - (٢٠٨٥) وابوداود فى كتاب اللباس/باب من كرهه (رقم-٤٠٥٠) والنسائى فى كتاب الزينة/باب التغليظ فى جر الإزار (رقم-٥٣٢٨) وابن ماجه فى كتاب اللباس . باب من جر ثوبه من الخيلاء (رقم-٣٥٦٩) ومالك فى الموطا كتاب اللباس/باب ما جاء فى إسبال الرجل ثوبه (رقم-١١) واحمد فى المسند: ٢/١٠٠

مجبوري اوشرعي عذر جدا خيز دي. په حقيقت كښې پرتوګ ښكته كول اود دې وضع او ددې كيفيت اجازت اسلام نه وركوى. ددې قيد مطلب دانه دې چه يوسړې دې پرتوګ زوړندوى اووائي دې چه زه نې د تكبر د وجهې كوم هغوى ته واضح كيدل پكاردى چه پرتوګ ښكته زوړندول پخپله تكبر او غرور دې. د صحابه كرامو په پوره جماعت كښې صرف صديق اكبر رضي الله عنه ته رخصت وركړې شوې دې باقي چاته هيڅ اجازت نه دې وركړې شوې

**استثنائي صورت:** دتكبر په توګه كه داسې كوى كه په غلطئ سره لاندې لاړشي او زړنې اوچت كړى غرور اوتكبر نه وى نوخير دې.

**[۴۳۳] د تكبر په وجه د لنګ راښكلو د نياوى سزا**

۴۳۳-[۱۰] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«بَيْنَمَا رَجُلٌ يَجُرُّ إِزَارَهُ مِنَ الْخُيَلَاءِ [۳] خُسِفَ بِهِ، [۴] فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِي الْأَرْضِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] پخوا په يو وخت كښې يو سړي د غرور او تكبر په طور خپل لنګ (يا پرتوګ) په زمكه راخكلو سره روان وو. [۳] نو هغه په زمكه كې غرق كړل شو. [۴] هغه به اوس تر قيامته پورې په زمكه كې د غرقيدو سره خي (بخاري)

**حل اللغات:** ①خُسِفَ: غرق كړې شويه زمكه كښې. ②يَتَجَلْجَلُ: كنده په كنده به غرقيدو سره روان وى

**تسهيلات:**

**قوله:** فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِي الْأَرْضِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① جلجلة آواز سره حركت ته وائي يعني د يوې كندې نه بلې ته حركت كولوسره خي

② په زمكه كښې ورخښيږى خى "أي يخسف فيها ويسوخ فيها أبداً" داسې د قارون نه علاوه پخوانو امتونوكښې څوك سړې تيرشوې دې

**[۴۳۴] د كيټو څخه لاندې د لنګ ساتلو ممانعت**

۴۳۴-[۱۱] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْإِزَارِ [۳] فِي النَّارِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د پرتوګ (وغيره) كومه حصه چې د پنړكو نه ښكته وي. [۳] هغه به په دوزخ كې اچول كيږي (بخاري)

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب احاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-۳۴۸۵) والنسائي في كتاب الزينة/باب التغليظ في جر الازار(رقم-۵۳۲۶) واحمد في المسند: ۲/۶۶

(۲) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب ما أسفل من الكعبين فهو في النار (رقم-۵۷۸۷)

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْإِزَارِ فِي النَّارِ:

**دګیټو څخه لاندې په اور کښې د کیدو مطلب:** یعنی کوم لنګ پرتوګ یا پاجامه څومره چه دَ ګیټونه ښکته څی هم دومره حصه دَ خپې به دوزخ ته څی دَدې مطلب دانه دې چه سړې به بهر وی اودَ خپې څه حصه به نی دوزخ ته څی بلکه دَدې قسم عبارت دامطلب وی چه داسړې به دوزخ ته څی داسې سړی ته مسبل ازار هم وائی دَچه باره کښې چه سخت وعیدونه دی.

**[۴۳۱۵] دجامو اغوستلو بعضې ممنوع صورتونه**

۴۳۱۵-[۱۲] ( )[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَأْكُلَ الرَّجُلُ بِشِمَالِهِ، [۳] أَوْ يَمْشِيَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ، [۴] وَأَنْ يَشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ، [۵] أَوْ يَحْتَبِيَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ [۶] كَاشِفًا عَنْ فَرْجِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي [۲] چې رسول الله ﷺ د دې نه منع فرمایلی ده. چې یو سړی په چپ لاس سره خوري، [۳] یا په یوه پښه کې څپلۍ اچولو سره ګرځي. [۴] او دا چې کپړه په بدن داسې راچاپیره کړي، چې دواړه لاسونه په کپړه کې دننه راشي. [۵] یا په بدن یوه کپړه چاپیره کولو سره داسې په کوناټو کیني، [۶] چې د هغه ستر خلاص [ښکاره] وي مسلم

**حل اللغات:** ① نَعْلٍ: څپلۍ، پیزار، ② يَشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ: په بدن کپړه داسې راچاپیره کړي. چې دواړه لاسونه په کپړه کې دننه راشي، ③ يَحْتَبِيَ: خان نه لاسونه راتاوولو سره کیناستو ته احتباء وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** أَوْ يَمْشِيَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ

**په یوه څپلۍ کښې د ګرځیدو ممانعت:** یعنی په یوه خپه کښې څپلئی ده بله کښې نشته دې داسې تګ کول منع دی څکه چه په دې کښې دَتګ توازن هم خرابیږی اوسړې بد رنګه هم ښکاري یادې دواړه څپلئی وی یا دې خپې ابله خپې وی

**قوله:** وَأَنْ يَشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ

**داشتمال الصماء د ممانعت دوه وجوهات:** ① که دَ جهاد ماحول اودَ دښمن خطره وی نوترکومې چه په څادر کښې انغښتلې شوې سړې بهر راوځی دښمن به هغه راګیرکړې او وژلې وی اودَ بچاؤ به هیڅ صورت نه وی په دې وجه دَاشتمال الصماء ممانعت راغلې دې.
② اشتمال الصماء والا سړې په معمولی حرکت کولوسره راغورزیږی اوچه کله راپریوځی

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة /باب اشتمال الصماء والاحتباء فی ثوب واحد (رقم-۷۰ - (۲۰۹۹)

نو غوندېسكې جوړېدوسره به پوره راپرېوځي په كوم كښې چه دَ پوزې وغيره ماتيدو خطره ده.

**قوله:** أَوْ يَحْتَبِيَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ كَاشِفًا عَنْ فَرْجِهِ:

**د احتباء دوه صورتونه:** ① د د ې يو صورت دا دې چه سړې داسې په كوناتو باندې كينى مگرخه كپړه دَملا پنډو نه چاپيره اوتړې په دې صورت كښې دَ بدن ښكته حصه او ستر ښكاره وى په دې وجه دامنع كړې شو او كه ښكته په بدن باندې څه بل كپړه وى نوبيادَ احتباء اجازت دې لكه چه په جلسو اومحفلونوكښې بعضې حضرات دَ آرام په غرض څادر زاناوهى كينى او تقرير اورى.

② ددې دويم صورت دا وى چه مثلاً يوسړې مقعدپه زمكه باندې كيږدى پنډئى اودروى اودواړه لاسونه دَزنگونونونه لرشان ښكته دَدې نه چاپيره اوتړې اوكينى نودا صورت ډير قبيح اوحرام دې ځكه چه په دې كښې پوره بدن بربنډوى اوپه دې كښې بالكل ستر عورت نشته دې.

**[۴۲۴] دريښمو جامواغستونكى باندې آخرت كښې ددې حرمت**

٤٣٢٩-٤٣١٧، ٤٣١٨، ٤٣١٩ — [١٣] (١) [١] وَعَنْ عُمَرَ وَأَنَسٍ وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَأَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - أَجْمَعِينَ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "«مَنْ لَبِسَ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا، [٣] لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْآخِرَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت انس رضي الله عنه، حضرت ابن زبير رضي الله عنه او حضرت ابو امامه رضي الله عنه ( دا څلور صحابه كرام رضي الله عنهم ) د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] كوم سړي چې په دنيا كې (غير مشروع) ريښم واغوستل، [٣] هغه به په آخرت كې ريښم وانه غوندي (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْآخِرَةِ:

**د سړو دپاره د ريښمو د اغوستلو حكم:** دَسړودپاره دَ ريښموكپړا استعمالول جائز نه دى دَ ښځودپاره جائز ده البته دَ څلورو گوتو په اندازه پټنى دَ كپړو په غاړه وغيره كښې سړى

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب لبس الحرير وافتراشه للرجال، وقدر ما يجوز منه (رقم-٥٨٣٢)و كتاب اللباس/باب لبس الحرير وافتراشه للرجال، وقدر ما يجوز منه (رقم-٥٨٣٣) و كتاب اللباس/باب لبس الحرير وافتراشه للرجال، وقدر ما يجوز منه (رقم-٥٨٣٤) ومسلم في كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-٢١ - (٢٠٧٣) و كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-١١ - (٢٠٦٩) كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-٢٢ - (٢٠٧٤)

هم استعمالولې شي. زير بحث حديث كښې دي چه كوم سړي په دنيا كښې ريښم استعمالوي په آخرت كښې به هغه ته نه ملاويږي.

**اشكال:** ريښم خو په جنت كښې ملاويږي نو آيا داسړې كافرشو چه جنت ته به كله هم نه ځي اودَ ريښمونه به محروم پاتې وي؟

**د اشكال څلور جوابونه:** ① داحديث په تغليظ، تشديد اوزجراوتوبيخ باندې محمول دې.

② د دې حديث مصداق هغه سړې دې ددې دَ حرمت منكر نې نه وي اواغوندي ئې نودَهغه دپاره به په جنت كښې دخول اولي سره ريښم حاصل نه وي بلكه اول به په دوزخ كښې سزا خوري بيا به جنت ته راځي اوريښم به استعمالوي

③ د دې حديث مصداق هغه سړې دې دَ ريښمودَ حرمت عقيده نه لري بلكه دا حرام حلال گنړي نو هغه به كافرشي او محروم به پاتې شي جنت ته به نه ځي

④ داسړې به سره ددې چه جنت كښې داخل شي ليكن دَ سزا په توگه به دې دَ ريښمو نه محروم پاتې وي. دَ ده په زړه كښې به دَ ريښمو غوښتنه نه وي كله چه غوښتنه نه وي نومطالبه به څنگه وي نو ده ته به ريښم نه شي وركولې.

**[٤٣٢٠] سړو دپاره د ريښمو د استعمال حرمت**

٤٣٢٠—[١٣] ()[1] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّمَا يَلْبَسُ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا ③ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ② په دي كي هيڅ شك نشته چي په دنيا كي هغه سړي ريښمينه كپړه اغوندي، ③ چه د هغه د پاره به په آخرت كي څه حصه نه وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① خَلَاق: حصه اونصيب ته خلاق ونيلې شوې دې.

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث تشريح د حديث نمبر (۴۳۱۶) په تشريح كښې تيره شوې ده

[1]) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب لبس الحرير وافتراشه للرجال، وقدر ما يجوز منه (رقم-٥٨٣٥) ومسلم في كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-٧ - (٢٠٦٨) وابوداود في كتاب الصلاة/باب اللبس للجمعة (رقم-١٠٧٦)

**[٣٣٢١] د سرو او سپينو زرو په لوښو کښې د څکاک کولو ممانعت**

٣٣٢١—[١٥] (١) [١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] "«نَهَانَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ نَشْرَبَ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ [٣] وَأَنْ نَأْكُلَ فِيهَا، [٤] وَعَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ، [٥] وَأَنْ نَجْلِسَ عَلَيْهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت حذيفه ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ مونږ د دې نه منع کړي يو چې مونږ د سرو او سپينو زرو په لوښو کې وڅښو [٣] او وخورو، [٤] او حضور ﷺ د حرير او ديباج (يو قسم ريښمی کپړه) د اغوستلو نه [٥] او په هغې د ناستي نه منع کړی يو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الدِّيبَاج: دَ ريښمو يوقسم دې، پيړو ريښم

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَنْ نَجْلِسَ عَلَيْهِ:

**دريښمو په څادر د کيناستو په حکم کښې مذهبين:** دَ ريښمولباس دَ سړو دَپاره دَ ټولو فقهاؤ په نيزحرام دي خو که دَ ريښمو څادروغيره لاندې خورکړې شی نو په دې کښې اختلاف دې

① صاحبين فرمائی چه په دې باندې کيناستل هم هغه شان حرام دی لکه څنګه چه اغوستل حرام دی.

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه کيناستل حرام نه دی بلکه مکروه دی اوداحديث په کراهت باندې محمول دې.

**فائده:** فتاوی قاضي خان کښې ليکلی دی لکه څنګه چه دَ ريښمو استعمال دَ سړو دَپاره حرام دې دغه شان دَ وړو هلکانودَپاره هم ناجائز دی او وراغوستونکی به ګناهګاران وی.

**[٣٣٢٢] د ښځو دپاره د ريښمو د اغوستلو جواز**

٣٣٢٢—[١٦] (٢) [١] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] "«أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ سِيَرَاءَ [٣] فَبَعَثَ بِهَا إِلَيَّ فَلَبِسْتُهَا، [٤] فَعَرَفْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ، [٥] فَقَالَ: إِنِّي لَمْ أَبْعَثْ بِهَا إِلَيْكَ لِتَلْبَسَهَا، [٦] إِنَّمَا بَعَثْتُ بِهَا إِلَيْكَ لِتُشَقِّقَهَا خُمُرًا بَيْنَ النِّسَاءِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) اخرجه البخاری فی كتاب اللباس/باب افتراش الحرير (رقم-٥٨٣٧) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-(رقم-٤ - (٢٠٦٧)وابوداود فی كتاب الأشربة/باب فی الساقی متى يشرب (رقم-٣٧٢٧) والترمذی فی كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية الشرب فی آنية الذهب والفضة (رقم-١٨٧٨) وابن ماجه فی كتاب الأشربة/باب الشرب فی آنية الفضة (رقم-٣٤١٤) واحمد فی المسند: ٢٩٧/٥

(٢) اخرجه البخاری فی كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب هدية ما يكره لبسها (رقم-٢٦١٤) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-١٧ - (٢٠٧١) والنسائی فی كتاب الزينة/باب ذكر الرخصة للنساء فی لبس السيراء (رقم-٥٢٩٨) وابن ماجه فی كتاب اللباس. باب لبس الحرير والذهب للنساء (رقم-٣٥٩٦)

**ترجمه:** ۱ او حضرت علي (رض) فرمايي ۲ چې [يو ځل] د نبي کريم ﷺ په خدمت کې يو کرښيزه (ليکه داره) ريښمي جوړه (چې په لنګ او څادر مشتمله وه) په طور د هديې پيش کړې شوه. ۳ نو حضور ﷺ هغه ماته راوليږله. او ما هغه واغوسته. ۴ ليکن ما وليدل چې هغه جوړه زما په بدن ليدو سره د حضور ﷺ په مخ مبارك د غصې آثار پيدا شوي دي. ۵ نو حضور ﷺ وفرمايل ما دا جوړه تاته د دې د پاره نه وه درليږلې چې ته يې واغونده. ۶ بلکې دې د پاره مې درليږلې وه چې ته دا شلولو سره پړوني خنې جوړ کړه. او هغه پړوني په ښځو کې تقسيم کړې (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① حُلَّةً: ريښمي جوړه، ② سِيَرَاءَ: سره ريښم ③ بَيْنَ فِقْهَا: چه ته ني اوشلوې. ④ خُمُرًا: د خمار جمع ده څادر. لوپټه

**تسهيلات:**

**قوله:** حُلَّةً سِيَرَاءَ فَبَعَثَ بِهَا إِلَيَّ فَلَبِسْتُهَا:

**د ريښمو جامو په اغوستلو باندې د نبي عليه السلام ناراضګي:** په سين باندې کسره او ياء باندې زبر دې او په راء باندې هم زبر دې دې نه پس په الف باندې مد دې سرو ريښموته وائي هم دغه وجه ده چه په دې باندې دَ ديباج او سندس اطلاق هم کړې شوې دې

**[۳۳۳] دَ څلورګوتو په اندازه دَ ريښمو د استعمال جواز**

| |
|---|
| ۳۳۳–[۱۷] (۱) ۱ وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ۲ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ ۳ إِلَّا هٰكَذَا، وَرَفَعَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِصْبَعَيْنِ: ۴ الْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةَ وَضَمَّهُمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ۱ او د حضرت عمر رضی الله عنه نه روايت دې ۲ چې نبي کريم ﷺ ريښمني کپړې د اغوستلو نه منع فرمايلې ده. ۳ علاوه د دوو ګوتو د مقدار برابر نه. او حضور ﷺ دا ممانعت بيانولو سره د مذکوره مقدار د ظاهرولو د پاره دوه ګوتې اوچتې کړې ۴ خپله درميانه ګوته او د شهادت ګوته. او دواړه يې يو خاي کړي. ايعنې حضور ﷺ هغه دواړه ګوتې يو خاي کولو سره وخودل چې دومره قدر. يعنې د دوو ګوتو په قدر ريښمينه کپړه که په لباس کې وي. نو مباح دي). (بخاري مسلم)

(۱) اخرجه البخاري في كتاب اللباس /باب لبس الحرير وافتراشه للرجال. وقدر ما يجوز منه (رقم-۵۸۲۹) ومسلم في كتاب الأشربة /باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء. وخاتم الذهب والحرير على الرجل. وإباحته للنساء. وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-۱۲ - (۲۰۶۹)

۴۳۳۴ ــ (¹) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: [۲] أَنَّهُ خَطَبَ بِالْجَابِيَةِ، فَقَالَ: [۳] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ [۴] إِلَّا مَوْضِعَ إِصْبَعَيْنِ أَوْ ثَلَاثٍ أَوْ أَرْبَعٍ».

**ترجمه:** [۱] او د مسلم رحمه الله په يو روايت كې دي [۲] چې حضرت عمر رضي الله عنه [د ملك شام په يو ښار] جابيه كې د خپلې خطبې په دوران كې دا وفرمايل [۳] چې رسول الله ﷺ د ريښمني كپړې د اغوستلو نه منع فرمايلې ده، [۴] علاوه په قدر د دوو يا دريو يا څلورو ګوتو نه

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ إِلَّا هَكَذَا:

**سړو د پاره د څلورو ګوتو په اندازه د ريښمو د استعمال جواز:** دَ سړو دَ پاره دَ ريښمو دَ جواز شروع: دوو ګوتو په اندازه سره اوشوه او څلور ګوتې دَ دې انتهاء ده دې نه زيات حرام دى داخبره ذهن كښې ساتل پكاردى چه دَ څلورو ګوتو په اندازه دَ ريښمو استعمال دَ نورو كپړو په ضمن كښې جائز دى مستقلاً نه دى.

**قوله:** أَنَّهُ خَطَبَ بِالْجَابِيَةِ

**د جابيه محل وقوع:** دَ شام دَ يو ښار نوم دې. دَ بيت المقدس دَ فتح په موقع باندې حضرت عمر رضي الله عنه شام ته تشريف اوړلې وو. هلته جابيه كښې هغوى خطبه وركړه

**[۴۳۳۵] د نبى كريم ﷺ طيلسانى جبّه**

۴۳۳۵ ــ [۱۸] (²) [۱] «وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: [۲] أَنَّهَا أَخْرَجَتْ جُبَّةَ طَيَالِسَةٍ كِسْرَوَانِيَّةٍ [۳] لَهَا لِبْنَةُ دِيبَاجٍ، [۴] وَفَرْجَيْهَا مَكْفُوفَيْنِ بِالدِّيبَاجِ، [۵] وَقَالَتْ: هَذِهِ جُبَّةُ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ [۶] فَلَمَّا قُبِضَتْ قَبَضْتُهَا، [۷] وَكَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَلْبَسُهَا، [۸] فَنَحْنُ نَغْسِلُهَا لِلْمَرْضَى نَسْتَشْفِي بِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي اسماء بنت ابي بكر رضي الله عنهما نه روايت دې [۲] چې هغى د طيلسن كسروانې اد يو خاص قسم تور څادر چې د ورې نه جوړيږي] جبه راويستله. [۳] د هغې څه پټى د نرو ريښمو وو [۴] او دهغې ګريوان كښې دواړو طرفونوته د ريښمنې كپړې ټكړه ګنډل شوې وه. [۵] بيا هغى وفرمايل چې دا د رسول الله ﷺ جبه ده. چې بي بي عائشې

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة /باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء. وخاتم الذهب والحرير على الرجل. وإباحته للنساء. وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم-١٥ - (٢٠٦٩))وابوداود فى كتاب اللباس /باب ما جاء فى لبس الحرير (رقم ٤٠٤٢)

²) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة /باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء. وخاتم الذهب والحرير على الرجل. وإباحته للنساء. وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع (رقم--١٠ - (٢٠٦٩)) وابوداود فى السنن كتاب الأشربة /باب فى الساقى متى يشرب (رقم-٣٧٢٥) وابوداود فى كتاب اللباس /باب ما جاء فى لبس الحرير (رقم-٤٠٤٢)

ﷺ سره وه. [٦] هر كله چې هغه وفات شوه. انو د بي بي عائشي ﷺ په ميراث کې چې زما خور وه.] زما په قبضه کې راغله. [٧] رسول الله ﷺ به کله کله هغه جبه اغوستله. [٨] مونږ هغه د بيمارانو د پاره وينځو ايعنى د هغې و وينځل شوى اوبه په بيمارانو څښو] چې د هغې په ذريعه شفاء حاصلوو (مسلم)

**حل اللغات**: ①جُبَّةً: چوغه. ②طَيَالِسَةٍ: دَ طيلسان جمع ده يوقسم تور رنګ څادر. ③كِسْرَوَانِيَّةٍ: د فارس بادشاه كسرى طرف ته منسوب چوغه. ④لِبْنَةُ: د ريښمو ټکړه پټئ چه په جيب باندې د ښانسته والى دپاره لګولې شوه ⑤دِيبَاجٍ: ريښم. ⑥فَرْجَيْهَا: ګريوان. د چوغې مخې ته شليدلې خانې. ⑦مَكْفُوفَيْنِ: ګنډلې شوې وه. ⑧نَغْسِلُهَا: مونږ به وينځله.

**تسهيلات: قوله**: أَنَّهَا أَخْرَجَتْ جُبَّةً طَيَالِسَةٍ

**د طيالسة لغوى تحقيق**: طيلسان په اصل کښې تالسان وو عجمى لفظ وو په عربى کښې طيلسان شو طيلسان به دَ توررنګ يوڅادر وو چه دَ ورئى نه به جوړوو دَنبى كريم جبه مباركه هم دَ دغه څادر نه جوړه شوې وه په دې وجه دَدې طرف ته نسبت اوکړې شو دَدې كلام نه مقصود داخودل دى چه جبة صوف سوداء يعنى دَ ورئى نه جوړه شوې توره جبه وه طيلسان دَدې تعبيردې

**قوله**: كِسْرَوَانِيَّةٍ

**كسرى ته د نسبت وجه**: دَ فارس بادشاه ته به ئى كسرىٰ وئيل داجبه چونكه دَهغه دَ شهرت دَ وجهې مشهوره شوې وه په دې وجه به دَهغه طرف ته منسوب كيدله يعنى دكسرى ستائل چغه وه لكه چه وائى جناح كيپ لياقت كيپ كسروانى جبه

**قوله**: وَفَرْجَيْهَا

**د فرجيها څخه مراد**: فاء باندې ضمه ده اوفتحه هم استعمالیږی اى شقيها. دَ جبه وړاندې سينې طرف ته كولاؤوالې او شليدلې وى دې ته ګريوان وائى بعضې ملكونو کښې روستو شا طرف ته هم يوشليدلې خانى وى چه دَ شا ګريوان وى په دې حديث کښې دَ فرجيهانه مراد هم دغه دوه شليدلې خايونه دى

**قوله**: مَكْفُوفَيْنِ:

**د مكفوفين په اعراب کښې دوه اقوال**: شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کښې ليکى چه كفة دَيوڅيزغاړې ته وائى

①كه په كفة کښې كاف باندې پيش وى نوداد مستطيل اوږد اوپلن څيزدَپاره راځى لكه ګريوان وغيره

② كه چرې كفة کښې كاف باندې زيروى نو مدور او ګول څيزدَپاره استعمالیږی لكه چه دَتلې چاپېرى ته كفة وائى

**دحدیث مطلب:** دَ دې حدیث مطلب داشو چه دَدې جبه په دواړو گریوانونوباندې دَ سنجاف دیباج بوټي ټک وهلي شوي وولکه څنگه چه نن صبا په کپړوباندې بوټي وغیره کیږي. [اشعة اللمعات: ۳/۵۷۷]

**قوله:** فَنَحْنُ نَغْسِلُهَا لِلْمَرْضٰى نَسْتَشْفِيْ بِهَا:

**دتبرک بالآثار الصالحین ثبوت:** حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها ته دا جبه دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ طرف نه حاصله شوې وه فرمائي چه نبی کریم به دا اغوستله اومونږ به دَ برکت په توگه دَبیمارانودَ شفادَپاره وینځله اودَدې اوبه به مو په هغوی څکلې په دې سره تبرک بآثار الصالحین ثابتیږي مگر شرط دادې چه دَ دواړو طرفونه خلق صالحان وی دې دَپاره چه عقیده ئې خرابه نه شي.

**[۴۳۳۳] دعذر په وجه دریښمو داستعمال جواز**

۴۳۳۳-[۱۹] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «رَخَّصَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِلزُّبَيْرِ وَعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ ③ لِحِكَّةٍ بِهِمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: «إِنَّهُمَا شَكَوَا الْقَمْلَ ⑤ فَرَخَّصَ لَهُمَا فِي قُمُصِ الْحَرِيرِ».

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ حضرت زبیر رضي الله عنه او حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ته د ریښمیني کپړي د اغوستلو اجازت ورکړي وو، ③ ځکه چې هغوی ته خارښ لگیدلي وو، دا خارښ د سپږو کیدو په وجه وو، څرنگه چې د وړاندي روایت نه معلومه شي (بخاري مسلم) ④ او د مسلم رحمه الله په یوه روایت کې داسې دي چې حضرت انس رضي الله عنه بیان وکړو چې دي دواړو، یعنی حضرت زبیر رضي الله عنه او حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه د سپږو د کیدو شکایت وکړو ⑤ نو حضور ﷺ هغوی ته د ریښمني کپړي د اغوستلو اجازت ورکړه.

**حل اللغات:** ① حِكَّةٍ: خارښ. ② الْقَمْلَ: سپږه.

**تسهیلات:**

**قوله:** فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ لِحِكَّةٍ بِهِمَا:

**د خارښ په وجه د ریښمو دا ستعمال جواز:** خارښ ته وائی دَ ریښمواستعمال شرعی ضرورت اوعذر دَ وجهې جائز دی چنانچه دَ بدن دَخارښ دَ پاره یا په میدان جهاد کښې دَ تورې دَ

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب ما یرخص للرجال من الحریر للحکة (رقم-۵۸۳۹) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب إباحة لبس الحریر للرجل إذا کان به حکة أو نحوها (رقم-۲۵ - (۲۰۷۶) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی لبس الحریر لعذر (رقم-۴۰۵۶) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی لبس الحریر فی الحرب (رقم-۱۷۲۲) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الرخصة فی لبس الحریر (رقم-۵۳۱۰) وابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة/باب من نام عن الوتر أو نسیه (رقم-۱۱۸۸) واحمد فی المسند: ۱۲۲/۳

ګذار نه د بچ کیدو دپاره یا د سړو د ختمولو دپاره د دې استعمال د ضرورت په اندازه جائز دی ربنېم د اصل په اعتبار سره ګرم او مفرح دی په دې وجه د خارښ او سپړو خاتمه کیږي.

**[۴۳۲۷] د رنګ شوو جامو د اغوستلو ممانعت**

۴۳۲۷-[۲۰] ()[۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَيَّ ثَوْبَيْنِ مُعَصْفَرَيْنِ. [۳] فَقَالَ: "إِنَّ هَذِهِ مِنْ ثِيَابِ الْكُفَّارِ، فَلَا تَلْبَسْهُمَا" [۴]. وَفِي رِوَايَةٍ: قُلْتُ: أَغْسِلُهُمَا؟ قَالَ: "بَلْ أَحْرِقْهُمَا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما ابن عاص وايي [۲] چې رسول الله ﷺ زه په سور رنګ شوي دوو کپړو کې ولیدم، [۳] نو وي فرمايل چې دا د کافرانو لباس دي (چې نه هغوی د حرام او حلال تمیز کوي، اونه د ښځي او سړي د لباس فرق کوي) نو ته دا مه اغونده، [۴] او په يو بل روايت کې داسې دي چې ما عرض وکړ آيا زه دا ووینځم؟ حضور ﷺ وفرمايل چې نه، بلکه وي سوزه. (مسلم)

**حل اللغات:** ① مُعَصْفَرَيْنِ: په کسم رنګ شوې، يو قسم سور رنګ چه د وونو بوټو نه حاصليږي.

**تسهيلات:**

**قوله:** رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَيَّ ثَوْبَيْنِ مُعَصْفَرَيْنِ:

**د سړو دپاره د سور رنګ جامو استعمال:** کسم د يو سور رنګ نوم دې چه د يو بوټی نه حاصليږي د سړو دپاره منع دې. احناف دا اودغه شان د سور رنګ کپړه د سړو دپاره مکروه تحريمي ګرځوي سره د دې چه د فقهاؤ نور اقوال هم دي.

**قوله:** بَلْ أَحْرِقْهُمَا:

**د حرق څخه مراد:** دې نه مراد ضائع کول او ختمول دی چاته ئی هبه کړه یائی خرڅ کړه یائی په څه طريقې سره ضائع کړه که هیڅ هم نه وی نو وئی سوزوه مګرخپل خان سره ئی مه ایږده.

[۱] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَائِشَةَ: خَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ غَدَاةٍ فِي "بَابِ مَنَاقِبِ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشي رضي الله عنها دا روايت چه خرج النبي ﷺ ذات غداة الخ به انشاء الله مونږ د مناقب اهل بيت نبوي ﷺ په باب کې نقل کړو

**قوله:** وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَائِشَةَ الخ

د دې عبارت نه په واضحه توګه سره معلومه شوه چه صاحب مشکوة داحديث نه دې ذکر کړې خو په مظاهرحق کښې شته مصابيح کښې هم شته

() اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب النهی عن لبس الرجل الثوب المعصفر (رقم-۲۷) (۲۰۷۷) والنسائی فی کتاب الزينة/باب ذکر النهی عن لبس المعصفر (رقم-۵۳۱۶) واحمد فی المسند: ۱۶۲/۲

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۲۸] د قمیص فضیلت

۳۳۲۸- [۲۱] (¹) [۱] عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «كَانَ أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْقَمِيصَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام سلمه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې د رسول الله ﷺ په ټولو کپړو کې قميص د ټولو نه زيات خوښ وو (ترمذي ابوداؤد)

**تسهيلات:** **قوله: الْقَمِيصَ:**

څادر هروخت دَ اوړو نه راپريوځي. بل دَ مقابلې يا دکار په وخت دا سنبالول ډير مشکل وی. په دې وجه قميص افضل اوغوره ګرځولې شوې دې په کوم کښې چه بې شميره فائدې او سهولتونه دی.

**دعربو موجوده لباس:** عرب خلق چه نن صبا کوم لباس استعمالوی هغه يوقيدخانه ده دَدوی په اوږد توپ کښې نه سړې منډه وهلې شی نه په اوچت خانی ورختلې شی نه راکوزيدلې شی. نو په دې کښې دَ دښمن مقابله څنګه کيدې شی (دغه شان مولانا فضل محمد صاحب فرمائيلی دی)

**د پيغمبرد خلقو د لباس تعريف:** دَ حرم شريف امام عبدالله بن سبيل محترم يوځل په درس کښې اوفرمائيل دَ دنيا په لباسونوکښې دَ ټولو نه دَ سهولت والالباس دَ پيغمبر دَخلقو دې پرتوګ قميص په هرلحاظ سره آرام ده اوښائسته لباس دې.

حقيقت دادې چه قميص بدن سره بدن جوړيږی اوسړې آزاد وی بل دا متواضع لباس هم دې سپك هم دې اوكم خرچ بالانشين هم دې.

## [۳۳۲۹] د نبی کریم ﷺ د قمیص د لستونو اوږد والی

۳۳۲۹- [۲۲] (²) [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «كَانَ كُمُّ قَمِيصِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى الرُّصْغِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، [۳] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ د قميص لستوڼي تر مړوندونو پورې وو (ترمذي، ابوداؤد) [۳] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دي

**حل اللغات:** ① كُمٌّ: لستوڼې، ② الرُّصْغِ: مړوندونه

¹) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٤٠٢٥، والترمذی فی السنن رقم الحديث ١٧٦٢

²) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأشربة/باب فی الساقی متی يشرب (رقم-٣٧٢٥) والترمذی فی كتاب اللباس عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی القمص (رقم-١٧٦٥)

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ كُمُّ قَمِيصِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى الرُّصْغِ:

**د قمیص د لستوڼو اوږدوالي:** دَ لاس دَ مړوند غوټو او پنجې ته رضع وائی کله به دَ ګوټو پورې هم اوږدوالي وو معلومه شوه چه مسنون قمیص هغه دي دکوم لستوڼي چه دَ ګوټونه مخکښې نه وی اولمن دَ ګیټو پورې لاندې نه وی

**[۴۳۳۰] د ښي طرفه د جامو اغوستل**

۴۳۳۰-[۲۳] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا لَبِسَ قَمِيصًا [۳] بَدَأَ بِمَيَامِنِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به قمیص اغوستو. [۳] نو د ښي طرف نه به يي اغوستل شروع کول. (ترمذي)

**حل لغات:** ① بِمَيَامِنِهِ: دَ میمنة جمع ده ښی طرف.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حديث دترجمې څخه مفهوم ښکاره دي.

**[۴۳۳۱] لنګ او پرتوګ د پنډو د نيمې پورې ساتل**

۴۳۳۱-[۲۴] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " «إِزْرَةُ الْمُؤْمِنِ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ، [۳] لَا جُنَاحَ عَلَيْهِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ، [۴] مَا أَسْفَلَ مِنْ ذَلِكَ فَفِي النَّارِ [۵] " قَالَ ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ " [۶] وَلَا يَنْظُرُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى [۷] مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه وايي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چې د يو مؤمن د لنګ او پرتوګ د ټولو نه بهتر صورت خو دا دي چې هغه تر نيمو پنډو وي. [۳] او د نيمو پنډونه تر ښنګرو پورې (په مينځ کې کيدو پوري) هم څه حرج نشته. [۴] ليکن د بجلکي (ښنګرو) لاندي چې کومه حصه زوړنده وي. هغه به يي د دوزخ اورته بوځي، [۵] حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه وايي چه حضور ﷺ دا الفاظ دري ځلي وفرمايل. [۶] بيا يي

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی الانتعال (رقم - ۴۱۴۱) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی القمص (رقم-۱۷۶۶) وابن ماجه فی کتاب الطهارة وسننها/باب التیمن فی الوضوء (رقم-۴۰۲)

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی قدر موضع الازار (رقم-۴۰۹۳) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب موضع الإزار أين هو (رقم-۳۵۷۳) ومالک فی الموطا کتاب اللباس/باب ما جاء فی إسبال الرجل ثوبه(رقم-۱۲) واحمد فی المسند: ۹۷/۳

وفرمایل الله تعالی به د قیامت په ورځ هغه سړي ته [د رحمت په نظر] ونه ګوري، [۷] کوم چي د غرور او تکبر نه خپل لنګ او پرتوګ د پنړکو نه لاندي زوړندوی (ابوداود، ترمذي)

**حل اللغات:** ① إِزْرَةُ: داد ازار جمع ده تهبندته وائی ② جَرَّ: چه راکاږي، ③ بَطَرًا: غرور، تکبر

**تسهیلات:**

**قوله:** إِزْرَةُ الْمُؤْمِنِ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ:

**د پرتوګ ښکته ساتلو دري درجې:** ① ازار دَ نصف پنډئی پوري افضل دي

② دګیټو پوري جائزدي

③ دَ ګیټونه ښکته ناجائزدي.

**د اسبال عموم:** ددي حدیث نه دَ اسبال عموم معلومیږي چه په لباس کښي دَ شرعی حدنه زیاتوالي دَ کوم نوم چه اسبال دي داصرف په پاجامه کښي نه دي لنګنی پاجامه دَ قمیص لمن دَ قمیص لستوڼي ددي لمن پټکي اوڅادر تولو کښي اسبال کیږي

**نوټ:** دحدیث د باقی حصوتفصیل دحدیث نمبر (۴۳۱۱) په تشریح کښي ذکرشوي دي.

**[۴۳۳۲] د لنګ، قمیص او پټکی د اوږد ساتلو ممانعت**

۴۳۳۲ – [۲۵] ()[۱] وَعَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲]«الْإِسْبَالُ فِي الْإِزَارِ وَالْقَمِيصِ وَالْعِمَامَةِ، [۳] مَنْ جَرَّ مِنْهَا شَيْئًا خُيَلَاءَ [۴] لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سالم د خپل پلار (یعني حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما) نه او هغه د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] اسبال یعنی خوړندول په ازار، قمیص او په پټکی کې دي، [۳] کوم سړي چې د دي (کپړو) نه خوړندولو سره د غرور او تکبر نه کشوي [راکاږي]، [۴] نو د قیامت په ورځ به الله ﷻ د هغه طرف ته [د کرم په نظر] ونه ګوري (أبو داود، والنسائي، وابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْإِسْبَالُ: رازوړندول، ② خُيَلَاءَ: غرور، تکبر

**تسهیلات: قوله:** قَالَ الْإِسْبَالُ فِي الْإِزَارِ:

**د اسبال دري صورتونه:** د إسبال ازار اصل معنی خوړندول او پټول ده او ددي مختلف صورتونه بیان کړې شوي دي نو د بعضو نه جواز معلومیږي او د بعضو نه عدم جواز معلومیږي

① کوم کس قصداً د تکبر دپاره خپل ازار د ګیټو نه لاندي ساتی نو دا حرام دی.

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب ما جاء فی إسبال الإزار (رقم-۴۰۸۵) والنسائی فی کتاب الزینة/باب إسبال الإزار (رقم-۵۳۳٤) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب طول القمیص کم هو (رقم-۳۵۷۶)

② بغير د قصد او ارادي نه كه ازار لاندي شي نو په دي هيڅ ګناه نشته
③ كوم كس قصداً خپل ازار د ګيټو نه لاندي كوي او د تكبر اراده ئي هم نه وي نو د دې په حكم كښې اختلاف دې

**په دريم صورت كښې ۲ مذاهب:**

① دا صورت مكروه تحريمي دې يعني ناجائز دې او د ابن حجر رحمه الله په فتح الباري كښې رجحان هم دې طرف ته دې
② دا صورت مكروه تنزيهي دې او په احنافو كښې د ابن الملک او د ملا علي قاري هم دا رائي ده.

**داول فريق اول دليل:** ① ډير احاديث دي كوم كښې چه د "من الخيلاء" قيد مذكور دې او دا حضرات دا قيد واقعي مني او دا قيد ددې فعل مزيد شناعت بيانولو دپاره دې لكه څنګه چه په قرآن كښې ذكر دي "ولاتكرهوافتيٰتكم على البغاءإن أردن تحصنا" چه ستاسو وينزې د پاک دامنی اراده وكړي نو تاسو ئي په بدكارئ باندې مه مجبور كوئ، نو دلته "إن أردن تحصنا" قيد واقعي دې. احترازی نه دې او مقصد ئي دا دې چه خپلو وينځو باندې په زبردستی جرم كول هم دوه چنده جرم دې، ځكه چه بدكاری في نفسه يو جرم دې او زبردستي كول بل جرم دې

**داول فريق د اول دليل جواب:** دا حديث د غير ارادی طور باندې محمول دې. د قصد، ارادې او د تكبر دې سره هيڅ تعلق نشته.

**داول فريق دويم دليل:** ② د مشكاة په حديث نمبر (۴۳۳۱) كښې داسې الفاظ دی "ماأسفل من الكعبين من الإزار في النار" نو په دې حديث كښې د خيلاء،تكبر وغيره قيد مذكور نه دې

**داول فريق د دويم دليل جواب:** د فقهي اصول دې چه كله دوه احكامو كښې يو مطلق وي او دويم مقيد نو مطلق به په مقيد باندې محمول كولی شي، يعني مطلق كښې به د هغه قيد لحاظ ساتلی شي كوم چه په مقيد كښې وی

**د دويم فريق دليل:** دا حضرات د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د واقعي نه استدلال كوي چه احاديثو كښې راځي چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نبی كريم ﷺ ته عرض وكړو چه ای د الله رسول! زما لنګ هر وخت بی خياله د ګيټو نه ښكته كيږی مګر دا چه زه دا هر وخت ددې خيال اوساتم او دا برا اوساتم. او ظاهره ده چه دا خو ډيره مشكله ده نو نبی كريم ﷺ وفرمائيل "انك لست ممن يصنعه خيلاء" چه ته د هغه خلقونه نه ئي كوم چه د تكبر د وجهې لنګونه ښكته ساتي.

نو ددې نه دا معلومه شوه چه ممنوع هغه وخت كښې دې كله چه د تكبر د وجهې وی او كه د تكبر د وجهې نه نه وی نو بيا ناجائز او ممنوع نه دې زيات نه زيات په كراهت تنزيهي باندې محمول دې او عادت جوړول ئي بلكل غلط دې.

**قوله:** وَالْعِمَامَةِ:

**د پټکی د اوږد ساتلو حرمت:** د پټکی شمله به د ملا نیمی حصې پورې وی ددې نه زیات مقدار ممنوع دې او د قمیص لمنه هم د ضرورت نه زیاته ښکته ساتل ممنوع دی د بعضی قومونو چوغه یا جبه د ګیټو نه ښکته وي نو دا هم حرام او ممنوع دي

**[۴۳۳۳] د صحابه کرامو ټوپۍ ګانې**

۴۳۳۳—[۲۶] (۱) ① «وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② كَانَ كِمَامُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بُطْحًا». ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو کبشه رضي الله عنه وايي ② چې د رسول الله ﷺ د صحابه ؤ رضي الله عنهم خوليانې (ټوپۍ) داسې وې چې هغه به د سرونو سره لګيدلې وې. ③ ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړې دې او ويلي يې دي چې دا حديث منکر دی.

**حل اللغات:** ① كِمَامُ: دا دَ كُمَّةُ جمع ده ګول قسم ټوپۍ چه دَ پټکی لاندې به استعماليدله ② بُطْحًا: دَدې مفرد بطحاء دې هوارې کاڼريزې زمکه، سر سره اينختې ټوپۍ ترې مراد دی

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ كِمَامُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بُطْحًا

**د حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① صحابه کرامو چه به کومې ټوپئی استعمالولې هغه به ګول او په سرونو باندې اينختې وې تنګې او اوچتې به نه وې لکه چه ترکی ايرانی او مصری ټوپئی وی

② کمام جمع دَ کم لستونړی مراد اخستې دی اودَبطح نه نی ارتوالې مراد اخستې دې مطلب دا چه دَ صحابه کرامو لستونړی به ارت وو رومبې مفهوم زيات واضح دې صحابه کرامو زيات تر پټکی استعمال کړی دی بغيردَ ټوپئی نه ئی کم استعمال کړی دی

**[۴۳۳۴] د ښځو د پاره د پړتوګ وغيره لږ اوږد ساتل**

۴۳۳۴—[۲۷] (۲) ① وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- ② «قَالَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ ذَكَرَ الْإِزَارَ: ③ فَالْمَرْأَةُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ④ قَالَ: "تُرْخِي شِبْرًا" ⑤ فَقَالَتْ: إِذًا تَنْكَشِفُ عَنْهَا. ⑥ قَالَ: "فَذِرَاعًا لَا تَزِيدُ عَلَيْهِ"» رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب کیف کان کمام الصحابة؟ (رقم-۱۷۸۲)

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب فی قدر الذیل (رقم-٤١١٧) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی حب النبی صلی الله علیه وسلم الحلواء والعسل (رقم-۱۸۳۱) والنسائی فی کتاب الزينة /باب ذيول النساء (رقم-۵۳۳۶) وابن ماجه فی کتاب اللباس. باب ذيل المرأة کم يکون (رقم-۳۵۸۰) ومالک فی الموطا کتاب اللباس /باب ما جاء فی إسبال المرأة ثوبها (رقم-۱۳) واحمد فی المسند: ۳۰۹/۶

**ترجمه:** [١] او د بي بي ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي [٢] کوم وخت چې حضور ﷺ د ازار (لنګ او پرتوګ) حکم بيانولو (چې د دې خوړندول ممنوع دي)، نو هغې عرض وکړو [٣] چې يا رسول الله! ﷺ او د ښځې باره کې څه حکم دي؟ [يعني که هغه خپل ازار لاندې نه ساتي، نو د هغې پوره ستر نه پټيږي] [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې ښځه خپل لنګ يا پرتوګ د خپلو نيم پنډو [يا د بعضو د قول مطابق د خپلو پنړکو نه] يو لويشت لاندې خوړندولې شي. [٥] بي بي ام سلمه رضي الله عنها عرض وکړو په دې صورت کې به هم خلاص وي، [يعني هغې مثلاً د هغه پنډې زياتې اوږدې وي او د هغه خپلو نيمو پنډيو نه يوه لويشت نور لاندې پورې خپل پرتوګ زوړند کړي، بيا هم د هغې د ستر د خلاصيديو احتمال به وي] [٦]. حضور ﷺ وفرمايل [که په دې صورت هم د هغې ستر خلاصيدی شی نو] هغه دې يو ګز نور لاندې زوړند کړي [د ګز نه شرعي ګز يعني يو لاس مراد دې او مطلب دا دې چې په دې صورت کې هغه خپل پرتوګ وغيره دومره لاندې خوړندولې شي، چې هغه زمکې ته ورسيږي، چې د هغه پښې پټې وي، او هغه د يوې لويشت په قدر زيات وي، يا د يو ذراع يعني يو لاس چې تقريباً د نيم ګز په قدر دی، د دې نه پس حضور ﷺ د حد نه زيات خوړندولو ممانعت تاکيداً بيانولو د پاره دا وفرمايل چې يوه ښځه دې] د يو ګز نه زيات لاندې نه زوړندوی. (مالك، ابو داؤد، نسائي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① تُرْخِي: زوړندولې شي. ② شِبْرًا: يوه لويشت.

٤٣٣٥ —(٦) [١] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ، وَالنَّسَائِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [٢] «فَقَالَتْ: إِذًا تَنْكَشِفُ أَقْدَامُهُنَّ، [٣] قَالَ: "فَيُرْخِينَ ذِرَاعًا لَا يَزِدْنَ عَلَيْهِ"».

**ترجمه:** [١] او د ترمذي او نسائي په يو روايت کې دی چې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه منقول دي داسې دي چې [٢] بي بي ام سلمه رضي الله عنها دا اوويل چې په دې صورت کې به د هغوئ پښې ښکاره وي، [٣] نو حضور ﷺ وفرمايل چې هغوی دې د يو لاس برابر نور لاندې زوړند کړي، اليکن د دې نه دی زيات نه زوړندوی]

**حل اللغات:** ① فَيُرْخِينَ: نو رازوړند دې کړی. ② ذِرَاعًا: د يولاس برابر، يو ګز

**تسهيلات:**

**قوله:** "فَذِرَاعًا لَا تَزِيدُ عَلَيْهِ:

**د ښځو د پاره اوږده جامه اغوستل:** دې حديث نه معلومه شوه چه دَ ښځولباس دَ سړو په نسبت زيات ډهيلا اوږد پلن کيدل پکاردی. خودَ نن صبا ښځو لره فاسق معاشرې تانيثې اونيم

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في قدر الذيل (رقم-٤١١٩) والترمذي في كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في حب النبي صلى الله عليه وسلم الحلواء والعسل (رقم-١٨٣١) والنسائي في كتاب الزينة/باب ذيول النساء (رقم-٥٣٣٦)

بريند لباس اغوستلوسره دَهغوى عظمت تار تار كړې دې. نبي كريم حضرت ام سلمه ﷺ
ته دَ ښځود لنګ باره كښې اوفرمائيل چه دومره اوږد وى چه دَ ښځې قدم اوخپه ښكاره نه
شي. دَدې نه زيات په زمكه باندې راښكل منع دى.

**آزادى مارچ:** ان صبا په مغربى دنيآ كښې د ښځو د آزادى نعره لګيدلې ده. زمونږ د
پاكستان بعضې خويندې هم د هغې څخه متاثره شوى دى.اود ښځو آزادى ئې دا ګڼړلې ده
چې دا د كور څخه بهر راؤځى او د سرو سره اوږه په اوږه كارونه كوى.اود بورقې وغيره د
پابندى څخه آزاده وى.دا هم زمونږ مسلمانې خويندې دى د دوى د اصلاح كوشش پكار
دې دوى د اسلامى تعليماتو څخه خبرول پكار دى.خكه چې هسې هم د مغربى تهذيب
څخه متاثره دى كه د دوى د غلطو حركتونو په سختى سره تنقيد اوشى كيدې شى نورې
هم په خپله ګمراهى كښې وربوختې شى.دا زما ذاتى رايه ده كيدې شى څوک ماسره په دې
نرمى كښې موافق نه وى.اوهغوى ته سختى ښه ښكاريږى بهرحال كه سختى وى اوكه
نرمى چې نتيجه ئې ښه وى نوهغه طريقه دې اختيار كړې شى

**[۴۳۳۶] د نبى كريم ﷺ په قميص كښې د ګريوان محل**

۴۳۳۶ــ[۲۸] ()[۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي رَهْطٍ مِنْ مُزَيْنَةَ، [۳] فَبَايَعُوهُ [۴] وَإِنَّهُ لَمُطْلَقُ الْأَزْرَارِ، [۵] فَأَدْخَلْتُ يَدِي فِي جَيْبِ قَمِيصِهِ، فَمَسِسْتُ الْخَاتَمَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاويه بن قُرّه د خپل پلار نه نقل كوي چې هغه اوويل[۲] چه [يوه ورځ]
زه د مزينه قوم د يو جماعت سره (چې اسلام قبلولو ته راغلي وو) د نبي كريم ﷺ په خدمت
كې حاضر شوم.[۳] د هغه جماعت خلقو د حضور ﷺ سره په اسلام بيعت وكړو[۴] هغه وخت
حضور ﷺ د خپل قميص تنۍ خلاصې كړي ناست وو،[۵] ما [موقع غنيمت وګڼله، او د
حصولِ سعادت او د بركت د پاره] خپل لاس مې د حضور ﷺ د قميص په ګريوان كې دننه
كولو سره په مهر نبوت مې لاس راتير كړو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① رَهْطٍ: جماعت، ډله. ② مُزَيْنَةَ: يوه قبيله ده. ③ الْأَزْرَارِ: دَ زر جمع ده دكپړې نه جوړې
شوې بتن. ④ جَيْبِ: ګريوان

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِنَّهُ لَمُطْلَقُ الْأَزْرَارِ:**

**د ازرار په مصداق كښې دوه اقوال:** ① د ازرار دَ زر جمع ده دكپړې څخه جوړه شوې بتن ترې
مراد ده كومه چې عام طور په د سينې دپاسه په قميض كښې لګيدلې وى

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب فى حل الأزرار (رقم-۴۰۸۲) وابن ماجه فى كتاب اللباس . باب حل الأزرار (رقم-۳۵۷۸) واحمد فى المسند: ۱۹/۴

⑦ ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي دلته دَ گریوان نه مراد هغه پټئی (کالر) ده کومه چه په سټ راتاؤشوې وی (کوم ته چه کالروائی) مخې ته چه دَ گریوان بټنې کولاؤ وی نو دا پټئی سسته شی. هم په دې سره معاویه بن قره پلار لاس داخل کړې دې که بټنې بندې وې نو لاس نه شو داخلیدې.

**د نبی علیه السلام د گریوان محل:** علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه دَنبی کریم گریوان به مخې ته وو لهذا دَ څه خلقو داوینا کول غلط ثابت شوځوك چه وائی چه مخې طرف ته گریوان ساتل بدعت دې (په یوه زمانه کښې به خلقو دې ته بدعت ونیل) دَ بعضې قومونو گریوان به دَ سینې دَ پاسه ښی ارخ ته دَ اوګې طرف ته وو دلته هغه هم مراد نه دې.

**قوله:** فَمَسِسْتُ الْخَاتَمَ

**د نبی علیه السلام په بدن کښې دمهر محل:** دَمهر په معنی کښې دې مراد مهرِ دَ ختم نبوت دې چه دَ شا طرف ته دَ کسې اوګې دَهډوکی لاندې دَ تیتر دَ هګئی برابر راؤچته شوې غوښه وه په کوم چه تور نشان وو په هغې لیکلې شوې وو "توجه حیث شئت فانك منصور"

**د مهرِ نبوت په حقله ناشنا خبره:** مهریا پیدائشی وو یا دَ نبوت ملاویدو څخه روسته راغلې وو. وفات سره په بدن باندې دا راؤچته شوې حصه دننه لاړه اوغیبه شوه

**[۴۳۳۴] د سپینې جامې فضیلت**

۴۳۳۴-[۲۹] (۱) ① وَعَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " «الْبَسُوا الثِّيَابَ الْبِيضَ، ③ فَإِنَّهَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ، ④ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او د حضرت سمره رضی الله عنه نه روایت دې چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ② سپینې کپړې اغوندئ. ③ ځکه چې سپینه کپړه ډیره پاکه، زیاته پاکیزه او خوش تره وي. ④ دغه شان خپلو مړو ته کفن هم د سپینو کپړو ورکوئ. (احمد، ترمذی، نسائی، ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله:** الْبَسُوا الثِّيَابَ الْبِيضَ، فَإِنَّهَا أَطْهَرُ:

**د سپینو جامو د اطهر کیدو وجه:** سپینه کپړا زر خیرنیږی نوزیاته وینځلې کیږی لهذا اطهر اوپاکیزه تر وی. توره کپړا پوه میاشت نه شی وینځلې خیرنه وی مگر دَ خیری پته نه لګی نواستعمالیږی.

**قوله:** وَأَطْيَبُ:

**د اطیب مفهوم:** یعنی دَهغې رنګ گډود نه وی خالص سپین وی لهذا دَسلیم الطبع خلقو دا

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی لبس البیاض (رقم-۲۸۱۰) والنسائی فی کتاب الجنائز/أی الکفن خیر (رقم-۱۸۹۶) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب البیاض من الثیاب (رقم ۳۵۶۷) واحمد فی المسند: ۱۳/۵

خوښه وي بل په سپین لباس باندې دگرمۍ اثر هم کم پریوځي.

**قوله**: وَكَفِّنُوافِيهَامَوْتَاكُمْ:

**په سپینو جامو کښې د تدفین کولو وجه**: مړي په سپین لباس کښې کفن کولووجه دا ده چه هغه به په ژوند کښې د سپینو جامو انتخاب کړې وي نودې سره به مانوس وي اوقبرد وحشت خانې دې نود سپین کفن په وجه به ورته څه قدرې انس ملاؤ شي

**[۳۳۲۸]د پټکي د شملې مسئله**

۴۳۳۸-[۳۰]()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِذَا اعْتَمَّ [۳]سَدَلَ عِمَامَتَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ». [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابن عمر ﷠ وايي[۲] چې رسول الله ﷺ چې به کله پټکی تړلو،[۳]نو د هغې شمله به يې د دواړو اوږو په مینځ کې زوړندوله،[۴] ترمذي ﷫ دا روایت نقل کړې دې او ويلې يې دي چې دا حديث حسن غريب دې

**حل اللغات**: ①اعْتَمَّ: چه کله به ئې پټکې تړلو، ②سَدَلَ: رازړوندول به ئې.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِذَااعْتَمَّ سَدَلَ عِمَامَتَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ:

**د پټکی د شملې پریخودو مسنون طریقه**: یعنی چه کله به نبی کریم پټکې تړلو نودهغې شمله به ئې د اوږو مبارکو په مینځ کښې ساتله. پټکې تړل د سنن زوائد څخه دی که يوسړې ئې د اتباع سنت په نیت باندې تړی نوثواب به ملاویږی کنی د قومی رسم اورواج د وجهې د پټکې په تړلوسره هیڅ ثواب نه ملاویږی. په زرګونو خلق د قومی لباس په بنیاد باندې پټکې تړی دا عادت دې سنت نه دې

**د موټځ دپاره دپټکی د التزام حکم**: بعضې روایاتوکښې د پټکی ډیر لوئی فضیلت راغلې دې په يوضعيف روایت کښې دی چه پټکی سره مونځ کول اویا درجې افضل دې خو په ټوپئی کښې هم مونځ کیږی هیڅ منع نه ده اونه پټکې د مونځ دپاره لازم دې کوم امامان حضرات چه صرف د مونځ په وخت پټکې استعمالوی اوبيائی په منبر باندې پریږدی او ځی دا ډیره غلطه طریقه ده پټکې خو په عام وختونوکښې مسنون دې

**د پټکی فائدې**: ① د دماغو حفاظت کیږی

② پټکی ته دعربو تاج وئیلې شوې دې

③ پټکې د سيد الاولين والاخرين سنت دې

④ پټکی سره د انسان دماغوته سکون رسیږی.

---

) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی سدل العمامة بین الکتفین (رقم-۱۷۳۶)

⑤ دَ حادثې په وخت په سرباندې زخم لګیدونه سر محفوظ پاتې کیدې شي.
⑥ انسان دَ ناخوښه کارونو نه خان ساتي.
⑦ انسان ته دَ عزت مقام ورکوي.

**ه پټکی رنګونه:** دَ پټکی په رنګونوکښې سپین تور او زیړ رنګ ملاویږی دَ شین رنګ دَ پټکی تذکره تردې وخته پورې نه ده ملاؤشوې. کیدې شی چه بریلیانو حضراتو دَ نبی کریم دَ ګنبد دَ رنګ نه اخستې وی لیکن که دَ ګنبد رنګ بدل شو نوبیابه بریلیان حضرات څه کوی؟

**د پټکی اوږدوالی:** دَ پټکی په اوږدوالی کښې دومره خبره یاد لرئی چه دَ نبی کریم دوه قسمه پټکی وو. وړوکې پټکې اووه ګزه وو اولوئی پټکې دولس ګزه وو شرعی ګز یولاس وی.

**د پټکی شملې پریخودو طریقه:** دَ پټکی دوه شملې وی یوه وړه او یوه اوږده که یوه هم وی نو بیاهم خیر دې که دواړه شملې دَ اوږو په مینځ کښې پریخودلې شی نوداهم جائز دی اوکه کله یوه شمله شاته او یوه شمله دَ ښی طرف ته مخې نه واچولې شی نوداهم جائز دی.

**د مسلمانانو او سیکهانو په پټکو کښې فرق:** دَدې آدابونه معلومه شوه چه اسلامی پټکی اودَ سکهانو پټکی کښې دَ زمکې اوآسمان فرق دې. دَپټکی دَپاره ټوپئی ضروری ده اوټوپئی کولاؤ او ښکاره په نظر راتلل پکاردی. مشرکانو به هم پټکې استعمالولو لیکن په هغې کښې به ټوپئی نه وه لکه څنګه چه نن صبا دَایران ذاکرین بغیردَ ټوپئی نه پټکې استعمالوی.اهل روافض په پټکی کښې شمله هم نه استعمالوی اودَ سکهانو هم دغه عادت دې

**[۴۳۳۹]مخې ته اوشاته شمله پریخودل**

۴۳۳۹-[۳۱]()[۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ:[۲]«عَمَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۳]فَسَدَلَهَا بَيْنَ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه وایي[۲] چې ایوه ورځ] رسول الله ﷺ ماته پټکی راوتړلو،[۳] نو د هغې شمله یي زما مخکې او زما وروسته (دواړه طرفته) زوړنده کړه (ابوداؤد)

**عَمَّمَنِي**: پټکې اوتړلو ماته، ① **فَسَدَلَهَا**: نو رازوړنده ئې کړه

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث تشریح ددې څخه وړاندې حدیث نمبر (۴۳۳۸) په شرح کښې تیرشوې دې

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی العمائم (رقم-۴۰۷۹)

**[۴۳۳۰] پر ټوپۍ پټکی تړل د مسلمانانو امتیازي علامت دی**

۴۳۳۰-[۳۲] (¹) [۱] وَعَنْ رُكَانَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «فَرْقُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلَانِسِ» . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَائِمِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ركانه رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چه حضور ﷺ وفرمايل [۲] زمونږ او د مشركانو په مينځ كې [يو] فرق دا [هم] دي، چې مونږ په خوليو لنګوټې [پټكې] تړو. [۳] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي او د دې اسناد درست نه دي.

**حل اللغات:** ① الْعَمَائِمُ: د عمامة جمع ده پټكى ته وائى، ② الْقَلَانِسِ: د قلنسوة جمع ده ټوپۍ ته وائى

**تسهيلات: قوله:** فَرْقُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلَانِسِ:

**پټكى په ټوپۍ باندې تړل:** دَدنيا دَ ټولو ملكونو په فوجونو باندې دَ ټوپئى استعمالول دَ هرملك قانوني ضابطه ده. دَدې نه معلومه شوه چه كامل سړې هم هغه دې دَ چا په سرچه ټوپئى وى. په افريقى ملكونو كښې ټوپئى استعمالول دَ اسلام علامت وى. دَدې نه معلومه شوه چه برېنډ سر ګرځيدل نه دَ اسلام تقاضاده اونه دَ كامل انسان تقاضا ده بلكه دَ حيوان انسان تقاضاده.

**[۴۳۳۱] سره زر او ريښم د ښځو د پاره حلال او د سړو د پاره حرام دي**

۴۳۳۱-[۳۳] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «أُحِلَّ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ لِلْإِنَاثِ مِنْ أُمَّتِي [۳] وَحُرِّمَ عَلَى ذُكُورِهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، [۴] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوموسي اشعري رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [۲] زما د امت د ښځو د پاره سره زر او ريښم حلال كړې شوي دي، [۳] او د امت په سړو حرام كړې شوي دي ترمذي نسائي، [۴] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أُحِلَّ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ لِلْإِنَاثِ مِنْ أُمَّتِي:

د حديث حاصل دا دي چه سونا او ريښم ښځو دپاره حلال دي او ددي امت سړو دپاره په عام حالاتو كښې حرام دي.

¹) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۴۰۷۸، والترمذى فى السنن رقم الحديث ۱۷۸۴

²) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الحرير والذهب (رقم-۱۷۲۰) واحمد فى المسند: ۳۹۲/۴

**په بيمارۍ او جنګ کښې د ريښمو د استعمال په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① دامام شافعي، امام احمد بن حنبل اود صاحبينو په نيز د بيمارۍ او جنګ کښې د خالص ريښمو استعمالول جائز دي

② د امام ابو حنيفه او د امام مالک په نيز په هيڅ صورت کښې خالص حرير استعمالول جائز نه دی.

**داول فريق دليل:** دوی د عبدالرحمن بن عوف او د زبير بن العوام رضي الله عنهما د روايت څخه استدلال کوی، "قال رخص رسول الله صلى الله عليه وسلم للزبير وعبدالرحمن بن عوف في لبس الحرير لحكة بهما" چه نبی کريم ﷺ دواړه صحابه کرامو ته د خارښ په وجه د ريښم استعمالولو اجازت ورکړې وو (كما مر في مشكواة رقم: ۴۳۲۶)

**د دويم فريق دليل:** دوي په دي حديث الباب باندې استدلال کوی "أحل الذهب والحرير للأناث من أمتي وحرم على ذكورها". (رواه الترمذي)

**داول فريق د دليل دوه جوابونه:** ① دا حديث په حالت د اضطرار باندې محمول دې د حالت اضطرار صورت د حديث د ظاهر نه معلوميږی چه دوي ته ئي د خارښ د وجهې نه ريښمو کپړی استعمالولو اجازت وکړې وو.

② دا حديث د دې دواړو حضراتو په خصوصيت باندې حمل دې.

**قوله: وَحُرِّمَ عَلَى ذُكُورِهَا:**

**د ذکور څخه مراد:** په حديث کښې "ذكور" نه مراد سړی او ماشومان دی او ماشومانو ته ريښمی کپړې اچولو والا هم ګناه ګار دې، او څنګه چه د سونے او چاندی والا لوښې سړو دپاره استعمالول حرام دی هم دغه شان ښځو دپاره هم ددې لوښو استعمال حرام دې

**[۴۳۴۲] د نوې جامې د اغوستلو په وخت دعا**

۴۳۴۲-[۳۴] (¹) [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ [٣] عِمَامَةً أَوْ قَمِيصًا أَوْ رِدَاءً [٤] ثُمَّ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ، كَمَا كَسَوْتَنِيهِ، [٥] أَسْأَلُكَ خَيْرَهُ [٦] وَخَيْرَ مَا صُنِعَ لَهُ، [٧] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي [٢] چه رسول الله ﷺ چې به کوم وخت نوي جامه اغوستله، نو [د هغی چې به کوم نوم وو، نوا هغه نوم به يې اخستو. [٣] يعنی پټکۍ يا قميص يا څادر، [۴] بيا به يې فرمايل اي الله! ستا د پاره تعريف دي، چې تا ماته دا جامه واغوندوله. [۵] اي الله! زه ستا نه د دې جامې د خير طلبګاريم، [چې دا جامه زما په بدن د عافيت سره پاتې شی، دي ته څه نقصان ونه رسيږي] [٦] او ستا نه د هغه شي خير غواړم،

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس (رقم-٤٠٢٠) والترمذي في السنن رقم الحديث ١٧٦٧ واحمد في المسند ٣/ ٣٠

چې د هغې د پاره دا جامه جوړه شوي ده، ايعنى دا چې دا جامه اغوستلو سره ستا د اطاعت وكړم، [۷] او زه د دې كپړې د بدۍ نه او د هغه شي د بدۍ نه چې د هغې د پاره دا جامه جوړه شوي ده، ستا پناه غواړم ،يعني دا چې زه دا جامه اغوستلو سره څه گناه ونه كړم، ترمذي، ابوداؤد،

**حل اللغات:** ① اسْتَجَدَّ: "أي لبس ثوباً جديداً" چه كله به نى نوې كپړې اغوستلې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ:

**د سماه مفهوم:** يعنى دَ شكريه په توگه دَ دعا كولو نه مخكښې نبى كريم به دَ دغه كپړې نوم كېخودو چه دا قميص دې دا پټكې دې وغيره بيابه نى په دعا كښې دَهغې تذكره داسې فرمائيله "اللهم لك الحمد كما كسوتني هذا القميص الخ"

**[۳۳۳۳] دَ خوراك او جامو اغوستو څخه روسته د دعا فضيلت**

۴۳۳۳-[۳۵] () [۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «مَنْ أَكَلَ طَعَامًا، ثُمَّ قَالَ: [۳] الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنِي هَذَا الطَّعَامَ [۴] وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ [۵] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، [۶] وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: («وَمَنْ لَبِسَ ثَوْبًا فَقَالَ: [۷] الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا [۸] وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ [۹] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ».

**ترجمه:** [۱] او د حضرت معاذ ابن انس رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم شخص چې روټى وخوري، او بيا دا دعا اووائي [۳] ټول ثناء او صفت هغه ذات لره دي، چې په ماېې دا طعام اوخوړلو، [۴] بغير زما د څه حيلې نه او بغير د څه قوت نه يې ماته راكړې دي، [۵] نو د ده ټول صغيره گناهونه بخښل كيږي ،ترمذي [۶] او ابوداؤد په خپل روايت كې دا الفاظ زيات كړي دي څوك چې جامې واچوي او دا دعا اووائي [۷] ټول تعريفونه هغه ذات لره دي چې ماته يې جامې راكړې دي، [۸] او رزق يې راكړې دي، زما بغير د څه حيلې نه او بغير د څه طاقت نه، [۹] نو ټول مخكښې او وروستني صغيره گناهونه يې بخښل كيږي

**تسهيلات:**

**قوله:** غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.

**په حمد ويلو سره د گناهونو معاف كيدل:** دا دوه دعاگانې كومې چه ذكر شوې چه په هغې كښې يو د خوراك نه پس ده او دويمه د جامو د اغوستلو په وخت. د دې دواړو په باره كښې رسول

---

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس (رقم-۴۰۲۳) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يقول إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۴۵۸) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب ما يقال. إذا فرغ من الطعام (رقم-۳۲۸۵) واحمد فى المسند: ۴۳۹/۳

الله ﷺ فرمائي چه كوم سړي دا دعا اولولي د هغه به وړاندې روستو ټول ګناهونه معاف شي، دا خبره خو مشهوره چه په دې قسم رواياتو كښې د ګناهونو نه مراد صغائر دي، دلته به هم دا ونيلې شي،

په دې حديث كښې چه د كومو ګناهونو نه د دومره زبردست معافۍ بشارت دې هغه په يو مختصر عمل سره د الله پاک په امت محمديه باندې ډيره زياته مهرباني معلوميږي، په دې كښې به د رسول الله ﷺ شان محبوبيت لره دخل وي، چه د هغې امت لره قدرداني كول پكار دي او د هغې نه فائده اوچتول پكار دي والله تعالى الموفق.

**دابوداؤد د روايت په زيادت كښې دوه توجيهات:** پورته د ابوداؤد په روايت كښې د ...وما تأخر ›زيادت دې

① په راروان ژوند كښې هغه كوم واړه ګناهونه كوى نود واقع كيدو څخه وړاندې به هغه الله تعالى معاف كړې وى.

② هغه به د بيا دپاره د ګناهونو نه محفوظ شي چه د بيا دپاره به د هغه نه د ګناه وقوع نه كيږي،

دا دواړه احتماله شارحينو د اهل بدر په باره كښې هلته ليكلې دى كوم چه په حديث كښې راغلې دى ‹اعملوا ما شئتم فقد غفرت لكم›... لهذا دلته هم دا دواړه احتماله كيدې شى (بذل بتوضيح)

## [۴۳۴۴] عائشي رضى الله عنها ته څو نصيحتونه

۴۳۴۴-[۳۶] (۱) ⓵وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ⓶قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«يَا عَائِشَةُ ⓷إِذَا أَرَدْتِ اللُّحُوقَ بِي ⓸فَلْيَكْفِكِ مِنَ الدُّنْيَا كَزَادِ الرَّاكِبِ، ⓹وَإِيَّاكِ وَمُجَالَسَةَ الْأَغْنِيَاءِ، ⓺وَلَا تَسْتَخْلِقِي ثَوْبًا حَتَّى تُرَقِّعِيهِ» ". ⓻رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ ⓼لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ صَالِحِ بْنِ حَسَّانَ. ⓽وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: صَالِحُ بْنُ حَسَّانَ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ⓵ او د بي بي عائشي رضي الله عنها نه روايت دې ⓶ چې ماته رسول الله ﷺ وفرمايل اي عائشي رضي الله عنها ⓷ كه ته (دنيا او آخرت دواړه ځايه) زما سره (كامل) اتصال او تعلق غواړې. ⓸ نو د دنيا په څيزونو صرف دومره اكتفاء كوه. چې د سور (سفر كونكى) د زاد راه (توښې) برابر وي. ⓹ او د دولت مندو د هم نشيني اختيارولو نه پرهيز كوه. ⓺ او كپړه تر هغه وخته زړه ګڼلو سره مه غورځوه. تر څو چې ته پيوند الګولو سره هغه د اغوستلو قابله ګڼې. ⓻ دا روايت ترمذي رحمه الله نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي. ⓼ او دا حديث مونږ ته د صالح ابن حسان د روايت نه علاوه په بل څه ذريعې سره نه

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في ترقيع الثوب (رقم-۱۷۸۰)

دي رارسیدلي.[۹] او محمد بن اسماعیل رحمه الله (یعني امام بخاري رحمه الله) ویلي دي چې صالح ابن حسان منکر الحدیث دي (یعني د هغه روایت منکر دي).

**حل اللغات:** ① اللُّحُوقَ: اتصال او تعلق، یوځاې کېدل ② زَادِ: توښه. ③ وَلَاتَسْتَخْلِقِي: خلق د زړیدو په معنی کښې دې په دې صیغه کښې سین او تاء د حسبان د پاره دې یعني یوه کپړا زړه مه ګڼړه ④ تُرَقِّعِيهِ: چه په دې کښې پیوند اولګوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلْيَكْفِكِ مِنَ الدُّنْيَا كَزَادِ الرَّاكِبِ:

**د راکب سره د تشبیه وجه:** یوه توښه د سور سړی وی اویود پیدل سړی وی. سور چونکه زر منزل ته رسیږی په دې وجه هغه ته دکم خرچ ضرورت پیښیږی. په دې وجه په حدیث کښې د سور سړی د توښې ذکرکړې شوې دې یعني دیره کمه توښه.

**قوله:** حَتّٰى تُرَقِّعِيهِ:

**د ترقعیه مطلب:** یعني ترکومې پورې چه په دې کښې پیوند اونه لګوی. وئیلی شی چه یوځل حضرت عمر رضی الله عنه خطبه ورکړه کله چه اوکتلې شو نود هغوی په لنګ کښې دولس پیوندونه لګیدلې وو کوم وخت چه هغوی امیرالمؤمنین وو (مرقات)

**[۴۳۳۵] په لباس کښې سادګی د ایمان نښه**

۴۳۳۵-[۲۷] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ إِيَاسِ بْنِ ثَعْلَبَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «أَلَا تَسْمَعُونَ؟ أَلَا تَسْمَعُونَ [۳] أَنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ، [۴] أَنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ» ؟ " رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوامامه رضی الله عنه ایاس ابن ثعلبه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] آیا تاسو نه اورئ، آیا تاسو نه اورئ، (یعني اي خلقو! په غور سره واورئ) [۳] د کپړې زوړوالي اوکهنګي (یعني د لباس سادګي) اختیارول او د دنیا زیب وزینت ترک کول، د حسن ایمان علامت دی. [۴] د کپړې بوسیدګي او کهنګي اختیارول او د دنیا زیب وزینت ترک کول د حسن ایمان علامت دی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْبَذَاذَةَ: په جامه کښې سادګی کول او زیب وزینت پریخودل

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ

**د سادګی اختیارولو ترغیب:** ابوامامه انصاری رضی الله عنه فرمائی چه یوه ورځ بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکښې د دنیا تذکره اوکړه نو هغوی اوفرمائیل: خبردار واورئ په ښه طریقه ! دوه کرته ئې اوفرمائیل... بیشکه سادګی او تواضع او ترک تکلف د ایمان

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل (رقم-۴۱۶۱) وابن ماجه في س كتاب الزهد باب من لا يؤبه له (رقم-۴۱۱۸)

حصه ده، يعني د ايمان په خصلتونو کښې يو خصلت دې

**د بذاذة تفسير**: په ابوداؤد کښې د بذاذة تفسيرداسې شوې دې "يعني التقحل"دا د ابوداؤد د طرفه دې د تفحل معنی د انسان د بدن اوچيدل د حال د خرابيدو په وجه باندې. او کمزور او تپ کيدل، په بذل کښې مکتوب دی ( وإنما كان البذاءة من الإيمان لأنه يودى إلى كسر النفس والتواضع)

**[۳۳۳] د تکبر په غرض د نوو جامو اغوستلو وعيد**

۴۳۳۳-[۳۸] ([1])[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدُّنْيَا [۳] أَلْبَسَهُ اللَّهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې په دنيا کې د شهرت جامه اغوندي، [۳] د قيامت په ورځ به هغه ته د ذلت جامه اغوستل کيږي (احمد، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① مَذَلَّةٍ: د ذلت.

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ:

**دحديث په مصداق کښې دوه اقوال**: ① کوم سړي چې دَ شهرت حاصلولوَ دَپاره دَعلماؤ لباس اختياروي دَ صوفيانو لباس جبه او پټکي خپلوي او په دې سره خپل نوم اوچتول غواړي محض دَ شهرت بنده دې اودَ خپلې نامې دَ کټلودَپاره شپه ورځ کوششونه کوي دَداسې سړي دَپاره وعيد دې.

② کوم سړي چه دَتکبر اوتجبرپه توګه اودَفقيرانو اومسکينانودَ ذليل کولودَپاره يا مسخره جوړيدوسره دَ خلقو دَ خندولو دَپاره عجيبه شکلونه اختياروي دَداسې سړي دَپاره وعيد دې

**[۳۳۴] د چا سره د مشابهت اختيارولو حکم**

۴۳۳۴-[۳۹] ([2])[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د يو قوم سره مشابهت اختيار کړي، نو هغه به د هغه قوم نه شميرل کيږي، (احمد، ابوداود)

---

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس /باب في لبس الشهرة (رقم-۴۰۲۹) وابن ماجه في كتاب اللباس، باب من لبس شهرة من الثياب (رقم-۳۶۰۶) واحمد في المسند: ۱۳۹/۲

[2]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس /باب في لبس الشهرة (رقم-۴۰۳۱) واحمد في المسند: ۵۰/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ

**د نیکانو او بدانو سره د مشابهت اثر:** ① کوم سړي چه خپل خان دَ علماؤ صلحاؤ او دیندارو خلقو په طرز باندې برابروی دَهغوی اعمال او اقوال خپلوی او هغوی سره محبت لری نو هغه سړې به په نیکوکښې دَ دغه نیك بختو په زمره کښې شمیرلې کیږی.
② دَیو غیرمسلم قوم نقل او تقلید اختیارول دَمسلمان دَپاره حرام دی. دکافرانو اعمال اوافعال دَهغوی اطوار او کردار اودَ هغوی اقدار او افکار به پریخودلې کیږی. که یو سړې دَیو قوم مشابهت اختیاروی دَهغوی په انداز خوراك کوی دَهغوی اخلاق خپلوی اودَهغوی اوسیدل اودَهغوی ثقافت خپلې سینې سره لګوی نوداسړی دَ هغوی ډلې ته څی اوس دَدغه کافرانو فاسقانو اوفجارو په اعمالو باندې کومه سزا چه به هغوی ته ملاویږی هم هغه سزا به دغه نقالی تقلید کونکی ته هم ملاویږی.

**دمشابهت څخه مراد:** غیرمسلموسره دَ مشابهت دَممانعت چه کومه خبره ده هغه دَهغوی خصوصی امتیازی شعار اوطریقه خپلولو کښې ده په عام حالاتو کښې دَانسان عمل دخل خودَ یوبل په شان وی مثلاً ډیره خورول، کوټ پتلون او ټائی لګول دَ صلیب تصویر څائی په څائی لګول دادَ یهودیانو اونصاراؤ خصوصی علامتونه دی په تندی باندې قشقه لګول وغیره دادَ هندوانو خصوصی علامت دې ږیر تاوول اودَ زنې لاندې راغونډول دادَ سکهانو خصوصی علامت دې. دَدې نه څان ساتل ضروری دی. دَدې نه علاوه په عام ژوند کښې دَ یوبل مشابه کیدل مراد نه دی مثلاً ټول قومونه پیالئی کښې چائې اچوی او څکی ئی داڅه شعار نه دې.

**دجامو اچولو یوه شرعی ضابطه:** دجامواچولو یوه قاعده: جامه څنګه اغوستل پکار دی د دې قاعده داسې بیان شوې ده چه د کومې جامې مدح یا مذمت چه په حدیث شریف کښې منصوص دې په دې کښې به خو د هغې اعتبار کولې شی د هغې نه علاوه دا ده چه د کومې زمانې د صلحاء کوم لباس وی هغه اختیارول پکار دی.

[٤٣٤٨] د دوو نیکو اعمالو فضیلت

٤٣٤٨—[٣٠] (¹) ١ وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ أَبِيهِ، ٢ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ تَرَكَ لُبْسَ ثَوْبِ جَمَالٍ ٣ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهِ "٤ وَفِي رِوَايَةٍ تَوَاضُعًا، ٥ كَسَاهُ اللهُ حُلَّةَ الْكَرَامَةِ، ٦ وَمَنْ تَزَوَّجَ لِلهِ تَوَّجَهُ اللهُ تَاجَ الْمُلْكِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت سوید ابن وهب د نبي کریم ﷺ د صحابؤ د زامنو نه او هغوی د خپل

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب من کظم غیظا (رقم-٤٧٧٨)

پلار نه روايت كوي[۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل كوم سړي چې د زيب وزينت لباس اغوستل پريږدي،[۳] باوجود د دې چې د هغې د اغوستلو استطاعت او طاقت لري.[۴] او په يو روايت کې د تواضعاً لفظ هم راغلي دي، ايعنى كوم سړي چې د زهد او تواضع او د كسر نفسي په سبب د زيب وزينت لباس اغوستل پريږدي]،[۵] هغه ته به الله تعالى د عزت او عظمت جوړه ور واغوندي، ايعنى الله تعالى به هغه ته د جنت لباس ورکړي، چې د هغه د رفعت او عظمت باعث به وي، يا دا چې الله تعالى به هغه ته په دنيا او آخرت دواړو ځايو کې عزت او عظمت ورکړي ځرنگه چې فرمايل شوي دي چې كوم سړي عاجزى [اخكته والي] اختيار وي، الله تعالى ﷻ د هغه مرتبه اوچتوي]،[۶] او كوم سړي چې د الله تعالى د خوشنودئ د پاره نكاح اوكړي، هغه ته به الله تعالى د بادشاهت تاج ورکړي. «ابوداؤد»

**حل اللغات:** ①حُلَّةَ الْكَرَامَةِ: د عزت او عظمت جامې، ②تَوَّجَهُ اللهُ: تاج به ورپسر کړي الله تعالى،

| |
|---|
| ۴۳۴۱-()[۱] وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ مِنْهُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ حَدِيثَ اللِّبَاسِ. |

**ترجمه:** [۱] او ترمذي رحمه الله د دې روايت يواځې هغه حصه چې په هغې کې د لباس ذكر دي د حضرت معاذ ابن انس رضی الله عنه نه نقل کړي ده.

**تسهيلات:**

**قوله: كَسَاهُ اللهُ حُلَّةَ الْكَرَامَةِ:**

**دوس بلوجود دقيمتي جامو نه اغوستلو انعام:** دَ طاقت باوجود زينت ترک کول لوئي كمال دې په دې سره سړي پريوځي نه بلكه اوچتيږي اوپه چاکښې چه طاقت نه وي نوهغه خو پخپله متواضع دې.

**دعالم دپاره ښه لباس اچول:** زمارائې دا ده چې عالمان چونكه د عوامو مقتدا وي او دوی سره علم تړلي دې نوچې دوی ښه لباس اوښه جامې اغوستې وې په دې سره به د خلقو په زړونو کښې دعلم وقار او عزت پيدا کيږي او د دغه عالم خبره به په توجه سره اوريدې شي اوکه د عالم جامې او لباس خيرن يا کم قيمته وي نود خلقو په زړونوکښې به د هغوی د خبرې څه خاص مقام نه وي نوخبره به ئې هم اثرنه کوي او د نبی عليه السلام ارشاد هم دې چې ((ليُرى أثر نعمة الله عليك)) يعنى د الله تعالى د نعمت اثردې په تا باندې ښکاره وي.والله اعلم بالصواب.

**قوله: وَمَنْ تَزَوَّجَ لِلّٰهِ تَوَّجَهُ اللهُ تَاجَ الْمُلْكِ:**

**دحديث مصداق:** يعنى يو بې نومې او ورکه جينئى ده بې آثرې ده نه دَهغې څوك كفالت والا شته نه ئې خاندان شته. يوسړې هغې سره صرف ددې دپاره نكاح کوی چه دَ هغې ژوندجوړشى اوهغې ته اسره ملاؤشى داسې سړي ته به الله تعالى دَعظمت تاج وراغوندی.

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲٤۸۱)

## [٤٣٥٠] د حق تعالى د عطاء كړي نعمتونو اظهار يو مطلوب عمل دی

٤٣٥٠-[٣١] (١) ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ ③ أَنْ يُرَى أَثَرُ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي، ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل بيشكه د الله تعالى دا خبره خوښه ده، ③ چې د هغه د نعمت اثر د هغه په بنده وليدل شي. (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ أَنْ يُرَى أَثَرُ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ:

**د شكريه په توګه د الله تعالى د نعمت اظهار كول:** يعني چه الله تعالى دنياوى نعمت دركړې دې نو دَ شكريې په توګه دَ دغه نعمت اثر هم دَ انسان په بدن باندې ښكاره كيدل پكاردى. دَدې دا صورت دې چه چرته دې طاقت وى نوښه لباس په ذريعه سره دَ الله تعالى دَ نعمت عملى شكراداكول پكاردى. اوچرته چه دې طاقت نه وى نوهلته دَ سادګئى عملى مظاهره كول پكاردى اوكوم وخت چه تنګى وى نو قرض اخستو سره دَتكلف دَ لباس مظاهره اومفاخره كول سخت منع دى.

## [٤٣٥١] دبدن او لباس درستګي او صفايي خوښ شي دي

٤٣٥١-[٣٢] (٢) ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «أَتَانَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - زَائِرًا، ③ فَرَأَى رَجُلًا شَعِثًا ④ قَدْ تَفَرَّقَ شَعْرُهُ ⑤ فَقَالَ: أَمَا كَانَ يَجِدُ هٰذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ رَأْسَهُ؟ ⑥ وَرَأَى رَجُلًا عَلَيْهِ ثِيَابٌ وَسِخَةٌ ⑦ فَقَالَ: أَمَا كَانَ يَجِدُ هٰذَا مَا يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ؟» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې ② يو ځل رسول الله ﷺ د ملاقات په غرض مونږ ته تشريف راوړو، ③ نو هلته يي يو ببر سرې سړي وليدلو، ④ چې د هغه د سر ويښتان ګډوډ شوي وو، ⑤ حضور ﷺ وفرمايل چې آيا دې سړي سره هغه څيز (يعني منګز وغيره) نشته، چې د هغې په ذريعه يي خپل ويښتان درست كړي وي، ⑥ دغه شان حضور ﷺ يو بل سړي وليدلو، چې د هغه په بدن خيرني خيچني كپړې وې، ⑦ نو حضور ﷺ وفرمايل چې آيا دې سړي سره هغه څيز (يعني صابون يا اوبه) نشته، چې په هغې سره خپلې جامې وويننځي. (احمد، نسائي)

---

[١] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إن الله تعالى يحب ان يرى أثر نعمته على عبده (رقم-٢٨١٩) واحمد في المسند: ١٨٢/٢

[٢] اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في غسل الثوب وفي الخلقان (رقم-٤٠٦٢) والنسائي في كتاب الزينة/باب تسكين الشعر (رقم-٥٢٣٦) واحمد في المسند: ٣٥٧/٣

**حل اللغات:** ① زَائِرًا: د ملاقات او زيارت په غرض، ② شَعِثًا: بېر سرې چه د سر وېښته ئې ګډ وډ وي، ③ وَسِخَةٌ: خيرني خيچني، ④ مَا يُسَكِّنُ "ما عبارت دې دَ ګمنز نه يعنى دغه سړى ته ګمنزه نه ملاوېږى دَ كوم په ذريعه چه وېښته جوړ کړى او صحيح کړى.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَتَانَا رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- زَائِرًا:

**د سادګۍ باوجود د پاکۍ اهميت:** دَدې حديث نه معلومه شوه چه بدن ښکلې ښائسته او په طريقه سره ساتل دَ نبى کريم خوښ وو اودَدې خلاف منظر دَ نبى کريم ناخوښه وو خکه چه اسلام يوترقى خوښونکې مهذب اومتمدن مذهب دې. هغه دَ انسان دَ دنيا اوآخرت دواړوکفالت او لارخودنه کوى. لهذا دا څيزونه دَ اسلامى تعليماتو بالکل مطابق وو دَ کوم ترغيب چه نبى کريم ورکړو. اسلام اګرچه دَ سادګئى تعليم ورکوى خوسادګى يوبل څيز دې او ګندګى يوبل څيزدې. دَ رحمان په نظام کښې تهذيب او صفائى ده اودَ شيطان په نظام کښې نجاست، او پليتى ده. دَزيربحث حديث دَدې تشريح نه معلومه شوه چه دې سره دَهغه حديث تعارض نشته دې په کوم کښې چه "ان البذاذة من الايمان" فرمائيلې شوى دى خکه چه په دې حديث کښې دَ سادګئى درس دې دَ نجاست پليتئى اوبدتهذيبئى درس نه دې.

**[۴۳۵۴] د حيثيت مطابق جامې اغوستل**

۴۳۵۴- [۳۳] (¹) ① «وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَعَلَيَّ ثَوْبٌ دُونٌ، ③ فَقَالَ لِي: "أَلَكَ مَالٌ؟" قُلْتُ: نَعَمْ. ④ قَالَ: مِنْ أَيِّ الْمَالِ؟" قُلْتُ: مِنْ كُلِّ الْمَالِ، ⑤ قَدْ أَعْطَانِي اللهُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ وَالْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ. ⑥ قَالَ: (فَإِذَا آتَاكَ اللهُ مَالًا ⑦ فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللهِ عَلَيْكَ وَكَرَامَتِهِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ ⑧ وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ.

**ترجمه:** ① او ابو الاحوص د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه اوويل ② چه [يوه ورځ] د رسول الله ﷺ په خدمت کې زه په داسې حالت کې حاضر شوم، چې زما په بدن خرابې او بيکاره کپړې وې. ③ په دې، ليدو سره حضور ﷺ ماته وفرمايل آيا تا سره مال شته؟ ما عرض وکړو چې هو. ④ حضور ﷺ پوښتنه وکړه د کوم قسم مال دې؟ ما عرض وکړو هر قسم مال دې، ⑤ الله تعالى ماته اوښان، غوايان، بزې (چيلۍ) هم راکړې دي، او آسونه او غلامان يې هم راکړي دي، ⑥ حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې الله تعالى ﷻ تاته دومره زيات مال درکړي دي، ⑦ نو [د هغې تقاضه خو دا ده چې] په تا د الله تعالى د درکړي نعمت اثر ظاهر شي، او الله تعالى ﷻ چې په کوم عزت او عظمت سره ته عزتمند کړي يې، هغه ښکاره

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في غسل الثوب وفي الخلقان (رقم-۴۰۶۳) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الإحسان والعفو (رقم-۲۰۰۶) والنسائي في كتاب الزينة/باب باب ذكر ما يستحب من لبس الثياب وما يكره منها (رقم-۵۲۹۴)

شي (احمد، نسائي) [۸] او په شرح السنه کې يې دا روايت د مصابيح د روايت نه په مختلفو الفاظو کې نقل کړي دي، عبارت خو د دواړو مختلف دي، ليکن د دواړو مضمون يو دي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللهِ عَلَيْكَ وَكَرَامَتِهِ.**

**د وس مطابق لباس اغوستل:** د حديث حاصل دا دې چه چا له الله تعالى د مال نعمت ورکړې وى نو هغوى له پکار دى چه د درميانه درجه لباس اغوندلو عادت جوړ کړي نه دي ډير ښه او نه دي ډير بيکاره لباس اغوندى، او کله کله د شکر دپاره دې خه او ښکولى لباس اغوندى نه د فخر په توګه ښکه چه د الله تعالى د نعمت اظهار وکړي شي او انکساري. عاجزي دپاره دې هم کله کله کمزورى لباس اغوندى.

حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلوى رحمه الله فرمائي چه د کپړي خريدل او په دې باندې پيوند لګول دا يو محبوب عمل دې او دا د ايمان ښخه دي، ليکن د استطاعت باوجود کم قيمته کپړى اغوندل د بخل په بناء قبيح او مذموم دى.

**[۴۳۵۳] د سرو د پاره د سرې جامې د اغوستلو حرمت**

۴۳۵۳ ـ [۴۴] (١) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «مَرَّ رَجُلٌ، وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ، [٣] فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما وايي [٢] چې يوه ورځ يو سړي دوه سرې جامې اغوستې تير شو، [٣] او نبي کريم ﷺ ته يې سلام وکړو حضور ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه کړو. (ترمذي ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ.**

**د تنبيه په غرض د ګناهګار د سلام جواب نه ورکول:** يعنى د غه سړى سور لباس اغوستې وو نبى کريم دَهغه دَ سلام جواب ورنه کړو. دې نه معلومه شوه چه سور رنګ والا لباس استعمالول منع دى. دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَ فاسق مجاهر دَ سلام جواب ورکول لازم نه دى او په هغوى باندې په سلام کښې رومبې والې کول په طريقه اولى منع دى.

**[۴۳۵۴] د نبى عليه السلام يو ښو کارو نه نه کول**

۴۳۵۴ ـ [۴۵] (٢) [١] وَعَنْ «عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - أَنَّ نَبِيَّ اللهِ قَالَ: [٢] لَا أَرْكَبُ الْأُرْجُوَانَ، [٣] وَلَا

[١] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب فى الحمرة (رقم-٤٠٦٩) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية لبس المعصفر للرجل والقسى (رقم-٢٨٠٧)

[٢] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب من كرهه (رقم-٤٠٤٨) واحمد فى المسند: ٤/٤٤٢

أَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ ۳ وَلَا أَلْبَسُ الْقَمِيصَ الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ " ۵ وَقَالَ: " أَلَا وَطِيبُ الرِّجَالِ رِيحٌ لَا لَوْنَ لَهُ ۶ وَطِيبُ النِّسَاءِ لَوْنٌ لَا رِيحَ لَهُ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت عمران ابن حصین ﷺ نه روایت دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ۲ زه په ارغواني (يعني د سور رنګ) زين پوښ نه سپريږم، ۳ نه زه د کسم رنګ شوي جامه اچوم، ۴ او نه زه هغه قميص وغيره اچوم، چې په هغې ريښمنې ګوټ او کناره لګيدلې وي، ۵ بيا يې وفرمايل چې ياد لرئ: سړي چې کومه خوشبو لګوي، هغه داسې کيدل پکار دي، چې د هغې خوشبو وي، خو رنګ يې نه وي [لکه ګلاب او عطر وغيره، چې رنګ دار خوشبو سره جامې رنګينې نشي] ۶ او ښځې چې کومه خوشبو لګوي، هغه دې داسې وي، چې په هغې کې رنګ خو وي خوشبو پکښې نه وي. [لکه زعفران او نکريزې وغيره، چې د هغې خوشبو بهر ته د وتلو سره د سړو د پاره د فتنې او ابتلاء سبب جوړ نشي] (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْأُرْجُوَانَ: زين پوش او ګدئ، چه دَ سور رنګ وی ② مُكَفَّف: ګنډلې شوې، ③ مُعَصْفَرَ په سور رنګ کښې رنګ شوې دَ سره جامه

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا أَرْكَبُ الْأُرْجُوَانَ.

**د ارجوان په تحقیق کښې درې اقوال:** ① دا لفظ دَ أرغوان معرب دې ارغوانی رنګ سور وی. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دا وړه شان ګدئی وه چه دَ کیناستو دپاره به په زین باندې کیخودې شوه کوم ته چه زمین پوش وائی. مطلب داچه زه په داسې سورلئی بندې نه سوریږم دَ کوم زین پوش چه دَ سوررنګ وی.

② علامه خطابی رحمه الله فرمائی هم دې دا په نورو احادیثو کښې المیاثرالحمر په نوم سره یاد کړې شوې دې چه په حقیقت کښې دَ ریښمواو دیباج نه تیارولې شو

③ بعضې اهل لغت أرغوان داسې ونه ګرځوی دَ کومې ګلونه چه سره وی. ذیرواهل لغت ارجوان سور رنګ ګرځولې دې

**د ممانعت په وجه کښې دوه احتمالات:** ① دا ممانعت یادَ سور رنګ دَ وجهې دې ملاعلی قاری رحمه الله سور رنګ راجح ګرځولې دې او وئی فرمائیل چه کله دَ سور رنګ په کپړه باندې کیناستل منع دی نودَ دې اغوستل به خومره سخت منع وی

② دا ممانعت دَ ریښمودَ وجهې دې

**قوله:** وَلَا أَلْبَسُ الْقَمِيصَ الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ.

**په حدیثونو کښې تعارض:** يعنی په کوم کښې چه جالر او ریښمی غاړه لګیدلې وی. په دې

حديث کښې دَمکفف قميص اغوستلو ممانعت راغلې دې. دَدې نه وړاندې دَ حضرت اسماء، حديث ۱۸ کښې دَنبی کريم دَ جبې سره مکفوفين الفاظ مذکور دی. په دواړو احاديثو کښې په ظاهره تعارض دې.

**د تعارض دوه جوابونه:** ① دَ ځلوروګوتو برابر دَرېښمو دَ پټنې اجازت دې دَدې نه دَزياتې نه دې. داحديث دَ ځلوروګوتو نه دَ زيات په ممانعت باندې محمول دې

② دَحضرت اسماء، ﷺ حديث په فتوىٰ باندې محمول دې او زير بحث حديث په تقوىٰ باندې محمول دې

**[۴۳۵۵] دلسو خبرو ممانعت**

۴۳۵۵-[۳۶] ()[۱] وَعَنْ أَبِي رَيْحَانَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] "«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ عَشْرٍ: [۳] عَنِ الْوَشْرِ، [۴] وَالْوَشْمِ، [۵] وَالنَّتْفِ، [۶] وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ، [۷] وَمُكَامَعَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ بِغَيْرِ شِعَارٍ، [۸] وَأَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي أَسْفَلِ ثِيَابِهِ حَرِيرًا مِثْلَ الْأَعَاجِمِ، [۹] أَوْ يَجْعَلَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ حَرِيرًا مِثْلَ الْأَعَاجِمِ، [۱۰] وَعَنِ النُّهْبَى، [۱۱] وَعَنْ رُكُوبِ النُّمُورِ، [۱۲] وَلُبُوسِ الْخَاتَمِ [۱۳] إِلَّا لِذِي سُلْطَانٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابو ريحانه ﷺ وايي [۲] چې رسول اللهﷺ د لسو خبرو نه منع فرمايلې ده، [۳] د غاښونود تراشلو [تيره کولو] نه [۴] (د بدن په يوه حصه) د خال وهلو نه، [۵] ويښتانو د اوخکلو نه، [۶] د سړي د سړي سره د څملاستلو نه، په منځ کې څه جامه نه وي، [۷] د ښځې د ښځې سره د پريوتلو نه، په منځ کې يوه جامه حائله نه وي، [۸] او حضورﷺ د دې نه هم منع وفرمايله، چې سړي د خپلې جامې لاندې د ريښمو استر اولګوي، څرنګه چې عجمي خلق يې لګوي، [۹] يا د عجمي خلقو په شان په اوږو د ريښمې جامه لګولو نه، [۱۰] او حضورﷺ د چا مال لوټ کولو نه، [۱۱] او د شرمخ د څرمن په زين د سوريدو نه منع فرمايلې ده، [۱۲] او حضورﷺ د دې نه منع فرمايلې ده، چې يو سړي د مُهر والا ګوتمه په ګوته کړي، [۱۳] خو دا چې هغه صاحب حکومت وي (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① الْوَشْر: دغاښونو تراشل او نرى کول. ② الْوَشْم: خال لګول. ③ النَّتْف: ويښته ويستل. ④ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ: د سړو يو بل سره څملاستل. ⑤ بِغَيْرِ شِعَارٍ: بغير د غلاف او پردې نه. ⑥ رُكُوب: سوريدل. ⑦ النُّهْبَى: لوټ مار، غلا ډاکه. ⑧ النُّمُور: دَنمرة جمع ده دَ پړانګ اوشرمخ څرمن ته وائي.

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب من کرهه (رقم-۴۰۴۹) والنسائی فی کتاب الزينة/باب النتف (رقم-۵۰۹۱) واحمد فی المسند: ۱۳۴/۴

**تسهیلات:**

**قوله:** اَلْوَشْرِ

**د غابونو د تراشلو د ممانعت وجه:** په عربوکښې زړو ښځو خوانانوجینکوسره په حسن کښې دمشابهت دپاره بدرنگه غابنونه د اطرافونه تراشل اوښکلې به ئې جوړول د دې نه ممانعت راغلو ځکه چه په دې کښې په خلق الله کښې تغیر دې

**قوله:** وَالنَّتْفِ

**د نتف درې مصداقات:** ① دښځودپاره دځپل تندی واړه ویښته راویستل منع دی چه هسې بې ځایه زیب اوزینت دې اودتغییرخلق الله امکان هم دې

② یوسړې د سر یا د ږیرې نه سپین ویښته د ښائست اختیارولودپاره راوباسی دا منع دی ځکه چه دا بې ځایه زینت اختیارول دی.

③ دمصیبت په وخت د ویښتو شوکول مراد دی کوم چه منع دی.

**قوله:** وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ

**د مکامعة صورت:** یعنی بغیرد څه پردې نه دوه سړی په یوځائی برېنډ سملاستونه منع کړې شوی دی دغه شان ښځې هم منع کړې شوی دې. د شعارمعنی بدن سره لګیدلې کپړه ده مرادحائل اوپرده ده.

**قوله:** أَوْ يَجْعَلَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ حَرِيرًا مِثْلَ الْأَعَاجِمِ:

**په جاموکښې د ریښمو د استعمال ممانعت:** یعنی د عجمو په شان په کپړوکښې د څه قسم ریښمو پټئی لګول منع دی که هغه اوګه وی اوکه بل څه مقام وی په دې شرط چه د څلوروګوتونه زیاته وی.

**قوله:** اَلنُّمُورِ

**دشرمخ په څرمن دکیناستود ممانعت وجه:** د پړانګ څرمن ته وائی. په دې باندې کیناستل د عجمیانو عادت وو اوس دعربو عادت شوې دې. په دې سره تکبرهم راځی او کیدې شی چه د ځناورتوب اثر هم پیدا کیږی.

**قوله:** اَلْخَاتَمِ

**د ګوتمې د استعمالولو حکم:** د ډول سینګار په غرض سره بغیرد ضرورت نه ګوتمه استعمالولو ممانعت دې اوکه څوك بادشاه. قاضی وغیره حاکم وی نودهغه دپاره د ضرورت په وجه په محدود پیمانه باندې جائزده. وائی چه دعوامودپاره کوم کراهت وو هغه منسوخ شوې دې اوس د جائزحده پورې دټولودپاره جائزدی.

**[۴۳۵۶] په سړو باندې د بعضې لباس حرمت**

۴۳۵۶—[۴۷] ( ) ① وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «نَهَانِي رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، ③ وَعَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ ④ وَالْمَيَاثِرِ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ قَالَ: "«نَهَى عَنْ مَيَاثِرِ الْأُرْجُوَانِ»".

**ترجمه:** ① او حضرت علي (رض) وايي چې حضور ﷺ زه منع کړم د سرو زرو د ګوتۍ نه ② او د قسّي اغوستلو نه ③ او د میاثر د استعمالولو نه (ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه) ⑤ او د ابوداؤد رحمه الله په یو روایت کې داسې دي چې حضرت علي (رض) اوویل چه حضور ﷺ د ارغواني یعنی سرو میاثر استعمالولو نه منع وفرمایله.

**حل اللغات:** ① لُبْسِ الْقَسِّيِّ: قسی کپړه، ② الْقَسِّيِّ: د مصر د یو ښار نوم دي. ③ وَالْمَيَاثِرِ: د میثرة جمع ده، د سور رنګ زین پوښ اوګدئ چه عام طور به ریښمي وو. ④ الْأُرْجُوَانِ: زین پوش او ګدئ، چه د سور رنګ وی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَعَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ:

**د قسی وضاحت:** ( قسی ) منسوب دې قس ته کوم چه په مصر کښې د یو ځائې نوم دي، په دې کپړه کښې ریښم ګډ وی، او یو قول په دې کښې دا دې چه قص په اصل کښې قز وو ز په سین سره بدله کړې شوه، او قز وائی ریښمو ته،

**قوله:** وَعَنْ لُبْسِ.... الْمَيَاثِرِ:

**د میثرة د حرمت دوه وجوهات:** ① دا د میثرة جمع ده زین اوکتې ته وائی. علماؤ لیکلی دی چه چونکه دا به د ریښم وو په دې وجه ممنوع ګرځولې شوې دې.

② ملاعلی قاری رحمه الله د سور رنګ کیدو په وجه هم دې ته ممنوع وائی. نودا د تکبر او خان خودلو د وجهې ممنوع دې. نوبیابه هره یوه سره کپړا لاندې باندې استعمالول خلاف اولی وی.

**[۴۳۵۷] د ریښمو او شرمغ د څرمن په زین باندې د کیناستو ممانعت**

۴۳۵۷—[۴۸] ( ) ① وَعَنْ مُعَاوِيَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا تَرْكَبُوا الْخَزَّ وَلَا النِّمَارَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاویه رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② تاسو خلق د خز او د

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب من کرهه (رقم-٤٠٥١) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ماجاء فی کراهیة خاتم الذهب (رقم-١٧٣٧) والنسائی فی کتاب الزینة /باب خاتم الذهب (رقم ٥١٦٦)

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب فی جلود النمور والسباع (رقم-٤١٢٩) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب رکوب النمور (رقم-٣٦٥٦) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب المیاثر الحمر (رقم-٣٦٥٤) واحمد فی المسند: ١٢٧/١٠

شرمخ د څرمنې په زين مه سوريږئ. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① الْخَزَّ: د ورئ او ريښمونه جوړه شوې کپړه، ② النِّمَارَ: دَ نمرة جمع ده دَ شرمخ څرمن ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله** لَاتَرْكَبُوا الْخَزَّ

**د خز په مصداق کښې دوه اقوال:** ① که چرې دَ خزنه خالص ريښم مراد وی نوبيابه دَدې استعمال حرام وی

② که دَ پخوانئ زمانې دَ ورئ سره مخلوط څه کپړه مرادوی نوبيابه په کراهت تنزيهي باندې دا حديث محمول وی.

**[۴۳۵۸] د سور زين پوښ ممانعت**

۴۳۵۸— [۴۹] ()[۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - : [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه نه روايت دي[۲] چې نبي کريم ﷺ د سور زين پوښ نه منع فرمايلي ده. [شرح السنه]

**حل اللغات:** ① الْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ: زين پوش او ګدئ، چه دَ سور رنګ وی.

**نوټ:** د ميثرة وضاحت ددې څخه وړاندې حديث نمبر (۴۳۵۸) کښې تيرشو

**[۴۳۵۹] د نبی کريم ﷺ د ويښتا نو سپينوالي**

۴۳۵۹— [۵۰] ()[۱] وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ التَّيْمِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَخْضَرَانِ[۳] وَلَهُ شَعْرٌ قَدْ عَلَاهُ الشَّيْبُ[۴] وَشَيْبُهُ أَحْمَرُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [۵] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ: وَهُوَ ذُو وَفْرَةٍ وَبِهَا رَدْعٌ مِنْ حِنَّاءٍ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابورمثه تيمي رضي الله عنه وايي[۲] چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، نو هغه وخت د حضور ﷺ په بدن دوه شني جامې وې [يعني حضور ﷺ چې کومې دوه جامې اغوستي وې، هغه يا خو د خالص شين رنګ وې يا په هغې کې د شين رنګ کرښې وې] [۳] او د حضور ﷺ د سر او ږيرې په لړو ويښتانو د سپين ږيرې توب

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب (رقم-۴۲۰۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الثوب الأخضر (رقم-۲۸۱۲)والنسائی فی کتاب الزینة/باب لبس الخضر من الثیاب (رقم-۵۳۱۹) واحمد فی المسند: ۲۲۶/۲

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب (رقم-۴۲۰۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الثوب الأخضر (رقم-۲۸۱۲)والنسائی فی کتاب الزینة/باب لبس الخضر من الثیاب (رقم-۵۳۱۹) واحمد فی المسند: ۲۲۶/۲

(يعني د سپينوالي) غلبه وه.[۴] او د حضور ﷺ سپين وېښتان سور رنګ ته مائل وو (ترمذي) [۵] او د ابوداؤد رحمه الله په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفره والا وو (يعنی د حضور ﷺ د سر وېښتان د غوږونو تر نرمۍ وو) او په هغه وېښتانو کې د نکريزو رنګ وو.

**حل اللغات :** ① عَلَاهُ الشَّيْبُ : سپينوالي پرې راغلې وو، ① وَفْرَةٌ: د سر وېخته چه د غوږونو د نرمۍ پورې وی. ④ رَدْغٌ: رنګ، ③ حِنَّاءٌ: نکريزې.

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَخْضَرَانِ:**

**د اخضران په مفهوم کښې دوه اقوال :**

① دا بيخې شنه کپړا وه. دَنبی کريم شين رنګ خوښ وو.

② په هغې کښې شنيې کرښې وې

**قوله:** رَدْغٌ مِنْ حِنَّاءٍ" حنانکريزوته وائی. او ردع دَهغې رنګ ته وئيلې شوې دې يعنی په هغه وېښتو کښې دَنکريزو رنګ وو.

**اشکال:** دَنبی کريم په سر او ږيره مبارکه کښې يو څو وېښته سپين وو چه دَ شلونه زيات نه وو. نوبيا په نکريزو باندې د وېښتو سره کولو څه ضرورت نه وو حالانکه دلته په حديث کښې د وېختو د سره کولو ذکر دې.

**د اشکال جوابونه:** ① په يوڅو وېښتوکښې رنګ مراد وی

② دَ عطرو دَاستعمال دَ وجهې وېښته سره ښکاريدل

③ دا څه وقتی معامله وی. د نبی عليه السلام مستقله طريقه نه وه.

**[۴۳۶۰] د نبی عليه السلام قطري څادراغوستل**

۴۳۶۰—[۵۱] (¹) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- : [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ شَاكِيًا، [۳] فَخَرَجَ يَتَوَكَّأُ عَلَى أُسَامَةَ، [۴] وَعَلَيْهِ ثَوْبُ قِطْرٍ [۵] قَدْ تَوَشَّحَ بِهِ، [۶] فَصَلَّى بِهِمْ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې [۲] چې نبي کريم ﷺ کوم وخت بيمار وو [۳] نو په داسې حالت کې يې بهر [مسجد ته] تشريف راوړو، چې په اسامه رضي الله عنه يې سهاره کړې [ده لګولې] وه، [۴] او په بدن مبارك يې د قطر جامه وه، [۵] چې د خان نه يې چاپيره کړې وه، [۶] بيا حضور ﷺ صحابه و رضي الله عنهم ته مونځ ورکړو. (شرح السنه)

**حل اللغات :** ① شَاكِيًا: د شکايت نه دې، يعنی بيمار وو، ④ يَتَوَكَّأُ: تکيه نې لګولې وه، سهاره نې اخستې وه، ③ قِطْر: دَ بحرين په علاقه کښې دَ يوښار نوم وو. يا په يمن کښې قطر طرف ته نسبت

¹) اخرجه احمد فی المسند: ۲۱۲/۳

دي، ⑨تَوَشَّحَ: تَوَشُّحٌ: دَ بدن نه راتاوولوته توشح وائي. دَ وشاح په شان ني په سر كړي وو وشاح هار او اميل ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ قِطْرِ**

**د قطري په نسبت كښې دوه اقوال:** ① يوقسم څادر ته وائي په كوم كښې چه به سرې كرښې وې او په يمن كښې به جوړيدلو

② قطري دَ قطرطرف ته چه دَ بحرين په علاقه كښې دَ يوښار نوم وو. هغې طرف ته نسبت دې. يعني دا څادر دَ هغه ځائې جوړوو. نن صباقطر دَ يوملك نوم دې

**[۳۳۲] د نبي عليه السلام پيړي جامې اغوستل**

۳۳۲—[۵۲] ()١ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ٢«كَانَ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ثَوْبَانِ ٣ قِطْرِيَّانِ غَلِيظَانِ، ٤وَكَانَ إِذَا قَعَدَ فَعَرِقَ ٥ ثَقُلَا عَلَيْهِ، ٦ فَقَدِمَ بَزٌّ مِنَ الشَّامِ لِفُلَانٍ الْيَهُودِيِّ. ٧ فَقُلْتُ: لَوْ بَعَثْتَ إِلَيْهِ فَاشْتَرَيْتَ مِنْهُ ثَوْبَيْنِ ٨ إِلَى الْمَيْسَرَةِ. ٩ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، ١٠ فَقَالَ: قَدْ عَلِمْتُ مَا تُرِيدُ، ١١ إِنَّمَا تُرِيدُ أَنْ تَذْهَبَ بِمَالِي.

**ترجمه:** ١ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ٢ چې [په يوه زمانه كې] د نبي كريم ﷺ په بدن مبارك چې كومې دوه جامې وې، ٣ هغه قطري وې، او [ډيرې] غټې (پيړې) وې، ٤ حضور ﷺ چې به [زيات وخت] كيناستو، او خوله به پرې راغله، ٥ نو هغه جامې به يې په بدن درنې شوې، [چې د هغې په وجه به حضور ﷺ ته تكليف وو]، ٦ آخر [يوه ورځ] كله چه د فلاني يهودي (چې د هغه نوم دلته نه دې ذكر شوي) د شام نه جامه راغله، ٧ نو ما عرض وكړو كه تاسو ﷺ يو سړي هغه يهودي ته وليږئ، چې د هغه نه دوه جامې واخلي، [نو ښه به وي، تاسو ﷺ به د دې تكليف نه خلاص شئ، كوم چې د دې جامو په وجه تاسو پورته كوئ] ٨ په وعده د فراغت [يعني په دې وعده چې كله د يو ځاى نه څه راشي نو قيمت به اداء كړل شي] ٩ حضور ﷺ [زما دا مشوره قبوله كړه، او] يو سړي يې په مذكوره وعده د جامې اخستلو د پاره هغه يهودي ته وليږلو. ١٠ [هغه سړي يهودي ته رسيدو سره چې كله جامه وغوښتله] نو هغه ورته اوويل ستا چې كومه اراده ده زه په هغې پوهه يم، ١١ ته د دې نه علاوه نور هيڅ نه غواړې، چې دا وخت ته په وعده زما جامه يوسې [بيا وروسته د قيمت د اداء كولو نه انكار وكړې، په ظاهره د دې الفاظو مخاطب هغه سړي وو، ليكن په حقيقت كې د هغې خطاب رسول الله ﷺ ته وو، بيا هغه سړي واپس راغلو، حضور ﷺ

() اخرجه الترمذي في السنن كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرخصة في الشراء إلى أجل (رقم-١٢١٣) والنسائي في كتاب البيوع/باب البيع إلى الأجل المعلوم (رقم-٤٦٢٨) واحمد في المسند: ١٤٧/٦

ته يې د يهودي قول نقل کړو۔

**حل اللغات**: ① قِطْرِيَّانِ: دوه قطری څادرونه، دَ بحرين په علاقه کښې دَ يوښار نوم وو. يا په يمن کښې قطر طرف ته نسبت دی، ② غَلِيظَانِ: د غليظ تثنيه ده، پير، غټ، ③ فَعَرِقَ: خوله به شوی. ④ ثَقُلَا: درنې به شوی، ⑤ بَزٌّ: يو قسم کپړې،

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَذَبَ، ۲ قَدْ عَلِمَ أَنِّي مِنْ أَتْقَاهُمْ ۳ وَآدَاهُمْ لِلْأَمَانَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ۱ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې هغه يهودی دروغ ويلي دي، ۲ او هغه په خپله هم پوهيږي (چې هغه بالکل د دروغ خبره د خپلې ژبې نه ويستلي ده، حقيقت دا دي چې هغه د تورات په ذريعه په دې خبره ښه پوهيږي) چې زه د ټولو خلقو نه زيات متقي او پرهيز ګاريم، ۳ او د هغوئ نه زيات په ښه شان امانت اداء کونکي يم. (ترمذي نسائي)

**حل اللغات**: ⑥ أَتْقَاهُمْ: ددوی دټولو نه زيات تقوی دار، ⑦ وَآدَاهُمْ: او ادا کونکې

**تسهيلات**:

**قوله**: لَوْبَعَثْتَ إِلَيْهِ فَاشْتَرَيْتَ مِنْهُ ثَوْبَيْنِ إِلَى الْمَيْسَرَةِ.

**د لو په ترکيب کښې دوه احتمالات**: ① لو شرطيه دي او دَ شرط جواب محذوف دي ② لود تمنا دپاره دي په دې صورت کښې محذوف ته څه ضرورت پاتې نشو.

**قوله**: أَنِّي مِنْ أَتْقَاهُمْ وَآدَاهُمْ لِلْأَمَانَةِ:

**د نبی عليه السلام امانتداری**: يعنی نبی کريم سرې وراوليږلو هغه په قرض باندې دَ اخستلو خبره اوکړه نوهغه بدبخت يهودی اووئيل چه اوچی ماته پته ده چه ته يا هغه به زما مال خوړل غواړئ کله چه دَ قاصد دَخبرې علم نبی کريم ته اوشو نونبی کريم اوفرمائيل چه يهودی دَ عناد په توګه دروغ وئيلی دی ګنی هغه دَ تورات په ذريعه ښه معلومه ده چه زه دَ ټولو انسانانو نه زيات دَ الله تعالی نه ويريدونکي يم

**[۲۳۳] د سرو دپاره دګلابی رنګ جامو ممانعت**

۴۳۳-[۵۳] (۱) ۱ «وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ۲ رَآنِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ وَعَلَيَّ ثَوْبٌ مَصْبُوغٌ بِعُصْفُرٍ مُوَرَّدًا، ۴ فَقَالَ: " مَا هَذَا " ۵ فَعَرَفْتُ مَا كَرِهَ، ۶ فَانْطَلَقْتُ فَأَحْرَقْتُهُ. ۷ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا صَنَعْتَ بِثَوْبِكَ؟ ۸ قُلْتُ: أَحْرَقْتُهُ. ۹ قَالَ: " أَفَلَا كَسَوْتَهُ بَعْضَ أَهْلِكَ؟ ۱۰ فَإِنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ لِلنِّسَاءِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص رضي الله عنهما وايي ۲ چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی الحمرة (رقم-۴۰۶۸) وابن ماجه فی کتاب اللباس ، باب کراهية المعصفر للرجال (رقم-۳۶۰۳) واحمد فی المسند: ۱۹۶/۲

زه وليدم. [٣] چه په کسم رنګ شوي ګلابي رنګ جامه مې اغوستې وه [٤] نو وي فرمايل چې دا څه دي؟ [٥] زه پوهه شوم چې حضور ﷺ زما دې جامې ته د ناخوښې په نظر کتلي دي. [٦] نو سمدستي لاړم او هغه جامه مې وسوزوله. [٧] ابيا چې د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم) ، نو پوښتنه يې وکړه تا د هغه جامې سره څه وکړو؟ [٨] ما عرض وکړو چې ما هغه وسوزوله. [٩] حضور ﷺ وفرمايل تا هغه جامه خپلې يوې ښځې ته دې وليې نه ورکوله. [١٠] ځکه چې د ښځو د پاره په دې قسم جامې کې څه حرج نشته (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مَصْبُوغٌ : رنګ کړې شوي، ② بِعُصْفُرٍ: په کسم کښې رنګ شوي سره کپړه ③ مُوَرَّدًا: داد ورد نه دې ګلابي رنګ ته وائي يعنې په ګلابي رنګ کښې رنګ کړې شوي سره کپړه

**تسهيلات: قوله**: وَعَلَيَّ ثَوْبٌ مَصْبُوغٌ بِعُصْفُرٍ مُوَرَّدًا:

**د سړو دپاره د سور او زيړ رنګ په استعمال کښې تفصيل**: د ائمه ثلاثه په نزد د سړي دپاره لباس احمر بغير د کراهت نه جائز دې او د احنافو اقوال په دې کښې مختلف دی د بعضو د کلام نه معلوميږي چه مکروه تحريمي او د بعضو بلکه د اکثرو د کلام نه مکروه تنزيهي وغيره وغيره تردې چه يو قول پکښې د استحباب هم دې په شامي کښې د دې پوره تفصيل دې د علامه شامي ميلان زيات نه زيات د کراهت طرف ته معلوميږي. او د سيد الطائفه حضرت اقدس ګنګوهي د تقرير الکوکب الدري عبارت داسې دې (والمذهب في لبس الحمرة والصفرة ان المزعفر والمعصفر ممنوع عنه الرجال مطلقا والحمرة والصفرة غير ذلک. فالفتوى على جوازهما مطلقا لکن التقوى غير ذلک والله تعالى اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب) يعنې د سړو په حق کښې مزعفر او معصفر خو مطلقا ناجائز دی او حمرة او صفرة بيل څيز دې د هغې په باره کښې فتوى د جواز ده اګر چه د تقوى خلاف ده اهـ د دې حاصل هم دا شو چه احمر او اصفر دواړه د سړو په حق کښې خلاف اولى دی (ماخوذ از الدر المنضود)

**[٣٣] د سور کرښيز څادر ذکر**

٣٣—[٥٣] (١) [١] وَعَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمِنًى [٣] يَخْطُبُ عَلَى بَغْلَةٍ [٤] وَعَلَيْهِ بُرْدٌ أَحْمَرُ [٥] وَعَلِيٌّ أَمَامَهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت هلال ابن عامر د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه اوويل [٢] چه ما رسول الله ﷺ په منی کې په خطبه ارشاد فرمايلو وليدلو. [٣] هغه وخت حضور ﷺ په خره سپور وو. [٤] او په بدن مبارك يې د سرو کرښو څادر وو. [٥] او حضرت علي (رض) يې مخې ته ولاړ وو چې د حضور ﷺ الفاظ يې خلقو ته رسول (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① بَغْلَةٍ: خره. ② بُرْدٌ: کرښو والا څادر. ③ يُعَبِّرُ: تعبير بـه نې کولو.

---

(١) اخرجه ابوداود في السنن کتاب اللباس /باب في الرخصة في ذلک (رقم-٤٠٧٣) واحمد في المسند: ٤٧٧/٣

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَلَيْهِ بُرْدٌ أَحْمَرُ:**

دلته دَ برد احمرنه مراد هم هغه دَ كرښو والا څادر مراد دي خالص سره كپړه مرادنه ده. لكه څنگه چې په قاموس كښې ليكلى دى "البرد ثوب مخطط" دَدې نه معلومه شوه چه برد كرښو والا كپړې ته وائى

**قوله: وَعَلِيٌّ أَمَامَهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ:**

**د آواز رسولو د ضرورت وجه:** چونكه دَحج موسم وو گڼره زياته وه په دې وجه چه دَنبى كريم آواز مبارك تركوم ځائى پورې رسيدلې شو دَهغه ځائى نه به وړاندې حضرت على ﷺ دَنبى كريم قول رسولو په دې سره دَمكبرالصوت دَ استعمال قاعده حاصليږى يعنى دَ لاؤډسپيكر دَ استعمال جواز ملاويږى.

**[۳۳۳] د نبى عليه السلام نفاست**

> ۳۳۳—[۵۵] (١) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② «صُنِعَتْ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بُرْدَةٌ سَوْدَاءُ، فَلَبِسَهَا، ③ فَلَمَّا عَرِقَ فِيهَا وَجَدَ رِيحَ الصُّوفِ، ④ فَقَذَفَهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ فرمائي ② چې [يو ځل] د نبي كريم ﷺ د پاره تور څادر تيار كړل شو. كوم چې نبى عليه السلام استعمال كړو، ③ خو چه كله د هغې په وجه پرې خوله راغله. او د هغې د اُون (وړئ) بوي وتل شروع شو، ④ نو حضور ﷺ (د لطافت طبع او د ناگوارئ په بناء) هغه څادر وغورځولو. (ابوداؤد).

**حل اللغات:** ① عَرِقَ: چه خوله شو، ② الصُّوفِ: وړئ، ③ فَقَذَفَهَا: نو اوئې غورزولو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَمَّا عَرِقَ فِيهَا وَجَدَ رِيحَ الصُّوفِ، فَقَذَفَهَا:**

**د وړئ جوړشوې څادر استعمال:** دَ وړنې جوړشوې تور څادروو په دې كښې عمومًا خوله راځي دَ خولې او اوبو لگيدو سره دَ وړنى دَ كپړې نه يوقسم بدبوئى يعنى سوړ بوئى راځى هم دَدغه بدبوئى د وجهې نبى كريم هغه كوزكړوځكه چه دَ نبى كريم معامله خود فرښتو سره وه

**[۳۳۴] د نبى كريم ﷺ احتباء**

> ۳۳۴—[۵۶] (٢) ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ وَهُوَ مُحْتَبٍ بِشَمْلَةٍ ④ قَدْ وَقَعَ هُدْبُهَا عَلَى قَدَمَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

[١]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب فى السواد (رقم-۴۰۷۴) واحمد فى المسند: ۲۱۹/۶
۴۳۶۴ - (وعن عائشة قالت: صنعت) : بصيغة المجهول للنبى - صلى الله عليه وسلم - بردة) : نائب الفاعل (سوداء) : صفتها (فلبسها، فلما عرق فيها وجد ريح الصوف، فقذفها) : أى أخرجها وطرحها (رواه أبو داود) .

[٢]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب فى الهدب (رقم-۴۰۷۵) واحمد فى المسند: ۶۳/۵

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وايي [۲] چې په يوه موقع زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، [۳] نو هغه وخت حضور ﷺ د يو څادر په ذريعه د احتباء په حالت کې ناست وو، [۴] او د هغه څادر غاړې د حضور ﷺ په قدمونو پرتې وې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مُحْتَبٍ: لاسونه راتاوولو سره کيناستل ② شَمْلَة: څادر، ③ هُدْبُهَا: د هغې پلو، لمن.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَهُوَ مُحْتَبٍ بِشَمْلَةٍ

**دتعارض حل:** وړاندې په حديث نمبر (۴۳۱۵) کښې د احتباء څخه منع راغلې وه او دلته نبي عليه السلام په خپله احتباء کړې ده هلته مونږ د احتباء دوه قسمونه بيان کړي وو په هغې کښې يو جائز وو. په دې حديث کښې دجائز صورت ذکر دې

**[۴۳۳۳] ښځې دپاره د شميس اچولو ثبوت**

۴۳۳۳-[۵۴] (¹) [۱] وَعَنْ دِحْيَةَ بْنِ خَلِيفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِقَبَاطِيَّ [۳] فَأَعْطَانِي مِنْهَا قُبْطِيَّةً [۴] فَقَالَ: "اصْدَعْهَا صَدْعَيْنِ [۵] فَاقْطَعْ أَحَدَهُمَا قَمِيصًا [۶] وَأَعْطِ الْآخَرَ امْرَأَتَكَ تَخْتَمِرُ بِهِ". [۷] فَلَمَّا أَدْبَرَ، قَالَ: "[۸] وَأْمُرِ امْرَأَتَكَ أَنْ تَجْعَلَ تَحْتَهُ ثَوْبًا [۹] لَا يَصِفُهَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت دحيه ابن خليفه رضی الله عنه وايي [۲] چې ايو ځل] رسول الله ﷺ ته قبطي جامې راغلې، [۳] نو د هغې نه يې يوه قبطي جامه ماته راکړله. [۴] او وې فرمايل چې دا وشلوه دوه ټکړې يې کړه، [۵] په هغې کې د يوې نه ځان د پاره قميص جوړ کړه، [۶] او دويمه ټکړه خپلې ښځې ته ورکړه، چې ځان د پاره څنې پړونی جوړ کړي، [۷] بيا چې دحيه رضی الله عنه يعنی زه واپس تلم، نو حضور ﷺ وفرمايل [۸] او خپلې ښځې ته هدايت وکړه چې د دې قبطي جامې لاندې يوه بله کپړه ولګوي، [۹] چې [د دې جامې د باريک کيدو په وجه] د هغې ويښتان او بدن په نظر رانشي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① بِقَبَاطِيَّ: د مصرې کپړې يو قسم. ② اصْدَعْهَا: دا اوشلوه او دوه ټکړې ترې کړه ③ تَخْتَمِرُ: د دې نه لوپټه جوړه کړه ④ لَا يَصِفُهَا: معلوم نه شي، ښکاره نه شي

**تسهیلات:**

**قوله:** ثَوْبًا لَا يَصِفُهَا

**د نرۍ جامې لاندې دشميس استعمال:** يعنی کپړه د نرئی کيدو وجهې چه د بدن خط اوخال معلوم نه شي ښکاره نه شي. په دې وجه د دغه نرئی کپړې د لاندې دې څه بله کپړه واغوستلې شي دې د پاره چه بدن پټ شي اوکه يو کس د بدن بيان کول غواړي نو چه بيان اونه کړي. په دې وجه معلومه شوه چه د ښځې د پاره نرئی کپړې اغوستل منع دی.

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في لبس القباطي للنساء (رقم-۴۱۱۶) واحمد في المسند: ۲۰۵/۵

## [۴۳۶۷] د پړوني په سر یو وَل ورکول کافي دي

۴۳۶۷-[۵۸] (۱)① «وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- ② أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- دَخَلَ عَلَيْهَا ③ وَهِيَ تَخْتَمِرُ ④ فَقَالَ: "لَيَّةً ⑤ لَا لَيَّتَيْنِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د بي بي ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دي ② چې [یو ځل] نبي کریم ﷺ د هغې کره تشریف راوړو، ③ هغه وخت هغې لوپټه په سر کړې وه. ④ حضور ﷺ وفرمایل چې لوپټه به دي په سر یو وَل اچولې وه، ⑤ د دویم وَل ضرورت نه وو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَخْتَمِرُ: لوپټه ئې په سر کړې وه، ② لَيَّةً: یو ځل تاوول ③ لَيَّتَيْنِ: دوه ځل تاوول.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالَ: "لَيَّةً لَا لَيَّتَيْنِ:

**بلاضرورته د زیاتی جامې اغوستلو کراهت:** یعنې په سربانديٰ دَ لوپټې یو پلو اچول دَ ستردَ پاره کافي دی په دووه پلوونو اچولوکښې اسراف دې داسې نه ووکول. حضرت ام سلمة رضی الله عنها لوپټه په سر باندې اینغښتې وه په کوم کښې چه دَ پټکی مشابهت هم وو اوداسې کول بې ضرورته هم وو په دې وجه نبی کریم منع کړه.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۴۳۶۸] د لنګ اوچت ساتلو حکم

۴۳۶۸-[۵۹] (۲)① عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ② «مَرَرْتُ بِرَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ وَفِي إِزَارِي اسْتِرْخَاءٌ. ④ فَقَالَ: "يَا عَبْدَ اللهِ! ارْفَعْ إِزَارَكَ" ⑤ فَرَفَعْتُهُ، ثُمَّ قَالَ: "زِدْ" فَزِدْتُ. ⑥ فَمَا زِلْتُ أَتَحَرَّاهَا بَعْدُ. ⑦ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: إِلَى أَيْنَ؟ ⑧ قَالَ: "إِلَى أَنْصَافِ السَّاقَيْنِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي ② چې [یوه ورځ] زه رسول الله ﷺ ته نزدې تیر شوم. ③ هغه وخت زما لنګ زوړند وو. ④ حضور ﷺ وفرمایل چې اې عبدالله! خپل لنګ اوچت کړه. ⑤ ما لږ شان اوچت کړو. حضور ﷺ وفرمایل چې لږ نور یې هم اوچت کړه، ما نور اوچت کړو ⑥ ابیا ابن عمر رضی الله عنهما وویل] د حضور ﷺ د دې حکم نه پس زه برابر دې عمل [یعنې د لنګ اوچت ساتلو] طرف ته متوجه یم. ⑦ بعضې خلقو پوښتنه ورنه وکړه چې تاسو خپل لنګ څومره اوچت ساتئ؟ ⑧ وې فرمایل چې د پنډو تر نیمئ (مسلم)

**حل اللغات:** ① اسْتِرْخَاءٌ: زوړند. ② أَتَحَرَّاهَا: ما به اوچت ساتلو. ③ أَنْصَافِ: نیمائی.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب فی الاختمار (رقم-۴۱۱۵) واحمد فی المسند: ۶/۲۹۶

(۲) اخرجه مسلم فی صحیحه رقم الحدیث ۴۷/ ۲۰۸۶

**تسهیلات:**

**قوله:** فَمَا زِلْتُ أُعَزِّرُهَا بَعْدُ

**د نبی علیه السلام د حدیث اهتمام:** یعنی دَ دغه اندازې ما خیال ساتلو چه دَدې نه ازار ښکته لاړ نه شي خکه چه نبي کریم هم دغه خوښ کړې وو معلومه شوه چه دَ نصف ساق نه ازار پورته ساتل پکاردی آخری حد دادې چه دَ ګیټونه پورته وی دې نه ښکته نه وی

**نوټ:** دَ ګیټونه ښکته لنګ یا پرتوګ ساتلو تفصیل وړاندې د حدیث نمبر(۴۳۳۲) په شرح کښې تیرشوې دي

**[۴۳۳۹] تر پنړکو لاندې دازار خوړندولو د حرمت اصل تکبر او غرور دې**

۴۳۳۹—[۲۰] ( ) ١ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ "«مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ ٣ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". ٤ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِزَارِي يَسْتَرْخِي ٥ إِلَّا أَنْ أَتَعَاهَدَهُ. ٦ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكَ لَسْتَ مِمَّنْ يَفْعَلُهُ خُيَلَاءَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړي چې د تکبر له مخه خپل لنګ یا پرتوګ د پنړکو لاندې زوړندوي. ٣ د قیامت په ورځ به الله تعالی هغه ته [د رحمت په نظر] ونه ګوري. ٤ په دې اوریدو سره حضرت ابوبکر ﷺ عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ [کله کله داسې کیږي چې زما د قصد او ارادې نه بغیر] زما لنګ زوړند وي [او پنړکو ته یا د پنړکو لاندې ته رسیږي] ٥ خو دا چې زه هر وخت د دې خیال ساتم [یعني که زه هر وخت دې طرف ته متوجه یم، نو یقیناً زما لنګ لاندې نشي زوړندیدلې. لیکن د بعضې شرعي یا طبعي بندیزونو په وجه دې طرف ته هر وخت خیال ساتل ممکن نه دي. نو په داسې صورت کې زما د پاره څه حکم دې؟] ٦ حضور ﷺ ورته وفرمایل ته په هغه خلقو کې نه یې چې د تکبرله مخه خپل لنګ یا پرتوګ زوړندوی (بخاري)

**حل اللغات:** ① خُيَلَاءَ: غرور، تکبر، ② يَسْتَرْخِي: رازوړندیږي

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ:

**د ابوبکر رضی الله په ژړه کښې دالله ویره:** دَ لنګ زوړندولو وعید چه کله ابوبکرصدیق ﷺ واؤریدو نوهغوی پریشان شو اوعرض ئې اوکړو یارسول الله ﷺ زه ډیرزیات کوشش کوم چه لنګ راښکته نه شي لیکن دَ خیټې دَ غټوالي دَ وجهې کله کله راښکته کیږي نوآیا په دې کښې ګناه شته؟

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «لو کنت متخذا خلیلا» (رقم-۳۶۶۵) والنسائی فی کتاب الزینة/باب إسبال الإزار(رقم-۵۳۳۵)

**نوټ:** دګیتونه ښکته لنګ یا پرتوګ ساتلو تفصیل وړاندې د حدیث نمبر (۴۳۳۲) په شرح کښې تیرشوې دې.

## [۴۳۷۰] د لنګ وهلو یوه مسنون طریقه

۴۳۷۰ - [۶۱] (¹) [١] وَعَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: [٢] «رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - يَأْتَزِرُ [٣] فَيَضَعُ حَاشِيَةَ إِزَارِهِ مِنْ مُقَدَّمِهِ عَلَى ظَهْرِ قَدَمِهِ، [٤] وَيَرْفَعُ مِنْ مُؤَخَّرِهِ، [٥] قُلْتُ: لِمَ تَأْتَزِرُ هَذِهِ الْإِزْرَةَ؟ [٦] قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْتَزِرُهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** [١] او حضرت عکرمه رحمه الله وایي [٢] چې ما حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په لنګ اغوستو لیدلې وو [٣] چې د لنګ غاړه به ئې د خپلو قدمونو په شاه باندې کیخودله [٤] او د هغې شاتنۍ غاړه به یې د پړکو نه اوچته ساتله [٥] نو ما حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته اوویل تاسو [کله کله] داسې لنګ ولې تړئ؟ [٦] وې فرمایل ما رسول الله ﷺ دغه شان لیدلې دې. چې حضور ﷺ به هم کله کله دغه شان لنګ تړلو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَأْتَزِرُ: لنګ ئې تړلو، ② فَيَضَعُ: نو ساتل به ئې، ③ حَاشِيَةَ: غاړه، پلو.

**تسهيلات:**

**قوله:** رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْتَزِرُهَا:

**د لنګ وهلو یوه مسنون طریقه:** په حدیث الباب کښې د لنګ وهلو یوه طریقه ذکر ده چه د مخکې حصې کناره (غاړه) دې لاندې وی او ورستی حصه دې بره وی. دارنګ د نبی کریم ﷺ نه کله کله لنګ وهل ثابت دی.

## [۴۳۷۱] د پټکی تړلو حکم

۴۳۷۱ - [۶۲] (²) [١] وَعَنْ عُبَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «عَلَيْكُمْ بِالْعَمَائِمِ: [٣] فَإِنَّهَا سِيمَاءُ الْمَلَائِكَةِ، [٤] وَأَرْخُوهَا خَلْفَ ظُهُورِكُمْ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عباده رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] پټکئ تړل ضروري وګڼئ. [٣] خکه چې پټکئ د فرشتو علامت دی (په دې طور چې د جنګ بدر په موقعه کومې فریښتې چې د مسلمانانو د مدد دپاره نازلې شوې وې، هغوئ پټکی تړلې وو، څرنګه چې الله تعالی فرمایې اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلَافٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ) [٤] او د پټکی شمله په خپلې شا پریږدئ، اخکه چې ملائکې هم په دې هیئت سره راغلې وې (بیهقي في شعب الايمان)

**حل اللغات:** ① عَلَيْكُمْ: ضروری دی، لازم دی په تاسو، ② سِيمَاءُ: علامت، نښه، ③ وَأَرْخُوهَا: او پریږدئ

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس /باب في قدر موضع الازار (رقم-٤٠٩٦)
(²) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٦٢٦٢

**قوله**: عَلَيْكُمْ بِالْعَمَائِمِ:

**دحديث مطلب**: دا خبره مخکې تيره شوې ده چې پټکې وهل د لباس سنت دې.د مانځه سنت نه دې ددې وجې د پټکی اهتمام کول دې.اونبی علیه السلام هم د پټکی وهلو ترغیب ورکړې دې.

**قوله**: فَإِنَّهَا سِيمَاءُ الْمَلَائِكَةِ:

**پټکی د فرشتوپه نښه کیدو کښې دوه اقوال**: ① پټکې د فرښتو یو خاص علامت دې او ددې مطلب دا دې چه د رحمت فرښتی د خپل شان لائق نوری پټکې تړي،

② کله چه د رحمت فرښتی انسانی شکل کښې راځی نو پټکی سره راځی، لکه څنګه چه په رواياتو کښې راځي چه د غزوه بدر په موقع د مسلمانانو مدد دپاره چه کومی فرښتی راغلی وي نو هغوي زیړ رنګ پټکی وهلی وو او شملی ئي د دواړو ولو په مینځ کښې پرېښودلی وي

## [۴۳۷۲]زنانو دپاره د نرو(باريکو) جامو کراهت

۴۳۷۲—[۶۳] () ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- ② «أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- دَخَلَتْ عَلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ، ④ فَأَعْرَضَ عَنْهَا، ⑤ وَقَالَ: "يَا أَسْمَاءُ! إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ ⑥ لَنْ يَصْلُحَ أَنْ يُرَى مِنْهَا إِلَّا هَذَا وَهَذَا، ⑦ وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ① او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دې ② چې [يوه ورځ] بي بي اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ په خدمت کې په داسې حالت کې راغله، ③ چې د هغې په بدن باريکې جامې وې، ④ حضور ﷺ په دې ليدو سره مخ ورنه واړولو، ⑤ او وې فرمايل چې اې اسماء! (رضي الله عنها) ښځه چې د حيض حالت ته ورسيږي [يعني هر کله چې هغه بالغه شي] ⑥ نو دا ورته هيڅ کله درست نه دي چې د هغې د بدن يوه حصه دې وليدل شي، علاوه د دې نه او د دې نه ⑦ دا ويلو سره حضور ﷺ د خپل مخ او د لاسونو طرف ته اشاره وکړه. (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① رِقَاقٌ: نرئ، باريکې، ② أَعْرَضَ: مخ ئې واړولو، ③ بَلَغَتِ الْمَحِيضَ: اورسيږي حالت د حيض ته يعنی بالغه شی

**تسهيلات**:

**قوله**: أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-:

**د اسماء تعارف**: اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما دحضرت عائشه رضي الله عنها خور او د پيغمبر عليه السلام ښيني وه. د بالغ کيدونه پس هغې نرئی کپړې اچولې وې. نبی کريم منع کړه.

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب فيما تبدى المرأة من زينتها (رقم-٤١٠٤)

**قوله**: إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ

**دمحیض څخه مراد**: دې څخه مراد بلوغ دې خکه چه دَ حیض راتلل دَبالغ کیدو علامت دې دَدې حدیث نه معلومه شوه چه کومې ښځې داسې نرئی کپړې اچولې وی چه دَهغې لاندې دَهغې بدن ښکاری نوهغه ښځه په حقیقت کنبې دَبرینډې ښځې په حکم کنبې ده کومه چه دکاسیات عاریات مصداق ده.

**قوله**: وَأَشَارَإِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ:

**د ښځې دپاره د مخ د ښکاره کولوحکم**: دې نه مراددَ ښځې مخ او تلی دی په وجه دَمجبورئی دَښځې دَپاره دا ښکاره کول مجبوری ده. دَدې مطلب دانه دې چه سړو له دَدې طرف ته کتل جائزدی البته که دَفتنې محل وی نودَښځې دَپاره بغیردَ څه وجهې مخ ښکاره کول منع کړې شوی دی.

**[۴۳۷۳]د نوې جاموا غوستلو دعا**

۴۳۷۳—[۱۳] ()۱ وَعَنْ أَبِي مَطَرٍ، قَالَ: ۲«إِنَّ عَلِيًّا اشْتَرَى ثَوْبًا بِثَلَاثَةِ دَرَاهِمَ، ۳فَلَمَّا لَبِسَهُ قَالَ: ۴ "الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي رَزَقَنِي مِنَ الرِّيَاشِ ۵ مَا أَتَجَمَّلُ بِهِ فِي النَّاسِ ۶ وَأُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي "۷ قَالَ: هٰكَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابو مطر رضی الله عنه وایې ۲ چې یوه ورځ حضرت علي (رض) یوه جامه د دریو درهمو په عوض کې واغستله، ۳ چې هغه یې واغوسته، نو هغه اوویل ۴ چې ټول تعریفونه الله جل جلاله لره دي چې هغه ماته د زینت والا د اسبابو نه هغه څیز عطا کړو، ۵ چې د هغې په ذریعه مونږ د خلقو مخکې آرائش هم کوو، ۶ او ستر هم پټوو، ۷ بیا حضرت علي (رض) اوویل چې دغه شان ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه هم د جامې د اغوستلو نه پس دا حمد وثنا ویل اوریدلي دي (احمد)

**حل اللغات**: ① الرِّيَاشِ: دَ ریش جمع ده لباس ته وائی ② أَتَجَمَّلُ: زه پرې ځان ښائسته کوم، ③ أُوَارِي: ځان پټوم، ستر او عورت پټوم.

**تسهیلات**:

**نوټ**: دحدیث مضمون آسان دې د مسنون دعا لوستل دی.

---

[1] اخرجه احمد فی المسند: ۱۵۷/۱

## [۴۳۴] د نوې کپړو په اچولو مسنون دعا ویل

۴۳۴ـ[۲۵] ()[۱] ۞ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «لَبِسَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ثَوْبًا جَدِيدًا، [۳] فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي [۴] وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي، [۵] ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۶] "مَنْ لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا فَقَالَ: [۷] الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي، [۸] وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي [۲] چې [يوه ورځ] حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه نوې جامه واغوسته، [۳] نو دا يې اوويل چې ټول تعريفونه الله جل جلاله لره دي چې ماته يې دا جامه د اغوستلو د پاره راکړله، چې د دې په ذريعه زه خپل ستر هم پټوم. [۴] او په خپل ژوند کې د خلقو په مخکې خپل آرائش هم کوم، [۵] بيا هغه اوويل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوريدلي دي، [۶] چې کوم سړي د نوې جامې د اغوستلو نه پس داسې اووايي [۷] چې ټول تعريفونه الله جل جلاله لره دي چې هغه ماته دا جامه د اغوستلو د پاره راکړله. چې د دې په ذريعه زه خپل ستر هم پټوم. [۸] او په خپل ژوند کې د خلقو په مخکې خپل آرائش هم کوم،

**حل اللغات:** ① أُوَارِي: خان پټوم، ستر او عورت پټوم،

ثُمَّ عَمَدَ إِلَى الثَّوْبِ الَّذِي أَخْلَقَ فَتَصَدَّقَ بِهِ، كَانَ فِي كَنَفِ اللَّهِ، وَفِي حِفْظِ اللَّهِ وَفِي سِتْرِ اللَّهِ حَيًّا وَمَيِّتًا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او بيا هغه جامه چې زړه شوي ده (يعني کومه جامه چې هغه د خپل بدن نه خکته کړي ده) چاته د الله جل جلاله د پاره ورکړي، نو هغه به خپل ژوند کې او د مرګ نه پس (يعني په دنيا کې هم او په آخرت کې هم) د الله جل جلاله په پناه کې وي، د الله جل جلاله په محافظت کې به وي. او د الله جل جلاله د عفوې او مغفرت په پرده کې به وي (احمد ترمذي ابن ماجه، او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** ② أَخْلَقَ: چه زړه شوې ده ③ كَنَفِ اللَّهِ: د الله په پناه کښې ④ سِتْرِ اللَّهِ: په پرده (د مغفرت) دالله کښې،

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ګرانو لغاتو حل په حل اللغات کښې اوشوا او دباقي حديث مضمون آسان دې چې د مسنون دعا لوستل دي.

---

() اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۶۰) وابن ماجه فی كتاب اللباس . كتاب الطب/باب ما يقول الرجل إذا لبس ثوبا جديدا (رقم-۳۵۵۷) واحمد فی المسند: ۴۴/۱

[۴۳۴۵] د ښځو د پاره د باريکي جامي ممانعت

۴۳۴۵ – [۲۶] ()[۱]وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ أَبِي عَلْقَمَةَ، عَنْ أُمِّهِ قَالَتْ: [۲] دَخَلَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَلَى عَائِشَةَ[۳]وَعَلَيْهَا خِمَارٌ رَقِيقٌ[۴]فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ[۵]وَكَسَتْهَا خِمَارًا كَثِيفًا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت علقمه ابن ابي علقمه د خپل پلار نه روايت کوي، هغه بيان وکړو [۲] چې يوه ورځ د حضرت عبدالرحمن ابن ابي بکر ﷛ لور حفصه ﷞ بي بي عائشه ﷞ ته په داسې حالت کې راغله،[۳] چې د هغې باريك پړوني په سر وو،[۴] بي بي عائشې ﷞ ورته هغه باريك پړوني وشلوو،[۵] او يو غټ پړوني يې ور په سر کړو (مالك)

**حل اللغات:** ①رَقِيقٌ: نرئ، باريک، ②فَشَقَّتْهُ: نو اوني شلولو، ③وَكَسَتْهَا: ورته ئې په سر کړو، ④خِمَارًا: څادر، لوپټه، ⑤كَثِيفًا: پيړه، درنه

**تسهيلات:**

**قوله:** فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ وَكَسَتْهَا خِمَارًا كَثِيفًا:

**د نرۍ لوپټې د اغوستلو ممانعت:** چونکه د زنانؤ دپاره په شريعت کښې د پردې حکم دې ددې وجې د دې لباس به داسې وی چې د دې بدن پټوی په دې حديث کښې عائشې رضی الله عنها د حفصه بنت عبدالرحمن د لور لوپټه نرۍ لوپټه اوشلوله او هغې ته ئې پيړه او ډکه لوپټه ورکړه د يو مسلمان په ملک کښې تصرف کول په عامو حالاتو کښې ټيک نه دی ليکن دلته حضرت عائشې رضی الله عنها دا تصرف د دې وجې اوکړو چې د هغوی په نظرکښې د دې دا عمل د شريعت خلاف وو ددې څخه زمونږ د زمانې نانؤ لره عبرت اخستل پکار دې چې د نورو جامو اولوپټو څخه خان اوساتی نن صبا خو لوپټې دومره نرۍ دی چې د سر ويخته ترې ښکاری اود ويښتو پټول ضروری دې نود داسې لوپټو استعمالول حرام دی دويمه دا که په دغه لوپټه کښې مونځ کوی اوسر ئې ښکاری نو مونځ ئې هم نه کيږی ځکه چې په مانځه کښې د ستر پټول فرض دی اودفرض په پاتې کيدو باندې مونځ نه کيږی

[۴۳۴۶] په عهد رسالت کښې د عائشې ﷞ فقر او زهد

۴۳۴۶–[۲۷] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ بْنِ أَيْمَنَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [۲]«دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ[۳]وَعَلَيْهَا دِرْعُ قِطْرِيٍّ [۴]ثَمَنُ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ[۵]فَقَالَتْ: ارْفَعْ بَصَرَكَ إِلَى جَارِيَتِي، انْظُرْ إِلَيْهَا[۶] فَإِنَّهَا تُزْهَى أَنْ تَلْبَسَهُ فِي الْبَيْتِ[۷] وَكَانَ لِي مِنْهَا دِرْعٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۸] فَمَا كَانَتِ امْرَأَةٌ تُقَيَّنُ بِالْمَدِينَةِ[۹]إِلَّا أَرْسَلَتْ إِلَيَّ تَسْتَعِيرُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1]) اخرجه مالک فی الموطا كتاب اللباس /باب ما يكره للنساء لبسه من الثياب (رقم-۶)
[2]) اخرجه البخاری فی كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب الاستعارة للعروس عند البناء (رقم-۲۶۲۸)

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالواحد ابن ایمن د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه اوویل[۲] چه [یوه ورځ] زه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر شوم.[۳] هغه وخت د هغې په بدن (د مصر جوړه شوي) د قطري جامې قميص وو.[۴] چې د هغې قيمت پنځه درهمه وو.[۵] بي بي عائشې رضي الله عنها د خبرو په دوران کې ماته وفرمايل چې لږ زما دي وينزې ته خو وګوره.[۶] دا څومره غرور کوي، دا [په کور کې هم] د دې جامې اغوستلو ته تياره نه ده. [څه به يي بهر وا چوي].[۷] حالانکې د رسول الله ﷺ په زمانه کې زما سره د دې قسم (يعني قطري) جامې يو قميص وو.[۸] او په مدينه کې چې به کومې ښځې (په خپل واده کې يا د بل چا د واده په وخت) خپل آرائش کول غوښتل.[۹] نو هغې به څوك راليږلو سره هغه قميص زما نه عاريتًا غوښتلو (بخاري)

**حل اللغات:** ① دِرْعٌ: قميص. ② قِطْرِيٌّ: دَ بحرين په علاقه کښې دَ يوښار نوم وو يا په يمن کښې قطر طرف ته نسبت دې. ③ تُزْهَى: سپک ګڼړی، خوشحاله نه دی. ④ تُقَيَّنُ: دَ تقيين نه دَ مجهول صيغه ده ډول سينګار ته وائي يعني ښائسته کولې به شوه ⑤ تَسْتَعِيرُهُ: چه عاريتًا ئې غوښتلو

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَا كَانَتِ امْرَأَةٌ تُقَيَّنُ بِالْمَدِينَةِ إِلَّا أَرْسَلَتْ إِلَيَّ تَسْتَعِيرُهُ

**د واده دپاره په عارية جامې غوښتل:** چه کله دَ واده دَ شپې دَپاره ښځه ښائسته کولوسره په ډول سينګار باندې خاوند کره ليږلې شوه نوهغه ښځې به زما طرف ته قاصدراليږلو اودا قميص به ئې عارية غوښتلو دې دپاره چه په دغې سره زينت حاصل کړی په نن زمانه کښې دومره بدلون راغلو چه دَ شريف زاديانونه علاوه يوه وينزه په کورکښې دننه دَدې کپړې لباس اغوستلو دَپاره تياره نه ده

**[۴۳۷۷] نبی کريم ﷺ او ريښمي قباء**

۴۳۷۷-[۲۸] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «لَبِسَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمًا قَبَاءَ دِيبَاجٍ [۳] أُهْدِيَ لَهُ، [۴] ثُمَّ أَوْشَكَ أَنْ نَزَعَهُ، فَأَرْسَلَ بِهِ إِلَى عُمَرَ، [۵] فَقِيلَ: قَدْ أَوْشَكَ مَا انْتَزَعْتَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ [۶] فَقَالَ: "نَهَانِي عَنْهُ جِبْرَائِيلُ" [۷] فَجَاءَ عُمَرُ يَبْكِي، [۸] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَكَرِهْتَ أَمْرًا وَأَعْطَيْتَنِيهِ، [۹] فَمَا لِي؟ [۱۰] فَقَالَ: "إِنِّي لَمْ أُعْطِكَهُ تَلْبَسُهُ، [۱۱] إِنَّمَا أَعْطَيْتُكَهُ تَبِيعُهُ". [۱۲] فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْ دِرْهَمٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي[۲] چې رسول الله ﷺ يوه ريښمي قباء واغوسته،[۳] چې د هديې په طور ورته راليږل شوي وه.[۴] ليکن سمدستي هغه قباء يې د بدن مبارك نه خکته کړه او حضرت عمر رضي الله عنه ته يې وليږله.[۵] صحابه ؤ رضي الله عنهم په دې ليدو سره عرض

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة /باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال والنساء، وخاتم الذهب والحرير على الرجل، وإباحته للنساء، وإباحة العلم ونحوه للرجل ما لم يزد على أربع أصابع(رقم-۱۶ - (۲۰۷۰)

وكړو چي يا رسول الله! ﷺ تاسو دا قباء دومره زر ولي خكته كړه؟[۶] حضور ﷺ وفرمايل چې زه جبرائيل علیه السلام د دې د اغوستلو نه منع كړم، [د دې نه معلومه شوه، چې حضور ﷺ هغه قباء د ريښمي جامې د حرمت د نازليدو نه مخكې اچولې وه] .[۷] بيا چې حضرت عمر رضی الله عنه ته دا واقعه معلومه شوه، نو هغه په ژړا سره حاضر شو[۸] او عرض يې وكړو چې يا رسول الله! ﷺ كوم څيز چې تاسو ﷺ ناخوښه كړې دي (يعني د هغه ريښمي قباء اغوستل) هغه مو ماته مرحمت كړې ده [چې زه يې واچوم][۹] [په دې صورت كې به] زما څه حال وي؟ [۱۰] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې ما هغه قباء تا ته د دې د پاره نه وه درليږلې چې ته هغه واغونده،[۱۱] بلكه د دې د پاره مې درليږلې وه چې ته هغه خرڅه كړه،[۱۲] نو حضرت عمر رضی الله عنه هغه قباء په دوه زره درهمه خرڅه كړله. (مسلم)

**حل اللغات:** ① قَبَاءً: چوغه، ② دِيبَاجٍ: ريښم، ③ نَزَعَهُ: اوئې ويستله، ④ تَبِيعُهُ: چه ته ئې خرڅه كړې.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْشَكَ أَنْ نَزَعَهُ.

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى نبى كريم د يرزر دغه قبه دَ اچولونه پس اوويستله. په دې باندې چا تپوس اوكړو (قدأوشك الخ) يعنى تاسو دا قبه دومره زر ولې اوويستله؟ نبى كريم اوفرمائيل چه هم اوس حضرت جبرائيل منع اوكړه. دَحرمت نه وړاندې نبى كريم اچولې وه بيادَ حرمت حكم راتلوسره نبى كريم كوزه كړه اوحضرت عمر رضی الله عنه ته ئې هديه كړه

**قوله:** يَارَسُولَ اللهِ أَكْرِهْتَ أَمْرًا وَأَعْطَيْتَنِيهِ، فَمَالِي؟

**دعمر رضى الله عنه د ژړا وجه:** حضرت عمر رضی الله عنه په ژړا سره راغلوچه يوڅيز حرام وو نو ولې زه دَ دين په اعتبارسره دومره كمزورې يم چه حرام به استعمالوم؟ نبى كريم تسلى وركړه چه دَاغوستلودَپاره نه بلكه دَخرڅولودَپاره مې دركړې وه.

## [۴۳۲۸] په تنرى كښې د ريښمو د لګولو اجازت

۴۳۲۸-(۲۹) (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ ثَوْبِ[۳] الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ[۴] فَأَمَّا الْعَلَمُ وَسَدَى الثَّوْبِ[۵] فَلَا بَأْسَ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنه وايي[۱] چه په دې كې څه شك نشته چې رسول الله ﷺ د هغه جامې د اغوستلو نه منع فرمايلې ده،[۳] كومه چې د خالص ريښمو وي،[۴] البته د ريښمو ګوټ يا بيل [چې د څلور ګوتو نه زيات نه وي] او هغه جامه چې د هغې په لاندې حصه كې ريښم وي،[۵] د هغې په استعمالولو كې څه حرج نشته (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْمُصْمَتِ: د ريښموهغه جامې په اوږد والي او پلنوالى دواړه تارونه ئې د ريښمو وي.

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب اللباس/باب الرخصة فى العلم وخيط الحرير (رقم-۴۰۵۵) واحمد فى المسند: ۲۱۸/۱

④ اَلْعَلَمُ: د جامو دپاسه ګلونه او بوټي، ⑤ سَدَي: د کپړې په اوږدوالي کښې چې کوم تارونه اوستعماليږي هغې ته تانا وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثَوبِ الْمُصْمَتِ

**د مصمت لغوي تحقيق:** دا هغه کپړې ته وائي چې تنسته (اوږد تار) او (پلن تار) اتيرن دواړه ئې د ريښمو وي

**د اوږد اوپلن تار عربي نومونه:** ① د کپړې په اوږدوالي کښې چه کوم تار استعماليږي هغې ته وائي سدی (تانا) وائي

② د کپړې په پلنوالي کښې چه کوم تار استعماليږي هغې ته لحمة (بانا) وائي

**په کپړو کښې اصل:** (يعنی تنسته او اتيرن ورته پوښتوکښې وائی) دَهرې يوې کپړې اصل بنياد لحمه وی سدی اصل نه دې لهذا که فرض کړه لحمه دَ ريښم وی نو کپړه به ريښمی حسابيږی اوکه لحمه دَ سپنږسی وی نو کپړې ته به دَ سپنږسی ونيلې شی هم دغه اشاره په دې حديث کښې ده.

**[۴۳۲۷] د الله تعالی د نعمت ښکاره کولو ترغيب**

٤٣٢٧-[٤٠] ()① وَعَنْ أَبِي رَجَاءٍ، قَالَ: ②«خَرَجَ عَلَيْنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، ③وَعَلَيْهِ مِطْرَفٌ مِنْ خَزٍّ، وَقَالَ: ④ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "مَنْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ نِعْمَةً، ⑤ فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ أَنْ يَرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو رجاء تابعي رحمه الله وايي② چې [يوه ورځ] حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه د خپل کور نه د وتلو سره زمونږ خواته راغې ،③ نو هغه وخت د هغه په بدن د خزّ مطرف (شال) وو. هغه اوويل④ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل الله تعالی جل جلاله چې کوم سړي په خپل نعمت سره سر فراز کړي.⑤ نو الله تعالی جل جلاله دا خبره خوښوي چې د هغه په بنده د هغه د نعمت اثر وليدل شي. (احمد)

**حل اللغات:** ① مِطْرَفٌ: دَ خز يوخاص قسم کرښو والا څادر (شال)، ② خَزٌّ: د وړئ او ريښمونه جوړه شوې کپړه،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَلَيْهِ مِطْرَفٌ مِنْ خَزٍّ:

**اشکال:** اوس دلته سوال دادې چه کله دَ مطرف په مفهوم کښې خز (ريښم) داخل وو نو بيا په حديث کښې دَ مِنْ خَزٍّ دَ ذکر کولو څه ضرورت وو؟

() اخرجه احمد في المسند: ٤/٤٣٨

**د اشکال جواب:** دلته دَخز نه مراد ريښم نه دى بلکه دَ خز اطلاق څنګه چه په خالص ريښم باندې کيږى دغه شان دَدې اطلاق دَ ريښمو او ورئى دواړو نه جوړې شوې کپړې باندې هم کيږى دلته هم دغه کپړه مرادده اوهم دَدې وجهې دَدې په استعمال کښې جواز راغلې دې بهرحال دلته دَمطرف نه يوخاص قسم ښائسه دَ ګلونو والا شال مراد دې. په کوم چه دَ جائزمقدار پورې دَ ريښمو ګلونه تکوهلې شوې وو.

**[۴۳۸۰] په مباحاتو کې چې څه غواړې خورئ اوڅکئ يې ليکن د اسراف او تکبر نه ځان ساتئ**

۴۳۸۰–[۴۱] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] كُلْ مَا شِئْتَ، وَالْبَسْ مَا شِئْتَ، [٣] مَا أَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ: سَرَفٌ وَمَخِيلَةٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.

**ترجمه:** [١] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چې هغه وايي [٢] (د جائز او مباح څيزونو نه) چې څه غواړې خوره [او څکه] او اغونده يې، [٣] تر څو چې دا دوه څيزونه په تاسو کې سرايت ونه کړي، يعنى اسراف او تکبر. (بخاري في ترجمه باب)

**حل اللغات:** ① سَرَفٌ: اصراف، ② وَمَخِيلَةٌ: غرور، تکبر.

**تسهیلات:**

**قوله: مَا أَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ: سَرَفٌ وَمَخِيلَةٌ:**

**په خوراک څکاک کښې د دوو څيزونو څخه ځان ساتل:** يعنى ترکومې پورې چه په خوراک څښاک کښې دوه خصلتونه اسراف اوتکبر شامل نه وى ترهغه وخته پورې خوراک څښاک مباح دې کله چه اسراف راغلو يا تکبر راغلو نواوس به په دغه مباح کښې کراهت راځى بيا به دَ دغه توسع ګنجائش نه پاتې کيږى.

**[۴۳۸۱] د دوو څيزونو په وجه په خوراک څکاک کښې حرمت راتلل**

۴۳۸۱–[۴۲] (٢) [١] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [٢] «كُلُوا، وَاشْرَبُوا [٣] وَتَصَدَّقُوا، [٤] وَالْبَسُوا [٥] مَا لَمْ يُخَالِطْهُ إِسْرَافٌ وَلَا مَخِيلَةٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې هغه اوويل چه رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د خپل حاجت او ضرورت په قدر خورئ او څکئ يې، [٣] او [کوم څيز چې ستاسو د حاجت او ضرورت نه زائد وي، هغه د الله ﷻ په لار کې]

(١) اخرجه البخاري تعليقا فى كتاب اللباس /باب قول الله تعالى: ﴿قل من حرم زينة الله التى أخرج لعباده﴾ [الأعراف: ٣٢] وقال النبي صلى الله عليه وسلم: «كلوا واشربوا والبسوا وتصدقوا، فى غير إسراف ولا مخيلة» وقال ابن عباس: " كل ما شئت، والبس ما شئت [ص:١٤١]. ما أخطأتك اثنتان: سرف، أو مخيلة "

(٢) اخرجه النسائى فى السنن كتاب الزكاة /باب الاختيال فى الصدقة(رقم-٢٥٥٩) واحمد فى المسند:٢/١٨١

خرج کړئ،۴ او (د اغوستلو د مباح ځيزونو نه چې څه غواړئ) اغوندي يې،۵ تر څو چې په هغې کې اسراف او تکبر نه وي. (احمد، نسائي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① إِسْرَافٌ: د حد نه تجاوز کول، ② مَخِيلَةٌ: غرور، تکبر

**نوټ:** ددې حديث مضمون وړاندې حديث نمبر (۴۲۸۱) کښې تېر شو

**[۴۳۸۲] جماتونو ته د سپينو جامو استحباب**

۴۳۸۲-[۴۳] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِنَّ أَحْسَنَ مَا زُرْتُمُ اللّٰهَ فِي قُبُورِكُمْ وَمَسَاجِدِكُمُ الْبَيَاضُ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابودرداء ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل هغه بهترينه جامه چې د هغې په اغوستلو سره تاسو په خپلو قبرونو او په مسجدونو کې د الله تعالی ﷻ سره ملاقات کوئ، سپينه جامه ده. (ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ أَحْسَنَ مَا زُرْتُمُ اللّٰهَ فِي قُبُورِكُمْ:

**کفن د پاره سپينه جامه غوره ول:** په قبرونو کښې په سپينو کپړو کښې دَ الله تعالی سره دَ زيارت کولو مطلب دادې چه سړې کله مری نو بهتراو احسن دادی چه دَ ده کفن دې سپين وی اګرچه دَ مجبورئی په وجه بل رنګ هم جائزدې. په قبر کښې دَ سړی مخامخ کيدل خپل رب سره کيږی ځکه چه قبرصرف دَ يوکندې نوم نه دې بلکه عالم برزخ مراددې

**قوله:** وَمَسَاجِدِكُمْ:

**جمات ته د تلو د پاره د سپينو جامو استحباب:** سړې چه کله دَ مونځ کولو دَپاره جمات ته ځی نو په مونځ کښې دَالله تعالی زيارت اوملاقات کيږی. په دغه وخت کښې هم سپين لباس کښې ملاقات بهتر او احسن دې دَدې حديث نه دَ سپين لباس فضيلت ثابتيږی چه دَخپل رب دَ ملاقات دَپاره دَ ټولونه ښکلې لباس هم دغه سپين لباس دې

[۱] اخرجه ابن ما جه في السنن کتاب اللباس، باب البياض من الثياب (رقم-۳۵۶۸)

# [ ۱ ] بَابُ الْخَاتَمِ

## د ګوتمې د اچولو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① جواز لبس خاتم الفضة: ۴، ۱، ۵، ۶، ۱۳.

② موضع الخاتم من اليدين: ۱، ۶، ۹، ۱۰.

③ موضع الخاتم من الأصابع : ۱، ۷، ۸.

④ نقش خاتم النبي ﷺ : ۱، ۴.

⑤ فص الخاتم: ۱، ۵، ۶.

⑥ النهي عن تختم غير الفضة : ۱، ۲، ۳ ، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳ ، ۱۴ ، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳.

⑦ النهي عن الجرس: ۱۵، ۱۶ أورده طرداً.

⑧ جواز استعمال الذهب لعذر: ۷.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۳۸۳] سرو د پاره د سپینو زرو د ګوتمې د اچولو جواز

۴۳۸۳-[۱] (۱) [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «اِتَّخَذَ النَّبِيُّ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ» [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: وَجَعَلَهُ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى، ثُمَّ أَلْقَاهُ [۴] ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ [۵] نُقِشَ فِيهِ: "مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ" [۶] وَقَالَ: "لَا يَنْقُشَنَّ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هٰذَا" [۷] وَكَانَ إِذَا لَبِسَهُ جَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲] چې نبي کريم ﷺ د سرو زرو ګوتۍ جوړه کړه. [۳] او په يو روايت کې دا هم دي چې ګوتۍ يې په ښي لاس کړه. او بيا يې وغورځوله. [۴] بيا يې د سپينو زرو ګوتۍ جوړه کړه. [۵] چې د محمد رسول الله ﷺ الفاظ يې ورباندې نقش کړل. [۶] او وې فرمايل چې يو شخص دې زما د دې مهر په شان الفاظ (په خپله ګوتۍ کې) نه نقش کوي. [۷] دغه شان رسول الله ﷺ چې به کومه ګوتمې په ګوته کوله. نو غمې به يې د لاندې طرف ته ساتلو (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:** ① وَرِقٍ: سپين زر. ② لَا يَنْقُشَنَّ: نقش دې نه جوړوی. ③ فَصَّهُ: غمې

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب اللباس /باب: هل يجعل نقش الخاتم ثلاثة أسطر (رقم-۵۸۷۹) ومسلم فى كتاب الأشربة /باب طرح خاتم الذهب (رقم-۵۳ - (۲۰۹۱) والنسائى فى كتاب الزينة /باب صفة خاتم النبى صلى الله عليه وسلم ونقشه (رقم-۵۲۷۶) وابن ماجه فى كتاب اللباس . باب نقش الخاتم (رقم-۳۶۳۹)

**تسهیلات:**

**قوله:** ثُمَّ أَلْقَاهُ، ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ نُقِشَ فِيهِ: "مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ

**د سرو زرو د چاندئ ګوتمه استعمالول:** رسول الله ﷺ دَ سرو زرو ګوتمه هغه وخت جوړه کړې او استعمال کړې وه کوم وخت چه دَ سرو دَپاره دَ سرو زرو استعمالول حرام نه وو بیا کله چه دَ سرو زرو استعمال حرام شو نونبی کریم هغه اوغورزوله

**د سرو دپاره د چاندئ څخه علاوه ګوتمې د استعمال عدم جواز:** امام محمد ﷫ په موطا کښې لیکلی دی چه دَ سرو دَپاره څنګه چه دَ سرو زرو ګوتمه ناجائز ده دغه شان دَ اوسپنې، کانسی، پیتلو وغیره ګوتمه هم ناجائز ده لهذا دَ سرو دَپاره دَ چاندئی نه علاوه بل هیڅ قسم ګوتمه جائز نه ده

**د ښځو دپاره د چاندئ ګوتمې د اچولو حکم:** دَ ښځودَپاره دَ سرو زرو ګوتمه جائز ده اودَ چاندئی مکروه ده څکه چه په دې کښې دَ سړو سره مشابهت دې آوکه یوښځه دَ چاندئی په ګوتمه باندې څه شین رنګ اوخیژوی نودا به زیات بهتر وی

**قوله:** وَكَانَ إِذَا لَبِسَهُ جَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ

**د ګوتمې د اچولو طریقه:** مناسب دی چه په ګس لاس کښې ئې واچوی اودَ ګوتمې غمې دې دَتلی طرف ته کړی. په ښی لاس کښې دَ ګوتمې اچولو احادیث موجود دی مګر دَ بعضې علماؤ په نیز هغه دَ سړو په حق کښې منسوخ دی. مګر په سفرالسعادة کښې لیکلی دی چه دواړه جائز دی.

**صرف د یوې ګوتمې اجازت:** علماؤ لیکلی دی چه دَ چاندئی مختلف قسم ګوتمې جوړول او په کورکښېساتل خوجائز دی لیکن دَ استعمال دَپاره صرف دَ یوې ګوتمې استعمالول جائز دی دَدوو یا دریو په یوځائی دَ استعمالول جائز نه دی

**بادشاهانوته د خطونو لیکلودپاره د ګوتمې جوړول:** نبی کریم چه کله دَ صلح حدیبیه نه پس عام بادشاهانوته خطونه لیکل نونبی کریم ته اوونیلې شو چه دبادشاهانو دا ضابطه ده چه مهرشوې خط پخپله کولاوولوسره لولی دَمهرنه بغیرخط نه قبلوی په دې وجه نبی کریم دَ چاندئی ګوتمه جوړه کړه او دَهغې په غمی کښې ئې دا عبارت نقش کړو "محمدرسول الله" لکه څنګه چه په راتلونکی حدیث نمبر(۴۳۸٦)کښې تفصیل راځی

**قوله:** لَا يَنْقُشْ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هَذَا:

**د مهر د محفوظ کولو لیوت:** یعنی هیڅوک دې زمادَ مهر په شان الفاظ نه نقش کوی ښکاره خبره ده چه دا یواصولی قاعده او ضابطه ده چه دَ مهر یوسرکاری حیثیت وی که دَهرسړی دَ مهر نقش دَنبی کریم دَمهر په شان کیدل نودَ نبی کریم دَ مهر خصوصی سرکاری حیثیت

به متاثر کیدو اودعامو بادشاهانو په نیز به دَدې مهر خصوصیت مشتبه جوړیدو. په دې وجه نبی کریم منع اوفرمائیله. که چرې نبی کریم نه منع کول نوصحابه کرامو به دا سنت گنړلوسره خپلول اودَ رسول الله ﷺ په عمل باندې به ئې عمل کولو

## [۴۳۸۴] دَ سرودَپاره دَ سروزرو گوتمه دا چولو حرمت

۴۳۸۴–[۲] (١)[١] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ، وَالْمُعَصْفَرِ، [۳]وَعَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ، [۴]وَعَنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي الرُّكُوعِ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي (رض) وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د قسي کپړو، په کُسم کې د رنګ شوي کپړو، [۳] او د سرو د ګوتۍ په ګوته کولو نه منع کړي ده، [۴] او حضور ﷺ په رکوع کې د قرآن ويلو نه هم منع فرمايلي ده. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الْقَسِّيِّ: دَ قس طرف ته منسوب دې کوم چه دَمصریوښاردې دَ ریښمویوقسم کپړه. ② الْمُعَصْفَرِ: په کسم رنګ شوې، يو قسم سور رنګ چه د وونو بوټو نه حاصلیږی. ③ تَخَتُّمِ: د ګوتمې په ګوته کول.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَعَنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي الرُّكُوعِ:

**په رکوع کښې د قرآن نه لوستلودوه مطلبونه:** ① په رکوع اوسجده کښې دَ تسبیحاتو په ځائی قرآن پاك مه لولئی. دَالله تعالی عظیم کلام دې دَدې دَ ادب تقاضاداده چه داپه قیام اوقعود کښې لولئی.

② قرآن په داسې تادئی او بې اطمينانئی سره مه لولئی چه څه حصه په قیام کښې اولوستلې شی او قراءت مکمل کولونه بغیر زر زر رکوع ته لاړشی اوڅه حصه په رکوع کښې اولولی دامطلب راجح دې.

## [۴۳۸۵] د سروزرو گوتمې اچولو باره کښې وعيد

۴۳۸۵–[۳] (٢)[١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - [۲]«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ فِي يَدِ رَجُلٍ، [۳]فَنَزَعَهُ، فَطَرَحَهُ، فَقَالَ: [۴] "يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ إِلَى جَمْرَةٍ مِنْ نَارٍ [۵] فَيَجْعَلُهَا فِي

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب النهی عن لبس الرجل الثوب المعصفر(رقم-۲۹ - (۲۰۷۸) وابوداود فی کتاب اللباس/باب من کرهه (رقم-۴۰۴۴) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة خاتم الذهب (رقم-۱۷۳۷) والنسائی فی کتاب الزینة/باب النهی عن لبس خاتم الذهب (رقم-۵۲۶۷) واحمد فی المسند: ۴۱۱/۱

[2]) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب طرح خاتم الذهب (رقم-۵۲ - (۲۰۹۰)۴۳۸۵ - (وعن عبد الله بن عباس أن رسول الله - صلی الله علیه وسلم - رأی خاتما من ذهب فی ید رجل) : أی اصبعه (فنزعه) : أی فأخرجه (فطرحه) : وهذا أبلغ فی باب الإنكار ; ولذا قدمه - صلی الله علیه وسلم فی قوله: " «إذا رأی أحد منكم منكرا فليغيره بيده» " الحديث.

بيده؟ ⑥ فَقِيلَ لِلرَّجُلِ بَعْدَمَا ذَهَبَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ⑦ خُذْ خَاتَمَكَ انْتَفِعْ بِهِ. ⑧ قَالَ: لَا وَاللهِ، لَا آخُذُهُ أَبَدًا ⑨ وَقَدْ طَرَحَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه وايي ② چې [يوه ورځ] رسول الله ﷺ د يو سړي په لاس کې د سرو ګوتۍ وليده. ③ نو د هغه د لاس نه هغه ګوتۍ خکته کوښو سره يې وې غورځوله، بيا يې وفرمايل ④ چې اخومره د تعجب خبره ده چې] په تاسو کې يو سړي د دوزخ د اور سکروټه حاصلوي. ⑤ او هغه په خپل لاس کې اچوي [يعنى كوم سړي چې په خپل لاس کې د سرو يو شي اچوي، د هغه لاس به د دوزخ په اور کې سوزول کيږي. په دې صورت کې د يو سړي د سرو ګوتۍ اچول ګويا په خپل لاس کې د دوزخ د اور سکروټه اچول دي] ⑥ بيا چې رسول الله ﷺ دهغه خاي نه تشريف يوړلو. نو هغه سړي ته اوويل شو ⑦ چې خپله هغه ګوتۍ پورته کړه او د هغې نه فائده واخله. [يعنى پکار دي چې هغه خرڅه کړې او که غواړې خپلې ښځې ته يې ورکړه] ⑧ ليکن هغه سړي اوويل چې نه. قسم په خداي زه دا نه پورته کوم. ⑨ حالانکه رسول الله ﷺ دا غورځولي ده. مسلم

**حل اللغات:** ① فَنَزَعَهُ: نو اوني ويستله. ② فَطَرَحَهُ: پس اوني غورزوله. ③ جَمْرَةٍ: د اور سروټکه. سکروټه.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا وَاللهِ، لَا آخُذُهُ أَبَدًا وَقَدْ طَرَحَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**د صحابۀ نبى عليه السلام سره عشق:** دکوم سړي د لاس نه چه نبى کريم ګوتمه کوزه کړې وه و غورزولې نې وه هغه ته چا اووئيل چه اوس خپله ګوتمه اوچته کړه اودا په څه فائده کښې راوله مثلاً خرڅه نې کړه يا نې ښځې ته ورکړه دغه وفادار عاشق رسول اوفرمائيل چه کومه څيز پخپله نبى کريم زما د لاس نه غورزولې دې کله به هم هغې ته لاس اونه نکوم

**[۴۳۸۶] په مهر نبوت کښې درې کرښې**

۴۳۸۶ - [۴] (؟) ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- ② «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَرَادَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى كِسْرَى وَقَيْصَرَ وَالنَّجَاشِيِّ ③ فَقِيلَ: إِنَّهُمْ لَا يَقْبَلُونَ كِتَابًا إِلَّا بِخَاتَمٍ ④ فَصَاغَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَاتَمًا حَلْقَةً فِضَّةٍ ⑤ نُقِشَ فِيهِ: مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ⑥ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: كَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلَاثَةَ أَسْطُرٍ: ⑦ (مُحَمَّدٌ) سَطْرٌ، وَ(رَسُولُ) سَطْرٌ، وَ(اللهِ) سَطْرٌ.

**ترجمه:** ① او د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي ② چې نبي کريم ﷺ [د صلح حديبيي نه پس

[1] اخرجه البخارى فى كتاب اللباس/باب اتخاذ الخاتم ليختم به الشىء. أو ليكتب به إلى أهل الكتاب وغيرهم (رقم-۵۸۷۵) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب فى اتخاذ النبى صلى الله عليه وسلم خاتما لما أراد أن يكتب إلى العجم (رقم-۵۸-۲۰۹۲) وابوداود فى كتاب الترجل/باب ما جاء فى اتخاذ الخاتم (رقم-۴۲۱۴) والترمذى فى كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى نقش الخاتم (رقم-۱۷۴۸)

مدينې ته راتلو سره] کسرٰي (د فارس بادشاه) او قيصر (د روم بادشاه) او نجاشي [د حبشې بادشاه] ته [د اسلام د دعوت ورکولو د پاره] د خطونو ليږلو اراده وکړله، [۳] نو عرض ورته وشو، چې [د مروجه قاعدې مطابق] دا بادشاهان هغه خط قبلوي، [يعنی مستند يې ګڼي] په کوم چې مهر لګيدلې وي، [۴] نو رسول الله ﷺ د سپينوزرو حلقې والا ګوتۍ جوړه کړله، [۵] چې په هغې کې محمد رسول الله الفاظ ليکل شوی وو (مسلم) [۶] او د بخاري رحمه الله په يو روايت کې دا منقول دي چې په هغه ګوتۍ کې کوم الفاظ کنده شوي وو، هغه په دريو کرښو کې وو، [۷] داسې چې په يوه کرښه کې [چې د ټولو نه لاندې وه] د محمد لفظ وو، په مينځ کرښه کې د رسول ﷺ لفظ وو، او [په يوه د ټولو د پاسه په] کرښه کې د الله لفظ وو.

**حل اللغات:** ① خَاتَمًا: ګوتمه، ② حَلْقَةَ فِضَّةٍ: تاؤ راتاؤ (رينګ) د سپينو زرو وو.

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلَاثَةَ أَسْطُرٍ:**

**د مهر نبوی درې کرښې:** يعنی جدا څه غمې نه وو بلکه اصل چاندی پخپله دَ دې غمې وو دَ خانله غمی ګوتمې ذکر هم په احاديثوکښې راتلونکې دې. په مهرنبوی کښې چه کوم الفاظ نقش وو دَ هغې نقش داسې جوړشوې وو.

الله

رسول

محمد

(الله پورته بيا لاندې رسول بيا محمد) هم دا امام بخاری رحمه الله جدا جدا درې کرښې ګرځولې دی چه محمد يوکرښه ده کوم چه دَ ټولو نه لاندې دې. دې نه پاس په دويمه کرښه کښې لفظ دَرسول دې اودَ دې دَپاسه لفظ دَالله دې په دې کښې دَ مراتبِ ادب لحاظ ساتلې شوې دې.

**[۴۳۸۶] د نبی کريم ﷺ د ګوتمی جوړښت**

۴۳۸۶—[۵] ()[۱] وَعَنْهُ [۲] «أَنَّ نَبِيَّ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ، [۳] وَكَانَ فَصُّهُ مِنْهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې [۲] چې د نبي کريم ﷺ ګوتۍ د سپينو زرو وه، [۳] او د هغې غمې هم د سپينو وو (بخاري)

**حل اللغات:** ① فَصُّهُ: غمې د ګوتمې،

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب فص الخاتم (رقم-۵۸۷۰) وابوداود فی کتاب الترجل /باب ما جاء فی اتخاذ الخاتم (رقم-۴۲۱۷) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء ما یستحب فی فص الخاتم (رقم-۱۷۴۰) والنسائی فی کتاب الزینة/باب صفة خاتم النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۵۱۹۸) واحمد فی المسند: ۲۶۶/۳

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ، وَكَانَ فَصُّهُ مِنْهُ

**د مهر نیوی غمی:** فص غمی ته وائی اومنه مطلب دادې چه غمې جدا د څه اوسپني نه وو بلکه پخپله هم د چاندئی یوه حصه غمې وو هم په دې باندې پورتنی عبارت نقش اوکنده وو.

**[۴۳۸۸] په ښي لاس کښې د ګوتمې اچول**

**۴۳۸۸–[۲] (۱) ۞ وَعَنْهُ ۞ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَبِسَ خَاتَمَ فِضَّةٍ فِي يَمِينِهِ، ۞ فِيهِ فَصٌّ حَبَشِيٌّ ۞ كَانَ يَجْعَلُ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** ۞ او د حضرت انس ﷛ نه دا هم روایت دې ۞ چې نبي کریم ﷺ د سپینو ګوتۍ په خپل ښي لاس کې واچوله، ۞ چې د هغې غمې حبشي [یعنی عقیق وو] ، ۞ او د حضور ﷺ د ګوتۍ غمې به د ورغوي طرف ته وو، [یعنی حضور ﷺ به خپله ګوتۍ داسې اچوله چې د هغې غمې والاحلقه به د ورغوي جانب ته وه].

**تسهيلات:**

**قوله:** فِيهِ فَصٌّ حَبَشِيٌّ:

**د غمی د حبشوغځه د کیدو مطلب:** یعنی د ګوتمې غمې د عقیق وو چونکه د عقیق غریه حبشه کښې واقع دې په دې وجه د هغې طرف ته منسوب کولوسره حبشی اوونیلې شو یا حبشی ونیلوسره تور رنګ مراداخستې شوې دې چه د ګوتمې غمې تور وو.

**دتعارض اشکال:** د دې روایت په ظاهره د مخکینی روایت سره تعارض دې په کوم کښې چه ونیلی شوی دی چه غمې جدا نه وو اوزیر بحث روایت کښې دی چه غمې جدا د عقیق جوړشوې وو؟

**د تعارض جواب:** د دې جواب دادې چه دا د یوې ګوتمې خبره نه ده بلکه د ډیرو ګوتمو قصه ده بعضو سره غمې وو بعضې کښې غمې د جدا اوسپنې وو.

**قوله:** كَانَ يَجْعَلُ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ:

**دلاس دلته طرف ته غمې ساتل:** یعنی نبی کریم به د تواضع زهد تقوىٰ اوترک زینت د وجهې د ګوتمې غمې د تلی طرف ته ساتلو. د نبی کریم ګوتمه به د ګس لاس خنصر(کچه ګوته) کښې وه.

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب فی خاتم الورق فصه حبشی (رقم-۶۲ - (۲۰۹٤) وابوداود فی کتاب الترجل /باب ما جاء فی اتخاذ الخاتم (رقم-٤۲۱۶)والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی خاتم الفضة (رقم-۱۷۳۹) والنسائی فی کتاب الزینة/باب تحریم الذهب علی الرجال (رقم-۵۱۵۶) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب نقش الخاتم (رقم-۳۶٤۱) واحمد فی المسند:۲۰۹/۳

[۴۳۸۹] د کس لاس په لحچه ګوته د ګوتمې اچول

۴۳۸۹-[۷] (¹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي هَذِهِ، [۳] وَأَشَارَ إِلَى الْخِنْصِرِ مِنْ يَدِهِ الْيُسْرَى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چه د نبي كريم ﷺ ګوتې په دې ګوته كې وه. [۳] حضرت انس رضي الله عنه په دې ويلو سره د چپ لاس د خچنۍ ګوتې طرف ته اشاره وكړه. (مسلم)

**نوټ:** د دې حديث مضمون د دې څخه وړاندې حديث نمبر ۴۳۸۸ په تشريح كښې تير شو هلته ئې وضاحت اوګورئ.

[۴۳۹۰] په مينځنۍ اومسواكه ګوته كښې د ګوتمې د اچولو ممانعت

۴۳۹۰-[۸] (²) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَانِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ أَتَخَتَّمَ فِي إِصْبَعِي هَذِهِ أَوْ هَذِهِ، [۳] قَالَ: فَأَوْمَأَ إِلَى الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِيهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي (رض) وايي چې رسول الله ﷺ زه د دې نه منع كړې يم چې زه په خپله دې ګوته كې يا په دې ګوته كې ګوتۍ واچوم، [۲] راوي وايي چه حضرت علي (رض) په دې ويلو سره مينځنۍ ګوتۍ او هغې ته نژدې والا ګوتې، [يعنى د شهادت د ګوتې] طرف ته اشاره وكړله. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ أَتَخَتَّمَ فِي إِصْبَعِي هَذِهِ أَوْ هَذِهِ

**په مينځنۍ او مسواكه ګوته د ګوتمې اچولو كراهت:** دَ ګوتمې دَ اچولو مستحب طريقه داده چه دګس لاس په كچه ګوته كښې واچولې شي په مينځنۍ او مسواكه كښې دَ اچولو ممانعت راغلې دې لكه څنګه چه په زير بحث حديث كښې دى لهذا دا مكروه تنزيهى دى خكه چه داسې اچول دَ نبى كريم نه ثابت نه دى نه دَ صحابه كرامو نه ثابت دى اونه دَ تابعينو نه ثابت دى. دغه شان په غټه ګوته كښې اچول هم ثابت نه دى.

**نوټ:** دا پورتنى پابندى اوممانعت دَ سړو دَپاره دې دَ ښځودَپاره ممانعت نشته دې. هغوى چه دَدواړو لاسونو په كومه ګوته كښې هم اچوى تول جائز دى.

(¹) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب فى لبس الخاتم فى الخنصر من اليد (رقم-۶۳ - (۲۰۹۵)
(²) اخرجه مسلم فى كتاب الأشربة/باب فى النهى عن التختم فى الوسطى والتى تليها (رقم-۶۵ - (۲۰۹۵) والنسائى فى كتاب الزينة/باب النهى عن الخاتم فى السبابة (رقم-۵۲۱۰) وابن ماجه فى كتاب اللباس، باب التختم فى الإبهام (رقم-۳۶۴۸) واحمد فى المسند: ۱/۱۲۴

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۹] د نبی کریم ﷺ په خپل ښی لاس کښې ګوتمه اچول

۴۳۴۰—[۹] ( )[۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبدالله ابن جعفر رضي الله عنه وايي [۲] چې نبي کريم ﷺ به ګوتۍ په خپل ښي لاس کې اچوله (ابن ماجه)

۴۳۴۱—( )[۱] وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ عَنْ عَلِيٍّ.

**ترجمه:** [۱] او ابوداؤد او نسايي دا روايت د حضرت علي رضي الله عنه نه نقل کړي دي

**نوټ:** ددې حديث شرح په راروان حديث نمبر (۴۳۹۳) کښې راروان دي

## [۳۴۰] په ګس لاس کښې ګوتمه اچول

۴۳۴۲—[۱۰] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَخَتَّمُ فِي يَسَارِهِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي [۲] چه نبي کريم ﷺ به ګوتۍ په خپل چپ لاس کې اچوله (ابوداؤد)

**تسهيلات: قوله:** يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ:

**تعارض:** په دې حديث او په تېرحديث نمبر (۴۳۹۲) کښې په ظاهره تعارض معلومېږي؟

**د تعارض جواب** اول به نبی کريم ﷺ په ښی لاس کښې اچوله بيا ئی دښی لاس په ځائی په ګس لاس کښې اچول شروع کړه او ګس لاس کښې اچول بهتر دی

## [۳۴۱] سرو باندې د ريښمو او سرو زرو حرمت

۴۳۴۳—[۱۱] ( )[۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَخَذَ حَرِيرًا فَجَعَلَهُ فِي يَمِينِهِ، [۳] وَأَخَذَ ذَهَبًا فَجَعَلَهُ فِي شِمَالِهِ، [۴] ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ هَذَيْنِ حَرَامٌ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن والنسائی فی کتاب الزينة /باب موضع الخاتم من اليد ذکر حديث علی. وعبد الله بن جعفر (رقم-۵۲۰٤) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب التختم باليمين (رقم-۳۶٤۷)

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی التختم فی اليمين أو اليسار (رقم-٤۲۲۶) والنسائی فی کتاب الزينة /باب موضع الخاتم من اليد ذکر حديث علی. وعبد الله بن جعفر (رقم-۵۲۰۳)

[۳] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی التختم فی اليمين أو اليسار (رقم-٤۲۲۷)

[٤] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب فی الحرير للنساء (رقم-٤۰۵۷) والنسائی فی کتاب الزينة /باب تحريم الذهب علی الرجال (رقم-۵۱٤٤) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب لبس الحرير والذهب للنساء (رقم-۳۵۹۵) واحمد فی المسند: ۱/۹۶

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي (رض) فرمايي [۲] چې [يوه ورځ] نبي كريم ﷺ ريښمي جامه راواخسته او هغه يې په خپل ښي لاس كې اونيوله، [۳] دغه شان سره زر يې راواخسته، اوهغه يې په خپل چپ لاس كې ونيول، [۴] بيا يې وفرمايل چې زما د امت د سړو د پاره دا دواړه ځيزونه حرام دي. (احمد، ابو داود، نسائى)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ هَذَيْنِ حَرَامٌ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي:

**په ښپه ارته كښې د سروزرو ګوتمه اچول:** زمونږ په علاقه هشتغر اوپېښور كښې دا رواج دې چې كله د يو هلک او جينۍ کوژدن اوشي. نواول د هلک د كور خلق د جينۍ كور ته لاړشي او جينۍ ناوې كړي اودهلک د كور خلقو باندې پې (شيدو) اوڅكوي. اوهغوى ورته څه پيسې وركړي په عرف كښې دغې پيسو ته ګوټ وائي. اوددې روسته بيا د هلک د كور خلق د جينۍ كور ته لاړ شي هغوى د هلک دپاره د سرو زرو ګوتمه جوړه كړې وى هغه هلک ته په ګوته كښې واچوى. دې ته (ښپه ارته) وائي اوبيا ههلک هغه د سرو زرو ګوتمه استعمالوى دا رسم او رواج د احاديثو خلاف دې. زمونږ عالمانو ته پكار دى چې په دې غلطه طريقه باندې د احاديثو په رڼا كښې رد اوكړي. چې عوام خبر شي او د عالمانو غاړه هم خلاصه شي.

**[۳۴۵] په كم مقدار كښې د سرو زرو د استعمالولو جواز**

۴۳۹۵ — [۱۲] (¹) [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْ رُكُوبِ النُّمُورِ [۳] وَعَنْ لُبْسِ الذَّهَبِ إِلَّا مُقَطَّعًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت معاويه ﷺ نه روايت دې [۲] چې رسول الله ﷺ د شرمخ د څمړې په زين د سوريدو نه منع وفرمايله، [۳] دغه شان حضور ﷺ د سړو د پاره د سرو زرو د اچولو نه منع وفرمايله، خو دا چې هغه په ډير كم مقدار كې وي. (ابو داود، نسائى)

**حل اللغات:** ① النُّمُور: د شرمخ يا د پړانګ څرمن ② مُقَطَّعًا: ټكړې، ډير كم مقدار،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا مُقَطَّعًا:

**د كم مقدار سروزرو استعمال:** دَ سرو زرو په تختو او ټكړو باندې دَ مقطع اطلاق كړې شوې دې مراد كم مقدار سره زر دى لكه څنګه چه دكم مقدار ريښمو اجازت دې دغه شان دَ ډير كم مقدار سرو زرو دَ استعمال هم اجازت دې لكه

---

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب ما جاء فى الذهب للنساء (رقم-۴۲۳۹) والنسائى فى كتاب الزينة/باب تحريم الذهب على الرجال (رقم-۵۱۵۰) واحمد فى المسند: ۹۳/۴

**د سروزرو دکم مقدارمثالونه:** ① دَ کهرئی په ډائل وغیره کښې دَ سرو زرو څه ذرات وی داقلیل مقدار حرام نه دې.
② دَ سرو زرو میخ ئې ټکوهلې وی
③ چه دَ تورې په ټوپئی او لاسکی باندې وی
④ ګوتمه یا وسله وغیره له دَ سرو زرو اوبه ورکړې شوی وی
⑤ دَ سرو زرو معمولی شان تار په څه څیزکښې استعمال کړې شوی وی
هم دا دَ مقطعًا الفاظ سره مستثنٰی ګرځولې شوی دی.

**[۳۳۴] دپیتلو او د اوسپني د ګوتمی د استعمالولو مما نعت**

۳۳۴-[۱۳] (۱) ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ② «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ لِرَجُلٍ عَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ شَبَهٍ: ③ "مَالِي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الْأَصْنَامِ؟" ④ فَطَرَحَهُ، ⑤ ثُمَّ جَاءَ، وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ حَدِيدٍ، ⑥ فَقَالَ: "مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ؟" ⑦ فَطَرَحَهُ. فَقَالَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! مِنْ أَيِّ شَيْءٍ أَتَّخِذُهُ؟ ⑧ قَالَ: "مِنْ وَرِقٍ وَلَا تُتِمَّهُ مِثْقَالًا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت بریده ﷺ نه روایت دي ② چې [یوه ورځ] نبي کریم ﷺ یو سړي ته (چې د پیتل ګوتۍ یې په ګوته کړې وه) وفرمایل ③ چې ماته څه شوي دي؟ چې زه په تا کې د بتانو بوي بیاموم [یعنی حضور ﷺ دا خبره د هغه سړي په مخکې په طور د تعریض وفرمایله، ځکه چې په عام طور سره به د پیتلو بتان جوړول کیدل]، ④ نو هغه سړي د حضور ﷺ دا ناګواري لیدو سره هغه ګوتۍ اوخکلو سره وغورځوله، ⑤ بیا چې هغه سړي بیا راغې، نو د اوسپني ګوتۍ یې اچولې وه، ⑥ حضور ﷺ هغه لیدو سره ورته وفرمایل چې ما له څه شوي دي؟ چې زه په تا د دوزخیانو زیور وینم [یعنی حضور ﷺ دا خبره هم بطورِ تعریض په دی بناء وفرمایله، چې په کفارو کې ځیني خلق په دنیا کې د اوسپني ځیزونه اغوندي، یا د دې ارشاد نه دې طرف ته اشاره وه چې کافرانو ته په دوزخ کې چې کوم طوق او سلاسل اچول کیږي، هغه به د اوسپني وي، ځکه د اوسپني ګوتۍ اچول د دوزخیانو مشابهت اختیارول دي]، ⑦ نو هغه سړي هغه ګوتۍ هم خکته کولو سره وغورځوله، او عرض یې وکړو چې یا رسول الله! ﷺ بیا زه د څه شي ګوتۍ جوړه کړم؟ ⑧ حضور ﷺ ورته وفرمایل چې د سپینو زرو او هغه سپین زر هم چې پوره مثقال نه وي (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** ① شَبَهٍ: پیتل، تانبه، ② رِيحَ: بوئی، ③ الْأَصْنَامِ: د صنم جمع ده، بت ته وائی. ④ فَطَرَحَهُ: نو اوئې غورزوله، ⑤ حِلْيَةَ: کالی، ⑥ وَرِقٍ : سپین زر، چاندی.

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی خاتم الحدید (رقم-۴۲۲۳) والنسائی فی کتاب الزینة /باب مقدار ما یجعل فی الخاتم من الفضة (رقم-۵۱۹۵)

[۱] وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ - رَحِمَهُ اللّٰهُ: وَقَدْ صَحَّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ فِي الصَّدَاقِ [۲] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِرَجُلٍ: "«الْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ»"

**ترجمه:** [۱] محي السنه فرمايي چه د ښځي د مهر باره کې د حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه صحيح روايت منقول دي [۲] نبي کريم ﷺ يو سړي ته وفرمايل (چي د نکاح کولو خواهشمند وو) چې د ښځي د مهر د پاره د مال د قِسم نه يو شي تلاش کړه، اګر که هغه د اوسپني ګوتۍ وي.

**حل اللغات:** ⓒ الصَّدَاقِ: مهر،

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا لِي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الْأَصْنَامِ؟:

**بتانوته د ريح د نسبت وجه:** چونکه پيتل او تانبې نه عموماً بت جوړولې شی په دې وجه ئې دَ بوئی ذکر اوکړې شو.

**قوله:** مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ؟:

**د دوزخيانو کالی وليلو په توجيه کښې دوه اقوال:** ① دَ اوسپنې ګوتمې لره دَ دوزخيانو کالی او ګرخولې شو خکه چه دوزخ والادا په دنياکښې استعمالوی

② دې طرف ته اشاره ده چه اهل نار کافرانوته به دوزخ کښې دَ اوسپنې طوق اچولې شی لهذاکوم خلق چه په دنيا کښې دَاوسپنې ګوتمې اچوی هغه هم دَهغوی مشابهت اختياروی

**قوله:** وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ:

**د محی السنه دين دقول نقل کولومقصد:** دَ شوافع حضراتو په نيزچونکه دَ اوسپنې ګوتمه استعمالول جائز دی. په دې وجه محی السنة رحمه الله دَ زير بحث حديث دَپاره دَ يومقابل حديث حواله ورکړه په کوم کښې چه دَ مهر په عوض دَ اوسپنې ګوتمه ورکول وئيلی شوی دی دکوم نه چه دَدې دَ جواز پته لګی.

**داحنافود طرفه دوه جوابونه:** ① دَحضرت سهل رضی الله عنه روايت په هغه زمانه باندې محمول دې کوم وخت چه دَ اوسپنې دَ ګوتمې دَ ممانعت او حرمت حکم نه وو راغلې لکه چه دا زير بحث حديث دَهغې دَپاره ناسخ دې

② دَدې نه دَ اوسپنې ګوتمه هډو مراد نه ده بلکه خاتم حديد سره شئ قليل طرف ته اشاره ده چه مهر ورکړه که هغه هرڅه وی. کتاب النکاح کښې تفصيل دې.

## [۲۳۹۷] لسو څیزونو لره د نبی علیه السلام نه خوښول

۴۳۹۷-[۱۳] (۱) ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَكْرَهُ عَشْرَ خِلَالٍ: ③ الصُّفْرَةَ - يَعْنِي: الْخَلُوقَ - ④ وَتَغْيِيرَ الشَّيْبِ، ⑤ وَجَرَّ الْإِزَارِ، ⑥ وَالتَّخَتُّمَ بِالذَّهَبِ، ⑦ وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحِلِّهَا، ⑧ وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ، ⑨ وَالرُّقَى إِلَّا بِالْمُعَوِّذَاتِ، ⑩ وَعَقْدَ التَّمَائِمِ، ⑪ وَعَزْلَ الْمَاءِ لِغَيْرِ مَحِلِّهِ، ⑫ وَفَسَادَ الصَّبِيِّ غَيْرَ مُحَرِّمِهِ.» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي ② چې نبي کريم ﷺ به لس څيزونه بد ګڼل، ③ يو خو زيړ رنګ لګول، يعني د خلوق استعمالول، ④ دويم بوډاتوب (زوړتوب) بدلول، ⑤ دريم د پنړکو لاندې لنګ يا پرتوګ خوړندول، ⑥ څلورم د سرو د پاره د سرو ګوتمې اچول، ⑦ پنځم د ښځې بې محل (بې ځايه) زينت ظاهرول، ⑧ شپږم د نرد (چونسر) لوبه کول، ⑨ او وم بغير د معوذات نه علاوه دبل شي دم چف کول، ⑩ اتم ګُنجکې مُنجکې (تمائم) تړل، ⑪ نهم بې موقع عزل [يعنى د ښځې د شرمګاه نه بهر مني تويول]، ⑫ او لسم کوشنې (ماشوم) خرابول، اګر چه حضور ﷺ دې ته حرام نه فرمايل. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① خِلَالٍ: عادتونه، خصلتونه، ② الصُّفْرَةَ: دايوَ زيړرنګ عطردى کوم چه ښځوسره خاص دى دَ سړودپاره نه دى دې ته خلوق هم وائى. ③ الْخَلُوقَ: يو قسم زيړ رنګ، ④ تَغْيِيرَ الشَّيْبِ: بدلول د بوډاتوب، ⑤ التَّبَرُّجَ: ښکاره کول د زينت ، ⑥ الضَّرْبَ: رازوړندول (د لنګ يا پرتوګ ⑦ بِالْكِعَابِ: ګيټئ، پړکې، (خو دلته ترې چونسر لوبه مراد ده) ⑧ الرُّقَى: دم چُف کول، ⑨ عَقْدَ: تړل، ⑩ التَّمَائِمِ: داد تميمة جمع ده کونجکې وغيره، ⑪ عَزْلَ: د جماع په وخت اوبه بې ځايه تويول ⑫ الْمَاءِ: اوبه (دلته ترې منى مراد ده)، ⑬ فَسَادَ: خرابول، ضايع کول.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَتَغْيِيرَ الشَّيْبِ:

**د سپينو ويختو بدلولو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په سر او ږيره کښې سپين ويښته راغوندولوسره ويستل منع دى. دادَ بوډاوالى بدلولو په معنى کښې دى.

② په سپينو ويښتو باندې توره وسمه لګول مراد دى.

**اشکال:** دَدې حديث نه معلوميږى چه نکريزې استعمالول هم ناجائزدى حالانکه په احاديثو کښې دَدې ترغيب موجوددې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① نکريزې دَ وسمې تغير الشيب نه مستثنى دى په احاديثوکښې دَدې استثناء موجود ده لکه چه په شروع کښې دَ تغير الشيب مطلق ممانعت ووبيادَ نکريزودَ استعمال اجازت ملاؤشو.

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن والنسائى فى كتاب الزينة /باب الخضاب بالصفرة (رقم-۵۰۸۸) واحمد فى المسند:۱/ ۳۸۰

② ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي زير بحث حديث کښې دَ بوډاوالي تغير اوتبديلي نه دَدې پټول مراددی اوبوډاوالي يا په توره وسمې سره پټېږی يا دَ سپينو ويښتو په راويستوسره پټېږی خکه چه په دې سره اشتباه راځی
اوپاتې شو دَ نکريزو رنګ نو په دې سره دَ هيڅ التباس او اشتباه امکان نشته دې بلکه داد بوډاوالي اعلان او اظهاردې په دې وجه په دې حديث کښې دَنکريزو دَ استعمال سره متعلق هيڅ بحث نشته دې نوځه اعتراض هم پاتې نه شو.

**قوله:** وَالتَّبَرُّجِ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحِلِّهَا

**دغير محل وضاحت:** يعنی بې موقع بې محل اوبې ځايه ډول سينګار کول ممنوع دی لکه چه دَ پردو سړو په وړاندې وی. باقی په موقع اومحل کښې ډول سينګارکول جائزدی لکه دَخاونداومحارمو په وړاندې

**په غلطه طريقه:** بعضې ښځې چې په کور کښې وی نو خيرنې خچنې وی خوچې کله چرته واده ښادی ته ځی نو بيا په ځان باندې ښه خواری کوی اوس چې کوم ځائې ته ځی هلته غيرمحرمه وی نودا ډول سنګار کول حرام دی اوکه هلته هم ښځې وی نوبيا په کښې څه ممانعت نشته. خويوه خطره په کښې ده هغه دا که ددې جامې قيمتی وی نوچې نورې غريباناني زنانه دې ته اوګوری نودهغوی په ژړونوکښې هم ددې خواهش پيدا شی اودخپلو خاوندانو څخه مطالبې شروع کړی چې د فلانی په غاړه مې داسې جامې ليدلې وې ما دپاره هم هغه شان جامې واخله.نو په دې طريقه په دنياوی خواهشاتوکښې د تسابق سلسله شروع شی.

**قوله:** وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ.

**د مذکوره جملې وضاحت:** دادَ کعب جمع ده دادَ ګيټی او موهرې په معنی کښې دې کوم ته چه پانسې هم وائی اوکوم چه دَ خسنړی په شان غورزولوسره کوی. دادَ جوارئې يوقسم دې کوم چه ممنوع دې. دَاحنافو په نيز شطرنج کول هم مکروه دې.

**قوله:** وَالرُّقَى إِلَّا بِالْمُعَوِّذَاتِ.

**په معوذاتوسره دم درود کول:** يعنی دَ قرآن پاك په آخره کښې دَ دوو معوذتين په ذريعه که يوسړې څه دم درود وغيره کوی نوهغه جائزدی. دغه شان په قرآن اوحديث کښې چه کوم تعوذات دی هغه هم مراددی دکوم چه اجازت دې

**قوله:** وَعَقْدَ التَّمَائِمِ.

**دتعويذونو دممانعت وجه:** په عربوکښې دَ مرو دانو او هډوکو يوځائی کولوسره دَ هار جوړولو او بيادَ ماشومانو په غاړوکښې دَ اچولو رواج وودې دپاره چه ماشومان دَ نظره نه شی

دَاسلام پاکیزه نظام دامنع کړل.

غرض داچه کوم تعوذات مشرکانه مبتدعانه یا غیرمعروف الفاظو باندې مشتمل وی هغه منتردې ناجائزدی

**جائزتعویذونه:** لیکن کوم تعویذات او اوراد وظائف چه په قرآن اوحدیث کښې وی هغه جائزدی په دواړوکښې فرق کول ضروری دی دَ ټولو نفی کول مناسب نه دی.

یعنی د سیاق اوسباق لحاظ ساتل ضروری دی په کومو احادیثو کښې چې دتمائم منع راغلې ده دهغې څخه دجاهلیت د زمانې د غلطو عقیدو والاتعویذونه مراد دی نن صبا چې نیکان بندګان د مخلوق خدا د فائدې دپاره په مشروع اورادو باندې مشتمل تعویذونه لیکی. نود هغې دې سره څه تعلق نشته. ځکه چې کومه منع راغلې ده دجاهلیت د دور په غلطو عقیدو باندې مشتمل وو، دهغې څخه منع راغلې ده او زمونږ په عالمانو کښې چې د تعویذونوکومه سلسله راروان ده. دا جدا څیزدې.

**قوله:** وَعَزْلَ الْمَاءِ:

**د عزل تعریف:** عزل دې ته وائی چې خاوندښځې سره مباشرت اوجماع کوی خوچې کله د انزال وخت راشی نوخپل خاص اندام بهرته راؤباسی اودننه په فرج کښې انزال اونکړی. نوپه حدیث کښې د دې عزل څخه منع راغلې ده. خوقید ورسره د بې محله لګولې شوې دې

**د بې محله عزل صورت:** چه خپلې بی بی سره په جماع کښې سرې دَ ښځې دَ مرضئی نه بغیر عزل اوکړی اوکه وینځې سره په جماع کښې سړې عزل کوی نو هغه په ځائی دې بې محل نه دې.

**قوله:** وَفَسَادَ الصَّبِيِّ:

**د فساد الصبی وضاحت:** دَدې جملې مطلب دادې چه دَ مور په غیږ کښې دَ پیئو رزوونکې بچې، دې خاوند ښځې سره جماع اوکړه دکوم په نتیجه کښې چه هغه حامله شوه په کوم سره چه دَ مور پیئی مضردَ صحت شو او په کوم سره چه پیئی رؤونکې ماشوم خرابیدې شی کوم ته چه داء الغیل وائی دَ کوم بیان چه په کتاب النکاح کښې شوې دې داعمل نبی کریم ناخوښه کړې وو.

**قوله:** غَيْرَ مُحَرِّمِهِ:

**دغیرمحله وضاحت:** دادَ نکره نه حال واقع دې کوم چه منصوب دې یعنی نبی کریم په داسې دوران کښې ښځې سره جماع کول ناخوښه ګنړل چې هغه ماشوم ته پی، ورکوی خو جماع کول ئی حرام نه ګرځول بلکه صرف دا نقصان ئی ناخوښه ګنړلو.

## [۳۳۹۸] په ښخو ښځو د ګنګرو اچولو حرمت

۳۳۹۸ – [۱۵] ()[1] ① وَعَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: ②«أَنَّ مَوْلَاةً لَهُمْ ذَهَبَتْ بِابْنَةِ الزُّبَيْرِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ③ وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ، فَقَطَعَهَا عُمَرُ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ④ وَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ يَقُولُ: "مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانٌ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابن زبیر رضي الله عنهما نه روایت دی ② چې [یوه ورځ] د هغه آزادې کړې وینځې د حضرت زبیر رضي الله عنه کوشنی د حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه په خدمت کې راوستلو، ③ هغه وخت د کوشنی په پښو کې ګنرو (شرنګریلو) وو، حضرت عمر رضي الله عنه هغه ګونګرو [ګنګرو] وشکولو، ④ او وې فرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې د هر جرس [رغیدونکي شي، ګنګرو] سره شیطان وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَجْرَاسٌ: د جرس جمع ده، ګنګرو او کړنګیدونکي تلۍ ته وائي.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ، فَقَطَعَهَا عُمَرُ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:

**د ګنګروګانو د استعمال ممانعت:** د ښځو په کالو پتروکښې که داسې ګنګروګان وی نو د دې استعمال داسې منع دې لکه جرس اوتلۍ وغیره تړل او غربول چه منع دی. د وړو ماشومانو، سپو او څناورو په خپو او غاړوکښې جرس وغیره تړل هم منع دی. تړونکې به ګناهګار وی ځکه چه ماشومان خو غیرمکلف دی.

## [۳۳۹۹] د ګنګرو د استعمال کراهت

۳۳۹۹ – [۱٦] ()[2] ① وَعَنْ بُنَانَةَ مَوْلَاةِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حَيَّانَ الْأَنْصَارِيِّ، ② «كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - إِذْ دُخِلَتْ عَلَيْهَا بِجَارِيَةٍ، ③ وَعَلَيْهَا جَلَاجِلُ يُصَوِّتْنَ. ④ فَقَالَتْ: لَا تُدْخِلْنَهَا عَلَيَّ إِلَّا أَنْ تُقَطِّعَنَّ جَلَاجِلَهَا، ⑤ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ جَرَسٌ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عبدالرحمن ابن حیان انصاري رضي الله عنه د آزادی کړې وینځې بنانه رضي الله عنها نه روایت دی ② چې یوه ورځ هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها سره وه چې د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې یوه کوچنۍ جنۍ راوستل شوه، ③ چې ګونګرو یې اچولي وو، او هغه غربدل (شرنګیدل) ④ بي بي عائشې رضي الله عنها هغه جنۍ راوستونکي ښځې ته وفرمایل چې دا جنۍ هغه پورې ماته مه راوله، تر څو چې دا ګونګرو ګان کټ کولو سره ونه غورځول شي، ⑤ ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چه په هغه کور کې د رحمت فرشتې نه داخلیږي، چې په هغې کې د باجې د قسم څه څیز وي. (ابوداؤد)

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب ما جاء في الجلاجل (رقم-۴۲۳۰)
[2] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب ما جاء في الجلاجل (رقم-۴۲۳۱) واحمد في المسند: ۲۴۳/٦

**حل اللغات:** ① جَلَاجِلُ : دَ جلجل جمع ده کرنګیدونکی ګنګروګان مراددی. ② يُصَوِّتْنَ: آوازونه ئې کول، شرنګیدل، ③ جَرَسٌ: تلۍ، ګنګرو.

**تسهیلات: قوله:** لَاتَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ جَرَسٌ:

**دجرس دوه قسمونه:** ① جرس (ګنګرې) په دوه قسمه دی، يو هغه دی کوم چه ځناور ته د سفر په دوران کښې په غاړه اچولې کیږی دې دپاه چه سورلۍ ددې دپاسه اوده هم وی نو چه د جرس د آواز د وجهې ورته معلومات کیږي چه ځناور راون دې یا اودریدلې دې او په عام توګه هم داسی وی چه د چرس آواز راځی نو ځاروې روان وی بله دا چه کله کله ځناور د قافلې څخه وروستو یا یواځی پاتې شی.نو په دې صورت کښې یا د قافله نه د ځناور د ورکیدو په صورت کښې د ځاروې د ګنګرو په وجه معلومات کیږی چه ځاروې کوم ځائې کښې دی. لهذا ددې مقصد دپاره ګنګرود ځاروی په غاړه کښې اچول جائز دی.

② دویم قسم هغه دې چه ښځی ئې زینت دپاره په لباس کښې استعمال وی او دا ناجائز دې.

**[۴۳۰۰] د مجبورۍ په وجه د سرو زرو د استعمال اجازت**

> ۴۳۰۰-[۱۷] () [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ، [۲] «أَنَّ جَدَّهُ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قُطِعَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ [۳] فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ وَرِقٍ، فَأَنْتَنَ عَلَيْهِ [۴] فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبدالرحمن ابن طرفه نه روایت دې چې د هغه د نیکه حضرت عرفجه ابن سعد ﷛ پوزه د کلاب په جنګ کې پرې شوې وه، [۳] هغه د سپینو زرو پوزه جوړه کړه، لیکن په هغې کې بدبویي پیدا شوه، [۴] نو رسول الله ﷺ هغه ته د سرو زرو د پوزې جوړولو حکم ورکړو. (ترمذي، ابوداؤد، نسائي)

**تسهیلات: قوله:** أَنْ يَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ:

**دحدیث پس منظر** :په کاف باندې پیښ دې کُلاب دَ یوځائی نوم دې یوم دَ جنګ په معنی کښې دې یعنی دَ کلاب په جنګ کښې دَ دغه صحابی پوزه پرې کړې شوې وه. هغه دَ سپینو زرو،پوزه جوړه کړه لیکن په هغې کښې بدبوئی پیدا شوه. نبی کریم هغه ته دَ سرو زرو دَ پوزې لګولو اجازت ورکړو په سرو زرو سره زخم ټیک کیږی. دَدې نه معلومه شوه چه دَ مجبورئی دَ وجهې سره زر استعمالول جائز دی. فقهاؤ دَ سرو زرو پوزه جوړول او په غاښونو باندې دَ چاندئی تاراستعمالول جائز لیکلی دی امام محمد ﷫ په غاښونوکښې دَ سرو زرو تار تړل هم جائز لیکلی دی.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی ربط الأسنان بالذهب (رقم-۴۲۳۲) والنسائی فی کتاب الزینة/باب من أصیب أنفه هل یتخذ أنفا من ذهب (رقم-۵۱۶۱) واحمد فی المسند: ۲۳/۵

**[۳۲۰] د سرو زرو په استعمال باندې وعید**

۳۲۰ — [۱۸] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ حَلْقَةً مِنْ نَارٍ [۳] فَلْيُحَلِّقْهُ حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ، [۴] وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُطَوِّقَ حَبِيبَهُ طَوْقًا مِنْ نَارٍ [۵] فَلْيُطَوِّقْهُ طَوْقًا مِنْ ذَهَبٍ، [۶] وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُسَوِّرَ حَبِيبَهُ سِوَارًا مِنْ نَارٍ [۷] فَلْيُسَوِّرْهُ سِوَارًا مِنْ ذَهَبٍ، [۸] وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ فَالْعَبُوا بِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې خپل عزیز، یعنی ښځې یا اولاد وغیره ته (د هغه په پوزه یا په غوږ کې) د اور حلقه اچول خوښوي، [۳] نو هغه دی ورته د سرو زرو حلقه واچوي (یعني د سرو زرو د والۍ وغیره اچولو سزا دا ده چې هغه ته به د اور والۍ وغیره واچول شي) [۴] کوم سړي چې د خپل عزیز په غاړه کې د اور طوق اچول خوښوي، [۵] نو هغه دی ورته د سرو زرو ګلو بند واچوي، [۶] او کوم سړي چې خپل عزیز ته د اور بنګړي (دستینه) اچول خوښوي، [۷] نو هغه دې ورته د سرو زرو بنګړي واچوي، [۸] لیکن د سپینو زرو د استعمال تاسو ته اجازت دي چې تاسو یې په خپل استعمال او تصرف کې راوستلی شئ (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَنْ يُحَلِّقَ: چه هار ور واچوی، ② حَبِيبَهُ: خپل دوستان یا رشته داران وغیره، ③ حَلْقَةً: هار، امیل، ④ أَنْ يُطَوِّقَ: چه رازورند کړی، ⑤ طَوْقًا: هار، امیل، ⑥ أَنْ يُسَوِّرَ: چه بنګړی یا کړې جوړې کړی، ⑦ سِوَارًا: بنګړی، کړې، ⑧ فَالْعَبُوا: لعب په معنی دَ لوبو نه تصرف مراد دي.

**تسهیلات: قوله: وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ:**

**په احادیثو کښې تعارض:** دلته سوال دادې چه په دې حدیث کښې دَ سرو زرودَ کالو استعمالولو باندې سخت وعید اوروليٰ شوې دې حالانکه دې نه وړاندې په مختلفو احادیثوکښې دَ سرو زرو کالی دَ ښځودپاره جائز ګرځولی شوی دی دا واضح تعارض دې دَدې څه حل دې؟

**د تعارض جواب:** ① علامه خطابی ﷫ فرمائی چه یوتاویل او جواب دادې چه دَاسلام په شروع کښې دَ سرو په شان دَښځودپاره هم دَ سرو زرو دکالو استعمالول ممنوع وو دَ زیر بحث حدیث تعلق هغه زمانې سره دې؟ بیادَ ښځودپاره دَسرو زرو دکالو استعمالول جائز اوګرځولې شو

② دَممانعت تعلق تکبر اوتفاخرسره دې. بهرحال ملاعلی قاری ﷫ فرمائی په دې جواب سره دَاحنافو هغه موقف واضح کیدوسره مخې ته راځی چه په کالوکښې زکوة راځی.

③ دَ زیر بحث حدیث تعلق دَهغه ښځوکالوپترو سره دې چه دَ دغه کالو زکوة نه ادا کوی

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الذهب للنساء (رقم-۴۲۳۷) واحمد فی المسند: ۳۳۴/۲

سره د دې چه د سپینو زرو په کالوکښې زکوة هم وی لیکن د سره زر نی په کالوکښې د دې د اهمیت د وجهې ذکرکړې دی.

**[۴۴۰۲] ښځو دپاره د سرو زرو په استعمال باندې وعید**

۴۴۰۲-[۱۹] ()[۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «أَيُّمَا امْرَأَةٍ تَقَلَّدَتْ قِلَادَةً مِنْ ذَهَبٍ [۳] قُلِّدَتْ فِي عُنُقِهَا مِثْلُهَا مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۴] وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ جَعَلَتْ فِي أُذُنِهَا خُرْصًا مِنْ ذَهَبٍ [۵] جَعَلَ اللَّهُ فِي أُذُنِهَا مِثْلَهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**توجمه:** [۱] او د بي بي اسماء رضی الله عنها بنت یزید نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کومه ښځه چې د سرو زرو هار اچوي، [۳] د قیامت په ورځ به د هغې په غاړه کې هغسې د اور هار اچول کیږي، [۴] او کومه ښځه چې په خپل غوږ کې د سرو زرو والۍ اچوي، [۵] د قیامت په ورځ به الله تعالی جل جلاله د هغې په غوږ کې هغسې د اور والۍ واچوی. (ابوداؤد نسایي)

علامه خطابي فرمایي چې د دې حدیثونو دوه توجیهات کیدې شی ① چې دا په ابتداء د اسلام کښې وو بیا د ښځو په حقله منسوخ شو ② دا چې دا د هغه ښځو په باره کښې دي چې د دې زیوراتو زکات نه باسي والله اعلم (مجیب)

**حل اللغات:** ① قِلَادَةً: غاړکۍ، د غاړې امیل، ② خُرْصًا: والۍ، د غوږونو کالي،

**تسهیلات:**

**نوټ:** په دې حدیث کښې د ښځو دپاره د سرو زرو په استعمال باندې وعید راغلې دی. د دې تفصیل دې څخه وړاندې حدیث نمبر (۴۴۰۱) کښې تیر شو.

**[۴۴۰۳] د نمائش دپاره د زیوراتو په استعمال باندې وعید**

۴۴۰۳-[۲۰] ()[۱] وَعَنْ أُخْتِ لِحُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ أَمَا لَكُنَّ فِي الْفِضَّةِ مَا تَحَلَّيْنَ بِهِ؟ [۳] أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تَحَلَّى ذَهَبًا تُظْهِرُهُ [۴] إِلَّا عُذِّبَتْ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**توجمه:** [۱] او د حضرت حذیفه رضی الله عنه د خور نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] اې د ښځو ټولی! آیا ستاسو د پاره په سپینو زرو کې هغه خبره نشته چې تاسو د هغې زیور جوړ کړئ (یعني ستاسو د پاره د سپینو زرو زیور جوړول کافي دي)[۳] یاد ساتئ! په تاسو کې چې کومه ښځه د سرو زرو زیور جوړوي، او بیا د هغه زیور (بې ځایه او بې موقع) نمائش کوي، [۴] نو هغه به د دې عمل په بناء په عذاب کې مبتلا شی (ابوداؤد، نسایي)

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الذهب للنساء (رقم-۴۲۳۸) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الکراهیة للنساء فی إظهار الحلی والذهب (رقم-۵۱۳۹) واحمد فی المسند: ۶/۴۶۰

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الذهب للنساء (رقم-۴۲۳۷) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الکراهیة للنساء فی إظهار الحلی والذهب (رقم-۵۱۳۷) واحمد فی المسند: ۶/۳۵۷

**حل اللغات :** ① أَمَا لَكُنَّ: آیا ستاسودپاره داکافی نه دی چه ته دَ سپینو زرو کالی جوړکړئ واچوئ. ② تُحَلّٰی: چه کالی جوړکړی، ③ تُظْهِرُهُ: ښکاره کوی ئې، خلقو ته ئې ښائی،

**تسهیلات:**

**قوله: تُظْهِرُهُ:**

**ه تکبر دپاره ه زیوراتو په استعمال وعید:** یعنی دَ خپلو کالو بې ځایه او بې موقع نمائش کوی تفاخراوتکبرسره په نورو غریبانانو ښخوباندې خپله لوئی ښکاره کوی. دَدې علت دَ وجهې دَ سرو زرو دکالو دَممانعت خبره پخپله په پوهه کښې راځی او په احادیثو کښې تعارض نه پاتې کیږی دَ ممانعت تعلق کبر وغیره سره دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۳۰۴] د جنت د سرو زرو او ریښمو د حاصلولو طریقه

۴۳۰۴—[۲۱] (') ① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَمْنَعُ أَهْلَهُ الْحِلْيَةَ وَالْحَرِيرَ، ③ وَيَقُولُ: " إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ حِلْيَةَ الْجَنَّةِ وَحَرِيرَهَا ④ فَلَا تَلْبَسُوهَا فِي الدُّنْيَا» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① د حضرت عقبه ابن عامر ﷺ نه روایت دې ② چې رسول الله ﷺ به خپل کوروالا د زیور او ریښمو نه منع کول (یعني د دې ځیزونوپه کثرت سره د اچولو ممانعت به يې بیانولو) ③ اوفرمایل به يې که تاسو د جنت د زیور او د جنت د ریښمو خواهش لرئ (چې په جنت کې دا ځیزونه حاصل کړئ) ④ نو په دنیا کې دا ځیزونه مه اچوئ. (نسائي)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ حِلْيَةَ الْجَنَّةِ وَحَرِيرَهَا:

**دحدیث مخاطبین:** دَ سرودپاره سره زر او ریښم حرام دی. دَحدیث تعلق سړوسره دې او خطاب هم سړو ته دې ښځوته نه دې.

**نوټ:** په جنت کښې د سرو زرو او ریښمو ځخه د محرومتیا په تاویل مختلف جوابونه تیرشوي دي.

### [۴۳۰۵] د سرو زرو ګوتمه غورزول

۴۳۰۵—[۲۲] (') ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اتَّخَذَ خَاتَمًا، فَلَبِسَهُ ③ قَالَ: " شَغَلَنِي هٰذَا عَنْكُمْ مُنْذُ الْيَوْمِ ④ إِلَيْهِ نَظْرَةٌ، وَإِلَيْكُمْ نَظْرَةٌ " ⑤ ثُمَّ أَلْقَاهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

---

[۱] اخرجه النسائي في كتاب الزينة/باب الكراهية للنساء في إظهار الحلي والذهب (رقم-۵۱۳۶)
[۲] اخرجه النسائي في السنن كتاب الزينة/باب طرح الخاتم وترك لبسه (رقم-۵۲۸۹)

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دي[۲] چې رسول الله ﷺ (دسرو يا د سپينو) يوه ګوتۍ جوړه کړه، او هغه يي واچوله[۳] (بيا حاضرين مخاطب کولو سره يي) وفرمايل چې نن ورځ دي ګوتۍ زه ستاسو د طرف نه مشغول وساتلم (يعني زه تاسو طرف ته متوجه نه شوم)[۴] ځکه چې کله دي ګوتۍ طرف ته ګورم، اوکله ستاسو طرف ته ګورم، [۵] اوبه دي ويلو سره حضور ﷺ هغه ګوتۍ راوخکله او وي غورځوله (نسايي)

**تسهيلات:قوله**: شَغَلَنِي هَذَا عَنْكُمْ

**د دنيا د زيب او زينت اثر**:معلومه شوه چه دَ دنيا په زيب اوزينت سره هرسړې متاثرکيدې شي په دې وجه دَ هرمسلمان دَ پاره ترك زينت اودَ ډول سينګار نه ځان ساتل ډيرضروري دی ګنی دَدنياپه سمندرکښې به ډوب شي.

**قوله**: ثُمَّ أَلْقَاهُ

**د ګوتمې د غورزولووجه**:داسې معلومیږي چه دا ګوتمه دَ سرو زرو وه. نبی کريم کيدې شی چه دَحرمت نه وړاندې دَ اباحت په وخت اچولې وه بيائې اوغورزوله.

**[۴۳۰۶] ماشومانوته د سروزرو د اچولو ممانعت**

۴۳۰۶ — [۲۳] ()[۱] وَعَنْ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] أَنَا أَكْرَهُ أَنْ يُلْبَسَ الْغِلْمَانُ شَيْئًا مِنَ الذَّهَبِ; [۳] لِأَنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «نَهَى عَنِ التَّخَتُّمِ بِالذَّهَبِ» [۴] فَأَنَا أَكْرَهُهُ لِلرِّجَالِ، الْكَبِيرِ مِنْهُمْ وَالصَّغِيرِ. رَوَاهُ فِي "الْمُوَطَّأ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت امام مالك ﷺ نه روايت دي دی وايي [۲] چې زه دا بد ګنم چې هلكانو ته دي د سرو زرو يو شي واچول شي،[۳] ځکه چې ماته روايت رسيدلي دي چې رسول الله ﷺ د سرو زرو د ګوتۍ د استعمالولو نه [هم] منع فرمايلي ده،[او هر کله چې د ګوتۍ په شان شي هم ممنوع دي، نو نور ځيزونه خو به بطريقِ اولي ممنوع وي] [۴] نو زه د نارينه ؤ د پاره سره زر اچول بد ګنم. برابره ده که هغه لوی وي يا کوشني (مؤطا)

**حل اللغات:** (۱) التَّخَتُّمِ: ګوتمه اچول،

**تسهيلات: قوله**: وَالصَّغِيرِ

**ماشومانو ته د سرو زرو د اچولو حرمت**:يعنی کوم لباس او کالی چه دَسروډپاره منع دی هغه ماشومانوته اچول هم منع دی مثلاً ريښمين لباس وړوکو هلكانوته اچول هم منع دی دغه شان دَ سرو زور ګوتمې هلكانوته اچول هم منع دی دغه شان دَ سرو زرو تعويذونه يا نورکالي وړو هلكانوته اچول منع دی. که مشرانو ورته واچول نو هغوی به ګناهګاران وی. په زيربحث روايت کښې دَامام مالك دَدې فتوی مطلب اومقصد هم دغه دي.

() اخرجه مالک في الموطا کتاب اللباس/باب ما جاء في لبس الثياب المصبغة والذهب (رقم-۴)

# [۲] بَابُ النِّعَالِ

## د پیزار بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① هيئة نعال النبي ﷺ : ۱، ۲، ۷.

② الترغيب في إتخاذ النعال: ۳.

③ طريق لبس النعل : ۴.

④ حكم المشي في نعل واحد: ۵، ۶، ۹.

⑤ النهي عن الانتعال قائماً: ۸ .

⑥ خلع النعال وقت الجلوس: ۱۰.

⑦ كون لبس الخفين في حكم النعال: ۱۱.

**قوله:** نعال

**د نعال جمع راوړلو وجه:** په دې باب کښې دراصل دَنبی کریم دَ پیزار هیئت او صفت بیانول مقصوددی چه په هغه دورکښې په عربوکښې رائج وو. چونکه په هغه زمانه کښې به هم رائج څپلنی دَمختلف قسمونو وې په دې وجه دَ جمع صیغه نعال استعمال کړې شوې ده

**د نعل تعریف:** دَنعل جمع ده نعل هغه څیزته وائی دَ کوم په ذریعه چه خپې دَ زمکې نه بچ کړې شی په نورو الفاظوکښې دې ته پاپوش نوم ورکړې شوې دې په خپوکښې استعمالیدونکې څپلنی په هره زمانه کښې بدلیږی اودَهرقوم اوملك په دې کښې خان خپله رواج وی کله څپلنی کله بوټان کله پنړې وغیره وی په دې وجه دادَ جمع په عنوان سره ذکرکړې شوې دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۳۰۷] د نبی کریم ﷺ چپل (څپلی) مبارکې

۴۳۰۷-[۱] (۱)[۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَلْبَسُ النِّعَالَ [۳] الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَعْرٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب اللباس /باب النعال السبتية وغيرها (رقم-۵۸۵۱) ومسلم في كتاب الحج /باب الإهلال من حيث تنبعث الراحلة (رقم-۲۵ - (۱۱۸۷) و مالک في الموطا كتاب الحج /باب العمل في الإهلال (رقم-۳۱)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر ﷺ وايي [۲] چه ما رسول الله ﷺ په كوم چپل (پيزار) مبارك اچولو ليدلي دي،[۳] په هغې كې ويښتان نه وو (بخاري)

**حل اللغات:** ①النِّعَالَ: څپلۍ، پيزار

**تسهيلات:**

**قوله:** يَلْبَسُ النِّعَالَ الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَعَرٌ

**د نبي عليه السلام پيزار:** څرمن له چه كله په ښه شان سره دباغت وركولې شي نو هغه صفا اوښكلې وى او دَهغې تول ويښته دَ بيخه راوځي ليكن كه څرمن مدبوغ او مصبوغ نه وى نو هغه اوچيږى اوويښته دَهغې دَپاسه پاتې كيږى دې ته د موچيانو په اصطلا كښې (سابر) وائى دَدې قسم څرمن زياته ښكلې نه وى دَ زيربحث حديث مطلب هم دغه دې چه دَ نبى كريم په پيزار باندې ويښته نه وو يعنى دَ ښكلې څرمن نه جوړشوې وو

**[۴۳۰۸] د نبى عليه السلام د څپلو دوه تسمې**

۴۳۰۸—[۲]()[۱]وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ:[۲]«إِنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي [۲] چه د نبي كريم ﷺ په څپلۍ مبارك كې دوه تسمې وي (بخاري)

**حل اللغات:** ①قِبَالَانِ: دا تثنيه ده دَدې مفرد قبال دې، د څپلۍ تسمه

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ:

**د نبى عليه السلام په څپلو كښې دوه تسمې:** حديث مطلب دادې چه دَ نبى كريم په څپلو كښې دوه تسمې وې چه مخامخ طرف ته به په ګوتوكښې پيوست وې يوه تسمه خو به دَ غټې ګوتې او دې سره ګوتې په مينځ كښې وه لكه چه نن صبا هوائى چپل (دَ ګوتمې چپړ ې) وى اودويمه تسمه غټې ګوتې سره نيزدې مينځمې اودې سره بنصر ګوتې په مينځ كښې وه په دې سره به څپلۍ په خپه كښې مضبوطه وه اودا دَهغه زمانې په رواج كښې وو نن صبا دارواج عام نه دې اهل سيرت په زير بحث حديث كښې دَ مذكوره څپلۍ نقشه ليكلې ده

[1]) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب قبالان في نعل. ومن رأى قبالا واحدا واسعا (رقم ۵۸۵۷) وابوداود فيكتاب اللباس/باب في (رقم-۴۱۳۴) والترمذي في كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في النهي عن جلود السباع (رقم- ۱۷۷۱) والنسائي في كتاب الزينة /باب صفة نعل رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۵۳۶۷) وابن ماجه في كتاب اللباس/باب صفة النعال (رقم-۳۶۱۵)

[۴۴۰۹] د پنړو اچولو فائده

۴۴۰۹-[۳] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: [۲] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا يَقُولُ: [۳] "اسْتَكْثِرُوا مِنَ النِّعَالِ، [۴] فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ رَاكِبًا مَا انْتَعَلَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [۲] چه زه د يوي غزا په موقع چې په هغې کې جنګ وشو (يعني د يو جهاد د پاره) د روانيدو په وخت کښې مي د نبي کريم ﷺ نه دا واوريدل [۳] چې ډيري پنړې د خان سره واخلئ، [۴] ځکه چې سړي تر څو پنړې اچولي وي، نو د سپور په مثل وي. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا:

**د غزوه څخه مراد:** دَ پنړو دَ اهيت په سلسله کښې په اهتمام سره دا اعلان دَغزوه تبوك په موقع باندې نبی کريم کړې وو. چونکه دَ سفردور وو پيدل هم وودَسختې ګرمئ موسم وو په دې وجه دَڅپلوضرورت وو. لهذا نبی کريم دَ څپلو دَاهميت طرف ته اشاره اوفرمائيله چه ترکومې پورې دَ سړی په خپوکښې څپلئ وی نوهغه سړې لکه دَ سور په شان دې ځکه چه څپلوسره سړې تيز ځی خپې نه زخمی کيږی اودګرمئ يخنئ او تندك وغيره نه محفوظ پاتې کيږی

[۴۴۱۰] په پيزار اچولوکښې د ښی طرف څخه شروع کول

۴۴۱۰-[۴] (²) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيُمْنَى، [۳] وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ، [۴] لِتَكُنِ الْيُمْنَى أَوَّلَهُمَا تُنْعَلُ [۵] وَآخِرَهُمَا تُنْزَعُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې په تاسو کې يو سړی څپلی (پيزار) اچوي، نو هغه ته پکار دي چې د ښي پښې نه ابتداء وکړي [يعنی مخکې دي ښي پښه په څپلی کې اچوي]، [۳] او کله چې څپلی اوکاږي، نو پکار دي چې د چپې پښې نه شروع وکړي [يعنی مخکې دي چپه پښه د څپلی نه اوباسي]، [۴] [حاصل دا چې] ښي پښه د اچولو په وخت کښې مقدم ساتل پکار دي، [۵] او د ويستلو په وخت مؤخر ساتل پکار دي. (بخاري مسلم)

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب ما جاء فی الانتعال والاستکثار من النعال (رقم-٦٦ - (٢٠٩٦) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی(رقم-٤١٣٣)

[2] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب لا يمشی فی نعل واحدة (رقم-٥٨٥٦) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب إذا انتعل فليبدأ باليمين وإذا خلع فليبدأ بالشمال (رقم-٦٧ - (٢٠٩٧) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی (رقم-٤١٣٩) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء بأی رجل يبدأ إذا انتعل (رقم-١٧٧٩) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب لبس النعال وخلعها (رقم-٣٦١٦)

تسهيلات: قوله: فَلْيَبْدَأْ بِالْيُمْنَى:

**د پيزار په اچولواو ويستلو کښې مسنون طريقه**: په اسلام کښې ښي طرف ته يواعزاز اواکرام حاصل دې. لهذا ښي خپه دَ گسې خپې په نسبت زياته دَ اکرام قابل ده. په دې کښې څپلئي اچول دَ څپلئي کوزولو په نسبت زيات دَ اکرام اواعزاز سبب دې. دَدې قاعدې په رڼا کښې په دې حديث کښې مسلمانانو ته دا تعليم ورکړې شوې دې چه کله څپلئي اچوئې نو شروع دَ ښي خپې څخه کوئې دې دَپاره چه دَاعزاز اندام ته اول اعزاز ملاؤ شي اوکله چه څپلئي اوباسئي نو شروع دَ گسې خپې نه کوئې چه دَ څپلئي اچولو اعزاز تر ډير وخته پورې ښي خپې ته حاصل وي. لکه چه دَ دغه اعزاز ابتداء او انتهاء کښې دَ ښي خپې لحاظ ساتلې شوې دې. په دې سره «إن الله يحب التيامن الخ» حديث باندې ښه عمل کيږي.

**[٤٤١١] په يوه پښه پيزار اوبله خپه ايبله ساتلو کراهت**

۴۳۲۰—[۵] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ، لِيُحْفِهِمَا جَمِيعًا، [۴] أَوْ لِيُنْعِلْهُمَا جَمِيعًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو کې دې يو سړي په يوه پښه کې څپلۍ اچولو سره نه گرځي، [۳] دا ضروري ده چې يا خو دې دواړې پښې بربنډې وي، [۴] يا دې په دواړو پښو کې چپلۍ وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① لِيُحْفِهِمَا: دَ إحفاء نه دې، يعنى بربنډې دې کړی دواړه خپې، ② لِيُنْعِلْهُمَا: د إنعال نه دې، يعنى په دواړو کښې دې څپلۍ واچوی

تسهيلات: قوله: فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ:

**په يوه خپه کښې د پيزار د اچولو کراهت**: په شمائل ترمذی کښې دَ نعل واحد يعنى يوه څپلئي اچولو کښې دَتگ روايت دې. راتلونکی حديث نمبر(۴۳۲۶) کښې پوره تفصيل ليکلې شوې دې هلته اوگورئي. دلته دَحديث مطلب دادې چه که چرې څپلئي اچول وی نو په دواړو خپو کښې اوکه نه اچول وی نو چه په دواړو خپوکښې وانچولې شي. په يوه خپه کښې څپلئي اچول اودويمه بربنډه ساتل مکروه تنزيهی دی ځکه چه داسې کول دَتهذيب او دَ ښه عادت خلاف دی چه ډير بې طريقې او بدې لگی. بل په دې کښې تکليف او پريشانی هم ده چه يوه خپه به دې اوچته وی او يوه دې ښکته وی په تگ کښې به هم مشکل وی اودَ راپريوتلو خطره به وی

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب ينزع نعله اليسرى (رقم-۵۸۵۵) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب إذا انتعل فليبدأ باليمين وإذا خلع فليبدأ بالشمال(رقم-۶۸ - (۲۰۹۷) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی (رقم- کتاب اللباس/باب فی (رقم-۴۱۳۹) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية المشی فی النعل الواحدة (رقم-۱۷۷۴) وابن ماجه فی کتاب اللباس ، باب لبس النعال وخلعها (رقم-۳۶۱۶)

### [۳۳۳] په یوه پنړه کښې د ګرځیدو ممانعت

۴۳۳۳-[۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ نَعْلِهِ [۳] فَلَا يَمْشِ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ [۴] حَتَّى يُصْلِحَ شِسْعَهُ، [۵] وَلَا يَمْشِ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ، [۶] وَلَا يَأْكُلْ بِشِمَالِهِ، [۷] وَلَا يَحْتَبِي بِالثَّوْبِ الْوَاحِدِ، [۸] وَلَا يَلْتَحِفِ الصَّمَّاءَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هر کله چې د یو سړي د څپلۍ (یعني چپل وغیره) تسمه وشلیږي، [۳] نو په یوه څپلۍ کې دې نه ګرځي. [۴] بلکې د هغه څپلۍ تسمه دې درسته کړي، [۵] دغه شان په یوې موزې اچولو سره دې نه ګرځي، [۶] نه دې په چپ لاس سره طعام خوري، [۷] دغه شان نه دې په یوه جامه کې د کوناټو لګولو سره کیني (چې کله د هغه جامې څه حصه د هغه ستر پټ کړې نه وي) [۸] اونه دې یوه جامه په بدن داسې چاپیروي چې لاسونه هم دننه وي (او د لاس اوخکلو په وخت کښې ستر خلاص شي) (مسلم)

**حل اللغات:** (۱) شِسْعُ: د څپلۍ تسمه، (۲) نَعْلِهِ: څپلۍ، پیزار، (۳) وَلَا يَحْتَبِي: لاسونه راتاوولو سره دې نه کینی (۴) وَلَا يَلْتَحِفِ الصَّمَّاءَ: په بدن کپړه داسې راچاپیره کړي، چې دواړه لاسونه په کپړه کې دننه راشي.

**تسهیلات:**

**نوټ:** په یوه پنړه کښې د ګرځیدو وضاحت وړاندې د حدیث نمبر (۴۳۱۵) په شرح کښې تیر شوې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۳۳] د نبی کریم ﷺ د پنړو تسمي

۴۳۳۳-[۷] (۱) [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] «كَانَ لِنَعْلِ رَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قِبَالَانِ، [۳] مُثَنًّى شِرَاكُهُمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي [۲] چې د رسول الله ﷺ په چوټو (پنړو) مبارکو کې دوه تسمي وي (چې په هغې کې به د پښو ګوتې وې) [۳] او په هغه دواړو کې هره تسمه غبرګه وه (چې د تسمي مضبوطي هم قائمه وي، او پښو کښې خخیږي هم نه. (ترمذي)

**حل اللغات:** (۱) قِبَالَانِ: دوه تسمي، (۲) مُثَنًّى: دوه، (۳) شِرَاكُهُمَا: شراک تسمي ته وائي.

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب اشتمال الصماء والاحتباء فی ثوب واحد(رقم-۷۱ - (۲۰۹۹) وابوداود فی کتاب اللباس/باب فی (رقم-۴۱۳۷) واحمد فی المسند: ۳۲۷/۳

[۲] اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب اللباس/باب صفة النعال(رقم-۳۶۱۴)

**تسهیلات: قوله**: مُثَنًّى شِرَاكُهُمَا:

**د نبی علیه السلام د پڼروتسمې**: یعنې دَمخې تسمې غبرګې وې دې دپاره چه خپه کښې نتوتو سره زخمي نه کړي. بل غبرګ کیدو سره مضبوطیا راځي. دلته په دې حدیث کښې دَ مخامخ دوو تسمو ذکر دې ممکن ده چه په خپې په شا چه کومې تسمې وی هغه هم مراد وی ځکه چه دغه شان څپلۍ استعمالیږی اودهغې تسمې غبرګولې شی دې دپاره چه مضبوطې هم وی اودَ پلنیدو دَ وجهې په خپوکښې هم ورخنبې نه شی.

**[۴۴۳] په ولاړه د پڼروپه پښو کولو ممانعت**

۴۴۴–[ ] ( )[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ قَائِمًا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي[۲] چې رسول الله ﷺ په ولاړه د پیزار اچولو نه منع فرمایلي ده. (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ①أَنْ يَنْتَعِلَ: چه پیزار په خپو کړي.

۴۴۵–( )[۱] وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه**: [۱] او ترمذي، او ابن ماجه دا روایت د ابوهریره رضي الله عنه نه نقل کړي دي.

**تسهیلات**:

**قوله**: أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ قَائِمًا:

**د ممانعت مصداق**: دامما نعت هغه وخت دې کوم وخت چه په ولاړه باندې څپلۍ اچول سخت وی لکه چه بوټان وغیره څپلۍ چه وی. دا په تسلئی سره اچولودپاره کیناستل پکاردو دې دپاره چه دَدې تسمې ښه اوتړلې شی اوکه په ولاړه ولاړه داسې کوی نوکله به پاسی کله به راغورزیږی پوره مشقت به کوی. دَ حدیث دا نهی ارشادی ده. بل داخبره چه دَ بعضې څپلودپاره ده دَهرې یوې دَ پاره نه ده.

**[۴۴۶] آیا نبی کریم ﷺ به په یوه پښه کې څپلۍ اچولو سره ګرځیدي**

۴۴۶–[۹] ( )[۱] وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - قَالَتْ: [۲] «رُبَّمَا مَشَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ». [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: أَنَّهَا مَشَتْ بِنَعْلٍ وَاحِدَةٍ. [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا أَصَحُّ.

---

( ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی الانتعال (رقم-۴۱۳۵)

( ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة أن ینتعل الرجل وهو قائم (رقم-۱۷۷۵) وابن ماجه فی کتاب اللباس/باب الانتعال قائما (رقم-۳۶۱۸)

( ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء من الرخصة فی المشی فی النعل الواحدة (رقم-۱۷۷۷، ۱۷۷۸)

**ترجمه:** [۱] او حضرت قاسم ابن محمد د بي بي عائشي رضي الله عنها نه نقل کوي، چه هغې اوويل [۲] چې نبي کریم ﷺ به بعضې وخت يو چپل اچولو سره ګرځيدو، [۳] او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې بي بي عائشه رضي الله عنها په يوې چپلکي کې وګرځيده، [۴] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چه دا روايت د اسناد په اعتبار سره يا د مفهوم او معنې په اعتبار سره ډير صحيح دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِنَعْلٍ وَاحِدَةٍ: يعنى شاذ او نادر به نبى کريم چرته په يوه څپلئې کښې دَ مجبورئى دَ وجهې په کورکښې دننه ګرځيدلو.

**تعارض:** داحديث دَ مخکينو ټولو احاديثو معارض دې په کوم کښې چه په يوه څپلئى کښې ګرځيدل منع کړې شوى دى. دَدې څه جواب دې؟

**د تعارض شپږ جوابونه:** ① داحديث صحيح نه دې يا که چرې صحيح دې نو معمول به نه دې.

② دَ نبى کريم داعمل دَ نادر په درجه کښې وو اونادر دَمعدوم په حکم کښې وى. "والنادر كالمعدوم".

③ دا حديث دَ جواز دَبيانولو دَپاره دې چه يوه څپلئى اچولو سره تګ کول حرام نه دى.

④ په اصل کښې دادَ حضرت عائشې رضي الله عنها خپل عمل وو لکه څنګه چه په نورو روايتونو کښې دَ دې بيان دې اوترمذى هم دا روايت راجح ګرځولې دې.

⑤ دا عمل په مکروه تنزيهى باندې محمول دې. لهذا باقى احاديث اودَدې حديث مال اومرجع هم يو دې چه داسې کولوکښې کراهت تنزيهى دې. بيا نبى کريم دَ جواز دَ بيان دَپاره بعضې وخت په کراهت تنزيهى باندې عمل کړې دې چه دَ رسول الله ﷺ په حق کښې به مکروه نه وو بلکه دَ امت دَتعليم په بنياد به دَ ثواب کار جوړيدو.

⑥ دَدې تعلق دَ کور دننه سره دې عام تګ سره نه دې.

**[۴۳۱۶] پنړه په لاسته ويستل**

> ۴۳۱۶-[۱۰] (¹)[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «مِنَ السُّنَّةِ إِذَا جَلَسَ الرَّجُلُ [۳] أَنْ يَخْلَعَ نَعْلَيْهِ فَيَضَعَهُمَا بِجَنْبِهِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي [۲] چې دا خبره د سنتو نه ثابته ده چې هر کله يو سړي کيني، [۳] نو خپلي څپلۍ دي اوباسي، او هغه دي خپل اړخ سره کيږدي. (ابوداؤد)

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في الانتعال (رقم-۴۱۳۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَخْلَعَ نَعْلَيْهِ فَيَضَعَهُمَا بِجَنْبِهِ:

**د حديث مطلب:** يعنى په مجلس كښې دَخپلوسره مه كيننى دادَ مجلس دَ آدابوهم خلاف دى اودَتهذيب اوښكلا هم خلاف دى خپلنى كوزولوسره به خپې هم په آرام شى اوسرې به هم په آرام شى بل خپلنى خپل گس اړخ ته خان سره كيخودل پكاردى دې دَپاره چه دَ نبى طرف تكريم باقى پاتې شى اومخې ته ئى هم مه ايږدئى خكه چه دَ قبلې طرف ته سرې مونخ كوى اوشاته ئى هم مه ايږدئى دَ غلا ويره وى.

**[٤٣١٨] د نبى كريم ﷺ دپاره د نجاشي د طرف نه د موزو هديه**

٤٣١٨—[١١] ()① وَعَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، ②«أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خُفَّيْنِ أَسْوَدَيْنِ ③ سَاذَجَيْنِ، فَلَبِسَهُمَا» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.④ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ: ثُمَّ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَيْهِمَا.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابن بريده رضي الله عنه د خپل پلار نه نقل كوي ② چې نجاشي (د حبشى بادشاه) د نبي كريم ﷺ په خدمت كې دوه توري موزي (يعنى د توري څرمې موزي) په طور د هديې اوليږلې، چې ساده [يعنى غير منقش] وي، حضور ﷺ هغه [په حالت د طهارت كې] واچولى (ابن ماجه)④ او ترمذي رحمه الله دا روايت د ابن بريده او هغه د خپل پلار نه نقل كړي دي او د هغه په روايت كې د دې الفاظو اضافه هم ده چې بيا حضور ﷺ اودس وكړو او په هغه موزو يې مسح وكړله.

**حل اللغات:** ①النَّجَاشِيُّ: د حبشى بادشاه لق دې، ②خُفَّيْنِ: دوه موزې، ③أَسْوَدَيْنِ: تور رنگ والا، د تورې څرمن. ④سَاذَجَيْنِ: ساده وې، گلونه او نقش پرې نه وو.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خُفَّيْنِ

**دنجاشى تعارف:** نجاشى به دَ حبشې دَ بادشاه لقب وو دَهغه نوم اصحمه وو اودې مسلمان شوې وو دَ چادَ جنازې مونځ چه نبى كريم وركړې وو

**قوله:** فَلَبِسَهُمَا:

**د بې ځايه تحقيق حكم:** يعنى نبى كريم دا قبولې كړې. په دې باندې ئى مسح اوكړه اودې سره به ئى مونځ كولو. نبى كريم دَ دغه خفين باره كښې دا تحقيق نه دې كړې چه دا دَ كوم قسم څرمن نه جوړې شوې دى آيا دا څرمن دَ حلال ځناور وه كه دَ حرام ځناور وه؟ مدبوغ وه

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الخف الأسود(رقم-٢٨٢٠)وابن ماجه فى كتاب الطهارة وسننها/باب ما جاء فى المسح على الخفين (رقم-٥٤٩) واحمد فى المسند:٣٥٢/٥

که غیر مدبوغ وه؟ هغوی صرف دا اوکتل چه د بره نه صفا وه. څه پلیتی نه ښکاری هم په دې باندې نبی کریم اکتفاء اوکړه دې نه معلومه شوه چه د غیرمسلم بهر دنیا نه چه کوم څیزونه راخی په هغې کښې دومره کتل کافی دی چه په ظاهری توګه وربورې څه نجاست نښته دی.

## (وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ)

دا باب د دریم فصل څخه خالی دې.

## [۳] بَابُ التَّرَجُّلِ

### د منځ کولو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية وستون حديثاً مشتملة على سبع عشرة مسئلة:**

① أحكام الأشعار المختلفة على البدن: ۲، ۳، ۴، ۱۹، ۲۰، ۴۱، ۴۲، ۶۸.

② صبغ الشعر وأقسامه: ۵، ۶، ۳۲، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۴۵، ۵۸، ۵۹، ۶۰.

③ النهي عن بعض كيفيات الشعر: ۸، ۹، ۴۱، ۶۴.

④ النهي عن تشبه النساء بالرجال وبالعكس: ۱۰، ۱۱، ۴۹، ۵۰، ۶۱، ۶۵.

⑤ النهي عن وشم الشعر وصله: ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۴۸.

⑥ صفات شعر النبي ﷺ: ۷، ۱۵، ۲۱، ۱۹، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۵. ۴۰، ۵۸، ۵۹، ۶۰

⑦ النهي عن استعمال الزعفران للرجال: ۱۶، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۴۸.

⑧ استعمال الطيب في الشعر وغيره: ۱۷، ۱۹، ۲۶، ۶۷.

⑨ الفرق بين طيب الرجال والنساء: ۲۵.

⑩ آداب الترجل والترغيب فيه: ۳۰، ۳۱، ۳۲، ۶۳، ۶۴.

⑪ فضيلة شيب الشعر: ۳۸، ۳۹، ۶۸.

⑫ حكم حلق الرأس: ۴۳، ۶۵.

⑬ حكم ختان المرأة والرجل: ۲، ۴۴، ۶۸.

⑭ حكم احتناء كف المرأة: ۴۶، ۴۷.

⑮ النهي عن استعمال الفضة للصبيان: ۵۱.

⑯ فضيلة الإكتحال: ۵۲، ۵۳.

⑰ حكم دخول الحمام: ۵۴، ۵۵، ۵۶، ۵۷.

قوله: الترجل

**په ترجل او تسریح کښې فرق:** په عربی ژبه کښې ترجل ګمنزولو ته وائی که هغه په سر کښې وی او که په ږیره کښې وی لیکن په عام توګه ترجل په سرکښې ګمنزي کولو ډپاره استعمالیږی او که په ږیره کښې ګمنز کول وی نو دا د تسریح په لفظ سره بیانولې شی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۴۳۲۹] د حائضې خپل خاوند لره سر ګمنځول**

۴۳۲۹—[۱] (۱) ۞ عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ۞ «كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا حَائِضٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمائي ۞ چې مابه د حیض په ورځو کې هم د حضور ﷺ سر مبارك منګز کولو. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① أُرَجِّلُ: مابه ګمنځول.

**تسهیلات:**

**قوله:** كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا حَائِضٌ:

**په حالت حيض کښې د خاوند سر ګمنځول:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه د حائضې ښځې عام بدن داسې ناپاك نه وی کوم سره چه لاس لګول منع وی. حضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها به د حیض په حالت کښې د نبی کریم په سر مبارك کښې ګمنز کوله. ښکاره خبره ده چه د رسول الله ﷺ مبارك بدن سره به د حضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها لاس بار بار لګیدلې وی.

**[۴۳۳۰] پنځه فطرتی څیزونه**

۴۳۳۰—[۲] (۲) ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۞ «اَلْفِطْرَةُ خَمْسٌ: ۞ اَلْخِتَانُ، ۞ وَالِاسْتِحْدَادُ، ۞ وَقَصُّ الشَّارِبِ، ۞ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ، ۞ وَنَتْفُ الْإِبِطِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ پنځه څيزونه په

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب ترجیل الحائض زوجها (رقم-۵۹۲۵) ومسلم فی کتاب الحیض /باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله وطهارة سؤرها والاتکاء فی حجرها وقراءة القرآن فیه (رقم-۹ - (۲۹۷) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی أخذ الشارب (رقم-۴۱۹۸) وابن ماجه فی کتاب الطهارة وسننها/باب الحائض تتناول الشیء من المسجد (رقم-۶۳۳) ومالك فی الموطا کتاب الطهارة: باب جامع الحیضة (رقم-۱۰۲) واحمد فی المسند:۶/۱۰۰

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب تقلیم الأظفار (رقم-۵۸۹۱) ومسلم فی کتاب الطهارة/باب خصال الفطرة (رقم-۵۰ - (۲۵۷) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تقلیم الأظفار(رقم-۲۷۵۶) والنسائی فی کتاب الزینة/باب ذکر الفطرة (رقم-۵۲۲۵)وابن ماجه فی کتاب الطهارة وسننها باب الفطرة (رقم-۲۹۲) ومالك فی الموطا کتاب صفة النبی صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی السنة فی الفطرة (رقم-۳)واحمد فی المسند: ۲/۴۱۰

فطرت کې داخل دي[٣] يو خو ختنه کول (سنتول) [٢] دويم د نامه نه لاندي ويښتان د صفا کولو [دپاره] د اوسپني [چاړه وغيره] استعمالول [٥] دريم د شوندو ويښتان (بريتونه) کُشني کول[٦] څلورم نوکان کټ کول [٧] پنځم د بغل ويښتان صفا کول (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْفِطْرَةُ: فطرتی څيزونه،د انسان طبيعت سره موافق څيزونه، ② اَلْخِتَانُ: سنت کول. ③ اَلاِسْتِحْدَادُ: اوسپني سره ويښته کټ کول، ④ قَصُّ: کمول، ⑤ الشَّارِبُ: بريت، د شوندو دپاسه ويښته، ⑥ تَقْلِيمُ: کټ کول، ⑦ اَلْأَظْفَارُ: نوکان، ⑧ نَتْفُ: ويستل، ⑨ اَلْإِبِطُ: ترخ، د ترخ ويښتان

**تسهيلات: قوله: اَلْفِطْرَةُ:** دَ فطرت نه دَ انبياء کرامو عليهم السلام سنت قديمه مراد دې لکه چه دا څيزونه خلقي جبلي او پيدائشي خصلتونه دي.

**قوله: اَلْخِتَانُ:**

**د ختني په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① دَ شوافع په نيز ختنه واجب دي② دَ احناف په نيز سنت مؤکده دي

**دوجوب دلائل:** ① ختنه کول دَ شعائراسلام نه دی اوشعار واجب وی.

**جواب:** دَ شعائرلفظ دَ وجوب دَپاره يقيني نه دي په سنت کښې هم شعائرکيدي شي.

② حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دَ تارک ختنه نه شهادت قبول دي نه ئی امامت قبول دي دا دليل دَ وجوب دي.

**جواب:** دَ ابن عباس رضي الله عنهما فتوىٰ دَهغه سړی باره کښې ده چه دَ ختنه کولونه انکار کوی يا دا سپك گنړی.

**دعدم وجوب دلائل:** ① په احاديثوکښې دَ فطرت لفظ راغلې دي کوم چه دَ سنت په معنی کښې دي.

② دَسنن المرسلين لفظ هم راغلې دي.

③ دغه شان په حديث کښې دی ((الختان سنة للرجال ومکرمة للنساء)) (رواه احمد)

**د ملاعلي قاري په نيز د ختني د وجوب رائې:**

① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه ممکن ده چه دَ احنافو په نيز هم ختنه کول واجب وی اودَ سنت اطلاق په دې وجه سره وی چه دا ثابت بالسنة دې پخپله واجب دي دَ ملاعلی قاری رحمه الله کلام دَ قواعدو مطابق دي چه ختنه کول واجب کيدل پکاردی ځکه چه ترننه پورې په دې باندې استمرار سره عمل کول جاری دي. چاترك کړې نه دي دادَ وجوب دليل دي

**دختني جزئيات:**

① که چرې يوماشوم سنت کړې شوې راپيدا شي نودَهغه ختنه کول ضروری نه دی.

② دَ اوؤ نه ترلسوکالوپورې سنت کول پکاردی دا دَ سنت کولو بهترين وخت دي. سره

دَدې چه پیدائش سره هم کولې شي اوهغه آسان هم دې.
④که دَ چاسنت نه دې شوې یا نوې مسلمان دې نوروستو به سنت کولې شي.
**دزنانوه ختنې حکم:** دَښځوختنه په کرمو ملکونوکښې کیږي. فرج کښې دننه دَ وازګې په شان غوښه راؤچتیږي ماهرښځې هغه پرې کوي. دا ألذللجماع ده هیڅ ضروري نه ده. دَ شوافع په نیز اوس هم په مصر وغیره کښې دَ ښځو سنت کول کیږي دعوت کیږي اومتهایانې تقسیمږي.
**پیدائشې مختون شوی پیغمبران:** دا لاندینی پیغمبران علیهم السلام سنت کړې شوی پیدا شوی دی

①حضرت آدم علیه السلام ②حضرت شیث علیه السلام ③حضرت نوح علیه السلام
④حضرت صالح علیه السلام ⑤حضرت شعیب علیه السلام ⑥حضرت یوسف علیه السلام
⑦حضرت موسٰی علیه السلام ⑧حضرت سلیمان علیه السلام ⑨حضرت حنظله بن صفوان علیه السلام
⑩حضرت زکریا علیه السلام ⑪حضرت عیسٰی علیه السلام ⑫حضرت محمد ﷺ.

**قوله:** وَالِاسْتِحْدَادُ:
**د زیرناف ویختو اخستل:** دَحدید استعمالولوپه معنی کښې دې دَ سرو دَپاره دَ اوسپنې استعمالولوسره دَنامه نه لاندې ویښته صفاکول زیات بهتر دی اودَ قوت باه سبب دې. دَ ښځودَپاره بال صفا وغیره په نرمه طریقه سره لرې کول بهتر دی.
**د زیرناف ویختو د اخستلو موده:** دَ نامه لاندې ویښتو صفائی اووه ورځوکښې دننه بهتر ده کنی پنځلس ورځې پس اویا څلویښت ورځې دې د دې څخه روسته کولوکښې کراهت دې
**قوله:** تَقْلِیمُ الْأَظْفَارِ:
**د نوکونو کټ کولو مستحبه طریقه:** نوکونه پرې کول سنت دی دَدې مستحب طریقه داسې ده چه دَښی لاس دَ شهادت دَ ګوتې نه شروع کړی په غټه ګوته باندې ختم کړی اوبیا دَ ګس لاس دَ کچې ګوتې نه واخله په غټه ګوته باندې ختم کړی. په خپوکښې دا طریقه ده چه دَ ښې خپې دَ کچې ګوتې نه دې شروع کړی دَ ګسې خپې په غټه ګوته دې ختم کړی. نور تفصیل د تسهیلات په اول جلد کښې تیر شوې دې.
**قوله:** نَتْفُ الْإِبِطِ:
**د ترخونو ویختو اخستل:** نتف دَ بیخه راویستو اوراغونډولو په معنی کښې دې دَ ترخ دَ ویښتو اخستو ته وائی. په ګوتو کښې نیولوسره دا ویښته راویستل ښه وی که چاره پرې راښکلې شوه نودَویښتو خنګل به جوړشی. خوله جمع کیدوسره به ترخ نه بدبوئی راؤچتیږي.

**د ترخو وېښته د اخستلو موده**: په هغه کښې دې نتف وی گنی په شلو ورځو کښې او یا په څلویښتو ورځو کښې دې وی زیات پرېخودل مکروه دی تفصیل تیرشوې دې.

**تعارض**: په زیربحث حدیث کښې دَ پنځوخصلتونو ذکر دې خو په باب السواك کښې دَ لسو خصائلو بیان دې دا تعارض دې؟

**دتعارض جواب**: دَ یوخو اهم خصائلو بیان دَموقع اومحل مطابق کړې شوې دې څه حصر مقصود نه دې. نه هلته په لسوکښې حصر مقصود دې بلکه دَ لسو نه زیات خصائل هم دی اونه دلته په پنځوکښې حصرمقصود دې څومره چه بیان کړې شو هغه اهم خصائل په خپل ځائی باندې دی. دې نه علاوه هم دی دکوم ذکرچه ضروری اونه گڼړلې شو لهذا هیڅ تعارض نشته دې.

## [۴۴۳۱] د ږیرې اوږدولو حکم

۴۴۳۱ – [۳] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ- رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ: [۳] أَوْفِرُوا اللِّحَى، وَأَحْفُوا الشَّوَارِبَ» ". [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: " «أَنْهِكُوا الشَّوَارِبَ، وَأَعْفُوا اللِّحَى» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د اهلِ شرك خلاف كوئ [يعني هغوی ږيرې لنډوي او بريت اوږده کوي] نو تاسو په دې طور د هغوئ نه ځان ممتاز ساتئ، [۳] چې تاسو ږيرې اوږدوئ او بريت سپکوئ (پرېکوئ يې) [۴] او په يو روايت کې داسې دي چې تاسو بريت ډير سپکوئ او ږيرې پرېږدئ. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① أَوْفِرُوا: دَ وفرنه دې زياتول، ② اللِّحَى: دَ لحية جمع ده د ژامې هډوکی ته وائی دلته ترې ږيره مراد ده ③ أَحْفُوا: کم کړئ، ④ الشَّوَارِبَ: بريت، د شونډو دپاسه وېښته، ⑤ أَنْهِكُوا: کم کړئ، ⑥ أَعْفُوا: معاف کړئ يعنی پرېږدئ.

**تسهیلات**:

**قوله**: أَوْفِرُوا اللِّحَى:

**د ږيرې د ساتلو وجوب**: ږيره ساتل واجب دی دې ته سنت څکه وائی چه دَ سنت نه ثابته ده خروانې ده پاڅ باندې يولاکه انبياء کرام او يونيم لاکه صحابه کرامو کښې يوهم ږيره نه ده خرولې دَ ږيرې لويولودپاره "اوفروا" صيغه هم استعمال کړې شوې ده کوم چه دوفرنه دې اودَزياتولو په معنی کښې دې. دَدې دپاره دَ "واعفوا" صيغه هم استعمال کړې

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس /باب إعفاء اللحی (رقم-۵۸۹۳) ومسلم فی کتاب الطهارة /باب خصال الفطرة (رقم-۲۵۹ - ۵۲) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی أخذ (رقم-۴۱۹۹) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب جعفر بن أبی طالب أخی علی رضی الله عنه (رقم-۳۷۶۳) والنسائی فی کتاب الزينة /باب إحفاء الشوارب، وإعفاء اللحية (رقم-۵۲۲۶) واحمد فی المسند: ۵۲/۲

شوي دي. يعنی ږیره معاف کړئی دا هم داسې پریږدئی چه ښه لویه شي.
**د ږیرې د اوږدوالو مقدار:** دَ ږیرې لویولو حکم په احادیثوکښې مذکور دې دَدې څه حد ښته دې البته علماؤ لیکلی دی چه که دَسړی مخ وړوکې وی او ږیره دومره اوږده اولویه شی چه متقی او پرهیزګار صلحاء اوعلماء دا مناسب نه ګنړی. نودَ مخ په مناسبت ږیره دَ اطرافو نه اودَ اوږدوالی نه کمول جائز دی. دکمولوآخری حد دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دې چه یوقبضه یعنی موټی پورې کمولې شی دې نه کمول جائزنه دی. اودَ فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې. دَدین خبره هم دَدې حده پورې ده باقی دَعقل خبره ده چه دَهرعقل مند خپل خپل عقل دې هغه دین نه دې. د دې تفصیل د تسهیلات په اول جلد کښې تیر شوې دې.
بهرحال دَزیربحث حدیث داتعلیم دې چه ږیره اوږدول او بریت کټ کول دَمؤمن مسلمان کار دې کوم چه دَ رحمان قانون دې اوږیره پرې کول او بریت اوږدول دَ کافراومشرك کاردې کوم چه دَ شیطان قانون دې.

### [۴۳۳۳]د فطرتی څیزونو د کټ کولو زیاته موده

۴۳۳۳—[۳] ()[۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«وُقِّتَ لَنَا فِي قَصِّ الشَّارِبِ[۳] وَتَقْلِيمِ الْأَظْفَارِ[۴] وَنَتْفِ الْإِبِطِ[۵] وَحَلْقِ الْعَانَةِ[۶] أَنْ لَا نَتْرُكَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي[۲] چې زمونږ د پاره موده مقرره شوي ده،د بریت تراشلو،[۳] د نوکانو د کټ کولو،[۴] د بغل دویښتانو د صفا کولو[۵] او زیرناف زتر نامه لاندې، د ویښتانو د خرئیلو باره کې[۶] هغه دا ده چې مونږ هغه د څلویښتو ورځو نه زیات پرې نه ږدو. (مسلم)
**حل اللغات:** ددې حدیث مشکل الفاظ ددې څخه وړاندې دحدیث نمبر(۴۴۲۱) په حل اللغات کښې تیرشو.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ لَا نَتْرُكَ أَكْثَرَ مِنْ:

دَدې روایت څخه دغه مفهوم کیږی چه دَصفائی داټول کارونه په څلویښتو ورځوکښې دننه پوره کول پکاردی. دَدې نه زیاتې مودې پورې پریخودل دَ ګناه سبب دې.
**د څلویښتو ورځو څخه کمه موده کښې د مذکوره څیزونوصفا کول:** خو په نورو روایتونوکښې څه نور تفصیل هم ذکر دې. دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه یوروایت نقل دې چه نبی کریم به نوکونه او سنت په هره جمعه کټ کول. دَ نامه لاندې ویښته به نی په شلو

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الطهارة/باب خصال الفطرة (رقم-۵۱ - (۲۵۸) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی التوقیت فی تقلیم الأظفار وأخذ الشارب (رقم-۲۷۵۹) والنسائی فی کتاب الطهارة/باب التوقیت فی ذلک (رقم-۱٤)وابن ماجه فی کتاب الطهارة وسننها باب الفطرة (رقم-۲۹۵)واحمد فی المسند: ۲۵۰۵/۳

ورخوکښې صفا کول اودَ ترخ وېښته به ئې څلوېښت ورځې پس صفا کول.

**تطبیقی قول:** دَ فقې په یوکتاب قنیه کښې لیکلی دی چه غوره خبره داده چه دَ صفائی داتول کارونه په هفته کښې اوکړې شی که په هفته کښې ممکن نه وی نو پنځلس ورځو کښې دې اوکړې شی اوکه په دې باندې عمل اونه کړې شو نو په څلوېښت ورځوکښې دې اوکړی. دَدې نه زیاته موده پریخودل به بې عذر ګنړلې شی یعنی غوره خو په هفته کښې دی متوسط پنځلس ورځې اوآخری حد څلوېښت ورځې دی. دې نه پس مکروه اووعیددې بعضې علماؤ لیکلی دی چه نبی کریم به دَ ترخونو وېښته اودَنامه نه لاندې وېښته په څلوېښتو ورخوکښې صفاکول اودَ بعضې حضراتو دَ روایت مطابق به ئې په دیرش ورخوکښې صفاکول.

**دملا علی قاری رحمه الله تبصره:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دَ ترخ او نامه لاندې وېښته په یوه هفته کښې نه شی کټ کیدې ځکه چه دادومره زر نه لوئیږی. دَدې دَپاره دَ دیرشو ورځو موده معتدل قول دې. دَملاعلی قاری رحمه الله دافیصله ډیره ښه ده باقی پاتې شو نوکونه او بریت نو هغه په هفته کښې صفاکولې شی.

**[۴۴۴۳] د خضاب لګولو حکم**

۴۴۴۳-[۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل[۲] یهود او عیسایان خضاب نه لګوي، نو تاسو د هغوئ برخلاف کوئ (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①لَا يَصْبُغُونَ: رنګ نه کوی، وېښتانو ته رنګ نه ورکوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ:

**داهل کتابو دمخالفت حکم:** یعنی یهوداونصاری به دَ ږیرې په سپینو وېښتو کښې وسمه اودَ څه قسم رنګ نه لګولونوتاسو دَ هغوی په مخالفت کښې په ږیره کښې وسمه لګوئ.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب الخضاب (رقم-۵۸۹۹) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب فی مخالفة الیهود فی الصبغ (رقم-۸۰ - (۲۱۰۳) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی نتف الشیب (رقم-۴۲۰۲)والنسائی فی کتاب الزینة/باب الإذن بالخضاب (رقم-۵۰۷۲)وابن ماجه فی کتاب الطهارة وسننها باب- الفطرة (رقم-۲۹۵)واحمد فی المسند: ۲۴۰/۲

## د خضاب په لګولو کښې ۳ مذاهب:

① امام نووی رحمه الله فرمائی چه زمونږ مذهب کښې د سرو او ښځو دواړو دپاره زیړ یا سور خضاب لګول مستحب دې ، خضاب سواد حرام دې د اصح قول په بناء باندې. (بذل)

② د بذل په حاشیه کښې دی چه د احنافو مذهب هم دا دې صرح به الشامی اذ قال : یستحب للرجل خضاب شعره ولحیته ولو فی غیر حرب، وبسط الاختلاف فی ذلک القاری فی شرح الشمائل، وقال حجة من احب ترک الخضاب الحدیث المذکور قبل (من شاب شیبة فی الاسلام الحدیث) اهـ

③ د امام احمد رحمه الله هم دا مسلک دې قال الموفق : ویستحب خضاب الشعر بغیر السواد. امام احمد رحمه الله فرمائی چه کله زه شیخ مخضوب ته ګورم نو په دې باندې خوشحالیږم.

**د خضاب باره کښې د صحابؓ تعامل:** حضرات شیخین ابوبکر او عمر رضی الله عنهما نه خضاب ثابت دې او د علی رضی الله عنه نه ترک خضاب، حافظ فرمائی چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم یو جماعت خضاب اختیار کړې دې او یو جماعت ترک خضاب.

**تطبیقی قول:** د دې ترمینځه طبری رحمه الله تطبیق داسې کړې دې چه د چا دپاره چه څه مناسب او لائق وه هغه هم هغه شان اوکړل. د بعضو سپین ویښته په کتلو کښې بدې ښکاره کیدل او د بعضو غیر شنیع.

**دخضاب افضلیت:** حافظ فرمائی : لکن الخضاب مطلقا اولی لان فیه امتثال الامر فی مخالفة اهل الکتاب،وفیه صیانة الشعرعن تعلق الغبار وغیره،وړاندې فرمائی:مګرداچه د ښهر دخلقو عادت د ترک خضاب وی ځکه چه په دې صورت کښې چه کوم سړې خضاب کوی هغه به په مقام د شهرت کښې وی په دې وجه دې صورت کښې د هغه په حق کښې به ترک خضاب اولی وی.

**دتوررنګ څخه ممانعت:** دَ تېولو نه مخکښې په دې خبره باندې پوهیدل پکاردی چه نبی کریم دَ اصباغ، رنګ او وسمې په حوالې سره دَنکریزو ډیرزیات ترغیب ورکړې دې. دَ زیړ رنګ نې هم اجازت ورکړې دې خودَ تور رنګ نه نې په سختئی سره ممانعت کړې دې. دې پسې حدیث کښې "واجتنبوالسواد" جمله موجود ده کومه چه امام مسلم نقل کړې ده. کوم سړې چه د مسلم روایت ته موضوعی وائی هغه په غلطه دې ځکه چه دَ بخاری اومسلم شریف دَ احادیثو په صحت باندې دَامت اجماع شوې ده. امام احمدبن حنبل رحمه الله په خپل سند کښې داحدیث نقل کړې دې."غیرواالشیب ولاتقربواالسوا" (رواه احمد)

**دویښتوپه رنګ کولو کښې اقوال:** ① ملاعلی قاری رحمه الله په حواله دَ نووی رحمه الله نقل کړی دی چه دَ وسمې باره کښې یوڅو اقوال دی صحیح قول دادې چه په ویښتو کښې هرقسم رنګ او وسمه کول مستحب دی که هغه سړې اوکړی اوکه ښځه ئې اوکړی البته دَ تور رنګ

خضاب او وسمه حرام ده.

④ امام محمد رحمه الله په خپل موطا کښې داسې ليکی. "لانرى بالخضاب بالوسمة والحناء والصفرة بأسا وان تركه أبيض فلا بأس به كل ذلك حسن"

يعنى امام محمد رحمه الله په موطا کښې فرمائی مونږ د وسمې نکريزو اوزيړرنګ باندې ويسته خضاب کولو باندې څه پرواه نه لرو اوکه ويښته ئې سپين پريخودل نو هم څه بده نه ده دا دواړه عملونه ښه دی.(ناجائز نه دی)

③ په شرح شرعة الاسلام کښې ليکلی دی چه: "الخضاب سنة ثبت قولاً وفعلاً أما قولاً فلحديث أبي هريرة السابق. وأما فعلاً فلما قال ابن عمران النبي صلى الله عليه وسلم كان يصفر لحيته بالورس والزعفران"]

يعنى په شرعة الاسلام کښې دی چې د خضاب لګولو سنتيت قولاً اوفعلاً ثابت دې،قولاً خو د ابوهريره رضی الله عنه په سابقه حديث سره ثابت دې او فعلاً دابن عمر رضی الله عنهما په روايت سره ثابت دی چې نبی عليه السلام به خپله ږيره مبارکه په ورس اوزعفرانو سره رنګوله.

⑤ "وفي مجمع الفتاوى اختلفت الرواية في أن النبي صلى الله عليه وسلم هل فعل الخضاب في عمره؟ والأصح أنه لم يفعل الخضاب في لحيته لعدم الحاجة اليه وأما خضاب رأسه بالحناء فهو مشهور وقيل كان فعله غير مرة لدفع الصداع والحرارة قلت ويؤيده ما ورد في الاختضاب من الأحاديث" "منها" "اختضبوا بالحناء فانه يزيد في شبابكم وجمالكم ونكاحكم" (رواه البزاز)

ينى په مجمع الفتاوى کښې دی چې په دې باره کښې روايات مختلف دی چې نبی عليه السلام په خپل عمرکښې خضاب لګولی دی؟ نوصحيح خبره دا ده چې نبی عليه السلام ږيره به خضابو سره نه ده رنګ کړې ځکه چې دې ته څه حاجت نه وو پيښ شوی (د نبی عليه السلام په ږيره کښې سپين ويښته نه وو) اود سرويښته په خضاب سره رنګول نودا مشهوردی.اودا هم ونيلې شوی دی چې نبی عليه السلام ډيرکرته د سردردی اوګرموالی د لرې کولودپاره د خضابو استعمال کړې دې (صاحب دمجمع الفتاوی فرمائی) اوزه دا وايم چې ددې خبرې تائيد په هغه احاديثو سره کيږی په کومو کښې چې د خضاب لګولو ثبوت دې په هغه احاديثو کښې دا حديث هم دې چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی تاسو په نکريزو سره خضاب لګوئ ځکه چې دا ستاسو په ځوانی ،ښائست او د نکاح په مواقعو کښې زيادت پيدا کوی. "ومنها، اختضبوا وافرقوا وخالفوا اليهود" (رواه ابن عدی)

په دغه احاديثوکښې دا حديث هم دې چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی تاسو خضاب استعمالوئ اوويښته اوړده کوئ اود يهوديانو مخالفت کوئ.

قال الغزالي في الاحياء الخضاب بالسواد خضاب الكفار ويقال أول من خضب بالسواد فرعون لعنه الله. (مرقات)

امام غزالی رحمه الله په احياء علوم الدين کښې فرمائيلی دی د تور رنګ سره خضاب د کافرانو خضاب دې.اودا ونيلې شوی دی چې د ټولوڅخه اول چې تور خضاب استعمال کړی دی نوهغه فرعون وو.لعنه الله

وعن ابن الدرداء رفعه قال عليه السلام من خضب بالسواد سود الله وجهه يوم القيامة. (رواه الطبراني)

د ابن الدرداء څخه مرفوع روایت دې چې نبی علیه السلام فرمائلی دی چا چې تور خضاب اولګولو نو الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه مخ تور کړی.

ددې ټولو روایتونونه دا ثابتول مقصود دی چه په اسلام کښې خضاب کول جائز اومستحب دی البته دَ تور رنګ خضاب منع دې.

**اشکال:** اوس دلته سوال داپیدا کیږی چه کله خضاب کول دومره ضروری دی اودَ یهودو دَ مخالفت ذریعه ده نودې نه داثابت شو چه دَخضاب نه بغیر سپینه ږیره سپینه پریخودل منع دی حالانکه زیات مسلمانان رنګ نه کوی بلکه په طبعی حالت باندې ویښته سپین ساتی.

**د اشکال جواب:** دَحدیث مطلب دادې چه یهودیان هیڅ قسم رنګ اووسمه جائز نه ګنړی تاسو خضاب اووسمه ناجائز مه ګنړئی. دَ یهودومخالفت کولوسره دَجائز کیدو عقیده لرئی نوچه بیا خضاب اوکړئی نو هم جائز اوښه دی اوچه خضاب نه کوئی بلکه ږیره په خپل طبعی حالت پریږدئی داهم جائز اوښه دی. لکه چه دَامام محمد رحمه الله فتویٰ ده دې نه مخکښې لیکلې شوې ده چه "وان ترکه أبیض فلا بأس به".

**د تورې وسمې حکم:** دَ ائمه احناف په نیز مکروه تحریمی دی اودَ شوافع په نیز مطلق حرام دی.

**د تورې وسمې د حرمت دوه وجوهات:** ① دَ شریعت په نظر کښې ددې حرمت اصل منشاء داده چه په ځوان او بوډا کښې التباس رانه شی اوڅوك چاته دهوکه ورنه کړې شی څکه چه بوډا به دَ ډیرعمر سرې وی لیکن دَ خضاب دَ وجې به خپل ځان ځوان ښکاره کوی. دا دهوکه چونکه صرف په تورې وسمې سره کیږی په دې وجه دا منع کړې شو. دَ نورو رنګونو نه هرسړې پوهیدې شی چه بوډا دې په دې وجه ئې نکریزې لګولې دی نوالتباس به نه راځی.

② په توره وسمه کښې تغییر خلق الله هم دې. بهرحال دَ هغه سړی باره کښې په احادیثو کښې سخت وعیددې څوك چه توره وسمه استعمالوی.

**د بعضې کسانودپاره د تورې وسمې د استعمال جواز:** ① دَ مجاهد دَپاره ګنجائش شته دې دَپاره چه په دښمن باندې رعب وی

② دَداسې سړی دَپاره دَ چا واده چه ځوانې جینئی سره شوې وی اوهغه دَ خپلې ښځې دَ وجهې داسې کوی نوباوجود دَ خلاف اولی جائز دې.

③ یوسړې په داسې علاقه کښې اوسیږی چه هلته دَ هغه سړی نه سخت نفرت کیږی څوك چه توره وسمه استعمال نه کړی. ددې مجبورو دَ وجهې په درجه دَ مجبورئی توره وسمه استعمالول مجبوری ده ګنی توره وسمه کول څرته ضروری ده چه کله دې ملا تیته شی نوولې په وسمې سره به نیغه شی؟

## [۴۴۲۴] د ابوبکر د پلار د ږیرې د خضاب کولو حکم

۴۴۲۴-[۶] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ [۳] وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ بَيَاضًا. [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَيِّرُوا هَذَا بِشَيْءٍ [۵] وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي [۲] چې د حضرت ابوبکر صديق ﷛ پلار ابوقحافه ﷛ د مکې د فتحې په ورځ راوستل شو [او په هغه ورځ هغه اسلام قبول کړو]، [۳] د هغه د سر او ږيرې ويښتان ثغامه وو [يعنی بالکل سپين وو]، [۴] نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل چې د دې ويښتانو سپينوالي د يو شي په ذريعه بدل کړئ، [۵] ليکن د تور رنګ نه پرهيز کوئ. يعنی تور خضاب مه استعمالوئ. (مسلم)

**حل اللغات:** ① الثَّغَامَةِ: د سپينو ګلونو والا بوټي دي. هغې سره تشبيه ده چې د دوی ږيره داسې سپينه شوې وه. ② غَيِّرُوا: بدل کړئ،

**تسهيلات:**

**قوله:** غَيِّرُوا هَذَا بِشَيْءٍ، وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ:

**د حديث پس منظر:** د حضرت ابوبکر ﷛ د پلار نوم عثمان دې ابوقحافه د هغوی کنيت وو د فتح مکه په موقع باندې د ډير بوډاوالی په عمر کښې مشرف باسلام شو. کله چه نبی کريم له راوستلې شو نود سراو ږيرې ويښته ئې د ثغامة ګل په شان تک سپينوالی د وجهې پرقيدل نبی کريم اوفرمائيل په دې باندې وسمه اولګوئ خو د تورې وسمې خان ساتئ معلومه شوه چه توره وسمه استعمالول مکروه تحريمی يا حرام دی.

## [۴۴۲۵] د سر په ويختو کښې د لارې جوړول

۴۴۲۵-[۷] (۲) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يُحِبُّ مُوَافَقَةَ أَهْلِ الْكِتَابِ [۳] فِيمَا لَمْ يُؤْمَرْ فِيهِ، [۴] وَكَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَسْدُلُونَ أَشْعَارَهُمْ، [۵] وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرُقُونَ رُءُوسَهُمْ، [۶] فَسَدَلَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-نَاصِيَتَهُ، [۷] ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷛ وايي [۲] چې نبي کريم ﷺ به د اهل کتابو په هغه څه کې موافقت خوښولو، [۳] چې په کومه معامله کې به د الله تعالی ﷻ د طرف نه څه حکم نه

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب فی صبغ الشعر وتغيير الشيب (رقم-۷۹ - (۲۱۰۲) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی الخضاب (رقم-۴۲۰۴) والنسائی فی کتاب الزينة/باب الأمر بالخضاب (رقم-۵۲۴۲) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب الخضاب بالسواد (رقم-۳۶۲۴)

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب الفرق (رقم-۵۹۱۷) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی سدل النبی صلی الله عليه وسلم شعره وفرقه (رقم-۹۰ - (۲۳۳۶) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب کراهة القزع (رقم-۱۱۳ - (۲۱۲۰) وابوداود فی کتاب الترجل/باب ما جاء فی الفرق (رقم-۴۱۸۸) والنسائی فی کتاب الزينة/باب فرق الشعر (رقم-۵۲۳۸) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب اتخاذ الجمة والذوائب (رقم-۳۶۳۲)

وو شوي، ۴ اهل کتابو به د خپل سر ویښتان دغه شان پریخودل [یعنی هغوئ به کرښه نه ویستله، بلکي خپل ویښتان به یې دغه شان پراته پریخودل] ، ۵ او مشرکینو به په خپلو سرونو کې کرښه ویستل، ۶ نو نبي کریم ﷺ به [د اهلِ کتابو د طریقي مطابق] د خپل تندي ویښتان دغه شان پریخودل ۷ بیا وروسته یې کرښه وویستله (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① يَسْدُلُونَ : رازوړند به ئې ساتل، ② يَفْرُقُونَ : منځ کښې به ئې کرښه ویستله. ③ نَاصِيَتَهُ: دخپل تندی

**تسهيلات**:

**قوله: مُوَافَقَةَ أَهْلِ الْكِتَابِ**:

**د نبی علیه السلام رجحان**: چونکه اهل کتاب سره آسمانی کتاب اوآسمانی مذهب وو په دې وجه چه ترکومې به په نبی کریم باندې دَ شریعت محمدیه مطابق څه حکم نه نازلیدو نبی کریم به دَاهل کتاب طورطریقې ته دَ اهل مکه دَ مشرکینو په طورطریقه باندې ترجیح ورکوله اهل مکه سره دَ حضرت ابراهیم علیه السلام څه معمولی شان آثار وو هم دَ دغه قاعدې مطابق نبی کریم دَ سدل او فرق په معامله کښې اول دَ اهل کتاب دَ سدل طریقې ته ترجیح ورکړه بیا په وحی سره معلومه شوه چه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام طریقه دَ سدل نه بلکه دَ فرق اولارې ویستلو وه.

**قوله: وَكَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَسْدُلُونَ أَشْعَارَهُمْ**:

**دسدل اوفرق تعریف**: دَ سر دَ ویښتو په څلورو واړو اطرافو کښې دَ رازوړندولو نوم سدل دې چې دَ سرویښته په دوو حصوکښې تقسیم کړې شی اود سر د ویختو په مینځ کښې ښط او ګس طرف ته لار اویستلې شی نودې ته فرق،، وائی رسول الله ﷺ اول سدل اختیارکړو بیانی دَ یهودیانو طریقه پریخوده

**د یهودیانوسره د مخالفت یو څو واقعات**: ① نبی علیه السلام اول ئی سدل اوکړو بیانی مخالفت کولوسره فرق اختیار کړو

② اول نی دَ عاشوره روژه اوساتله بیانی ورسره یوه دَ ملاوولوحکم ورکړو.

③ اول نی ویښته سپین پریخوده بیانی دَ خضاب حکم ورکړو

④اول ئی حائضه ښځې نه بالکل بائیکاټ اوکړو بیا ئی دَ جماع نه علاوه دَ اختلاط حکم ورکړو

⑤ اول ئی بیت المقدس طرف ته مونځ اوکړو بیا ئی مخالفت کولوسره بیت الله شریف طرف ته کول شروع کړو.

⑥ اول ئی دَ جنازې دپاره دَ اودریدو حکم ورکړو بیا ئی دَ یهود په مخالفت کښې ترک کړو.

⑦ اول ئی دَ هفتې او اتوار دَ روژو ساتلو نه منع اوکړه بیائی دَ یهودو اودَ نصاریٰ په مخالفت کښې روژه ساتل شروع کړه چه دَهغوی اخترډې نو مونږ به روژه ساتو.
⑧ اول ئی دَ جمعې دَ ورځې دَ روژې حکم ورکړو بیا دَ جمعې دَ ورځې روژه منع کړه.

**[۴۳۳۶] د ماشوم د نیم سر د خریلو ممانعت**

۴۳۳۶-[۸] ()[۱] وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَنْهَى عَنِ الْقَزَعِ. [۳] قِيلَ لِنَافِعٍ: مَا الْقَزَعُ؟ [۴] قَالَ: يُحْلَقُ بَعْضُ رَأْسِ الصَّبِيِّ، [۵] وَيُتْرَكُ الْبَعْضُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۶] وَأَلْحَقَ بَعْضُهُمُ التَّفْسِيرَ بِالْحَدِيثِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نافع د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کوي چه هغه اوویل [۲] چه ما د نبي کریم ﷺ نه واوریدل چه د قزع نه منع فرمایله [۳] د نافع رحمه الله نه پوښتنه وشوه چه قزع څه ته وايي؟ [۴] هغه اوویل چې قزع دي ته وايي چې د هلك د سر بعضې حصه وخریل شي، [۵] او بعضې حصه پریخودل شي (بخاري مسلم) [۶] او بعضې راویانو دا وضاحت د حدیث سره یوځای کړي دي، یعنی د هغه راویانو مطابق د قزع دا معنې حضور ﷺ بیان وفرمایله.

**حل اللغات:** ① اَلْقَزَعِ: "قال النووي القزع حلق بعض الرأس مطلقاً". دَ سربعضې ویښته پرې کول اوبعضې پریخودل.

**تسهیلات:**

**قوله:** يُحْلَقُ بَعْضُ رَأْسِ الصَّبِيِّ، وَيُتْرَكُ الْبَعْضُ:

**د قزع تعریف:** یعنی دَ حدیث دَ راوی نه چاتپوس اوکړوچه قزع څه څیزدې نو هغوی په جواب کښې دَ قزع تعریف اوکړو په دې کښې راوی قزع ماشوم سره خاص کړې ده. داقید په وجه دَ رواج دې ځکه چه په عام توګه قزع دَ ماشومانوپه ویښتوکښې کولې شی. ګنې دَ ممانعت په اعتبارسره لکه څنګه چه قزع دَ ماشومانودپاره مکروه ده هم دغه شان دَ ج لویودپاره هم مکروه ده.

**د قزع یو څو صورتونه:** ① دَ قزع بې شمیره صورتونه دی. بعضې خلق دَ حج اوعمرې په وخت دَحلق په غرض سره څلورمه حصه دَ سرپه یوه عمره کښې پرې کوی بیا په دویم ځل او دریم ځل داسې کوی. څه ویښته پرې کوی اوڅه پریږدی. دادَ قزع مکروه ترین صورت دې.
② بعضې خلق دَ بدنظر نه دَ بچ کیدودپاره دَماشومانو په ویښتوکښې کربښې جوړوی. دَ

---

() اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب القزع (رقم-۵۹۲۰) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب تحریم فعل الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة والنامصة والمتنمصة والمتفلجات والمغیرات خلق الله (رقم-۱۱۹ - (۲۱۲۴)) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی الذؤابة (رقم-۴۱۹۳) والنسائی فی کتاب الزینة/باب ذکر النهی عن أن یحلق بعض شعر الصبی ویترک بعضه (رقم-۵۲۲۹) وابن ماجه فی کتاب اللباس . باب النهی عن القزع (رقم-۳۶۳۷) واحمد فی المسند: ۴/۲

مخکښې نه شاته او د نبی نه کُس طرف ته ویښته تراشلوسره کربنې جوړوی. داهم بدترین قزع ده

④ بعضې خلق دماشومانو د سر ویښته تراشلوسره دتندی نه د پورته کېږې پورې ویښته پریږدی اودې ته چوټیه وائی داهم قزع ده

④ دغه شان انګریزی ویښته ساتل هم په قزع کښې راځی لکه فوجی کټ، سدهیرکټ، سنتوش کټ هیپی وغیره وغیره ددې دپار ضابطه داده که د سرټول ویښته برابر پرې کړې شی نودا قزع نه ده لیکن که بعضې ویښته لونی او بعضې واړه پریخودو سره کټ کولې شی داټول قزع دی کوم چه مکروه دی که لونی کوی نی اوکه واړه کوی نی

⑤ په موجوده زمانه کښې زمونږ په علاقه پیښور وغیره کښې د فوجی کټنګ رواج شروع شوې دې بعضې په کښې بیخی د قزع صورت دې چې نیم سر ئې خریلې وی اونیم ئې د ویښتو سره پریخودې وی. ځوانان په دې مرض کښې زیات مبتلا دی.

**[۴۴۲۷]د ماشوم د بعضې ویښتو خریل او د بعضې د پریخودلو مما نعت**

۴۴۲۷–[۹]()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-[۲]«أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-رَأَى صَبِيًّا[۳]قَدْ حُلِقَ بَعْضُ رَأْسِهِ وَتُرِكَ بَعْضُهُ،[۴]فَنَهَاهُمْ عَنْ ذَلِكَ،[۵]وَقَالَ: "احْلِقُوا كُلَّهُ أَوِ اتْرُكُوا كُلَّهُ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] او د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې[۲] چې [یوه ورځ] رسول الله ﷺ یو هلك ولیدلو.[۳] چې د هغه سر څه خریل شوي وو او څه پریخودل شوي وو.[۴] نو حضور ﷺ د هلك پرورش کونکي د دې نه منع کړل.[۵] او وي فرمایل چې پوره سرخروئ، یا پوره سر پریږدئ (مسلم)

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث وضاحت دې څخه وړاندې حدیث نمبر ۴۴۲۶ په تشریح کښې اوګورئ.

**[۴۴۲۸]په نرښځی د نبی کریم ﷺ لعنت**

۴۴۲۸–[۱۰]()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ:[۲]«لَعَنَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ[۳]وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ[۴]وَقَالَ: "أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي[۲] چې رسول الله ﷺ په مخنث (یعني په نرښځی) سړو لعنت ویلي دي.[۳] او په هغه ښځو یي هم لعنت ویلي دي، کومې چې د سړو مشابهت

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الذؤابة (رقم-۴۱۹۵) والنسائی فی کتاب الزینة/باب ذکر النهی عن أن یحلق بعض شعر الصبی ویترک بعضه (رقم-۵۰۴۸)

[2] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب إخراج المتشبهین بالنساء من البیوت (رقم-۵۸۸۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المتشبهات بالرجال من النساء (رقم-۲۷۸۵) واحمد فی المسند:اخرجه البخاری فی/۲۲۵

اختیاروي، [۳] او حضور ﷺ وفرمایل چې مخنثان د خپلو کورونو نه وباسئ (بخاري)

**حل اللغات:** ① اَلْمُخَنَّثِينَ: نربنځی ② اَلْمُتَرَجِّلَاتِ: هغه ښځې چه د سړو مشابهت اختیاروی

**تسهیلات:**

**قوله:** لَعَنَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ:

**دمخنث تعریف:** مخنث دَ باب تفعیل نه دې اوپه مجرد کښې دَ سمع یسمع نه دَنرمیدو اوَ ماتیدو اوخرابیدو په معنی کښې دې.

دکوموخلقو چه حرکات اوسکنات قول اوفعل دَ ښځوپه شان وی لباس دَ ښځوپه شان جوړوی آواز چال چلن کښې دَ ښځوپه شان انداز لری دامخنث دې. دې ته هجړه هم وائی

**دمخنث دوه قسمونه:** ① یو مخنث خلقی طبعی او پیدائشی وی نوپه دې باندې څه شرعی بندیزنشته دې هغه قدرتی آفت کښې راګیردې. معذوره دې اومجبوره دې

② لیکن که یوتیک تاک سړې دې اوهغه په حرکاتو اوسکناتو کښې دَ ښځوپه شان دَ ژوندطرز اووضع قطع اختیاروی تردې چه جنسی آله بدلوی نودا مجرم دې اوهم په دې قسم والا باندې لعنت لیږلې شوې دې. نکریزې لګول دَ ښځودپاره مسنون دی اودَسړودپاره دَ ضرورت نه بغیرمکروه دی.

**د سړو سره مشابهت اختیارونکوښځوباندې لعنت:** دَمخنث په مقابله کښې په هغه ښځوباندې هم لعنت کړې شوې دې چه دَژوند په طور طریق اوحرکاتو اوسکناتو او اقوالو اوافعالو کښې دَسړو په شان چال چلن خپلوی او داخبره ده چه په رائې ورکولو اوپه علم کښې دَ سړو په شان مشابهت اختیارولوکښې څه قباحت نشته دې

**قوله:** أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ:

**د هیجړاګانود زنانو سره د کیدون ممانعت:** چونکه دا مخنث دَتعلق په اعتبارسره دَ سړو په حساب کښې راځی په دې وجه اوفرمائیلې شو چه دوی دَ کورونونه اوباسئی دې دپاره چه ښځوسره یوځائی پاتې نه شی

**[۴۳۲۹]لعنتی ښځې او سړی**

۴۳۲۹ - [۱۱] (¹) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَعَنَ اللّٰهُ الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ [۳] وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړي چې د ښځو مشابهت اختیار وي، او کومي ښځي چې د سړو مشابهت اختیاروي، په هغوئ د الله

¹) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب: المتشبهون بالنساء، والمتشبهات بالرجال (رقم-۵۸۸۵) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المتشبهات بالرجال من النساء (رقم-۲۷۸٤)

ﷺ لعنت وي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① الْمُتَشَبِّهِيْنَ: ښځو سره مشابهت کونکی سړی، ②الْمُتَشَبِّهَاتِ: سړو سره مشابهت کونکی ښځې

**تسهیلات: نوټ:** ددې حديث د مضمون تشريح دې څخه وړاندې حديث نمبر(۴۴۲۹) په تشريح کښې تيره شوې ده.

### [۴۴۳۰]دانسانې وېښتو څخه د فائدې اخستلو حرمت

۴۴۳۰ -[۱۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ، [۳]وَالْمُسْتَوْصِلَةَ،[۴]وَالْوَاشِمَةَ،[۵]وَالْمُسْتَوْشِمَةَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر ﷠ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] لعنت ونيلې دې الله تعالى په هغه ښځو کومې چې په خپلو وېښتانو کې د بلې ښځې د وېښتانو جوړ ولګوي (خواه که خپله يې ولګوي او که په بلې ښځې يې ولګوي)[۳] او کومه ښځه چې د بلې ښځې په وېښتانو کې د خپلو وېښتانو جوړ لګوي،[۴] او کومه ښځه چې خان ته خالونه وغيره لګوي [۴] يا بلې ښځې ته يې لګوي (په ستنو وغيره سره) [په دې ټولو د الله ﷻ لعنت دې] (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْوَاصِلَةَ: خپلو وېښتانو کښې پردی وېښتان لګونکی ښځه، ② الْمُسْتَوْصِلَةَ: خپلو وېښتانوکښې د پردی وېښتو لګولو مطالبه کونکې ښځه، ③ الْوَاشِمَةَ: خپل بدن کښې خالونه لګونکې ښځه، ④الْمُسْتَوْشِمَةَ: د بلې ښځې نه دخالونه لګولو مطالبه کونکې ښځه.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ:

**د واصله په تعريف کښې دوه اقوال:** د واصله معنى په حل اللغات کښې شوې ده باقي دحديث مطلب دادې چه يوه ښځه دَ خپل حسن زياتولو دپاره دَ بلې ښځې دَ وېښتو کمسئى اوچوټيه راواخلى اوخپلو وېښتوسره ئې شاملوى دغه ښځې ته واصله وائى اودا کاردَ لعنت سبب دې. علامه طيبى ﷫ دَ واصله مفهوم داسې بيانوى: "الواصلة التى تصل شعرها بشعر آخر زُوراً" [الكاشف: ۸/۲۶۸]

② شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کښې ليکلى دى.واصله هغه ښځې ته وائى

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب اللباس/باب الوصل فى الشعر (رقم-۵۹۳۷) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب تحريم فعل الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة والنامصة والمتنمصة والمتفلجات والمغيرات خلق الله (رقم-۱۱۹ - (۲۱۲٤) وابوداود فى كتاب الترجل /باب فى صلة الشعر(رقم-۴۱۶۸)والترمذى فى كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى مواصلة الشعر (رقم-۱۷۵۹) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ الواصلة والواشمة (رقم-۱۹۸۷) واحمد فى المسند: ۲۱/۲

چه خپلو ويښتوسره دنورو ويښتو لګولوپيوندلګولوسره يوځائى كوى دي دپاره چه دهغې
خپل ويښته زيات ګنړ او اوږده شي
ددې تشريح مطابق ښځه يوه ده اود خپلو ويښتو دزياتولو په چكركښې ده.
**قوله: وَالْمُسْتَوْصِلَةَ:**
**د مستوصله په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① دادَ باب استفعال نه دې سين اوتاء دَ طلب دپاره دى يعنى چه كومه ښځه دَ نورو ښځونه مطالبه كوى چه زما په سركښې دا ويښته يوځائى كړئى قاله الطيبى. [الكاشف: ۲۶۸/۸]
② شيخ عبدالحق رحمه الله ليكلى دى چې مستوصله هغه ښځې ته وائى چه دَ يوبلې ښځې نه مطالبه كوى چه زما ويښتوسره دَ نوروويښتو لګولواو پيوندكولوسره يوځائى كړه. [اشعة اللمعات، ۶۱۳/۳]
ددې تشريح مطابق ښځه يوه ده اود خپلو ويښتو دزياتولو په چكركښې ده.
**دحرمت وجوهات:** ① دَ بل انسان دَ بدن دَ جزء نه دَ شرعى ضابطې نه بغير فائده اوچتول هم دى كوم چه ناجائز دى
② چه په دې كښې تغيرخلق الله هم دې
③ په دې كښې دروغ او دهوكه هم ده.
**په ويښتوكښې دبل څيزيوځائې كولو په حكم كښې دوه اقوال:** كه چرې دَانسان ويښته ښځه په خپلو ويښتو كښې يوځائى كوى نودا مطلقًا حرام دى. ليكن كه دَ ويښتونه علاوه ورئى يا نور څه تارونه يوځائى كوى نودَدې څه حكم دې؟
① كه يوه ښځه دَ يوځناور ويښته مثلاً دَ قچر اس دَ لكئى ويښته په خپلو ويښتوكښې شاملوى نودَدې څه حكم دې؟ نوامام مالك رحمه الله اونور اكثرعلماء مطلقًا دَ ويښتويوځائى كولوناجائز ګنړى ځكه چه دَ حديث ممانعت عام دې هم دغه راجح دى.
② څه علماؤ په بعضې خاص حالاتوكښې دَ ځناور ويښته يوځائى كول جائز ګرځولى دى. نن صبا په بازار كښې دَزركونو جوړ شوى دَ سر ويښته سره دَ خول اوټوپئى ملاويږى ښځې نى اخلى اودَ لعنت مستحق ګرځى.
**قوله: الْوَاشِمَةَ:**
**د واشمه تعريف:** وشم دَ بدن خالونوته وائى. دَدې طريقه داده چه ستن يا بل څه تيره څيز بدن كښې ورخښولې شى چه كله زخمى شى او وينه ترې اوبهيږى نو دغه زخم په رانجو يا نيل وغيره اچولوسره دكولې شى كله چه څرمن يوځائى شى زخم تيك شى نولاندې شنې ښې او خال ښكارى چه دَهميشه دپاره وى. واشمه هغه ښځې ته وائى چه داعمل پخپله

خپل بدن کنبي کوي.

**قوله:** الْمُسْتَوْشِمَةَ:

**د مستوشمه تعریف:** مستوشمه هغه ښځې ته وائی چه داعمل پخپله نه کوی په بل چاباندې کوی. دَعبارت ترجمه داسې ده "خانله خال لګونکې او بل له خال لګونکې"

په دې کنبې تغیرخلق الله دې په دې وجه حرام دی. علماؤ لیکلی دی که چرې پلیته ماده دَ ځرمن لاندې خښه پاتې شی نوبیابه په دې سره اودس غسل او مونځ نه صحیح کیږی ځکه چه هغه ځائی پلیت پاتې کیږی. والله اعلم.

**[۳۳۳] د الله تعالی په تخلیق کښې بدلون راوستونکو باندې لعنت**

۳۳۳ — [۱۳] ()۱ «وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاشِمَاتِ، ۳ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ، ۴ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، ۵ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ، ۶ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ، ۷ فَجَاءَتْهُ امْرَأَةٌ، فَقَالَتْ: ۸ إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّكَ لَعَنْتَ كَيْتَ وَكَيْتَ. ۹ فَقَالَ: مَالِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۱۰ وَمَنْ هُوَ فِي كِتَابِ اللّٰهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وایي ۲ چه خدای جل جلاله لعنت فرمایلي دي په خال وهونکو ښځو، ۳ یا بل چاته په خال وهونکو ښځو ۴ ځان ته یا بل چاته د مخ نه په ویښتان ښخو، ۵ د حُسن د زیاتولو د پاره په غاښونه سوهان کونکو ښځو، ۶ [په هغه تولو] چې د الله جل جلاله په جوړ شوي څیزونو کې تغیر کوي، خدای جل جلاله لعنت فرمایلي دي ۷ [هر کله چې د ابن مسعود رضی الله عنه دا روایت ښځو ته ورسیدلو نو] یوه ښځه حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته راغله هغې اوویل ۸ چې ماته دا خبره رارسیدلي ده، چې تاسو په داسې [ښځو] لعنت وایئ، ۹ ابن مسعود رضی الله عنه وفرمایل زما د پاره څه بندیز دي چې زه په داسې لعنت ونه وایم په چا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم لعنت ویلي دي، ۱۰ او څوک چې په کتاب الله کې ملعونه ګرځول شویدی.

**حل اللغات:** ① الْمُتَنَمِّصَاتِ: د مخ نه د ویښتو ویستلو مطالبه کونکې ښځه، ② الْمُتَفَلِّجَاتِ: غاښونه تراشونکې او نری کونکې ښځه، ③ خَلْقَ اللّٰهِ: دالله تعالی پیدا کړی څیزونه.

۱ فَقَالَتْ: لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ، ۲ فَمَا وَجَدْتُ فِيهِ مَا تَقُولُ. ۳ قَالَ: لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ، ۴ أَمَا قَرَأْتِ: ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [الحشر: ۷] ۵ قَالَتْ: بَلَى. ۶ قَالَ: فَإِنَّهُ قَدْ نَهَى عَنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۱) اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب {وما آتاکم الرسول فخذوه} [الحشر: ۷] (رقم-۴۸۸۶) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب تحریم فعل الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة والنامصة والمتنمصة والمتفلجات والمغیرات خلق الله (رقم-۱۲۰ - (۲۱۲۵) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی صلة الشعر(رقم-۴۱۶۹)وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الواصلة والواشمة (رقم-۱۹۸۹)واحمد فی المسند: ۴۱۵/۱

**ترجمه:** [۱] هغې ښځې اوویل ماهم هغه شي ویلي دي څه چې د دوو لوحینو په منځ کې دي [یعني ماهم پوره قرآن کریم ویلي دی] [۲] لیکن په هغې کې ما دا خبره کومه چې تاسو وایئ [په صریح الفاظو کې] نه ده پیدا کړي، [۳] ابن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمایل که تا قرآن کریم [په غور او فکر سره] ویلی، نو یقیناً تابه د دې حکم پیدا کړي وي، [۴] آیا تا دا آیت نه دي ویلي مَا آتَاكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا (یعني څه چې رسول الله ﷺ درکړیدي هغه قبول کړئ، او عمل وربانديې وکړئ، او د کوم څیز نه چې منع کړي یې د هغې نه منع شئ) [۵] هغې ښځې اوویل چې هو دا آیت خو ماویلي دي، [۶] ابن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمایل بس دا هغه شي دي چې حضور ﷺ ځیني منع فرمایلي ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ۞ اللَّوْحَيْنِ: اي الدفتين " د دوو تختو په مینځ کښې یعنی اول نه تر آخره پورې پوره قرآن.

**تسهیلات: قوله: وَالْمُتَنَمِّصَاتِ:**

**د متنمصات وضاحت:** د مُتَفَعِّلَاتٌ په وزن بانديې په دویم میم بانديې شد دې مناص اي المنقاش نوسی ته وائی دَمخ نه واړه ویښته چه په کومې آله سره راویستې شی هغې ته منماص وائی. دغه شان عمل کونکې ښځې ته نامصه وائی دکوم ذکرچه په بل حدیث کښې دې دلته دَمتنمصه ذکردې هغه داسې ښځه ده چه په نورو بانديې داکار کوی یعنی دَ ویښتو راویستونکې ښځه.

**قوله: الْمُتَفَلِّجَاتِ:**

**د متفلجات وضاحت:** دادَفلج نه دې دَ دوو غاښونو په مینځ کښې فاصله او کهړکئی نه وائی. په جاهلیت کښې دَ ښائست زیاتولودَپاره به ښځو په سوان سره غاښونه رژول دې دَپاره چه غاښونه ښه په طریقه شي یا به ئی په مینځ کښې فاصله کولوسره په غاښونوکښې خائی پریخودلو دې دَپاره چه ښائسته ښکاری. په دې کښې چونکه تغییرخلق الله دې په دې وجه منع او دَ لعنت سبب دې "انه" یعنی شان دادي

**قوله: "وَمَنْ هُوَفِي كِتَابِ اللّٰهِ، اي ومن هوملعون في كتاب الله:**

**د ښځې د مذکوره قول مطلب:** دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه کلام سره په دغه ښځه بانديې اشتباه راغله چه په قرآن کښې چرته ذکر دی په دې وجه ئی اووئیل چه ما پوره قرآن دَاول نه واخله ترآخره پورې وئیلي دي داحکم هلته نشته دې؟

[۴۴۳۲] د خال لګولو ممانعت

۴۴۳۲-[۱۴] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «الْعَيْنُ حَقٌّ " ③ وَنَهَى عَنِ الْوَشْمِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② نظر لګيدل حق دي، ③ او حضور ﷺ د خالونو د وهلو نه منع وفرمايله. (بخاري)

**حل اللغات:** ① الْعَيْنُ: نظر لګيدل، ② الْوَشْمِ: خال لګول.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْعَيْنُ حَقٌّ:

**د بدنظر لګيدلو کيفيت:** اهل سنت فرمائي چه بد نظر يوحقيقت دي داهيڅ وهم نه دي. دَ قرآن اوحديث ډير نصوص په دې باندې دلالت کوی معتزله ته پخپله وهم شوې دې.
دَبدنظر لګيدوطريقه علماؤ داسې بيان کړې ده چه دَ عائن اودَ ناظر قوت واهمه په منظورباندې اثر کوی نوهغه متاثره کيږی يا دَ عائن اودَ ناظر دَ سترګونه باقاعده جراثيم خی اوپه منظور باندې اثر کوی. دَ الله تعالى په مشيت اوحکم سره دَ ناظر په نظر کښې دا اثر پيدا شوې دې.

**وشم اوبدنظری په يوځائې بيانولو کښې حکمت:** په اهل وشم کښې دَ اکثرخيال داوی چه دَ وشم دَ وجهې بدنظر ختميږی. دَدې په جواب کښې ئې اوفرمائيل چه وشم مه کوئی بد نظر يو حقيقت دې هغه چه کله لګی نو وشم هغه نه شی منع کولې.

[۴۴۳۳] د سر د ويښتو د راغونډولو حکم

۴۴۳۳-[۱۵] (۲) ① «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُلَبِّدًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي ② چه ما رسول الله ﷺ ملبد (په ويښتانو سريښ، ګوند، لګونکي) ليدلي دي. (بخاري)

**حل اللغات:** ① مُلَبِّدًا: د سر په ويښتو باندې سريش وغيره لګول.

**تسهيلات:** **قوله:** مُلَبِّدًا:

**د مذکوره لفظ وضاحت:** دَدې مطلب دادې چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائي چه نبی کريم دَ

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الطب/باب: العين حق (رقم-۵۷۴۰) ومسلم في كتاب السلام/باب الطب والمرض والرقى (رقم-۴۱ - (۲۱۸۷)

(۲) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب التلبيد (رقم-۵۹۱۴) ومسلم في كتاب الحج /باب التلبية وصفتها ووقتها (رقم-۲۱ - (۱۱۸۴) والنسائي في كتاب مناسک الحج/باب التلبيد عند الإحرام (رقم-۲۶۸۳)واحمد في المسند: ۱۲۱/۲

حج په موقع باندې ګوندوغيره سره خپل دَ سر ويښته راغونډکړی وو چه ما اوليدلو. نبی کريم به دَ دوړو نه دَبچ کيدودپاره داسې کړې وی يابل څه مقصد به ئی وو دَ احرام په حالت کښې داسې کول جائز دی ليکن ويښته پټول جائز نه دی.

**[۴۳۳۴] سرو دپاره دزعفرانو د استعمالولو ممانعت**

۴۳۳۴-[۱۶] (١)[١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢]«نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت انس وايي [٢] چې رسول اللهﷺ د دې نه منع فرمايلي ده چې يو سړي [په خپل بدن يا کپړو] زعفران ومږي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ①يَتَزَعْفَرَ: چه زعفران اولګوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ:

**په بدن يا جامه کښې دزعفرانو د استعمالولو حکم:** تزعفردَ زعفران نه جوړشوې دې مطلب دادې چه سړی نه په خپلو کپړوکښې دَ زعفران خوشبوئی استعمالولې شی اونه دَ زعفران خوشبوئی په خپل بدن باندې مږلې شی ځکه چه زعفران مږل ښځوسره مخصوص دی.

**اشکال:** بعضې صحابه کرامو زعفران استعمال کړې دی يا خلوق ئی استعمال کړې دې کوم چه دَ زعفران دويم نوم دې.

**داشکال دوه جوابونه:** ① په ډير لږ مقدار کښې به ئی استعمال کړې وی ممانعت دَ کثير مقدار دې.

② کيدې شی هغه دَ ممانعت نه دَمخکښې وخت واقعه وی.

**[۴۳۳۵] در نړه داره خوشبود استعمالولو حکم**

۴۳۳۵-[۱۷] (٢)[١] «وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [٢]كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِأَطْيَبِ مَا نَجِدُ، [٣]حَتَّى أَجِدَ وَبِيصَ الطِّيبِ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب النهی عن التزعفر للرجال (رقم-۵۸۴۶) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب النهی عن التزعفر للرجال (رقم-۷۷ - (۲۱۰۱) وابوداود فی کتاب الترجل /باب فی الخلوق للرجال (رقم-۴۱۷۹)والترمذی فی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۵) کتاب الزينة/باب التزعفر (رقم-۵۲۵۶)

[2]) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب الطيب فی الرأس واللحية (رقم-۵۹۲۳) ومسلم فی کتاب الحج /باب الطيب للمحرم عند الإحرام (رقم-۳۸ - (۱۱۸۹) وابوداود فی کتاب المناسک/باب الطيب عند الإحرام (رقم-۱۷۴۵) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الطيب عند الإحلال قبل الزيارة (رقم-۹۱۷) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب إباحة الطيب عند الإحرام (رقم-۲۶۹۰)وابن ماجه فی کتاب المناسک/باب الطيب. عند الإحرام (رقم-۲۹۲۶) واحمد فی المسند:۱۸۶/۶

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي [۲] ما سره چې به كومه بهترينه خوشبو وه نو مابه هغه رسول الله ﷺ پورې لګوله [۳] تر دې چې د هغه خوشبو رونق به ماته د حضور ﷺ په سر او ږيرې كې په نظر راتلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① وَبِيصَ: غوړوالی، چمک.

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى أَجِدَ وَبِيصَ الطِّيبِ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ:

**د سرو دپاره په مخ باندې د خوشبو لګولو حکم:** په حديث الباب كښې د نبی كريم ﷺ په سر مبارک او ږيرې مبارک باندې د خوشبو لګولو ذكر دې او په مخ مبارک باندې د خوشبو لګولو ذكر نشته، ځكه په مخ باندې خوشبو لګول د ښځو سره خاص دي نو ددې وجهې نه سړي ني تشبه بالنساء په وجه منع كړې شوي دي.

**اشكال:** د يو حديث د ظاهر نه دا معلوميږي چه سړو دپاره داسې خوشبو استعمالول جائز دي چه د كوم رنګ ظاهر نه وي ليكن د مذكوره حديث نه دا معلوميږي چه نبی كريم ﷺ له به چه كومه خوشبو لګولې كيدله نو د هغې رنګ به ظاهر وو ځكه چه د هغې خوشبو چمک به د نبی كريم ﷺ په سر او ږيره مبارک كښې ښكاره كيدلو؟

**د اشكال دوه جوابونه:** ① په كوم حديث كښې چه سړو لره د رنګ دار خوشبو لګولو نه منع راغلی ده نو دهغې نه مراد هغه خوشبو ده، د كوم په ظاهريدو سره چه د ذيب وزينت نمائش كيږي لكه سور او زيړ رنګ وغيره او كوم رنګ چه داسې نه وی لكه د مشک، عنبر وغيره رنګ نو داسې خوشبو استعمالول جائز دی.

② په حديث كښې د چمک ذكر دې او دا چمک د خوشبو د رنګ نه وو بلكه صرف چمک وو او چمک خو د اوبو هم محسوس كيدې شي.

**[۴۴۳۶] د خوشبوداره لرګی د لوګی استعمالول**

۴۴۳۶ - [۱۸] (1) [۱] وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: [۲] «كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا اسْتَجْمَرَ [۳] اسْتَجْمَرَ بِأَلُوَّةٍ غَيْرِ مُطَرَّاةٍ، [۴] وَبِكَافُورٍ يَطْرَحُهُ مَعَ الْأَلُوَّةِ، [۵] ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا كَانَ يَسْتَجْمِرُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نافع رحمه الله وايي [۲] چې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما چې به د خوشبو لوګي اخستو، [۳] نو يواځې د عود [يو قسم لرګی چې د سوزولو نه پس يې خوشبو شروع كيږي] لوګي به يې اخستلو چې په هغه كې مشك وغيره مخلوط نه وو، [۴] او (كله) د كافورو لوګي به يې اخستو، چې هغه د عود د لرګی سره (يعني دواړه يو ځاي كولو سره به يې په اور كې)

(1) اخرجه مسلم فى باب استعمال المسک وأنه أطيب الطيب وكراهة رد الريحان والطيب (رقم-۲۱ - (۲۲۵٤) والنسائى فى كتاب الزينة/باب البخور (رقم-۵۱۳۵)

اچول،۵ او حضرت ابن عمر رضی الله عنه وفرمایل چې رسول الله ﷺ به هم دغه شان لوګي اخستلو، [چې کله خو به یې یواځې د عود لوګي اخستلو، او کله د کافورو او کله به یې دواړه مخلوط کولو سره لوګي اخستو]. (مسلم)

**حل اللغات:** ① اسْتَجْمَرَ: په انګیټئ کښې خوشبوئی اچولو سره دَهغې لوګې کول. ② أَلُوَّةِ: ای وهی عود يتبخربه. یعنی الوة عودته وائی. عود یو لرګې دې چه سیزلو سره خوشبودار لوګې کوی. ③ غَيْرِ مُطَرَّاةٍ: بغیر د ګډون نه، بغیر د مخلوط کولونه. ④ كَافُورٍ: کافور (یوقسم خوشبوئی). ⑤ يَطْرَحُهُ: غورزول به ئې، ګډوډ کول به ئې،

**تسهیلات:**

**قوله:** اسْتَجْمَرَ بِأَلُوَّةٍ غَيْرِ مُطَرَّاةٍ:

**د أَلُوَّةِ وضاحت:** الوة عودته وائی. عودیو اعلی قسم لرګې دې دَ کوم په سیزلو سره چه خوشبوئی حاصلولې شی. په حرمین شریفین کښې په مجمع کښې یاکله په مطاف کښې دننه عرب خلق عودسیزی خلق په منډه منډه خوشبوئی حاصلوی. دې ته "اګر" هم وائی نن صباجماتونو کښې اګربتئ لګولې شی.

**قوله:** غَيْرِ مُطَرَّاةٍ:

**د عود استعمالولو دوه طریقې:** ① یعنی عود به کله مشك او عنبر نه بغیر سوزولې شو ② کله دې سره کافور یوځائی کولوسره ګډوډ سیزلې شو. یعنی یوځل به ئی یوازې دَ عود لوګې اخستلو په دویم ځل کافور وغیره مشك اوعنبر یوځائی کولو سره ګډوډ لوګی اخستلو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۳۳۷] د بریتود کټ کولو مسنونیت**

۴۳۳۷-[۱۹] (¹) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُصُّ، أَوْ يَأْخُذُ مِنْ شَارِبِهِ، ٣ وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ -صَلَوَاتُ الرَّحْمَنِ عَلَيْهِ- يَفْعَلُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي ٢ چه رسول الله ﷺ به د خپلو شونډو وېښتان کمول یا اخستل، ٣ او حضرت ابراهیم علیه السلام چې د الله تعالی دوست وو، هغه به هم داسې کول، [یعنی هغه به هم د خپلو شونډو وېښتان تراشل]. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① يَقُصُّ: کمول او اخستل به ئې،

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قص الشارب (رقم-۲۷۶۰) واحمد فی المسند: ۱/۳۰۱

**قوله:** يَقُصُّ، أَوْيَأْخُذُ مِنْ شَارِبِهِ:

**د بريتو كټ كول:** مطلب دا دې چه بريتې بلكل كمول يو داسې قديم سنت دې كوم چه د حضرت ابراهيم عليه السلام او د نورو انبياء كرامو معمول هم وو او مخكې د لفظ "فطرة" په وضاحت كښې ددې ذكر تير شو،

**اشكال:** او پاتې شوه دا خبره چه بريتې كمول د نورو انبياء كرامو سنت دې نو دلته ئې صرف د حضرت ابراهيم عليه السلام ذكر ولې وكړو؟

**داشكال جواب:** نو ددې تخصيص وجه د حضرت ابراهيم عليه السلام د مخصوص عظمت او د جلالت اظهار دې، يا دا چه ددې سنت ابتداء د حضرت ابراهيم عليه السلام نه شوې ده، وغيره

## [۴۴۳۸] د بريتو په نه كټ كولو وعيد

۴۴۳۸-[۲۰] (¹) [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«مَنْ لَمْ يَأْخُذْ مِنْ شَارِبِهِ [۳] فَلَيْسَ مِنَّا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زيد بن ارقم ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې د شونډو وېښتان نه كموي، [۳] هغه زمونږ نه نه دې. (احمد، ترمذي، نسائي)

**حل اللغات:** ① شَارِبِهِ: د شونډو وېښتان، بريت.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَيْسَ مِنَّا:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① يعنې په دې شعبه كښې زمونږ په طريقه نه دې باقي په دين كښې دې.

② زمونږ سره دده څه تعلق نشته دې دا ئې په توګه د اسلوب حكيم اوفرمائيلو چه هغه پريشانه كيدوسره توبه اوباسي. دا تشديد تغليظ اوتهديد اوتوبيخ دې.

## [۴۴۳۹] د ږيرې د برابرولو ذكر

۴۴۳۹-[۲۱] (²) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي، [۲] چې رسول الله ﷺ به خپله ږيره مباركه په عرض او طول كې [يعنى د لاندې نه هم او د بنې

¹) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى قص (رقم-۲۷۶۱) والنسائى فى كتاب الطهارة/باب قص الشارب (رقم-۱۳) واحمد فى المسند: ۵۱/۱

²) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الأخذ من اللحية (رقم-۲۷۶۲)

او چپ طرف نه هم] كموله، [۳] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَأْخُذُ مِنْ أطراف لِحْيَتِهِ:

**د ږيرې د كمولو حد:** دې نه مراد هغه غټې شوي ويښته دي چه دَ نورو ويښتو نه زيات شي په كوم سره چه دَ ږيرې په هوارۍ كښې فرق راځي په دې وجه دَ دې زياتي حصه پرې كولې شي. دَ يوموټي پورې ږيره وړه كول جائز دي. لكه څنګه چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه كړې وه دې نه كمول جائز نه دي. په ږيره كښې خو اصل حكم دَ إعفاء او دَ لويولو دې دَ يوموټي پورې كمول خودَ جواز آخرى حد دې لكه صحابي رضي الله عنه دَ آخرى حد حد خودلې دې

**[۴۴۳۰] سرو دپاره د خلوق خوشبوئې د استعمالولو ممانعت**

۴۴۳۰—[۲۲] ()[۱] «وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى عَلَيْهِ خَلُوقًا، [۳] فَقَالَ: "أَلَكَ امْرَأَةٌ؟" قَالَ: لَا، [۴] قَالَ: "فَاغْسِلْهُ، ثُمَّ اغْسِلْهُ، ثُمَّ اغْسِلْهُ، [۵] ثُمَّ لَا تَعُدْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت يعلي ابن مره رضي الله عنه نه روايت دي [۲] چې ايوه ورځ] رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه [يعنى د يعلي] په كپړو [د زعفران نه مركب خوشبو] خلوق لګيدلي وليدلو، [۳] نو وي فرمايل چې آيا ته د ښځي والا يي؟ هغه اوويل چې نه، [۴] حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې بيا دا اووينځه، بيا يي اووينځه او بيايي اووينځه، [۵] او بيا آئنده هيڅ كله هم دا مه استعمالوه (ترمذي، نسائي)

**حل اللغات:** ① خَلُوقًا: يو قسم زير رنګ عطر،

**تسهيلات: قوله:** رَأَى عَلَيْهِ خَلُوقًا:

**د خلوق معنى:** خلوق دَ يوقسم عطردى كوم چه ښځې استعمالوى دَ زعفران نه دَخلوق عطر جوړيږي. كله چه دَ سړو دَپاره زعفران منع دى نوخلوق هم منع دې.

**قوله:** أَلَكَ امْرَأَةٌ:

**د نبى عليه السلام د تپوس وجه:** نبى كريم دا تپوس څكه اوكړو كه دَ ښځې والا وى نو كيدې شى چه دَهغې بدن پورې لګيدلې وى كوم چه معاف دى ليكن كله چه نبى كريم ته معلومه شوه چه ده په مستقل توګه باندې استعمال كړى دى نونبى كريم درې ځل اوفرمائيل لاړشه اودا اووينځه بيا راشه بلكه درې ځل ئې اووينځه

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية التزعفر والخلوق للرجال (رقم-۲۸۱۶) والنسائي في كتاب الزينة/باب التزعفر، والخلوق (رقم-۵۱۲۱) واحمد في المسند: ۴/۱۷۱

**[۴۴۴۱] د زنانه خوشبوئ لګولو په وجه د مونځ نه قبلیدل**

۴۴۴۱-[۲۳] ()[۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ صَلَاةَ رَجُلٍ [۳] فِي جَسَدِهِ شَيْءٌ مِنْ خَلُوقٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسي ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خداي ﷻ د هغه سړي مونځ نه قبلوي، [۳] چې د هغه په بدن لږ شان خلوق هم لګيدلي وي (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ صَلَاةَ رَجُلٍ فِي جَسَدِهِ شَيْءٌ مِنْ خَلُوقٍ.

**دحديث محمل:** يعنى داسړي به مونځ كوى خو دَ ښخودَ مشابهت دَ وجهې به نى مونځ نه قبليږى ځكه چه خلوق دَښخو خوشبوئى ده هغه ده دَ هغوى مشابهت اختياركړو ليكن ابن ملك فرمائى چه دلته په خلوق استعمالولو باندې دا سخت وعيد راغلې دې چه په زجر توبيخ اوتشديداوتغليظ باندې محمول دې

**[۴۴۴۲] د خلوق په استعمال د ناراضګي اظهار**

۴۴۴۲-[۲۴] ()[۱] «وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] قَدِمْتُ عَلَى أَهْلِي مِنْ سَفَرٍ [۳] وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَايَ، [۴] فَخَلَّقُونِي بِزَعْفَرَانٍ، [۵] فَغَدَوْتُ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، [۶] فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَقَالَ: "اذْهَبْ فَاغْسِلْ هَذَا عَنْكَ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمار ابن ياسر ﷺ وايي [۲] چې [يو ځل] زه د سفر نه په واپس راتګ كې كور والو ته په داسې حال كې راورسيدم، [۳] چې زما دواړه لاسونه چاودلي وو، [۴] نو زما كور والو [د علاج په طور] زما په لاسونو هغه خوشبو پورې كړه چې په هغې كې زعفران مخلوط وو، [۵] په سحر چې زه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شوم، او حضور ﷺ ته مې سلام وكړو [۶] نو زما د سلام جواب يې رانه كړو، بلكې وې فرمايل چې ځه ولاړ شه او دا خوشبو د خپل بدن نه ووينځه (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَشَقَّقَتْ يَدَايَ: چاودلي وو دواړه لاسونه زما، ② فَخَلَّقُونِي: نو خلوق (زيړ رنګ عطر) ئې راله پورې كړل

**تسهیلات: قوله:** فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ

**د سلام جواب نه وركول:** يعنى دَ خلوق استعمالولودَ وجې نبى كريم ماته دَ سلام جواب رانه كړو كيدې شى چه نبى كريم ته دَحضرت عمار ﷺ دَعذر علم نه وو. ګنى هغه خومعذور مجبور وو دَ دوائى په توګه ئى استعمال كړې وو

[1]) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الحديبية (رقم-۴۱۷۸) واحمد في السند: ۴۰۳/۴

[2]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب في الخلوق للرجال (رقم-۴۱۷۸) واحمد في السند: ۴۰۳/۴

## [۴۴۴۳] دَ سړو او دَ ښځو په عطرو نوکښې فرق

۴۴۴۳—[۲۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«طِيبُ الرِّجَالِ مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَخَفِيَ لَوْنُهُ، [۳] وَطِيبُ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] مردانه خوشبو هغه ده چې د هغې بوي خو ظاهر وي، ليکن د هغې رنګ ظاهر نه وي [لکه مشك او عنبر او عطر وغيره][۳] او زنانه خوشبو هغه ده، چې د هغې رنګ خو ظاهر وي، ليکن د هغې بوي نه خوريږي، [لکه نکريزي او زعفران وغيره]. (ترمذي نسائي)

**تسهیلات:**

**قوله:** وَطِيبُ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ:

**د ښځې او سړی په زينت کښې فرق:** ښځه دَ پردې څيزدې نودَې تقاضا داده چه دَدې دَ بدن خوشبوئی په پردی سړی باندې اونه لګی. البته دَ کور زينت دَښځې دَپاره ضروری دې په دې وجه دَ ښځې په خوشبوئی کښې زينت زيات وی اوخوشبوئی کمه وی اودَ سړی پرده نه وی په دې وجه دې تيزه خوشبوئی لګوی. ليکن زيبائش اوزينت دَ سړی دَ شان خلاف دی نودَ ده په عطرو کښې خوشبوئی تيزه اوزينت کم کيدل پکاردی.

## [۴۴۴۴] د نبی کریم ﷺ د خوشبو استعمالولو لوښی

۴۴۴۴—[۲۶] ()[۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سُكَّةٌ [۳] يَتَطَيَّبُ مِنْهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي[۲] چې د رسول الله ﷺ سره سُکّه وه (د يو مرکب خوشبو نوم دې)[۳] حضور ﷺ به د هغې نه خوشبو لګوله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① سُكَّةٌ: د عطرو لوښې، د عطرو شيشه،

**تسهیلات:**

**قوله:** سُكَّةٌ يَتَطَيَّبُ مِنْهَا:

**د سکة په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① اکثر شارحينودَ سکة ترجمه اومفهوم داسې بيان کړې دې چه دا يومخلوط مرکب عطر دی ليکن داخبره زړه ته نه لګی ځکه چه دَ يتطيب منها لفظ دې سره پوره موافق نه دې.

---

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی طیب الرجال والنساء (رقم-۲۷۸۷) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الفصل بین طیب الرجال، وطیب النساء (رقم-۵۱۱۷) واحمد فی المسند: ۵۴۱/۲

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی استحباب الطیب (رقم-۴۱۶۲)

④ ملاعلی قاری رحمه الله علامه جزری رحمه الله دَ علامه میرك رحمه الله دکلام نه هم معلومیږی چه دا لوښې کیدې شی بهرحال دَعطرو دبې مراد اخستل دیر ښه دی بیاکه په هغې کښې دننه عطر مخلوط وی اوکه غیر مخلوط وی هیڅ فرق نه پریوځی

**[۴۴۴۵]د نبی کریم ﷺ په کثرت سره په سر کښې تیل لګول**

۴۴۴۵—[۲۷]()① وَعَنْهُ، قَالَ: ②«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكْثِرُ دَهْنَ رَأْسِهِ، ③وَتَسْرِيحَ لِحْيَتِهِ، ④وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ، ⑤كَأَنَّ ثَوْبَهُ ثَوْبُ زَيَّاتٍ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضي الله عنه وایې چې رسول الله ﷺ به په کثرت سره په خپل سر مبارك کې تیل لګول، ②په کثرت سره به یې ږیره مبارکه ګمنزوله، ④او اکثره به یې په سر مبارك کپړه ایخودله، ⑤چې داسې به په نظر راتله چې د تیلي کپړه ده «شرح السنه»

**حل اللغات:** ① دَهْنَ: تیل، ② تَسْرِيحَ: ګمنزول، ③ الْقِنَاعَ: د سر په ویښتو باندې کپړه ایخودل ④ زَيَّاتٍ: د تیل خرځونکی.

**تسهیلات:**

**قوله:** يُكْثِرُ دَهْنَ رَأْسِهِ، وَتَسْرِيحَ لِحْيَتِهِ، وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ، كَأَنَّ ثَوْبَهُ ثَوْبُ زَيَّاتٍ:

اشکال: په کثرت سره ګمنزکولوځخه خو نبی کریم منع فرمائیلې ده دلته دَ کثرت ذکرولې کړې شوې دې؟

**اشکال:** دکوم کثرت نه نبی کریم منع فرمائیلې ده هغه په خپل ځائی باندې صحیح دې دلته دکثرت مطلب دادې چه نبی کریم به فی نفسه ګمنز زیاته استعمالوله. مطلب دانه دې چه دَ ممنوع حده پورې به ئې ګمنز استعمالوله. په سرکښې دَ ګمنز کولو دَپاره لفظ ترجل او په ږیره کښې ګمنزکولودَپاره دَتسریح لفظ استعمالیږی

**قوله:** وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ:

**دپټکی د حفاظت دپاره د کپړې استعمال:** دَ پټکی وغیره لاندې چه کومه نرمه کپړه استعمالولې شی هغې ته قناع وائی نبی کریم به په سر کښې تیل زیات استعمالول په دې وجه دَ تیل لګولونه پس به ئې دانرمه کپړه دَ پټکی لاندې کیخودله دې دَپاره چه پټکی پورې تیل اونه لګی

**قوله:** وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ، كَأَنَّ ثَوْبَهُ ثَوْبُ زَيَّاتٍ:

**د تیلی د کپړې سره د تشبیه وضاحت:** په ثوبه کښې چه کوم ضمیردې داهم دَدغه قناع دَ ثوب طرف ته راجع دې یعنی کومه نرمه کپړه چه به نبی کریم دَ پټکی لاندې استعمالوله

() اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۳۱۶۴

هغه کپړه به په تیلوکښې داسې لوندیدله اوداسې به غوړه وه لکه چه دتیلو خرڅونکی سړی کپړې وی د تیلو خرڅونکوسرو کپړې هم په تیلوباندې غوړې وی اوخاص کرد هغه په لاس کښې یوه کپړه وی په کومې سره چه هغه لاس صفاکوی هغه په تیلوکښې خوشته وی بهرحال دا ضمیر دنبی کریم په بدن مبارك باندې دَ اغوستې شوو کپړو طرف ته نه راګرځی خکه چه نبی کریم په نظافت کښې أنظف الناس وو. ملاعلی قاری رحمه الله څه روایات هم نقل کړی دی په کوم کښې چه وضاحت او تصریح سره دا ضمیر هم دې قناع طرف ته راجع دې

**[۴۳۳۶] د نبی کریم ﷺ زلفې مبارکې**

۴۳۳۶ — [۲۸] (۱) ① وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② «قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَيْنَا بِمَكَّةَ قَدْمَةً، ③ وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت ام هاني رضي الله عنها فرمائي ② چې یو خل اد فتح مکه په ورځ] حضور ﷺ زمونږ خوا ته تشریف راوړو، ③ نو هغه وخت د حضور ﷺ څلور کونځې (زلفې) وې، [دوه ښي طرف ته او دوه چَپ طرف ته یعنی په سر مبارك کی یې څلور زلفې وې] (احمد ابوداود ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① قَدْمَةً: "اي مرة واحدة" یعنی یو خلې، ② غَدَائِرَ: دَ غدیرة جمع ده، کونځې (زلفې)

**تسهیلات:**

**قوله:** قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَيْنَا بِمَكَّةَ:

**د قدوم محخه مراد:** یعنی دَدې راتګ نه دَ فتح مکه راتګ مراد دې. نبی کریم څلور خل مکې ته تشریف راوړې دې. عمرة القضاء کښې بیا دَ فتح مکه په ورځ بیا دَ طائف په خواکښې دَ جعرانه نه راغلې وو او آخرې خل حجة الوداع کښې راغلو.

**قوله:** وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ:

**د غدائرو وضاحت:** په اصل کښې چوټې ته وائی لیکن دغه مراد نه ده بلکه مطلب دادې چه دَ حفاظت دَ وجهې دَ نبی کریم ویښته په څلورو حصوکښې تقسیم شوې وو

**[۴۳۳۷] د نبی کریم ﷺ په ویښتو کښې لار ویستل**

۴۳۳۷ — [۲۹] (۲) ① «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② إِذَا فَرَقْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأْسَهُ ③ صَدَعْتُ فَرْقَهُ عَنْ يَافُوخِهِ، ④ وَأَرْسَلْتُ نَاصِيَتَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الرجل یعقص شعره (رقم-۴۱۹۱) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب دخول النبی صلی الله علیه وسلم مکة (رقم-۱۷۸۱) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب اتخاذ الجمة والذوائب (رقم-۳۶۳۱) واحمد فی المسند: ۳۴۱/۶

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الفرق (رقم-۴۱۸۹) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب اتخاذ الجمة والذوائب (رقم-۳۶۳۳)

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي كله چې ما به د حضور ﷺ په سر مبارك كښې لاره ويستله، [۲] نو په تالو (د سر په درمياني حصه، ، دا عين د دماغ په پورته سطح وی) د وېښتانو دوه حصې كولو سره به مې سينخه (لاره) ويستله، [۳] او د حضور ﷺ د تند مبارك وېښتان به مې د دواړو سترګو مباركو په منځ كې پرېخودل. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَرَقْتُ: فرق دَ سرلارې ته وائی اوفرقت يعنی ما لار اوويستله، ② صَدَعْتُ: نو ما تقسيم كړل، دوه حصې مې كړل، ③ يَافُوخِهِ: يافوخ تندی طرف ته د سر مينځنئ حصې ته وائی، ④ نَاصِيَتَهُ: دحضور پاک (ص) د تندی مبارک وېښته،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَرْسَلْتُ نَاصِيَتَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ:

**په سر كښې د لارې ويستلو طريقه:** حضرت عائشه رضي الله عنها په سركښې دَ لارې ويستلو صورت دابنائی چه دَدې يوسر تالوسره وو اودويم سر ئی دَ دواړو سترګو په مينځ كښې دَ تندی دَپاسه وو داخوشو دَ سردَ لارې ويستلو صورت.

**د څټوكى طريقه:** اوس دَ څټوكې او كمسې دَ وېښتو دَ كيفيت داسې بيان كوی چه دَناصيه نيم وېښته به دَ لارې ښی طرف ته وو او نيم وېښته دَ لارې ګس طرف ته وو. دَحديث هم دغه مفهوم دي ليكن دَ الفاظوتنكى ده پوره وضاحت نشته.

**[۴۴۴۸] هروخت د منګز كولو ممانعت**

۴۴۴۸-[۳۰] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ التَّرَجُّلِ [۳] إِلَّا غِبًّا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن مغفل رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د منګز كولو نه منع فرمايلي ده، [۳] خو دا چې يوه ورځ ناغه كولو سره منګز كړل شي (ترمذي، ابوداود نسائي)

**حل اللغات:** ① التَّرَجُّلِ: ګمنز كول، ② غِبًّا: كله كله، يو ورځ پس

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا غِبًّا:

**دګمنزكولو موده:** قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه "غب" لفظ دَهرهغه كاردَ پاره استعماليږی كوم كارچه يوه ورځ اوكړې شی اوبله ورځ پرېخودې شی. دَ ګمنزې باره كښې هم دغه

() اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الترجل(رقم-۴۱۵۹) والترمذی فی كتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل العشاء (رقم-۱۸۵۶) والنسائی فی كتاب الزينة/باب الترجل غبا(رقم-۵۰۵۵) واحمد فی المسند: ۸۶/۴

مطلب دې چه په سر اوږیره کښې روزانه ګمنزمه کوئی ځکه چه مسلمان دَ دې زیب زینت دپاره نه دې پیدا اونه دا تکلفات دَ هغه دَ ژوند حصه ده چه هروخت خامخاهم په ګمنزې پورې اونخلی. دې نه معلومه شوه چه کوم خلق دَهراودس نه پس ګمنز کوی اودا سنت ګنړی دا غلطه ده.

**دښځودپاره روزانه د ګمنز کولواجازت:** امام غزالی رحمه الله په احیاء العلوم کښې یوحدیث نقل کړې دې چه نبی کریم به روزانه دوه ځل ګمنز کوله. علماؤ لیکلی دی چه دَدې حدیث هیڅ ثبوت نشته دې. البته دَښځوحکم جدا دې. علماؤ لیکلی دی چه ښځې هره ورځ ګمنز کولې شی ځکه چه دَهغې خوکار هم دا ګمنز اوکونسې جوړول دی.

**[۴۴۴۹] کله کله د خپې ابله خپې د ګرځیدو استحباب**

۴۴۴۹—[۳۱] ()① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ قَالَ: ②«قَالَ رَجُلٌ لِفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ: مَالِي أَرَاكَ شَعِثًا؟ ③قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَنْهَانَا عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الْإِرْفَاهِ. ④قَالَ: مَالِي لَا أَرَى عَلَيْكَ حِذَاءً؟ ⑤قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَأْمُرُنَا أَنْ نَحْتَفِيَ أَحْيَانًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ①حضرت عبد الله ابن بریده رضی الله عنه وایي② چې یوه ورځ د حضرت فضاله ابن عبید رضی الله عنه نه یو سړي پوښتنه وکړه چه څه خبره ده چې زه تا ببر سر [یعنی ستا وېښتان بغیر ګومنز شوي] وینم.③ هغه وفرمایل رسول الله ﷺ به د عیش او آرام د زیات ځیزونو د اختیارولو نه به مونږ منع کولو (او د منګز او تیلو زیات استعمال هم په دې کې شامل دي) ④ هغه سړي بیا دا پوښتنه وکړه چې څه خبره ده چې زه ستا په پښو کې پیزار نه وینم؟⑤ هغه جواب ورکړو چې رسول الله ﷺ به مونږ ته دا حکم راکولو چې کله کله خپې ابلې پښې هم ګرځئ. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ①شَعِثًا: ببر سر، ګډ وډ ویښته. ②الْإِرْفَاهِ: عیش او آرام پریخودل. ③حِذَاءً: پیزار.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ يَنْهَانَا عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الْإِرْفَاهِ:

**دعیش اوعشرت ژوندځخه ځان ساتل:** خیرنو او ګډودو ویښتوته وائی په دې کښې ډیره ګمنز نه کولو او تیل نه لګولو او دَ عیش ژوندون پریخودلوعلامت وو په دې وجه په جواب کښې "کثیرمن الارفاه" الفاظ راغلی دی دکوم مفهوم چه دَ عیش اوآرام ژوندون دې چه دَ خوراکونودپاسه خوراکونه وی اودَ لباسونودپاسه لباس وی. "الارفاه التنعم ومظاهرة الطعام على الطعام واللباس على اللباس"

**قوله:** يَأْمُرُنَا أَنْ نَحْتَفِيَ أَحْيَانًا:

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل(رقم-۴۱۶۰) واحمد فی المسند: ۲۲/۶

**د حدیث ابله تګ فوائد**: برېنډې خپې تګ نه احتفاء وائی په دې سره جفاکښی راځی خپې مضبوطیږی. تواضع اوعاجزی راځی اوپه برېنډې خپو تللوطاقت پیداکیږی چه دَمجبورئی په وخت په کار راځی. بل خاؤرې سره دَخپوتلی لګیدلوسره دَ تی بی دَ بیمارئی نه حفاظت کیږی. أحیانا یعنی چه کله کله معمول وی همیشه نه وی.

**[۴۴۵۰]دویښتانوپه ښه شان د ساتلو حکم**

۴۴۵۰-[۳۲] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ فَلْيُكْرِمْهُ»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کوم سړي چې په سر ویښتان ساتي، هغه ته پکار دي چې خپل ویښتان په ښه شان ساتي. [یعنی هغه دي ویښځي په هغې کې دي تیل لګوي، منګز کوي دي، او د. لیوني سړي په شان هغه دي تس نس نه پرېږدي، ځکه چې نفاست او صفایي اوخوش هیئتي یو خوښ او محبوب شي دی] (ابوداؤد)

**تسهیلات**: **قوله**: مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ فَلْيُكْرِمْهُ.

**دویښتو د حفاظت او ښائست حکم**: دَ ویښتو اکرام دادې چه په دې کښې تیل اولګولې شی په دې کښې ګمنز اوکړې شی دا جوړ او برابر کړې شی. اسلام دَ ښکلی والی اوتهذیب حکم ورکوی اوهرڅیزته دَهغې جائزمقام ورکوی اوپه هرڅیزکښې دَ کمی زیاتی نه پاك دَ اعتدال تعلیم ورکوی. په ویښتوکښې داسې هم نه وی چه هروخت سړې دَدې په خدمت کښې لګیاوی خوکه ویښته ئی ساتلی وی نو په سړی باندې لازم دی چه دَهغې خیال دې هم اوساتی دې دَپاره چه په معاشره کښې دَ اوسیدو قابل شی.

**[۴۴۵۱]د نکریزو او وسمې خدناب لګولو حکم**

۴۴۵۱-[۳۳] ()[۲] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ الشَّيْبُ [۳] الْحِنَّاءُ وَالْكَتَمُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] د کومو څیزونو په ذریعه چې بوډاتوب (یعني د ویښتانو سپینوالي) بدلیدي شي،[۳] په هغې کې د ټولو نه بهترین نکریزي او وسمه دی. (ترمذي ابوداود نسائي)

**حل اللغات**: ① الْحِنَّاءُ: نکریزې، ② الْكَتَمُ: یو قسم وابنه دی.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی إصلاح الشعر (رقم-۴۱۶۳)

[۲] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب (رقم-۴۲۰۵)والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخضاب (رقم-۱۷۵۳) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الخضاب بالحناء والکتم (رقم-۵۰۷۷) واحمد فی المسند: ۱۴۷/۵

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ الشَّيْبُ الْحِنَّاءُ وَالْكَتَمُ:

**د کتم په تعریف کښې دوه اقوال:** ①کتم دَ یوقسم وښونوم دې چه وسمې سره ملاوولو کښې دَ خضاب په کار راوستې شی که دا معنی واخستې شی نو په زیر بحث حدیث کښې د حنا اوکتم ملاوولوسره د خضاب لګولوحکم دې ملاعلی قاری رحمه الله وغیره شارحین فرمائی دَ حدیث په ټولو روایتونو کښې واؤ ذکر دې دا ټول اسانید دَ ظاهریه خلاف باندې حمل کول ګران دی ځکه چه دَ بعضې نورو شارحینو تحقیق دادې چه په دې حدیث کښې واؤ په معنی دَ مع دې اودَ حنا اوکتم یوځائې کولوسره نور رنګ نه جوړیږی بلکه سوریخن تور ته نیزدې رنګ جوړیږی کوم ته چه براؤن هم وئیلې شی.

② دَ بعضې حضراتو وینا ده چه کتم پخپله وسمې ته وائی په دې صورت کښې دحدیث مطلب دا دې چې صرف دَنکریزو یا صرف دَ وسمې جداجدا خضاب اوکړې شی؟

علامه ابن اثیر جزری رحمه الله چه څه په نهایه کښې لیکلی دی دَ هغې نه په ظاهره دا معلومیږی چه په حدیث کښې صرف دَ حنا یعنی نکریزې یا صرف دکتم خضاب کول مراد دی هغوی دَ دلیل په توګه دا وئیلی دی چه که نکریزو سره کتم یوځائې کړې شی نو دې نه توره وسمه راؤخی او دَتورې وسمې استعمالول دَ احادیث صحیحه کثیره دَ وجهې منع دی لهذا دلته په "الحناءوالکتم" کښې واؤ په معنی دَ او دې کوم چه دَ تنویع دَپاره دې اودَ تنویع دَپاره واؤ راځی اوس به دَ حدیث مطلب داشی چه خضاب کونکی ته اختیار ورکړې شوې دې چه هغه په نکریزو باندې خضاب اوکړی یا دَ کتم خضاب استعمال کړی. دَ نکریزو خضاب سور وی اوصرف دکتم خضاب شین وی دَعلامه ابن اثیر رحمه الله داتحقیق خو ډیر ښکلې دې

**د مولانا فضل محمد صاحب تحقیق:** مولانا فضل محمد صاحب د مشکاة په شرح کښې لیکلی زما په خیال په اصل کښې خبره دلته پیداکیږی چه حضرات شارحینو دَ کتم باره کښې څه متفقه فیصله نه ده کړې بعضې حضراتو کتم ته وسمه وئیلې ده کوم چه دتور رنګ ده بعضې دا داسې وابنه ګرخولې دی دکوم نه چه شین رنګ پیداکیږی بعضو کتم دَ سور رنګ والا بوټې ګرخولې دې اوس په حدیث کښې لفظ دَ نکریزو سره چه کوم شارح کوم رنګ یوځائې کړې دې هغه هم هغه شان فیصله کړې ده دَملاعلی قاری رحمه الله په خیال کښې دکتم نه پیداکیدونکې رنګ تور وی بیا هغوی یوجامع کلام پیش کړې دې په کوم سره چه دَ ټولو حضراتو په کلام کښې اتفاق راځی هغوی فرمائی چه زیاته صحیح خبره داده چه دکتم او دَ نکریزونه دَ مخلوط خضاب مختلف قسمونه وی که دکتم اجزاء په نکریزو باندې غالب وی یا کتم او نکریزې دواړه برابر وی نوخضاب تور وی کوم چه ناجائز

دي. لکه څنګه چه ابن اثير په نهايه کښې دا مخلوط تور ګرځولوسره ناجائز ګڼړلې دي او بيا ئې واؤ دَ او تنويعِ په معنی کښې واخستلو اوکه چرې دَنګريزو اجزاؤ دَ کتم په اجزاء باندې غالب وی نود خضاب رنګ سور راوځی کوم چه جائز دې لکه چه نورو شارحينو حضراتو اخستې دې او واؤ ئې په خپل اصلی معنی باندې ساتلې دې چه په معنی دَ مع دې.

**[۴۴۵۲] د تور خضاب د استعمال باره کښې وعيد**

۴۴۵۲ـ[۳۴] (¹)① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«يَكُونُ قَوْمٌ فِي آخِرِ الزَّمَانِ ③ يَخْضِبُونَ بِهَذَا السَّوَادِ، كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ، ④ لَا يَجِدُونَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷠ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ② په آخره زمانه کې به داسې خلق پيدا شي چې د کوترې د ججورې په شان د دې تور رنګ په ذريعه به خضاب کوي [يعنی هغوې چې کوم به خضاب استعمالوي، هغه به داسې تور وي، څرنګه چې د بعضو کوترو ججورې تور وي] ،④ داسې خلق به د جنت بوې نه مومي (ابوداؤد، نسائي)

**حل اللغات:** ① يَخْضِبُونَ: خضاب به کوی، ② حَوَاصِلِ: دَحوصلة جمع ده ججورې ته وائی. ③ الْحَمَامِ: کوتره،

**تسهيلات:**

**قوله: يَكُونُ قَوْمٌ فِي آخِرِ الزَّمَانِ يَخْضِبُونَ بِهَذَا السَّوَادِ:**

**د سواد په مراد کښې دوه احتمالات:** ① معلوميږی چه دَنبی کريم په زمانه کښې څه خاص توره وسمه وه هم دَهغې طرف ته ئې اشاره کړې ده

② د سواد څخه جنس سواد مراد دې.

**قوله: كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ**

**د مرغو د ججورو سره تشبيه:** دَمرغئی دَ غاړې اوستې لاندې چه کومه سينه ده هم دغې ته حوصله وائی چرته چه په شروع کښې خوراك جمع کيږی (ججوره). بعضې کوترو کښې داسې وی چه دا حصه توره وی په عامو کښې داسې نه وی. البته تور او سپين ګډوډ رنګ په اکثرو کوتروکښې وی کيدې شی هم دې سره تشبيه وی څکه چه دَ تور رنګ باوجود څه وېنته سپين پاتې کيږی

**دبعضې عالمانو غلطی:** په دې حديث کښې دَهغه خلقودَپاره سخت وعيددې چه په ږيره

¹) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الترجل /باب ما جاء فی خضاب السواد (رقم-٤٢١٢) والنسائی فی كتاب الزينة /باب الترجل غبا (رقم-٥٠٥٧) واحمد فی المسند: ٢٧٣/١

كښې توره وسمه لګوي. دغه شان مسئله د بنځود سرد ويښتوهم ده. تعجب دې په هغه علماؤ باندې چه د دې وعيد باوجود د تورې وسمې ترغيب ورکوي او دعوت ورکوي او د حديث مطلب دا بيانوي چه سره وسمه جائزنه ده توره وسمه کوئی اودا جرأت هم کوي چه د مسلم شريف روايت "اجتنبواالسواد" جمله صحيح نه ده.

**قوله:** لَا يَجِدُونَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ:

**د جنت بوئې نه محسوسولو کښې دوه احتمالات:** ①که چرې دا جائزګڼړی اودعوت ورکوی نود جنت خوشبوئی حرام

②که صرف په دې باندې عمل کوی نو د محشرپه ميدان کښې به د جنت خوشبوئی نورو مسلمانانوته رسيږی اودا خلق به ترې محروم وی يادا تشديد اوتهديد اوتغليظ باندې محمول دی.

### [۴۴۵۳] د زيړ خضاب لګولو جواز

۴۴۵۳-[۳۵] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-[۲]«أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ يَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ،[۳] وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ وَالزَّعْفَرَانِ،[۴] وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُ ذَلِكَ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دی[۲] چې رسول الله ﷺ به دباغت شوی او بغير د ويښتانو د څمړی چپل (پيزار) اچولو، چې سبتی پيزار به ورته وئيل کيدو،[۳] او په خپلې ږيرې مبارکې به يې ورس (يو واښه چې د يمن په علاقه کې کيدل) او په زعفران به په ئې خپله ږيره او سر زيړولو[۴] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به هم داسې کول (يعني مذکوره بالا چپل به يې په پښو کول او مذکوره خضاب به يې لګولو) (نسائي)

**حل اللغات:** ①النِّعَالَ: څپلی، پيزار. ②السِّبْتِيَّةَ: رنګ شوې څرمن. ③يُصَفِّرُ: زيړ رنګې کولو به ئې، ④الْوَرْسِ: يو قسم واښه دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ وَالزَّعْفَرَانِ:

**يو اشکال اودهغې جواب:** د دې حديث نه دا معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ به په خپله ږيره مبارک باندې خضاب لګولو، ليکن کتاب اللباس کښې د حضرت انس رضی الله عنه کوم راويت چه تير شو د هغې نه دا معلوميږی چه نبی کريم ﷺ به خضاب نه استعمالولو. لهذا د دې دواړو روايتونو په مينځ کښې د مطابقت چه کوم صورت دې هغه هلته تير شوې دې.

---

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب ما جاء فى خضاب الصفرة (رقم-۴۲۱۰) والنسائى فى كتاب الزينة /باب تصفير اللحية (رقم-۵۲۴۳) واحمد فى المسند:۱۱۴/۲

## [۳۵۴] د خضاب درې درجې

۴۴۵۵ـ[۳۶] (¹) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② «مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلٌ قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ. ③ فَقَالَ: "مَا أَحْسَنَ هٰذَا". ④ قَالَ: فَمَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ ⑤ فَقَالَ: "هٰذَا أَحْسَنُ مِنْ هٰذَا". ⑥ ثُمَّ مَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالصُّفْرَةِ. ⑦ فَقَالَ: "هٰذَا أَحْسَنُ مِنْ هٰذَا كُلِّهِ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي ② چه يوه ورځ د نبي کريم ﷺ په مخکې يو سړي تير شو، چې دنکريزو خضاب يې لګولي وو، ③ حضور ﷺ وفرمايل چې د ده خضاب څومره ښه دي، ④ راوي وايي چې بيا يو بل سړی تير شو، چې هغه دنکريزو او د کتم (چې د يو بوټي تخم دی) خضاب کړي وو، چې خالص تور نه وو، ⑤ حضور ﷺ (د دې په ليدو سره) وفرمايل چې دا خضاب د مخکې نه هم ښه دي، ⑥ د دې نه پس يو بل سړي تيرشو چې هغه زېړ خضاب کړي وو، ⑦ حضور ﷺ هغه ليدو سره وفرمايل چې دې د ټولو نه زيات ښه دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْحِنَّاءِ: نکريزي، ② الْكَتَمِ: يو قسم واښه دی. ③ الصُّفْرَةِ: زېړ رنګې.

**تسهيلات: قوله:** قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ

**نوټ:** ددې حديث نه معلوميږي چه په والکتم کښې واؤ دَمع په معنی کښې دې لکه څنګه چې وړاندې د حديث نمبر (۴۴۵۱) په تشريح کښې دا مفهوم راجح ګرځولې شوې دې

## [۳۵۵] د خضاب لګولو حکم

۴۴۵۶ـ[۳۷] (²) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«غَيِّرُوا الشَّيْبَ ③ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل ② بوډاتوب (يعني د ويښتانو سپينوالي) د خضاب په ذريعه بدل کړئ. ③ او د يهوديانو مشابهت مه اختياروئ (چې خضاب نه کوي) (ترمذي)

۴۴۵۷، ۴۴۵۸ـ(³) ① وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَالزُّبَيْرِ.

**ترجمه:** ① او نسائي رحمه الله دا روايت د ابن عمر رضي الله عنه او زبير رضي الله عنه (او په بعضې نسخو کې د ابن زبير رضي الله عنه) نه نقل کړي دي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث وضاحت وړاندې د حديث نمبر (۴۴۲۳) په تشريح کښې تيره شوې ده

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب ما جاء في خضاب الصفرة (رقم-٤٢١١) وابن ماجه في كتاب اللباس . باب الخضاب بالصفرة (رقم-٣٦٢٧)

²) اخرجه الترمذي في السنن كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في (رقم-١٧٥٢) واحمد في المسند: ٤٩٩/٢

³) اخرجه النسائي في السنن كتاب الزينة /باب الإذن بالخضاب (رقم-٥٠٧٣)

## [۴۴۵۸] د مسلمان د ويښتو د سپينيدو فضيلت

۴۴۵۸—[۳۸] ()١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢«لَا تَنْتِفُوا الشَّيْبَ؛ فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ.٣ مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ٤ كَتَبَ اللهُ لَهُ بِهَا حَسَنَةً،٥ وَكَفَّرَ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً،٦ وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عمرو ابن شعيب رحمه الله د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ سپين ويښتان مه اوكاږئ، ځكه زوړتوب (يعني ويښتان سپينيدل) د مسلمانانو د پاره د نورانيت سبب دي،٣ كوم سړي چې په حالت د اسلام كې د زوړتوب طرف ته قدم مخكې كوي (يعني هر كله چې د يو مسلمان يو ويښته سپينيږي) ٤ نو د هغه په وجه الله ﷻ د هغه د پاره يوه نيكي ليكي،٥ او د هغه يوه خطا ختموي، ٦ او د هغه يوه درجه پورته كوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① لَاتَنْتِفُوا: مه اوكاږئ، ② كَفَّرَ: اوبه رژوی،

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتَنْتِفُوا الشَّيْبَ فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ:

**د سپينو ويښتو د ويستلو ممانعت:** دَ سپينوويښتو دَ راويستلو ممانعت دې ځكه چه دا دَ انوارالهى مظهردې اودَمؤمن وقار اوعزت دې نودَدې زياتيدل ښه دى راويستل ئى ښه نه دى دَ قيامت په ورځ چه كله تياره وى دَ دغه سپينوويښتووالا دَ ږيرې ويښته به مصباح تارج اودَ رڼا كار وركوى.

**قوله:** فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ:

**د سپينو ويښتو نورانيت:** يعنى دا يو وقار دې كوم چه انسانانو لره د ګناهونو او د شهواتو نه د منع كولو په وجه د غرور او تكبر نه مانع دې، كله چه دا كس د ګناهونو نه منع شي او د نيكو اعمالو توفيق ورته ملاو شى نو هم دا نور دې او دۀ ته به په قبر كښې او د قيامت په ورځ نور حاصليږى "لقوله تعالى يسعى نورهم بين أيديهم وبأيمانهم" ددې توجيه په رڼا كښې د بدا والى نور نه د قيامت نور مراد دې.

**اشكال:** چه سپين ويښته د نور سبب دې نو بيا خضاب لګولو ممانعت پكار دې

**د اشكال دوه جوابونه:** ① خضاب لګولو سره ددې سپين والې پټيږى ختميږى نه

② د خضاب د لګولو ممانعت د نورو وجوهاتو په بناء دې د كوم تفصيل چه په ماقبل كښې تير شو،

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب فى نتف الشيب (رقم-۴۲۰۲) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى النهى عن نتف الشيب (رقم-۲۸۲۱) والنسائى فى س كتاب الزينة /باب النهى عن نتف الشيب (رقم-۵۰۶۸) وابن ماجه فى كتاب الأدب /باب نتف الشيب (رقم-۳۷۲۱)

**په ابراهیم علیه السلام د ټولو څخه اول سپین ویښته راښکاره شول:** امام مالک د حضرت سعید بن المسیب رحمه الله نه روایت نقل کوي چه د کوم حاصل دا دي چه په بني آدمانو کښې چه ټولو نه مخکې چه په کوم کس باندې د سپین ویښتو په وجه بوډاوالي راغلی وو هغه حضرت ابراهیم علیه السلام وو، خکه چه کله دوي په خپله ږیره کښې سپین ویښته ولیدل نو الله تعالی ته ئي عرض وکړو چه اے الله دا څه دي نو الله تعالی ورته په جواب کښې وفرمائیل چه دا نور او وقار دې نو بیا حضرت ابراهیم علیه السلام عرض وکړو "رب زدني وقارًا" چه اے زما رب! زما وقار نور هم زیات کړې، نو ددې نه دا معلومه شوه چه د ویښتو سپین والې د وقار سبب دې، او دې سره حلم، صبر، عفو او اعلی صفات په انسان کښې پیدا کیږي او عزت هم ورسره زیاتیږي.

**[۴۴۵۹] سپین ویښته د قیامت په ورځ د رڼا سبب**

۴۴۵۹-[۳۹] (¹) [۱] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ [۳] كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت کعب ابن مره رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] کوم سړي چې د اسلام په حالت کې زوړ (بوډا) شي، [۳] د قیامت په ورځ به د هغه بوډاتوب د نور په صورت کې ښکاره کیږي. (ترمذی نسایي)

**تسهیلات:**

**نوټ:** ددې حدیث تشریح د حدیث نمبر (۴۴۵۸) په شرح کښې تیره شوې ده

**[۴۴۶۰] د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سر مبارک ویښتان**

۴۴۶۰-[۴۰] (²) [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، [۳] وَكَانَ لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الْجُمَّةِ، وَدُونَ الْوَفْرَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایي [۲] چې ما او رسول الله صلی الله علیه وسلم به په یو لوښي سره لمبیدلو ایعنی د اوبو نه ډک یو لوښي به زمونږ د دواړو په مینځ کې پروت ووا، [۳] او د حضور صلی الله علیه وسلم د سر مبارك ویښتان به د جمه نه پورته او د وفره لاندې وو ایعنی هغه وخت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویښتان تر اوږو اوچت او د غوږونو تر نرمۍ لاندې ووا (ترمذي)

**حل اللغات:** ① الْجُمَّةِ: د سر ویښته چه اوږو پورې وی ② الْوَفْرَةِ: د سر ویښته چه د غوږونو د نرمو پورې وی

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی فضل من شاب شیبة فی سبیل الله (رقم-۱۶۳٤) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: ثواب من رمی بسهم فی سبیل الله عز وجل (رقم-۳۱٤۲) واحمد فی المسند: ٤/۲۳۶

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الشعر (رقم-٤۱۸۷) والترمذی فی کتاب اللباس عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الجمة واتخاذ الشعر (رقم-۱۷۵۵) وابن ماجه فی کتاب اللباس، باب اتخاذ الجمة والذوائب (رقم-۳۶۳۵)

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ:

**د یو لوښي څخه د غسل کولو په مفهوم کښې ۳ احتمالات:** ① دَ شپې په وخت به تیاره وه نو په هغه وخت کښې به ئې د یو لوښي څخه غسل کولو.

② ملاعلی قاري رحمه الله فرمائی چه دَ یو لوښی نه به ئې په نمبریاندې جدا جدا غسل کولو په یوځائی مرادنه دې

③ په یوځائی به ئې د یو لوښی څخه غسل کولو خو په مینځ کښې به پرده وی لکه چه څادر زوړند کړې شی. یوطرف ته سړې اوبل طرف ته ښځه په مینځ کښې لوښې،

**د مذکوره تاویلاتو ضرورت:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما په ټول ژوند کښې دَ نبی کریم سترنه دې لیدلې اونبی کریم خودَهغوی نه هم زیات حیادار وو.

**قوله:** لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الْجُمَّةِ:

**د نبی علیه السلام د سر د ویښتو د ساتلو درې طریقې:** ① په احادیثو کښې دَ نبی کریم دَ سر ویښتودَپاره درې الفاظ استعمال شوی دی. اول لفظ جمة په جیم باندې پیښ میم باندې شد دې. دادَ ټولو نه اوږده ویښته وی کوم چه اوږو پورې رسیږی

② احادیثو کښې دویم لفظ لِمَّة دې لام باندې زیر میم مشدددې دَ متوسط درجې ویښته وی چه اوږو ته نیزدې پورې رسیږی

③ دریم لفظ وفره دې. په واؤ باندې زبر دې فاء ساکن ده اوپه راء باندې زبردې دادَ ټولو نه ورو ویښتوته وائی چه دَ غوږ دَ نرمې پورې رسیږی. دَدې مجموعې دَپاره دَ جلو لفظ یاد ساتل پکاردی یعنی جمه لمه وفره دَ اعلی نه دَ ادنی طرف ته ترقی ده.

**[۴۳۳۳] د سر و د ویښتا لو د زیات اوږدولو کراهت**

۴۳۳۳ـ[۳۱] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْأَسَدِيُّ، [٣] لَوْلَا طُولُ جُمَّتِهِ، [٤] وَإِسْبَالُ إِزَارِهِ. [٥] فَبَلَغَ ذَلِكَ خُرَيْمًا، فَأَخَذَ شَفْرَةً، [٦] فَقَطَعَ بِهَا جُمَّتَهُ إِلَى أُذُنَيْهِ، [٧] وَرَفَعَ إِزَارَهُ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابنِ حنظلیه رضي الله عنه چې د رسول الله ﷺ د اصحابو نه یو سړي دی، دا روایت کوي [٢] چې [یوه ورځ] رسول الله ﷺ وفرمایل خُریم اسدي ښه سړي دي، [٣] خو که د هغه ویښتان اوږده نه وی، [٤] او د هغه لنګ زوړند شوی نه وی، [٥] هر کله چې خریم رضي الله عنه ته د حضور ﷺ د دي ارشاد علم وشو، نو هغه یوه استره (چاړه) واخسته [٦] اوخپل ویښتان یې د غوږونو تر نرمیو کټ کړل، [٧] او خپل لنګ یې د نیمی پنډي پورې کړو. (ابوداؤد)

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس باب ما جاء في إسبال الإزار (رقم-٤٠٨٩) واحمد في المسند: ٤/ ١٨٠

**حل اللغات:** ① جُمَّتِهِ: د سر ویښته چه اوږو پورې وی ② إِسْبَالُ: رازوړندول، ③ شَفْرَةٌ: چاړه، تیره اوسپنه، ④ أَنْصَافِ سَاقَيْهِ: تر نیمې پنډۍ پورې.

**تسهیلات:**

**قوله: نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْأَسَدِيُّ:**

**د اسدی وضاحت:** په همزه باندې زبردې سین ساکن دې. دا لفظ په حقیقت کښې ازدی دې اودَ ازدی نه مراد ازدشنوءة دې. ازد بن غوث دَ یمن دَ یوې قبیلې دَ نیکه نوم دې په قاموس کښې لیکلی دی چه دَ ازددَ لفظ نه دَ اسدلفظ زیات واضح دې. دَمدینې اکثر انصار هم دَدې سړی ازد بن غوث یا اسدبن غوث دَ نسل نه وو دَدې لفظ نه قبیله اسد مراد نه ده. نبی کریم دَخریم تعریف هم کړې دې اودَ یونقص نه ئی خبردار هم کړو. هغه نقص زر لرې کړودَتعلیم دَ ورکونکی ورکولوبه څه وائی؟ اودَ تعلیم اخستونکی به څه وائی دَهغه ویښته دَ ضرورت نه زیات اوږده وو؟

**په عامو حالاتو کښې د ویښتود نه خریلو افضلیت:** په حج اوعمره کښې سر خرول افضل دی دې نه علاوه ویښته ساتل افضل دی په دې شرط چه ډول سینګار او ځان خودل مقصودنه وی مسلمان هروخت مجاهدوی او مجاهددَ سر ویښته خرولې نه شی جنګیدل مشکل کیږی.

**[۴۳۶۳] دَبرکت دپاره د ویښتا نو ساتل**

۴۳۶۳—[۳۲] (¹) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَتْ لِي ذُؤَابَةٌ، ③ فَقَالَتْ لِي أُمِّي: لَا أَجُزُّهَا، ④ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَمُدُّهَا، وَيَأْخُذُهَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت انس ﷺ فرمایي ② چې زما په سر اوږده ویښتان وو، ③ زما مور به زه د هغې د کټ کولو نه منع کولم، ④ او وئیل به ئ چې حضور ﷺ به هغه ویښتان نیول (نو زه به د برکت د حاصلولو د پاره هغه ویښتان دغه شان پریږدم) (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① ذُؤَابَةٌ: زلفې، ② لَا أَجُزُّهَا: أی لا أقطعها، زه به دا نه پرې کوم.

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَتْ لِي أُمِّي: لَا أَجُزُّهَا:**

**د برکت کنړلو په غرض د ویښتانو د نه کټ کولو درې واقعات:** ① زه به دا نه پرې کوم ځکه چه دَنبی کریم مبارک لاس په دې باندې لګیدلې دې نوداد برکت والاویښته دی.

② دغه شان دَحضرت حذیفه ﷺ په سرباندې نبی کریم دَ طائف په موقع باندې لاس مبارک راښکلې وو هغوی تول عمر دا اوساتل.

(¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الرخصة (رقم-۴۱۹۶)

④ دَحضرت شيخ الاسلام سيد حسين احمدمدنی رحمه الله لاس، دَحضرت احمدعلی لاهوری
دَ ږيرې په وينښتو باندې لګيدلې وو هغوی ټول عمر دَ ږيرې وينښته په قينچې باندې کم نه
کړل کله چه به کيناستو ږيره به ئې نامه ته رسيدله داد برکت وينښته وی. په اسلام کښې دَ
سرِدَ وينښتو ساتلو ممانعت نشته دې بلکه دَ وينښتونه ساتلو عقيده دَ خوارجو خودلې
شوې ده

## [۴۴۶۳] د جعفر د بچو وينښتان خريل

۴۴۶۳-[۳۳] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ② «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَمْهَلَ آلَ جَعْفَرٍ ثَلَاثًا، ③ ثُمَّ أَتَاهُمْ، فَقَالَ: "لَا تَبْكُوا عَلَى أَخِي بَعْدَ الْيَوْمِ". ④ ثُمَّ قَالَ: "ادْعُوا لِي بَنِي أَخِي" ⑤ فَجِيءَ بِنَا كَأَنَّا أَفْرَاخٌ. ⑥ فَقَالَ: "ادْعُوا لِي الْحَلَّاقَ" ⑦ فَأَمَرَهُ فَحَلَقَ رُءُوسَنَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عبد الله ابن جعفر رضي الله عنه نه روايت دې ② چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت جعفر رضي الله عنه اولاد ته درې ورځې وخت ورکړو [څه وخت چې د حضرت جعفر رضي الله عنه د شهادت خبر راغې، نو حضور صلى الله عليه وسلم د هغه کور والو ته دريو ورځو پورې د غم کولو اجازت ورکړو او په دې موده کې حضور صلى الله عليه وسلم هغوی ته تشريف رانه وړو]. بيا حضور صلى الله عليه وسلم هغوی ته د دلاسه او تسلې ورکولو د پاره تشريف راوړو، او ورته يې وفرمايل بس د نن ورځې نه پس زما په ورور جعفر رضي الله عنه مه ژاړئ، ④ بيا يې وفرمايل چې زما وريرونه (يعني عبد الله او عون او محمد رضي الله عنهم چې د جعفر رضي الله عنه ځامن دي) ماته راولئ، ⑤ نو مونږ ټول د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې راوستل شو، او هغه وخت مونږ د چرګوټو په شان وو (کم عمره وو) ⑥ د دې نه پس حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې نائي ماته راولئ [هرکله چې هغه راغې]، ⑦ نو حضور صلى الله عليه وسلم هغه ته زمونږ د وينښتانو د خرئيلو حکم ورکړو نو هغه زمونږ سرونه وخرئيل (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① أَمْهَلَ: مهلت ئې ورکړې وو، ② بَنِي أَخِي: وريرونه، ③ كَأَنَّا أَفْرَاخٌ: ګويا چه مونږ چرګوټي يو، ④ الْحَلَّاقَ: وينښته خريونکې، نائي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَحَلَقَ رُءُوسَنَا:**

**دحديث شانِ ورود:** حضرت جعفر رضي الله عنه دَحضرت علی رضي الله عنه رور اودَنبی کريم دَ محبوب تره خونی وو. په غزوه موته کښې شهيد شو دَاسماء بنت عميس خاوندوو دَهغه واړه واړه ماشومان يتيمان پاتې شو. دَ يونوم عبدالله دَ بل نوم عون اودَ دريم نوم محمدوو. دَدوی دَ سرونوخرولودَپاره نبی کريم نائی راؤغوښتلو اودَهغوی دَ سرويښته ئې کټ کړل. کيدې

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الترجل /باب فی حلق الرأس (رقم-۴۱۹۲) والنسائی فی كتاب الزينة /باب حلق رءوس الصبيان (رقم-۵۲۲۷) واحمد فی المسند: ۲۰۴/۱

شی چه د صفائی د وجهې نی داسې کړی وی معلومه شوه چه وینسته ساتل هم جائزدی او د ضرورت په وخت خرول هم جائز دی ددې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه په مړی باندې د دریو ورځونه زیات ماتم کول جائزنه دی د زړه غم یوخان له څیز دې په دې باندې پابندی نه شی کیدې

**مسئله**: ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه درې ورځې تیریدونه پس تعزیت کول جائزنه دی

**[۳۳۳] د ښځې د ختنې (سنت) ذکر**

۳۳۳-[۳۳] (۱) ① وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ الْأَنْصَارِيَّةِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: ②«أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تَخْتِنُ بِالْمَدِينَةِ ③ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُنْهِكِي ④ فَإِنَّ ذَلِكَ أَحْظَى لِلْمَرْأَةِ ⑤ وَأَحَبُّ إِلَى الْبَعْلِ» ". ⑥ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ ضَعِيفٌ، وَرَاوِيهِ مَجْهُولٌ.

**ترجمه**: ① او بي بي ام عطیه انصاریه رضی الله عنها وایي ② چه په مدینه کې یوه ښځه وه چې ښځې به یې سنتولې، [څرنګه چې په هغه زمانه کې د ښځو د سنتولو هم رواج وو]. ③ رسول الله ﷺ [یوه ورځ] هغې ښځې ته وفرمایل چې په کټ کولومبالغه ته مه کوه بلکې لږ شان د پاسه نه یې کټ کوه، ④ ځکه چې دا زیات نه کټ کول د ښځې د پاره هم ډیر لذت بخش وي. ⑤ او خاوند د پاره هم ډیر خوښ وي (که دا زیات کټ شي نو په جماع کې نه ښځې ته لذت حاصلیږي نه سړي ته) ⑥ ابوداود دا روایت نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث ضعیف دي او د دې راوي مجهول دي

**حل اللغات**: ① تَخْتِنُ: ښځې به نې سنتولې، ② أَحْظَى: خوند ورکونکې. ③ الْبَعْلِ: خاوند.

**تسهیلات**:

**قوله**: لَا تُنْهِكِي، فَإِنَّ ذَلِكَ أَحْظَى لِلْمَرْأَةِ، وَأَحَبُّ إِلَى الْبَعْلِ

**په ختنه کښې د مبالغې کولوممانعت**: یعنی په ختنه کولوکښې مبالغه مه کوئی بلکه ضروری حصه معمولی شان پرې کوئی دا کم پرې کول د طرفینو د جماع په خوند کښې معاون دی

دعربوملکونه چونکه ګرم وود ښځو په خاص اندام کښې به د وازګې په شان غوښه راوتله هغه به پرې کولې سوه هم دغه د جینکوختنه کول وو "اذا جاوزالختان الختان" د حدیث نه هم دغه ختنې کاروبار کولوطرف ته اشاره کیږی

**د حمزه رضی الله عنه یوه جنګی نعره**: داحدپه میدان کښې حضرت حمزه رضی الله عنه په یوکافرباندې حمله کولو سره اوفرمائیل "یاابن مقطعة البظور" دې د سنت کونکې ښځې خویه

**په یخو علاقو کښې د جینکو د ختنې کولو عدمِ ضرورت**: ددې روایاتونه د جینکو د ختنه

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی الختان (رقم-۵۲۷۱)

کولوثبوت ملاوېږي ليکن داد ګرمو ملکونو مسئله ده. زمونږ په ملك کښې دامسئله بيانول نه دي پکار ددې دلته څوك ماهر هم نشته دې بل دا نه څه شرعي مامور يا ضروري حکم هم نه دې. په ګرمو ملکونو کښې شوافع داکارکوي. بس دومره کافي دي هغوی متبهاني او دعوت هم ورکوي.

**[۴۳۶۵] د ښځو د سر په ويښتانو د نکريزو خضاب لګولو کراهت**

۴۳۶۵-[۳۵] ( )[۱] وَعَنْ كَرِيمَةَ بِنْتِ هَمَّامٍ[۲] أَنَّ «امْرَأَةً سَأَلَتْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- عَنْ خِضَابِ الْحِنَّاءِ.[۳] فَقَالَتْ: لَا بَأْسَ، وَلَكِنِّي أَكْرَهُهُ،[۴] كَانَ حَبِيبِي يَكْرَهُ رِيحَهُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي کريمه بنت همام نه روايت دې[۲] چې يوې ښځې د بي بي عائشې رضی الله عنها نه [د سر په ويښتانو] دنکريزو د خضاب کولو باره کې پوښتنه وکړه،[۳] نو هغې ورته وفرمايل اګر که په دې کې څه حرج نشته، خو زه دا ښه نه ګڼم،[۴] ځکه چې زما محبوب، يعنی حضور ﷺ به د دې بوي نه خوښولو. (ابوداؤد نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَكِنِّي أَكْرَهُهُ، كَانَ حَبِيبِي يَكْرَهُ رِيحَهُ:

**د سرپه ويښتو د نکريزو د خضاب لګولو حکم:** دادَ سردَ ويښتو خبره وي ګنی په لاسونو باندې نکريزې لګول نبی کريم دَ ښځودَپاره خوښ کړي هم دي اوترغيب ئی هم ورکړې دې لکه چه وړاندې راځي. په دې حديث کښې حضرت عائشه رضی الله عنها دَعامو ښځودَ پاره دَ سرپه ويښتوکښې نکريزې لګول جائزګرځوي. لهذا که چرې ښځې دَ سر په ويښتوکښې دَ نکريزو وسمه کول غواړي نودا جائزدي البته توره وسمه جائزنه ده.

**[۴۳۶۶] د ښځو په لاسونو د نکريزو د لګولو استحباب**

۴۳۶۶-[۳۶] ( )[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- [۲] «أَنَّ هِنْدًا بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ بَايِعْنِي.[۳] فَقَالَ: "لَا أُبَايِعُكِ حَتَّى تُغَيِّرِي كَفَّيْكِ[۴] فَكَأَنَّهُمَا كَفَّا سَبُعٍ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضی الله عنها فرمائي[۲] چه د عتبه لور هنده رضی الله عنها [چې کله] دا اوويل چه اي د الله نبي! ﷺ ما بيعت کړه،[۳] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل تر څو چې ته خپل دواړه لاسونه (په نکريزو لګولو سره د هغې رنګ) متغير نه کړي، زه ستا نه (زباني) بيعت نه اخلم،[۴] ستا لاسونه (دنکريزو نه بغير) داسې دي لکه د درنده حيوان لاسونه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① كَفَّيْكِ: خپل تلی يعنی لاسونه، ② سَبُعٍ: درنده حيوان

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب للنساء (رقم-۴۱۶۴) والنسائی فی کتاب الزينة/باب کراهية ريح الحناء (رقم-۵۰۹۰) واحمد فی المسند: ۲۱۰/۶

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب للنساء (رقم-۴۱۶۵)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ هِنْدًا:

**دهند پیژندګلو:** هند بنت عتبه دَحضرت ابوسفیان ښځه اودَ حضرت معاویه ﷺ مورده په جنګ احد کښې دَحضرت حمزه ﷺ دَ شهادت اصل محرکه هم دغه وه بیانی دَ فتح مکه په ورځ اسلام راوړلو او په مختلفو غزواتو کښې ئې حصه واخسته دابیعت کیدې شی چه دَ بیعت اسلام نه علاوه بیعت وو.

**د ښځو دپاره په لاسونو د نکریزو د لګولو استحباب:** دَدې حدیث نه معلومه شوه چه ښځوله په خپلو لاسونوباندې نکریزې لګول مستحب دی اودا ترک کول مکروه دی ځکه چه په دې سره هم سړو سره یو قسم مشابهت راځی. اسلام کورنې نظام مضبوط لیدل غواړی په دې وجه ښځې له دَ هرقسم ډول سینګار کولو حکم ورکوی

**[۴۳۶۷] ښځو دپاره په لاسونو د نکریزو لګولو ترغیب**

۴۳۶۷-[۴۷] (¹)[۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: [۲]«أَوْمَتِ امْرَأَةٌ مِنْ وَرَاءِ سِتْرٍ، بِيَدِهَا[۳] كِتَابٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَبَضَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَهُ.[۴] فَقَالَ: "مَا أَدْرِي أَيَدُ رَجُلٍ أَمْ يَدُ امْرَأَةٍ؟"[۵] قَالَتْ: بَلْ يَدُ امْرَأَةٍ،[۶] قَالَ: "لَوْ كُنْتِ امْرَأَةً لَغَيَّرْتِ أَظْفَارَكِ" يَعْنِي بِالْحِنَّاءِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي[۲] چې یوه ورځ یوې ښځې د پردې د شا نه د خپل لاس په ذریعه اشاره وکړه، چې په هغې کې یوه پرچه وه، [چې یو سړي رسول الله ﷺ ته لیږلې وه، یعنی هغه ښځې د پردې د شا نه خپل لاس راویستلو سره پرچه رسول الله ﷺ ته ورکول وغوښتل] .[۳] لیکن نبي کریم ﷺ خپل لاس مبارك راواپس کړو (یعني هغه پرچه یې وانخستله) او وي فرمایل چې ماته نه ده معلومه چې دا لاس د سړي دي که د ښځې؟[۵] هغه ښځې عرض وکړو چې دا لاس د ښځې دی،[۶] حضور ﷺ ورته وفرمایل که ته ښځه وې (یعنی که تاته د ښځو طور او طریقه راتله) نو د خپلو نوکانو رنګ به دې دنکریزو په ذریعه ضرور بدل کړې وو. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① أَوْمَتْ: اشاره ئې اوکړه.

**تسهیلات:**

**قوله:** بِيَدِهَا كِتَابٌ:

**د کتاب څخه مراد:** دا جمله دَ امرأة دَپاره صفت واقع شوې ده یعنی دَهغه ښځې په لاس کښې یوه لیکلې شوې پرچه وه کیدې شی چه څه مسئله ئې معلومول غوښتل.

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی الخضاب للنساء (رقم-۴۱۶۶) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الخضاب للنساء (رقم-۵۰۸۹) واحمد فی المسند:۲۶۲/۶

**قوله**: فَقَبَضَ النَّبِيُّ ﷺ:

**اشکال**: يعنى نبى كريم دَ لاس وړاندې كولونه پس شاته راښكلو. دَدې حديث نه وړاندې چه كوم حديث تيرشوې دې دَهغې نه اودَ زير بحث دواړو احاديثونه داسې معلوميږى چه نبى كريم په بيعت وغيره كښې دَ ښخوسره لاس ملاوولو حالانكه په ډيرو صحيح اوصريح رواياتو كښې حضرت عائشه ﷺ په سختئى سره نفى كوى

**د اشکال دوه جوابونه**: ① په مذكوره دواړو احاديثوكښې دا تاويل كولى شى چه نبى كريم اول اراده اوكړه چه په لاس سره بيعت واخلى بيا نبى كريم صرف په ژبې سره بيعت واخستلو

② ښخوسره په لاس باندې كولو مطلب دا دې چې د لستوڼړې اينغښتلو سره نبى عليه السلام په لاس سره بيعت كړې وو دې دَپاره چه ښځوته بركت حاصل شى.

**ښځو سره په لاس باندې د بيعت کولو حرمت**: نبى كريم دَامت دَ ښځواو سړو دَ پلار په درجه كښې وو لكه چه دَ ابن مسعود ﷺ په قرات كښې دى (النبى أولى بالمؤمنين من أنفسهم وأزواجه أمهاتهم وهوأبوهم) ليكن دَدې باوجود نبى كريم مكمل احتراز كړې دې اودَ پردوښځونه ئى پرده كړې ده اودَ يوې ښځې لاس سره ئى لاس نه دې ملاؤ كړې.

**[۴۳۶۸] د عذربه وجه د خال لګولو جواز**

۴۳۶۸-[۳۸] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] «لُعِنَتِ الْوَاصِلَةُ وَالْمُسْتَوْصِلَةُ، [٣] وَالنَّامِصَةُ، وَالْمُتَنَمِّصَةُ، [۴] وَالْوَاشِمَةُ، وَالْمُسْتَوْشِمَةُ مِنْ غَيْرِ دَاءٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابن عباس ﷺ وفرمايل [٢] ملعونې ګرځول شوې دې هغه ښځې يو خاي كونكي، ځان ته يا بل ته، يعنى په خپلو ويښتانو كې د انساني ويښتانو جوړ لګونكي خان ته يابل ته، [٣] او د ويښتانو شكونكي خان ته يا بلې ته، [۴] او بغير د څه مرض نه خال لګونكي ځان ته يابل ته، ادا ټولي ښځي ملعوني ګرځول شوي دي‌ا (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① الْوَاصِلَةَ: خپلو ويښتانو كښې پردى ويښتان لګونكى ښځه. ② الْمُسْتَوْصِلَةَ: خپلو ويښتانوكښې د پردى ويښتو لګولومطالبه كونكې ښځه. ③ النَّامِصَةُ: خپل ويښتان شوكونكى ښځه. ④ الْمُتَنَمِّصَةُ: دخپلو ويښتانود شوكولو مطالبه كونكې ښځه. ⑤ الْوَاشِمَةَ: خپل بدن كښې خالونه لګونكې ښځه. ⑥ الْمُسْتَوْشِمَةَ: د بلې ښځې نه دخالونه لګولو مطالبه كونكې ښځه.

**تسهيلات**:

**قوله**: مِنْ غَيْرِ دَاءٍ: يعنى دا امور دَ مجبورئى نه په درجه دَ علاج جائزدى ګنى تغييرخلق الله دَ وجې ناجائزدى.

**نوټ**: دحديث وضاحت دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۴۳۰) په تشريح كښې تير شوې دې.

١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب فى صلة الشعر (رقم-۴۱۷۰) واحمد فى المسند: ۲۵۱/۱

[۳۳۶۹]په یو قسم سړی او ښځه باندې د نبي علیه السلام لعنت

۳۳۶۹-[۴۹]()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ:[۲]«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ[۳]وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي[۲] چې رسول الله ﷺ په هغه سړي لعنت ویلي دي چې زنانه لباس اغوندي.[۳] دغه شان په هغې ښځې یې هم لعنت ویلي دي چې مردانه لباس اغوندي (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ:

**د ښځو سره د مشابهت حرمت:** دَ سړو لباس په جدا رنګ کښې وی او دَ ښځو په جدا رنګ او ډيزائن کښې وی. اوس که چرې سړو دَ ښځو والا سوټ لب س واچولو نو دا دَ هغوی دپاره دَ لعنت سبب دې. سړو له دَ ښځو دَ وضع قطع نه ډېره کول پکار دی ګنی دَ الله تعالی دَ رحمت نه به اوځي او دَ لعنت مستحق به جوړ شي

**قوله:** وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ:

**د سړو سره د مشابهت حرمت:** ښځو دَ سړو والا مثلاً سپين لب س واچولونو دا دَ هغوی دپاره دَ لعنت سبب دې. دغه شان دَ سړو په شان ټوپئی یا واسکټ دَ ښځو دپاره جائزنه دې که هغه دَ یونیفار په وجه مجبوره وی یا په شوق اوذوق کښې مخموره وی هغه ښځه ده هغې له دَ مردانه وضع قطع نه ځان ساتل پکار دی

[۳۳۷۰] ښځې دپاره د سړو لباس اچولو باندې لعنت

۳۳۷۰-[۵۰]()[۱] وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ:[۲]«قِيلَ لِعَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا-: إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ.[۳] قَالَتْ: لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن ابوملیکه وايي[۲] چې بي بي عائشه رضي الله عنها ته اووئیلې شو چې یوه ښځه مردانه چپل په پښو کوي.[۳] نو هغې وفرمایل چې رسول الله ﷺ په هغې ښځې لعنت فرمایلي دي کومه چې د سړو مشابهت اختیاروي (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ

**دعامې ښځې دپاره په وضع قطع کښې د سړو د مشابهت حرمت:** رجل مذکر دې رجلة مؤنث دې دې نه مراد هغه ښځه ده چه خبرې اترې رنګ ډهنګ، وضع قطع اوتګ راتګ کښې دَ

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب فی صلة الشعر (رقم-۴۱۷۰) واحمد فی المسند:۱/۲۵۱
(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی لباس النساء (رقم-۴۰۹۹)

سرو په شان مشابهت اختیاروی. دا یوخراب حرکت دې کوم چه دَلعنت سبب دې.
کومه ښځه په علم پوهه اوعقل رائې حکمت هوښیارتوب کښې دَ سړو په شان صفات لرې نودغه مشابهت خراب اومذموم نه دې لکه چه ونیلی شوی دی "كانت عائشة رجلة الرأى" یعنی دَ حضرت عائشه رائې اوعقل دَ سړو په شان وو. رجُلة کښې په جیم باندې پیش دې.

## [۳۳۷]د نبی علیه السلام د زیب اوزینت څخه بې رغبتی

۳۳۷—[۵۱] ()[۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا سَافَرَ[۳] كَانَ آخِرُ عَهْدِهِ بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ،[۴] وَأَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ عَلَيْهَا فَاطِمَةَ،[۵] فَقَدِمَ مِنْ غَزَاةٍ وَقَدْ عَلَّقَتْ مِسْحًا أَوْ سِتْرًا عَلَى بَابِهَا،[۶] وَحَلَّتِ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ قُلْبَيْنِ مِنْ فِضَّةٍ،[۷] فَقَدِمَ فَلَمْ يَدْخُلْ،[۸] فَظَنَّتْ أَنَّ مَا مَنَعَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَا رَأَى،[۹] فَهَتَكَتِ السِّتْرَ،[۱۰] وَفَكَّتِ الْقُلْبَيْنِ عَنِ الصَّبِيَّيْنِ،[۱۱] وَقَطَعَتْهُ مِنْهُمَا،

**ترجمه:**[۱] او حضرت ثوبان وايي[۲] چه رسول الله چې به په سفر روانيدو،[۳] نو د خپل اهل وعيال په خلقو کې د ټولو نه آخري وخت به يې بي بي فاطمې ته ورکولو.[۴] او کله چې به د سفر نه واپس راتلو ، نو د ټولو نه مخکې به بي بي فاطمې ته ورتلو. [یعنی د سفر د پاره د روانيدو په وخت به حضور مخکې د نورو اهل بيتو سره الوداعي ملاقات کولو، بيا د ټولو د فارغيدو سره او ټول رخصتولو سره په آخر کې به يې بي بي فاطمې ته تشريف راوړو، هغې ته به چې څه وئيل اوريدل وو هغه به يې وئيل او اوريدل، او څه وصيت او نصيحت چې به کول وو، هغه به يې کولو، او هغی ته السلام عليکم ويلو سره به روانيدو، او بيا چې د سفر نه واپس به يې تشريف راوړو، نو د ټولو نه مخکې به بي بي فاطمې ته يې تشريف راوړو، او د ټولو نه مخکې به يې د هغې سره ملاقات کولو] .[۵] [يو ځل] حضور د جهاد د يو سفر نه واپس راغې ، هغه وخت بي بي فاطمې د خپل مکان په دروازه د ټاټ پرده ځوړنده کړي وه [په ظاهره داسې معلوميده، چې هغې هغه پرده د آرائش په خاطر ځوړنده کړي وه، ځکه که پرده يې د ضرورت په خاطر ځوړنده کړي وه، نو حضور ته به ناګواري نه وه][۶] او هغې خپلو دواړو خامنو حضرت حسن او حضرت حسين ته د سپينو زرو دوه کړۍ اچولي وې [يعني په هغوئ کې يې هر يوه ته يوه يوه کړه يا دوه دوه کړئ اچولي وې][۷] هرکله چې حضور د خپل معمول مطابق د سفر نه په واپس راتلو کې مخکې د بي بي فاطمې د ملاقات د پاره د هغې کور ته تشريف راوړو، او دا څيزونه يې وليدل، نو حضور د هغې په کور کې داخل نه شو،[۸] بي بي فاطمه پوهه شوه چې کوم څيز حضور زما کور ته د راتلو نه منع کړي دي، هغه دا دي کوم چې حضور وليدل [يعنی په دروازه

---

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب ما جاء فی الانتفاع بالعاج (رقم-۴۲۱۳) واحمد فی المسند:۲۷۵/۵

پرده خوړندول، او د حسن رضي الله عنه حسین رضي الله عنه په لاسونو کې کړې لیدل! ۹ بي بي فاطمي رضي الله عنها سمدستي هغه پرده وشلوله، ۱۰ او د دواړو صاحبزادگانو د لاسونو نه یې هغه کړې اوخکلی، ۱۱ او هغه یې ماتې کړلی،

**حل اللغات:** ① عَلَّقَتْ: دَ تعلیق نه دې، یعنی زوړنده کړې وه، ② مَسْحًا: د ټاټ یا د بوجۍ کپړه، ③ سِتْرًا: پرده، ④ حَلَّتْ: دَباب تفعیل نه دې، یعنی کالی ئې اچولی وو، ⑤ قُلْبَیْنِ: د چاندۍ سپینو زرو دوه بنګړی، کړې، ⑥ فَهَتَكَتْ: اوئې شلوله، ⑦ فَكَّتْ: لرې ئې کړې، اوئې ویستلې،

۱ فَانْطَلَقَا إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَبْكِيَانِ، ۲ فَأَخَذَهُ مِنْهُمَا فَقَالَ: "يَا ثَوْبَانُ! ۳ اذْهَبْ بِهَذَا إِلَى فُلَانٍ، ۴ إِنَّ هَؤُلَاءِ أَهْلِي أَكْرَهُ أَنْ يَأْكُلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي حَيَاتِهِمُ الدُّنْيَا. ۵ يَا ثَوْبَانُ! اشْتَرِ لِفَاطِمَةَ قِلَادَةً مِنْ عَصْبٍ ۶ وَسِوَارَيْنِ مِنْ عَاجٍ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ بیا هغه دواړه صاحبزادگان ماتې کړی اخستو سره په ژړا حضور ﷺ ته راغلل، ۲ حضور ﷺ کړې د هغه دواړو نه واخستلې، او ماته یې وفرمایل چې اې ثوبانه: (رضي الله عنه) ۳ دا کړې واخله، د فلانی سړی کور والو ته یې ورکړه، [یعنی حضور ﷺ په خپلو رشته دارانو کې د یو سړي نوم اخستو سره وفرمایل، چې د هغه کور والو ته یې ورکړه، ځکه چې هغه محتاج او ضرورتمند وو، دا دواړه واړه زما د اهل بیتو نه دي]، ځکه زه دا خبره نه گنم، چې دوئ په دنیاوي ژوند کې په بهترینه غذا وخوري، [یعنی زما په نز دا خبره غوره نه ده چې زما دا کوشنیان د بهترینو غذاگانو او نفیس پوشاك او اسباب نه لذت او فائده پورته کړی، یا حضور ﷺ د بهترینې غذا نه د عیش وعشرت ژوند اختیارول او د دنیا لذتونه حاصلول مراد واخستل، او حضور ﷺ د دې ارشاد په ذریعه گویا دا واضحه کړه، چې زه د خپل اهل بیتو په باره کې هغه شی اختیاروم چې هغوی په دې دنیا کې د فقر او زهد او د سختي او مشقت ژوند خپل کړي، چې په آخرت کې د هغوئ درجات بلند وي او د هغوئ شمیر په هغه خلقو کې نه وي چې د هغوئ په حق کې الله ﷻ فرمایلي دي: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا خو دې سره حضور ﷺ د تصور په سترگې د خپل زړه ټکړې بي بي فاطمي رضي الله عنها مات زړه ته هم کتل، په دې وجه د هغې سره د شفقت او محبت اظهار کولو د پاره دا یې هم وفرمایل چې] ۵ اې ثوبانه! (رضي الله عنه) د بي بي فاطمي رضي الله عنها د پاره د عصب (چې دبحري حیوان دپلو وغیره نه غاړگۍ جوړوي) یو هار واخله، ۶ او د فیل د غابښونو دوه کړې راواخله [چې د فاطمي رضي الله عنها هم دلجوئي وشي د ماشومانو هم، ځکه چې دادوي کړی هم په اصل کښې دبي بي فاطمی وي]. (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** ⑧ قِلَادَةً: هار، امیل، ⑨ عَصْبٍ: د یمن یوه کپړه ده یا د سمندری یوقسم ځناور غابښونه دی، ⑩ سِوَارَيْنِ: دوه بنګړی، کړې، ⑪ عَاجٍ: د هاتی غابښونه.

**تسهیلات:**

**قوله:** آخِرُ عَهْدِهِ بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ رضي الله عنها:

**د نبی علیه السلام د فاطمه رضی الله عنها سره مینه:** یعنی نبی کریم چه به کله دَ څه سفر یا جهاد دَپاره تشریف اوړلو نودَاهل بیت دَ ټولو ښخوسره دَ الوداعی ملاقات نه پس په آخره کښې به دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها سره ملاقات کولوسره په سفر روانیدو او په واپسئی کښې به ئې دَ ټولو نه اول هم دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها سره ملاقات کولو داصرف دَښځو معامله بیان کړې شوې ده دَ سړو نه ده.

**قوله:** فَقَدِمَ فَلَمْ يَدْخُلْ:

**د نبی علیه السلام د ناخوښوی په وجه کښې دوه اقوال:** ① کیدې شی په دغه پرده باندې د ځناورو تصویران وو ځکه نبي علیه السلام داخل نشو ځکه چې داسې واقعه د حضرت عائشې رضی الله عنها سره هم پیښه شوې وه نو نبی علیه السلام هغه منع کړې وه چې دا پرده اخوه کړه ځکه چې په دې کښې د ځناورو تصویران دی

② نبی علیه السلام دخپل اهل وعیال دپاره د دنیا زیب او زینت نه خوښولو ځکه ئې د ناراضګي اظهار اوکړو او د فاطمې رضی الله عنها کورته داخل نشو

**قوله:** فَأَخَذَهُ مِنْهُمَا:

**د مذکوره جملې په مطلب کښې دوه اقوال:** ① یعنی نبی کریم دا منظر اوکتلونودَهغې دواړو په حالت ئې ترس راغلو یعنی په دواړو باندې ئې ترس اوکړویاشفقت اورحمت ئې پرې راغلو دا ترجمه ډیره ښکلې ده

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه داترجمه مناسب نه ده بلکه ترجمه داده چه نبی کریم دَهغه دواړو نه دغه مات کوډ بنګړی واخستل اوحضرت ثوبان رضي الله عنه ته ئې ورکړل

**قوله:** إِنَّ هٰؤُلَاءِ أَهْلِي أَكْرَهُ أَنْ يَأْكُلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي حَيَاتِهِمُ الدُّنْيَا:

**د مذکوره جملې په ترکیب کښې دوه احتمالات:** ① داجمله دَتعلیل په محل کښې هم کیدې شی نوعبارت به داسې شی أی لأنی أکره أن یأکلوا،

② دادَ استیناف په موقع کښې ده عبارت به داسې شی إن هؤلا أی الحسن والحسین وعلیا وفاطمة أهل بیتی وأکره أن یأکلوا یعنی دا ښکلې څیزونه صدقه کړئی اودا درهم واخلئی دَ بازارنه دَفاطمه دَپاره دَ عصب هار راوړئی دې دَپاره چه دَدې دَزړه ساتنه اوشی اودَ حسنین دَپاره دوه بنګړی دَ هاتهی دَ غاښونو راوړئی دې دَپاره چه دَدوی تسلی اوشی. داسې معلومیږی چه دا بنګړی دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها وو هغې حسنین ته اچولی وو.

**قوله**: اشْتَرِلِفَاطِمَةَ قِلَادَةً مِنْ عَصْبٍ:

**دعصب په تفسیر کښې دوه اقوال**: ① بعضې علماء وائي چه دا په یمن کښې جوړیدونکې یوه کپړه ده دکومې دَ څه اجزاؤ نه چه هار جوړولې شي مګر شارحین وائي چه دَ کپړې نه هار جوړول په خیال کښې نه راځي

② علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه ماڈ یمن والونه اوریدلي دي چه عصب دَ یو سمندري ځناور غاښونوته وائي دکوم نه چه بهترین سپین هار جوړیږي دې حیوان ته فرس فرعون وائي

**قوله**: وَسُوَارَيْنِ مِنْ عَاجٍ:

**دعاج په تفسیر کښې دوه اقوال**: ① دَهاتهي دَغاښونونه بنګړي جوړولې شي داهډوکې دې ددې استعمال دَ احنافو په نیز جائزدې

② د دې څخه د سمندري شمشتئ هډوکي مراد دې چې دهغې څخه جوړ شوي بنګړي ورله واخله

**د عاج غوره معنی**: په دې دواړو معانیوکښې اوله معنی راجحه ده.دحدیث مقصد دا دې چې نبی کریم دَخپل اهل بیت دَپاره دَ دنیا سخت ژوندخوښ کړې دې دې دَپاره چه دَ آخرت تول راحتونه او نعمتونه محفوظ پاتې شي او أذهبتم طيباتكم في حياتكم الدنيا دَ وعید نه بچ شي

**[۴۴۷۲] د سرمه (رانجو) لګولو حکم**

۴۴۷۲—[۵۲] (¹) [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «اكْتَحِلُوا بِالْإِثْمِدِ، [۳] فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ [۴] وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ". [۵] وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَتْ لَهُ مُكْحُلَةٌ [۶] يَكْتَحِلُ بِهَا كُلَّ لَيْلَةٍ، ثَلَاثَةً فِي هَذِهِ وَثَلَاثَةً فِي هَذِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] اصفهاني سرمه (برابر) لګوئ. [۳] ځکه چې هغه سُرمه بینائي روښانه کوي، [۴] او وېښتان. یعنی بانه راځیجوي. اچې د سترګو دښایست او حفاظت ضامن دي]. [۵] [حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې] د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره یوه رنجنونی ارنځرومې] وه. [۶] حضور صلی الله علیه وسلم به روزانه د شپې دري خلي په دې سترګه کې او دري خلي په دې سترګه کې رانجه لګول. [یعنی مسلسل دري سلایانی به یې په ښي سترګه کې او دري سیلایانی په ګسه سترګه کې لګولی] (ترمذي)

**حل اللغات**: ① اكْتَحِلُوا: رانجه لګوئ. ② الإِثْمِدِ: یو قسم رانجه دی. ③ يَجْلُو: تیزوي، روښانه کوي. ④ مُكْحُلَةٌ: رنځرومه، د رانجو کځوړئ.

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس/باب في البياض (رقم-۴۰۶۱) والترمذي في كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في(رقم-۱۷۵۳)والنسائي في كتاب الزينة/باب الكحل (رقم-۵۱۱۳) واحمد في المسند:۲۳۱/۱

**تسهیلات:**

**قوله:** اَكْتَحِلُوا الْإِثْمِدَ:

**د اثمد په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَ احادیثو په رنړا کښې زیاته صحیح خبره داده چه اثمد یو خاص قسم معدنی رانجوته وائی.

② دَ بعضې حضراتو خیال دې چه اثمد مطلق رانجوته وائی

③ دَ بعضې حضراتو خیال دې چه اثمد یومخصوص قسم اصفهانی رانجه دی چه دَ سترګونه بهیدونکې اوبه بنده وی اودَ سترګودَ زخم دَپاره فائده مند دی بلکه دَ سترګو سوزیدل لرې کوی اودَسترګودَرنړا والارګونوته طاقت ورکوی. دَ ورو ماشومانواو بوډاګانو دَپاره په خاص توګه فائده مند دی.

**د اثمد رانجو دوه فائدې:** ① دَ سترګو بانړه اوږده وی په کوم سره چه دَ سترګوحفاظت هم کیږی اوښائست هم پیدا کیږی.

② اثمد رانجه دَ سترګو نظر تیزه وی.

**د رانجو لګولو طریقه:** دَ رانجولګولو یوه طریقه په دې حدیث کښې ده چه درې سلایانې په یوه سترګه کښې راښکلې شی اودرې په بله سترګه کښې. دَ شپې وخت ئې ځکه منتخب کړې دې چه په دې کښې دَ زیات وخت پورې رانجه په سترګو کښې پاتې کیږی

**[۴۴۷۳] د اثمد رانجو فائدې**

> ۴۴۷۳-[۵۳] ()[۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَكْتَحِلُ قَبْلَ أَنْ يَنَامَ بِالْإِثْمِدِ ثَلَاثًا فِي كُلِّ عَيْنٍ». [۳] قَالَ: وَقَالَ: "«إِنَّ خَيْرَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ: [۴] اللَّدُودُ، وَالسَّعُوطُ، وَالْحِجَامَةُ، وَالْمَشِيُّ. [۵] وَخَيْرَ مَا اكْتَحَلْتُمْ بِهِ الْإِثْمِدُ، [۶] فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ، وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ [۷] وَإِنَّ خَيْرَ مَا تَحْتَجِمُونَ فِيهِ يَوْمُ سَبْعَ عَشْرَةَ، وَيَوْمُ تِسْعَ عَشْرَةَ، وَيَوْمُ إِحْدَى وَعِشْرِينَ»"

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي[۲] چې رسول الله ﷺ به د شپې د اوده کیدلو نه مخکې په هره سترګه کې اصفهاني سرمه درې درې سلایاني لګولې، [۳] او ابن عباس رضی الله عنهما وایي رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو چې د علاج د پاره کوم څیزونه اختیاروئ، په هغې کې بهترین څیزونه څلور دي. [۴] یو خو لدود، دویم سعوط، دریم حجامة، او څلورم مشي، [۵] په سترګو کې په لګونکو څیزونو کې بهترین شي اصفهاني سرمه ده، چې بینائي روښانه کوي، او د بانو ویښتان ډیروي، [۷] او د ډك ښکر را خکلو (د وینی اوخکلو) د پاره د میاشتې اوولسم، نورلسم او یویشتم تاریخونه بهترینې ورځې دي.

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في السعوط وغيره (رقم-۲۰۴۸)

**حل اللغات:** ① اللَّدُودُ: خوله کښې د اچولو دوائی، ② السَّعُوطُ: پوزه کښې د اچولو دوائی، ③ الحِجَامَةُ: بدن نه وینه ویستل، ④ المَشِيُّ: دستونه راوستونکې دوائی ⑤ الإِثْمِدُ: یو قسم رانجه دی، ⑥ يَجْلُو: تیزوی، روښانه کوی

① «وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَيْثُ عُرِجَ بِهِ، ② مَا مَرَّ عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا: ③ عَلَيْكَ بِالْحِجَامَةِ». ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا بیان هم وکړو چې کله رسول الله ﷺ معراج ته تشریف یوړو، ② نو د فرشتو یو جماعت داسې نه وو، چې حضور ﷺ پر هغوئ نه تیر شوي وي، او هغوی دا نه وي ویلي ③ چې ډك ښکر راخکل (وینه اوخکل) ستاسو د پاره ضروري دي، ④ ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دي

**حل اللغات:** ⑤ عُرِجَ: پورته اوخیجولې شو، معراج اوکړې شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ خَيْرَ مَا تَدَاوَيْتُمْ:

**بهترینې څلور دوایانې:** ① لدود، داهره هغه دوائی ده چه دَ مریض په خله کښې ورڅخولې شي.

② سعوط، دا هغه دوائی ده چه دَ مریض په پوزه کښې ورڅخولې شي.

③ حجامه دَ ستنودَ غاړو په ذریعه ښکر لګولوته وائی یعنی وینه ویستل.

④ المشی، داهره هغه دست راوستونکې دوائی ته وائی دَ کوم دَ استعمال نه پس چه دستونه جاری کیږی. دَ سړی خیټه روانه شی اوپخپله سړې هم بیت الخلاء طرف ته بار بار منډه وهی. هم په دې وجه دې ته المشی اوونیلې شو.

**قوله:** وَإِنَّ خَيْرَ مَا تَحْتَجِمُونَ فِيهِ يَوْمُ سَبْعَ عَشْرَةَ:

**د ښکر لګولو غوره ورځې:** یعنی دَ ښکرلګولو بهترین ایام دَ هرې میاشتې اوولسم، نورلسم او یوویشتم تاریخونه دی. دامعتدل ایام دی په کوموکښې چه په وینه کښ اعتدال وی. کتاب الطب کښې نور وضاحت راځی ان شاء الله.

**[۳۳۷] سړو دپاره حماموته د تلو اجازت**

۳۳۷— [ ۵ ٤ ] ( ) ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: ② «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى الرِّجَالَ وَالنِّسَاءَ عَنْ دُخُولِ الْحَمَّامَاتِ، ③ ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ أَنْ يَدْخُلُوا بِالْمَيَازِرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحمام (رقم-۴۰۰۹) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی دخول الحمام (رقم-۲۸۰۲) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب دخول الحمام (رقم-۳۷۴۹) واحمد فی المسند: ۱۳۲/۶

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دی [۲] چې رسول الله ﷺ سړي او ښځې حمام ته د تلو نه منع کړي وو، [۳] بيا وروسته حضور ﷺ سړو ته په دې صورت کې د تلو اجازت ورکړو. چې د هغوئ په بدن دې پرتوګ [يالنګ] وي. (ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** ① اَلْحَمَّامَاتِ: دحمام جمع ده، غسل خانې ته وائي. ② اَلْمَيَازِر: لنګ يا پرتوګ.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ دُخُوْلِ الْحَمَّامَاتِ:

**دحديث پس منظر:** په هره زمانه کښې دَحمام نظام جدا جدا وی پخوانئی زمانه کښې به په يومکان کښې هم په يوځائی د غسل کولوانتظام کيدلو په هغې کښې به ګرمې اوبه وې اوښځو اوسړو به په يوځائی په هغې کښې لامبل. په دې وجه په شروع کښې نبی کريم سړی اوښځې دې ته دَ تلونه منع کړل بيادَدې نه پس ئی سړو ته دَ تلو اجازت ورکړو مګر دَ ښځويابندی ئی په ځائی اوساتله خکه چه که ښځې سره دَدې چه يواځې حمام ته لاړې شی نوبياهم ښځې خپل مينځ کښې دَ يوبل نه پرده نه کوی

**قوله:** ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ أَنْ يَدْخُلُوا بِالْمَيَازِرِ:

**لنګ وهلو سره سړو ته حمام ته د تلو اجازت:** دَ سړودَپاره په داسې مشترکه حمام کښې دَ غسل دَپاره تللوکښې دا شرط کيخودلې شوچه هغوی دې دَ نامه نه لاتدې ترزنګونوپورې لنګ تړی

**د سوئمنګ پول حکم:** نن صبا په سوئمنګ پول اونورو دَ اوبو تالابونو اونهرونوکښې په مشترکه توګه باندې بربنډ غسل کول دَ پخوانئی زمانې دَحمامونو يونوې شکل دې بلکه دَدې نه هم زيات بې حيا اودَ اخلاقوتباهی ده خکه چه دا سوئمنګ پول دَ غسل دَپاره نه بلکه دَ څه نورمقاصدودَپاره تيارولې شی

**[۴۴۳۵] ښځې دپاره مشترکه حمامونوته د داخليدوممانعت**

د-۳۰ — [۵۵] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، قَالَ: [۲] «قَدِمَ عَلَى عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - نِسْوَةٌ مِنْ أَهْلِ حِمْصَ. [۳] فَقَالَتْ: مِنْ أَيْنَ أَنْتُنَّ؟ قُلْنَ: مِنَ الشَّامِ [۴] قَالَتْ: فَلَعَلَّكُنَّ مِنَ الْكُورَةِ الَّتِي تَدْخُلُ نِسَاؤُهَا الْحَمَّامَاتِ؟ [۵] قُلْنَ: بَلَى. [۶] قَالَتْ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۷] "لَا تَخْلَعُ امْرَأَةٌ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا [۸] إِلَّا هَتَكَتِ السِّتْرَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ رَبِّهَا"

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابومليح وايي [۲] چې يو خل د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې [د ملك شام د ښارا] حمص څه ښځې راغلې. [۳] بي بي عائشې رضي الله عنها د هغوئ نه پوښتنه وکړه

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الحمام (رقم-٤٠١٠) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الاستتار عند الجماع (رقم-٢٨٠٣) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب الاطلاء بالنورة (رقم-٣٧٥١) واحمد فى المسند: ٢١٧/٦

چې تاسو د كوم خاي اوسيدونكي يي ؟ هغوئ اوويل چې د ملك شام.④ حضرت عائشى رضي الله عنها وفرمايل چې تاسو شايد د هغه خاي اوسيدونكي يي چې د هغه خاي ښځې حمام ته خي؟⑤ هغوئ اوويل چې هو.⑥ بيا بي بي عائشې رضي الله عنها ورته وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي⑦ كومه ښځه چې د خاوند د كور نه علاوه بل چيرته كپړي اوباسي، ⑧ گويا هغه ښځې هغه پرده وشلوله كومه چې د هغې او د الله جل جلاله تر مينځ ده

① وَفِي رِوَايَةٍ: "فِي غَيْرِ بَيْتِهَا إِلَّا هَتَكَتْ سِتْرَهَا فِيمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او په بل روايت كې د في بيت غير زوجها په خاي في غيربيتها الفاظ دي ،ترمذي، ابوداود،

**حل اللغات:** ① الْكُورَةِ: دَ ښار غاړې او دَ اطرافو علاقې، ② الْحَمَّامَاتِ: د حمام جمع ده عسل خانه، ③ لَا تَخْلَعُ: مه اوباسه. ④ هَتَكَتِ السِّتْرَ: "اي حجاب الحياء وجلباب الأدب، يعنى ښكاره كول دى د حيا او د ادب پردې لره،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا هَتَكَتْ سِتْرَهَا فِيمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ:

**ښځې دپاره په هروخت كښې د پردې اهتمام كول:** چه ښځه دَالله تعالى دَطرف نه دَدې پابندده چه هغه دې پرده اوكړي اوپردې سړې دې دا اونه كتې شى بلكه دَښځې دَپاره دا هم مناسب نه دى چه هغه دَ خاوند نه علاوه په يوخالى خائى كښې خپل بدن بربنډ كړى

**[٤٤٧٦] دزنانودپاره دبازارغسل خانوته دتلوممانعت**

٤٤٧٦-[٥٦] (¹) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " ② «سَتُفْتَحُ لَكُمْ أَرْضُ الْعَجَمِ ③ وَسَتَجِدُونَ فِيهَا بُيُوتًا، يُقَالُ لَهَا: الْحَمَّامَاتُ ④ فَلَا يَدْخُلَنَّهَا الرِّجَالُ إِلَّا بِالْأُزُرِ ⑤ وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ ⑥ إِلَّا مَرِيضَةً، أَوْنُفَسَاءَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ډير نزدې تاسو ته به د عجم په زمكې كې فتحه حاصله شي.③ هلته به تاسو داسې كورونه بيامومئ، چې هغې ته به حمام ونيل كيږي.④ نو ،خبردار، هغې ته دې سړي بغير د لنگ نه نه داخليږي.⑤ او ښځې خو په هغې كې د داخليدو نه بالكل منع كړئ.⑥ خو دا چې يوه ښځه بيماره وي، يا د نفاس په حالت كې وي ،ابوداؤد،

**حل اللغات:** ① بِالْأُزُرِ: سره د لنگ يا پرتوگ نه

**تسهيلات:**

**قوله:** وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ، إِلَّا مَرِيضَةً، أَوْنُفَسَاءَ

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الحمام (رقم-٤٠١١)

**ښځوپاره بغيره عذر نه حمامونوته د داخليدوممانعت**: يعنى سړو ته اجازت دې چه هغوى دې ازار بند اوتړى او په حمام كښې دې غسل اوكړى مگر ښځوته دَ ازار بندتړلوسره هم مشترکه حمامونوته دَ تللو اجازت نشته دې ځکه چه دَدوى دَ پوره بدن پرده ده. اوكه څه شرعى عذر وى اويا څه فطرى مجبورى وى چه ښځه بيماره وى اودَ حمام په استعمالولوسره علاج كوى يادَنفاس په حالت كښې وى اودَغسل كولوضرورت وى نودا صورتونه مستثنى دى. دَ بچى دَپيداكيدونه پس څلويښت ورځو پورې ښځه په نفاس كښې وى.

**[۴۳۷۷] بغيرلنګه حمام ته د داخليدو ممانعت**

۴۳۷۷-[۵۷] (۱) ① وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَدْخُلِ الْحَمَّامَ بِغَيْرِ إِزَارٍ. ③ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُدْخِلْ حَلِيلَتَهُ الْحَمَّامَ ④ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَجْلِسْ عَلَى مَائِدَةٍ ⑤ تُدَارُ عَلَيْهَا الْخَمْرُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ① او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړي چې په خداي ﷻ او د قيامت په ورځ ايمان لري، هغه دي بغير د لنګ نه په حمام كې نه داخليږي. ③ او كوم سړي چې په خداي ﷻ او د قيامت په ورځ ايمان لري، هغه دي خپله ښځه په حمام كې نه داخلوي، ④ او كوم سړي چې په خداي ﷻ او د قيامت په ورځ ايمان لري، هغه دي په هغه دسترخوان نه كيني، ⑤ په كوم چې د شرابو دور چليږي [څکلې كيږي] (ترمذي، نسائي)

**حل اللغات**: ① حَلِيلَتَهُ: خپله ښځه، ② مَائِدَةٍ: دسترخوان، ③ تُدَارُ: دور چليږي، څکلې كيږي، ④ الْخَمْرُ: شراب.

**تسهيلات**:

**قوله**: فَلَا يُدْخِلْ حَلِيلَتَهُ الْحَمَّامَ:

**د زنانو دپاره خاص حمام ته د داخليدوحكم**: داخبره يادلرئى چه نن صبا دَښځوداسې حمامونه جوړشوى دى چرته چه په يوه وړه غونډې كمره كښې خانله دَ غسل خائى جوړ شوې وى. هلته حمام كښې ښځه بربنډه ورتلې شى ځكه چه هلته نه سړى وى اونه نورې ښځې وى هغه مشتركه حمام نه دې. په حديث كښې دَمشتركه حمام دَممانعت ذكردې.

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى دخول الحمام (رقم-۲۸۰۱)والنسائى فى كتاب الغسل والتيمم/باب الرخصة فى دخول الحمام (رقم-۴۰۱) واحمد فى المسند:۳/۳۳۹

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۴۷۸] د نبي كريم ﷺ په سر مبارك كښې خضاب نه لګول**

۴۴۷۸-[۵۸] (¹)[١] عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: [٢]«سُئِلَ أَنَسٌ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. [٣] فَقَالَ: لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتٍ كُنَّ فِي رَأْسِهِ ; فَعَلْتُ. [٤] قَالَ: وَلَمْ يَخْتَضِبْ. [٥] زَادَ فِي رِوَايَةٍ: وَقَدِ اخْتَضَبَ أَبُو بَكْرٍ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ. [٦] وَاخْتَضَبَ عُمَرُ بِالْحِنَّاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] د حضرت ثابت رحمه الله نه روايت دي [٢] چې د حضرت انس ابن مالك رضي الله عنه نه د نبي كريم ﷺ د خضاب كولو يا نه كولو باره كې پوښتنه وشوه. [٣] نو هغه اوويل كه ما د حضور ﷺ په سر مبارك كې د سپينو ويښتانو د تعداد شمير كول غوښتې، نو يقيناً شميرلې مې شو [يعني د حضور ﷺ په سر مبارك كې څو ويښتان سپين وو، په دې صورت كې حضور ﷺ ته د خضاب كولو څه ضرورت وو، نو] [٤] حضور ﷺ هيڅ كله رنګ نه دې كړې. [٥] په يو روايت كې د حضرت انس رضي الله عنه يا د حضرت انس رضي الله عنه نه ثابت رحمه الله دا عبارت مزيد نقل كړو چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه دنكريزو او وسمې (رنګ) استعمال كړو، [٦] او حضرت عمر رضي الله عنه صرف دنكريزو رنګ استعمال كړو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① شَمَطَاتٍ: دَ شمطة جمع ده، "اي بياض شعر الرأس يخالطه سواد" دَ سپينو اوتورو ويښتويوځاني كيدو ته شمطة وائي. ② الْكَتَمِ: يو قسم وابنه،

**د حضرت ثابت رحمه الله مختصر تعارف:** نوم ثابت كنيت ابوحميد دَ تابعينونه دې امام ذهبي رحمه الله ده ته امام اوحجت فرمائيلي. هغوى عمل پرهيزګارى تقوى اوعبادت په وجه په خپله زمانه كښې ډير مشهوررو. حضرت انس رضي الله عنه به فرمائيل چه دَهريوخيزچابى وى اوثابت رحمه الله دَخير چابى ده.(۴)

بكربن عبدالله به فرمائيل چه څوك په دنياكښې دَ ټولونه لوئى عابدكتل غواړى نوثابت ته دې اوګورى. (²) هميشه دپاره به ئې روزه نيوله ووكله به ئې هم دَ روژې ناغه نه كوله. (۲) په يوه ورځ او شپه كښې به ئې يوقرآن پاك ختم كولو.(۳) دَحضرت انس رضي الله عنه خاص شاګرد وو. ابن مدائنى فرمائى چه دَ هغوى دَ رواياتو شميردوه نيم سوه دې .(۴)

**وفات:** ۱۲۳ھ كښې وفات شو په وفات په وخت كښې دَ هغوى عمر دَ اتياؤ كالونه پورته وو. (۵) دَ نورو معلوماتو دپاره ① تهذيب التهذيب ۲/۲ ② شذرات الذهب ۱/۱۶۱

---

¹) اخرجه البخاري في كتاب اللباس /باب ما يذكر في الشيب (رقم-۵۸۹۵) ومسلم في كتاب الفضائل /باب شيبه صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۰۰ - (۲۳٤۱)) والنسائي في كتاب الزينة /باب الخضاب بالصفرة (رقم-۵۰۸۶) وابن ماجه في كتاب اللباس، باب من ترك الخضاب (رقم-۳۶۲۹)

(²) تذكرة الحفاظ ۱/۱۱۲).(۲) تذكرة الحفاظ ۱/۱۱۲) (۳) تذكرة الحفاظ ۱/۱۱۲).

(٤) تذكرة الحفاظ ۱/۱۱۲) (۵)تذكرة الحفاظ ۱/۱۱۲).

③ تذکرة الحفاظ ۱/۱۱۱

④ طبقات ابن سعد ۳/۷ وغیره اوګورئی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د خضاب باره کښې تشریح وړاندې د حدیث نمبر (۴۴۲۳) په شرح کښې تیره شوې ده.

**[۴۴۷۹] د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د خضاب استعمال**

۴۴۷۹—[۵۹] (١) «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [٢] أَنَّهُ كَانَ يُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ [٣] حَتَّى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ مِنَ الصُّفْرَةِ [٤] فَقِيلَ لَهُ: لِمَ تَصْبَغُ بِالصُّفْرَةِ؟ [٥] قَالَ: إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصْبَغُ بِهَا، [٦] وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْهَا، [٧] وَقَدْ كَانَ يَصْبَغُ بِهَا ثِيَابَهُ كُلَّهَا، حَتَّى عِمَامَتَهُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] او د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما باره کې روایت دې [٢] چې هغه به په خپله ږیره زیړ خضاب لګولو، [٣] چې د هغې په وجه به د هغه کپړې هم زیړېدې د هغه نه پوښتنه وشوه چې تاسو ولې زیړ خضاب کوئ؟ [٥] وې فرمایل چې ما رسول الله ﷺ په خپله ږیره مبارکه زیړ خضاب کوو باندې لیدلې دې، [٦] او د حضور ﷺ په نزد په ږیره د خضاب کولو د پاره د زیړ رنګ نه زیات خوښ هیڅ شې نه وو، [٧] او ټولې کپړې تر دې چې پټکې به یې هم په زیړ رنګ رنګین کړو. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** ① يُصَفِّرُ: زیړ رنګې به ئې ورکولو، ② تَمْتَلِئَ: ډکې به شوې، زیړرنګې به شوې.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ يُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ:

د زیړې وسمې نه د ورس په ذریعه وسمه کول مراد دی دا د زعفران په شان رنګ وی نبی کریم په ویښتو مبارکو کښې د دې استعمال کړې دې

**نوټ:** په بعضې روایاتو کښې د نبی علیه السلام د خضاب لګولو اثبات دې او په بعضو کښې نفی ده د دې تفصیل په حدیث نمبر (۴۴۸۰) کښې راروان دې هغې ته انتظار اوکړئ.

**قوله:** حَتَّى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ مِنَ الصُّفْرَةِ:

**په زیړ رنګ کپړې رنګ کول:** قصداً عمداً نبی کریم کپړې او پټکې کله هم په زیړ رنګ کښې نه دې رنګ کړې لکه چه په دې حدیث کښې دی او که چرې بغیر د قصد او ارادې څخه ئې پټکې یا قمیص په زیړ رنګ کښې لګیدلې وی نو هغه جدا خبره ده.

---

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس/باب فی المصبوغ بالصفرة (رقم-٤٠٦٤) والنسائی فی کتاب الزینة/باب الخضاب بالصفرة (رقم-٥٠٨٥)

[۴۴۸۰] دَرسول الله ﷺ مبارک ويښته

۴۴۸۰–[۲۰] (¹) ⟦۱⟧ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَ: ⟦۲⟧ «دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - ⟦۳⟧ فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا شَعْرًا مِنْ شَعْرِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَخْضُوبًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ⟦۱⟧ او حضرت عثمان ابن عبد الله ابن موهب وايي ⟦۲⟧ چي يوه ورځ زه د ام المؤمنين بي بي ام سلمه ﷺ په خدمت کي حاضر شوم، ⟦۳⟧ نو هغی مونږ ته د رسول الله ﷺ يو ويښته مبارک راويستلو چي هغه خضاب شوي وو. (بخاري)

**حل اللغات:** ① مَخْضُوبًا: خضاب شوی وو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَخْضُوبًا: يعنی هغه يوويښته خضاب شوي رنګين وو داپه هغه کم خضاب اووسمه باندي محمول دي دَکوم په وجه چه دا ويښته رنګين وو يا دَعطرياتو په شيشه کښي زيات وخته پوري کيخودوسره ويښته رنګين شوي وو يا رنګين ښکاريدو

**اشکال:** ددي حديث نه دا معلوميږي چه د نبی کريم ﷺ ويښته مبارکو باندي رنګ لګيدلي وو، حالانکه ماقبل رواياتو کښي ذکر دی چه نبی کريم ﷺ به خضاب نه لګولو؟

**داشکال دري جوابونه:** ① په کومو رواياتوکښي چه د خضاب اثبات راغلي دي نو هغه په اقل احوالو باندي محمول دي يعنی چه کله نه کله به نبی کريم ﷺ خضاب استعمال کړي وي

② يو روايت به په حقيقت باندي محمول وي او بل روايت به په مجاز باندي محمول وی،

③ نبی کريم ﷺ بغير د ضرورت نه خضاب نه دی استعمال کړی ليکن کله نه کله به نی د سر درد په وجه نکريږی وغيره استعمال کړی وي او په هغه ويښته باندي به د نکريږو رنګ وو

[۴۴۸۱] د نرښځی لره د ښار څخه د ويستلو حکم

۴۴۸۱–[۲۱] (²) ⟦۱⟧ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ⟦۲⟧ «أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمُخَنَّثٍ، ⟦۳⟧ قَدْ خَضَبَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِالْحِنَّاءِ. ⟦۴⟧ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا بَالُ هٰذَا؟" ⟦۵⟧ قَالُوا: يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ، فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ. ⟦۶⟧ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَلَا نَقْتُلُهُ؟ ⟦۷⟧ فَقَالَ: "إِنِّي نُهِيتُ عَنْ قَتْلِ الْمُصَلِّينَ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⟦۱⟧ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي ⟦۲⟧ چي يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کي يو مخنث راوستل شو. ⟦۳⟧ چي هغه د ښځو په شان په خپل لاس پښنو نکريزي لګولي وي، ⟦۴⟧ رسول الله ﷺ د هغه په ليدو سره وفرمايل چي دا ته څه شوي دي؟ ⟦۵⟧ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چي دا سړي اپه خپل وضع قطع او طور طريقو کې ا د ښځو مشابهت کوي، نو

¹) اخرجه البخاري في كتاب اللباس /باب ما يذكر في الشيب (رقم-٥٨٩٧)
²) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب /باب في الحكم في المخنثين (رقم-٤٩٢٨)

حضور ﷺ د هغه د ښار نه د ویستلو حکم وکړو او هغه [د مدینې یو ځای] نقیع ته ولیږل شو. ⑥ بیا صحابه و ؓ عرض وکړو یا رسول الله ﷺ آیا مونږ دې مړ نه کړو؟ [یعنی دې فسق او فساد او ګندګی خوروي نو که تاسو ﷺ حکم اوکړئ. نو دې به قتل کړل شي]. ⑦ حضور ﷺ وفرمایل چې زه د مونځ ګزارو د قتلولو نه منع کړې شوي یم (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① مُخَنَّثٍ: نربنځې. ② فَنُفِيَ: نو اولیږلې شو. ③ النَّقِيعِ: د مدینې په اطرافو کښې یو ځائې دې

**تسهیلات**: **قوله**: فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ:

**د ښار څخه د ویستلو وجه**: مخنث نې ځکه دَ ښارنه اوشړلو چه هغه به په تکلف سره خپل ځان دَ ښځو په شان جوړولو اوداسې کول حرام دی

**قوله**: فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَلَا تَقْتُلُهُ:

**دمخنث د قتل اجازت د نه ورکولو وجه**: یعنی صحابه کرامو دا اوګنړل چه کله ده دومره لوئی جرم کړې دې چه نبی کریم دې دَ مدینې دَ ښارېې نه اوویستلو نودَ دې تقاضاخودا ده چه دې قتل کړې شی په دې وجه هغوی دَ قتل کولو باره کښې سوال اوکړو نونبی کریم منع کړل اووجه نې دا اوخودله چه دې مسلمان دې مونځ کوی اوزه دَ مونځ کونکودَ قتل نه منع کړې شوې یم

**[۳۳۸] د نارینو دپاره د رنګدارې خوشبوئې د استعمال ممانعت**

۴۳۸۳–[۱۲] ( ) ① وَعَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «لَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَكَّةَ، ③ جَعَلَ أَهْلُ مَكَّةَ يَأْتُونَهُ بِصِبْيَانِهِمْ، ④ فَيَدْعُو لَهُمْ بِالْبَرَكَةِ، وَيَمْسَحُ رُءُوسَهُمْ، ⑤ فَجِيءَ بِي إِلَيْهِ وَأَنَا مُخَلَّقٌ، ⑥ فَلَمْ يَمَسَّنِي مِنْ أَجْلِ الْخَلُوقِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**توجمه**: ① او حضرت ولید ابن عقبه ؓ وایي ② کوم وخت چې رسول الله ﷺ ته په مکه فتح حاصله شوه [او حضور ﷺ په مکه ښار کې رونق افروز شو. یعنی داخل شو]. ③ نو د مکې والو خپل کوشنیان د حضور ﷺ په خدمت کې راوستل شروع کړل. ④ حضور ﷺ به دهغه کوشنیانو د پاره د برکت دعا کوله. او [په مینه او شفقت سره به یې] د هغوی په سرونو لاس مبارك راتیروي. ⑤ په دې موقع زه هم د حضور ﷺ په خدمت کې راوستل شوم. الیکن زما په بدن د زعفران وغیره نه جوړه خوشبوا خلوق لګیدلي وه. ⑥ په دې وجه خلوق آلوده لیدو سره حضور ﷺ پر ما لاس مبارك راتیر نه کړو (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① مُخَلَّقٌ: د خلوق خوشبو پرې لګیدلې وه

**تسهیلات**: خلوق چونکه ښځوسره مخصوص دې دَسړودپاره جائزنه دې په دې وجه نبی کریم لاس اونه لګولو

---

( ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب في الخلوق للرجال (رقم-٤١٨١) واحمد في المسند: ٤/ ٣٢

## [۴۴۸۳] د ویښتا نو حفاظت کول

۴۴۸۳-[۶۳] (۱) ۱ «وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ إِنَّ لِي جُمَّةً، أَفَأُرَجِّلُهَا؟ ۳ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ، وَأَكْرِمْهَا". ۴ قَالَ: فَكَانَ أَبُو قَتَادَةَ رُبَّمَا دَهَنَهَا فِي الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ ۵ مِنْ أَجْلِ قَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (نَعَمْ، وَأَكْرِمْهَا»). رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابوقتاده رضی الله عنه نه روايت دي چې هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړو ۲ چې يا رسول الله ﷺ زما د سر ويښتان تر اوږو پورې دي. آيا زه دا منګز کوم؟ ۳ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې هو. او د دې تکريم هم کوه. (يعنې تيل وغيره لګولو سره د دې حفاظت کوه). ۴ راوي وايي چه ابوقتاده رضی الله عنه به اکثر په ورځ کې دوه خله خپل ويښتان غوړول. ۵ د رسول الله ﷺ د دې ارشاد په تعميل کې چې هو او د دې تکريم کوه (مالك).

**حل اللغات:** ① جُمَّةً: د سر ويښته چه تر اوږو پورې وی ② أَفَأُرَجِّلُهَا: آيا زه دا ګمنز کوم؟. ③ دَهَنَهَا: تيل به ئې ورکول

**تسهيلات: قوله: نَعَمْ، وَأَكْرِمْهَا**

**د ويښانو ګمنزول:** يعنې د خپلو ويښتو اکرام کونې. د دې جملې نه حضرت ابوقتاده استفاده اوکړه اود ويښتو ئې ښه خيال ساتل شروع کړه تردې چه په ورځ کښې به ئې دوه خل ګمنز کول دا د ښائست دپاره نه وو نه ئې څه ذاتي خواهش وو بلکه دنبي کريم د حکم په تعميل کښې به ئې داسې کول په دې وجه دا جائز بلکه محمود اوګرخولې شو

## [۴۴۸۴] د غير مسلمو په شان د ويښتا نو ساتلو ممانعت

۴۴۸۴-[۶۴] (۲) ۱ وَعَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ حَسَّانَ، قَالَ: ۲ دَخَلْنَا عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ۳ فَحَدَّثَتْنِي أُخْتِي الْمُغِيرَةُ، ۴ قَالَتْ: وَأَنْتَ يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ، وَلَكَ قَرْنَانِ، أَوْ قُصَّتَانِ، ۵ فَمَسَحَ رَأْسَكَ، وَبَرَّكَ عَلَيْكَ، وَقَالَ: " ۶ احْلِقُوا هَذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا، فَإِنَّ هَذَا زِيُّ الْيَهُودِ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت حجاج ابن حسان وايي ۲ چې يوه ورځ مونږ خلق (يعني زه او زما د کور څه افراد. د حضرت انس ابن مالك رضی الله عنه په خدمت کې حاضر شو. ۳ د هغې ورځې واقعه ماته زما خور بيان کړه، چې د هغې نوم مغيره دې (يعنې هغه وخت زه وړوکي وم. او ماته هغه ورځ د حضرت انس رضی الله عنه په خدمت کې حاضريدل خو په ياد دي. ليکن د هغه حاضرې کيفيت او هلته چې کوم احوال پيښ شو. د هغې تفصيل ماته ياد نه دي) ۴ نو زما خور ماته اووئيل چې ته په هغه ورځو کې ماشوم وې. او ستا په سر دوه وودل شوی زلفې وې يا وی وئيل چې قصتان (د تندی دواړه طرف ته) ويښتان وو. ۵ حضرت انس رضی الله عنه ستا

(۱) اخرجه مالک في الموطا رقم الحديث ۶ من کتاب الشعر
(۲) اخرجه ابوداود في السنن کتاب الترجل /باب ما جاء في الرخصة (رقم-۴۱۹۷)

په سر لاس راتیر کړو، او ستا په حق کې یې د برکت دعا وکړه، او وې فرمایل[٦] چې یا دا دواړه وخروئ، یا یې کټ کړئ، ځکه چې دا د یهودیانو وضع ده، (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① قَرْنَانِ: دوه وودلې شوې زلفې، دوه کمسې، ② قُصَّتَانِ: دَ تندې دواړو طرفو ته د ویښتو غونچې ③ زِيُّ الْيَهُودِ: د یهودیانو طریقه او وضع

**تسهيلات:**

**قوله:** اِحْلِقُوا هٰذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا؛ فَإِنَّ هٰذَا زِيُّ الْيَهُودِ

**دحديث پس منظر:** حجاج بن حسان دَخپل وړوکوالی قصه بیانوی چه مونږ تول حضرت انس رضي الله عنه کره داخل شو هلته څه اوشو دهغې قصه ماته خپلې خور اوکړه ځکه چه زه وړوکې ووم داخلیدل راته یاد وو لیکن دَنورو احوالو علم راته نه وو هغه زما خور بیان کړل خورمې اوونیل چه ته هغه وخت وړوکې وې ستاپه سرکښې دَ ویښتو دوه تړلې شوې کمسې وې یا دوه غونچې وې دا شک دَ راوی دې

**[٤٤٨٥] د ښځې د سر خریلو حرمت**

٤٤٨٥ ــ [٦٥] ( )[١] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت علي (رض) فرمايي [٢] چې رسول الله ﷺ د دې نه منع فرمایلې ده چې ښځه خپل سر وخروی. (نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا:

**ښځو دپاره د سر د خريلو حرمت:** دَ ښځې دپاره دَ سر دَ ویښتو هم هغه حیثیت دې کوم چه دَ سړودپاره دَ ږیرې دې لکه څنګه چه دَسړو ږیره خرول حرام دی دَ ښځودپاره دَ سر ویښته خرول حرام دی

**د ښځو ږيرې راوتل:** حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله لیکلی دی چه په یورپ کښې ښځو سر خرول شروع کړه ډاکټرانو ورسره هم موافقت اوکړو څه موده پس دَدغه ښځو ږیرې راوتل شروع شو بیا ډاکټرانو اوونیل غلطی اوشوه چه دَ فطرت خلاف مو فیصله اوکړه چونکه دَښځودَ بدن دَ پوره قوت غریزی زور دَ سر په ویښتو باندې پریوځی په کوم سره چه ویښته اوږدیږی اوحرارت خارجیږی نوچه کله ښځودَ سر ویښته پرې کړل نو بدنی حرارت دَمخ طرف ته متوجه شو نوږیرې ئې راؤوتلې

[١]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی کراهیة الحلق للنساء (رقم-٩١٤)والنسائی فی کتاب الزینة /باب النهی عن حلق المراة رأسها (رقم-٥٠٤٩)

**[۴۳۸۶] د سر او ږيرې د ويښتانو د صفائۍ خيال ساتل**

۴۳۸۶-[۶۶] (¹) ١ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَسْجِدِ، ٣ فَدَخَلَ رَجُلٌ ثَائِرُ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ، ٤ فَأَشَارَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِيَدِهِ، ٥ كَأَنَّهُ يَأْمُرُهُ بِإِصْلَاحِ شَعْرِهِ وَلِحْيَتِهِ، ٦ فَفَعَلَ، ثُمَّ رَجَعَ. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٧ "أَلَيْسَ هٰذَا خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدُكُمْ ٨ وَهُوَ ثَائِرُ الرَّأْسِ كَأَنَّهُ شَيْطَانٌ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عطاء ابن يسار ﷛ وايي ٢ چې يوه ورځ رسول الله ﷺ په مسجد نبوي کې تشريف فرما وو، ٣ يو داسې سړي راغې چې د هغه د سر او ږيرې ويښتان ګډوډ او نختې وو، ٤ رسول الله ﷺ د هغه په ليدو سره د هغه سر او ږيرې طرف ته په خپل لاس مبارك سره په داسې انداز سره اشاره وکړله، ٥ لکه چې هغه ته دا حکم ورکوي، چې هغه دې د خپل سر او ږيرې ويښتان درست کړي، ٦ نو هغه سړي د خپل سر او ږيرې ويښتان درست کړل، بيا واپس راغې ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ٧ چې آيا دا د دې نه ښه نه دہ چې په تاسو کې يو سړي په داسې حالت کې راشي، ٨ چې د هغه د سر ويښتان ښر وي، او هغه داسې ښکاري لکه چې شيطان وي، [يعنی هغه خپل شکل او صورت داسې جوړ کړي وي، لکه جنّ (پيرې) چې ويښتان يې تس نس وي، او په بد هيئت او شکل وصورت کې وي] ، (مالك)

**حل اللغات:** ① ثَائِرُ الرَّأْسِ: خواره واره ويښته، ښر سر.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مفهوم آسان دې څه مشکل په کښې نشته.

**[۴۳۸۷] د کور آنګړ (صحن) د صفا ساتلو حکم**

۴۳۸۷-[۶۷] (²) ١ وَعَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - سَمِعَ يَقُولُ: ٢ " «إِنَّ اللّٰهَ طَيِّبٌ يُحِبُّ الطِّيبَ، ٣ نَظِيفٌ يُحِبُّ النَّظَافَةَ، ٤ كَرِيمٌ يُحِبُّ الْكَرَمَ، ٥ جَوَادٌ يُحِبُّ الْجُودَ، ٦ فَنَظِّفُوا - أُرَاهُ قَالَ - أَفْنِيَتَكُمْ، ٧ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ» ". ٨ قَالَ: فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِمُهَاجِرِ بْنِ مِسْمَارٍ، ٩ فَقَالَ: حَدَّثَنِيهِ عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِثْلَهُ، ١٠ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "نَظِّفُوا أَفْنِيَتَكُمْ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او د حضرت ابن مسيب (تابعي ﷫) نه روايت دې، د هغه نه دا واوريدل شو چه ٢ الله ﷻ پاك دې، پاکې خوشبوي، ٣ الله ﷻ ډير پاكيزه دې، پاكيزګی خوښوي، ٤ الله ﷻ د کرم والا دې، کرم خوښوي، ٥ الله ﷻ ډير سخي او ورکونکې دې، سخاوت او ورکړه خوښوي، ٦ نو تاسو د صفائې خيال ساتئ [حضرت ابن مسيب ﷫ شاګرد] راوي

---

(¹) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الشعر باب إصلاح الشعر (رقم-۷)
(²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی النظافة (رقم-۲۷۹۹)

وايي زما ګمان دي ابن مسيب رحمه الله دا هم ويلي وو چې خپل (د کور) انګړونه (صحنونه) پاکوئ ايعنی هغه د فَنَظِّفُوا نه پس، اَفۡنِيَتَکُمۡ لفظ هم ويلي وو. ګويا په دي ځاي کې پوره جمله داسې ده چې تاسو خپل انګړونه صفا او پاکيزه ساتئ[۷] او د يهوديانو مشابهت مه اختياروئ (چې د خپل کور صحن او آنګړ د خځلو نه ناپاك او ګنده ساتئ)[۸] راوي وايي چې ما د حضرت ابن مسيب رحمه الله دا قول د حضرت مهاجر ابن مسمار تابعي رحمه الله په مخکې ذکر کړو،[۹] نو هغه وفرمايل چې ماته حضرت عامر ابن سعد تابعي رحمه الله او هغه د خپل پلار حضرت سعد ابن ابي وقاص صحابي رضي الله عنه نه او هغه د نبي کريم ﷺ نه دغه شان حديث نقل کړي دي،[۱۰] ليکن مهاجر رحمه الله چې کوم حديث نقل کړو په هغې کې يې دا نقل کړو، چې تاسو د خپلو کورونو صحن صفا او پاکيزه ساتئ، يعنی د هغه په روايت کې د اَفۡنِيَتَکُمۡ لفظ صريحًا ذکر دي، او د ابن مسيب رحمه الله په روايت کې دا لفظ د ګمان په درجې کې نقل شوي دي.

**حل اللغات** : ①طَيِّبٌ : پاک، ②نَظِيفٌ : پاکيزه، ③کَرِيمٌ : کرم کونکې، مهربان. ④جَوَادٌ : سخاوت کونکې، ⑤أَفۡنِيَتَکُمۡ:دکور صحن يا دَ کورمخې ته ګيرچاپيره اطراف.

**تسهیلات**:

**قوله**:اِنَّ اللّٰهَ طَيِّبٌ:

**په طهارت،طيب اونظافت کښې فرق**:ظاهری پاکی ته طهارت او باطنی پاکی ته طيب او ظاهری وباطنی دواړو پاکو ته نظافت وئيل کيږی

مطلب دا دې چه الله تعالی د بنده ظاهری او باطنی دواړه پاکئ خوښوي نو بنده له پکار دي چه جسم، روح، نفس، لباس، بدن، اخلاق هر څيز پاک او صاف وساتی او عقائد، اقوال، افعال، اخلاق،احوال درست وساتی اودکوم انسان اخلاق چه ښه وی نوهغه کريم وی.

**قوله**: لَا تَشَبَّهُوا بِالۡيَهُودِ:

**د يهودو سره د مشابهت علت**:يعنی طهارت او صفائی د اهتمام نه کولو په وجه د يهوديانو سره مشابهت مه کوئ (مطلب دا دي چه يهوديانو به د طهارت او صفائی خيال نه ساتلو)

**قوله**: نَظِّفُوا أَفۡنِيَتَکُمۡ:

**د کورنو د صفائي حکم**:د کورونو د صحنونو لره د صفا ساتلو حکم په اصل کښې د کرم او سخا نه کنايه ده چه خپل ځان کښې د ميلمستياصفات پيدا کړئ او د کور صفائی ددې وصف د تکميل بهترينه ذريعه ده، ددې وجې د کور د صاف ساتلو حکم کړې دې.

**[٤٣٨٨] د بريتو د كمولو مسنونيت**

٤٣٨٨-[٦٨] ()[١] وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- يَقُولُ: [٢] كَانَ إِبْرَاهِيمُ -خَلِيلُ الرَّحْمَنِ- أَوَّلَ النَّاسِ ضَيَّفَ الضيف،[٣] وَأَوَّلَ النَّاسِ اخْتَتَنَ،[٤] وَأَوَّلَ النَّاسِ قَصَّ شَارِبَهُ،[٥] وَأَوَّلَ النَّاسِ رَأَى الشَّيْبَ،[٦] فَقَالَ: يَا رَبِّ: مَا هَذَا؟[٧] قَالَ الرَّبُّ -تَبَارَكَ وَتَعَالَى-: وَقَارٌ يَا إِبْرَاهِيمُ.[٨] قَالَ: رَبِّ زِدْنِي وَقَارًا. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [١] او د يحيى ابن سعيد رحمه الله نه روايت دي چې هغه د حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله نه دا واوريدل[٢] چې حضرت ابراهيم عليه السلام چې د رحمن (الله) دوست وو، د ټولو نه مخکښې انسان دي چې د ميلمه د مهمان نوازي ابتداء يي وکړله،[٣] او د ټولو نه مخکښې انسان دي چې ختنه (سنت) يي وکړه،[٤] او د ټولو نه مخکښې انسان دي چې بريت يي وتراشل (کم کړه)[٥] او د ټولو نه مخکښې انسان دي چې زوړ شو يعني سپين وېښتان يي وليدل،[٦] [هر کله چې خپل وېښتان يي سپين وليدل] نو عرض يي وکړو چې اي زما پروردګاره! دا څه دي؟[٧] د پروردګار جواب راغې اي ابراهيمه! دا وقار دي، [يعنى دا د هغه زوړتوب علامت دى، چې په علم ودانش کې د اضافې باعث او د عزت او وقار ذريعه ده، او په دې وجه انسان د لهو ولعب د مشغوليت او د ګناهونو د ارتکاب نه منع وي]،[٨] نو حضرت ابراهيم عليه السلام عرض وکړو چې اي پروردګاره! دا خو ډېر لوي نعمت دي، زما په وقار کې اضافه وکړې. (مالك)

**حل اللغات:** ① ضَيَّفَ: ميلمستيا او مهمان نوازى ئې کړې ده، ② اخْتَتَنَ: ختنه يعنى سنت ئې کړې دي، ③ وَقَارٌ: عزت، شرافت.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوَّلَ النَّاسِ ضَيَّفَ:

**څلور اوائلِ ابراهيمى:** دا ټول اوائل دَ ابراهيم عليه السلام دى يعنى دَ ټولونه اول هغوى په دې عمل کړې دې يوځو اوائل ابراهيمي دادى.

أَوَّلَ النَّاسِ ضَيَّفَ، وَأَوَّلَ النَّاسِ اخْتَتَنَ، وَأَوَّلَ النَّاسِ قَصَّ شَارِبَهُ، وَأَوَّلَ النَّاسِ رَأَى الشَّيْبَ

① ميلمستيا ورکول ② ختنه کول

③ بريتان کمول ④ سپين ويخته راختل

**نور اوائلِ ابراهيمي عليه السلام:**

① دَ نامه لاندې وېښته په چاړه پرې کول ② پاجامه اغوستل

③ نوکونه پرې کول ④ سر کښې لاړ ويستل

---

[١]) اخرجه مالک في الموطا کتاب صفة النبي صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في السنة في الفطرة (رقم-٤)

⑤ دَ نكريزو اودَ وسمې لګول ⑥ په منبر باندې خطبه ورکول
⑦ خلقو سره غاړه ملاوول ⑧ ثريد تيارول اوپه خلقو خوړل
⑨ دَالله تعالى په لارکښې جهاد كول ⑩ لښكرپه پنځو حصوكښې تقسيمول
⑪ دَحج دَاحكامو طريقې خودل ⑫ دَ ږيرې سپينډل
⑬ دَ بيت الله بنياد كيخودل

# [۴] بَابُ التَّصَاوِيرِ

## د تصويرانو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة وعشرون حديثاً مشتملة على خمسة مسائل:**

① عدم دخول الملائكة البيت لوجود الكلب والتصاوير: ۱، ۲، ۴، ۱۳، ۲۵.
② محو النبي ﷺ التصاوير كراهةً لها: ۴، ۵، ۱۳.
③ المنع عن اتخاذ الستور فيها تماثيل: ۵، ۶، ۱۳.
④ الزجر والتعذيب بإتخاذ الصور: ۴، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۴، ۱۹، ۲۰، ۲۱.
⑤ الزجر بلعب النرد واللعب بالطيور: ۱۲، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۲۲، ۲۳، ۲۴.

**دتصوير لغوى معنى:** تصاوير دَ تصوير جمع ده دَيو څيز صورت جوړولوته تصويروائى

**د تصوير صورتونه:** ① كله تصوير دَمجسمې په صورت كښې وى
② كله تصويرپه لاس سره توړلو اوتراشلو په صورت كښې وى
③ كله دَ كيمرې او مشين يا شعاګانوپه صورت كښې وى

**د تصوير دوه قسمونه اودهريو حكم:**

**د حكم په اعتبار سره د تصوير دوه قسمونه:**

① د ذى روح څيزونو تصويرونه جوړول حرام دى
② د غيرذى روح څيزونو تصويرونه جوړول جائز دى

**په مذكوره باب كښې د ذى روح څيزونود تصويرانوبيان:** په دې باب كښې چه دَ كومو تصويرونو بيان دې دَهغې نه دَ ژوندو څيزونو تصويرونه مراد دى ځكه چه شريعت دَ جائز اوناجائز نه بحث كوى اوناجائزتصويرونه هم هغه دى كوم چه دَ ژوندو څيزونوى د غيرجاندار څيزونو تصويرونه په اسلام كښې منع نه دى

**د ذى روح څيزونود تصوير د حرمت دوه وجوهات:** ① دَحرمت يوه وجه خو دا ده چه دَ ساه والاپه تصوير كښې دَالله تعالى دَتخليق سره مشابهت دې
② دويمه وجه داده چه دَ تصويرونو په لار هميشه شرك راغلې دې او بيابه هم راځى

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۴۳۸۹] د تصویر د جوړولو او ساتلو مسئله**

۴۳۸۹-[۱] (۱)۱ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ، وَلَا تَصَاوِيرُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوطلحه رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل۲ فرښتي په هغه کور کې نه داخليږي چې په هغې کې تصوير وي. او نه په هغه کې کورکي داخليږي چې په هغې کې سپي وي. (بخاری، مسلم)

**د حضرت ابوطلحه زید مختصر تعارف:** نوم: زید،، کنیت ابوطلحه، دخاندان نجار شاخ عمروبن سره ئې تعلق لرلو، دپلار نوم: سهل بن الاسود وو، دمور نوم عباده د جاهلیت زمانه کښې دعامو عربو پشان بت پرست او شرابی وو. (۲)

اسلام تقریبا دشلو کالو عمر کښې اسلام کښې داخل شو او واقعه داشان چه دهٔ حضرت ام سلیم ته د نکاح پیغام اولیږلو خو هغې ورته دا شرط کیخودوچه ته به اسلام قبلوې، اوددې اثر داشو چه ددهٔ په زړه د اسلام حقیقت پیدا شو او مسلمان شو.

**غزوات:** دوی به همیشه حضور نبی اکرم صلى الله عليه وسلم سره غزوات کښې شریک وو. او هر جنګ کښې به ئې ښه بهادری اوخودله، اوهم داصحابی وو چه دهٔ حضور نبی اکرم صلى الله عليه وسلم دپاره قبر کنیستې وو. د حضور نبی اکرم د محبت په وجه د حضور نبی اکرم دوصال نه پس د حضور نبی اکرم صلى الله عليه وسلم خاٸې ئې خالی لیدل برداشت نه کړې شول اوپه دې وجه شام ته ئې تشریف یوړو، او چه کله به پریشانه شو نو بیا راغلو اود قبرمبارک زیارت به ئې اوکړو، او حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د امارت معامله حل کولو دپاره یو شپږ تنیزه ډله ټاکلې وه چه په هغې کښې حضرت ابوطلحه رضي الله عنه هم وو.

**وفات:** ددوی سن وفات کښې اختلاف دې. ځینو ۳۱ هجری اوځینو ۳۲ هجری خودلې ده، اوځینو خو لا ۵۱ هجری وئیلې ده. او دا زیات صحیح دی

**مرویات:** ددوی نه دوه نوی (۹۲) روایات مروی دی

دنورو معلوماتو دپاره اوګورئی ۱ تهذیب التهذیب ۲ الاصابة ۳ تذکرة الحفاظ ۴ بخاری کتاب المغازی وغیره

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب التصاویر (رقم-۵۹۴۹) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائکة بیتا فیه کلب ولا صورة (رقم-۸۳ - (۲۱۰۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الملائکة لا تدخل بیتا فیه صورة ولا کلب (رقم-۲۸۰۴)والنسائی فی کتاب الزینة/باب التصاویر (رقم-۵۳۴۷) وابن ماجه فی کتاب اللباس. باب الصور فی البیت (رقم-۳۶۴۹)

**تسهيلات:**

**قوله الْمَلَائِكَةُ:**

**د الملائكة څخه مراد:** دي نه مراد دَ رحمت فرښتې دی چه کورنوته راځی اودعاګانې کوی اودَ الله تعالی دَ رحمت سبب جوړیږی په کوم سره چه په کورونوکښې برکتونه راځی دَ ملائکه نه دلته هغه فرښتې مرادنه دی کومې چه دَ انسان په حفاظت باندې ماموردی یا دَ عمل نامې په لیکلوباندې ماموردی یا دَروح قبض کونکې فرښتې دی هغه خو په هرحال کښې راځی

**قوله: كَلْبٌ:**

**د کلب څخه په مراد کښې دوه اقوال:** ① دې نه مراد شوقیه سپی دی شریعت چه دکومو سپو په کورنوکښې دَ ساتلو اجازت ورکړې دې هغه سپی مراد نه دی مثلاً دَ کور دَ حفاظت سپې یاښکاری سپې یادَرمې اودَ پټی دَحفاظت سپې داسې سپی دلته مرادنه دی ② دَ بعضې حضراتو خیال دې چه په حدیث کښې کوم حکم دې په دې کښې عموم دې چه په کورکښې مطلق سپې ساتل منع دی که هغه شوقیه وی اوکه دَ ضرورت وی په دواړو صورتونوکښې دَ رحمت فرښتې کورته نه راځی (کذاقال النووی)خودا قول شاذ دې

**قوله: وَلَا تَصَاوِيرُ:**

**د مذکوره جملې نحوی ترکیب:** داعطف دې دکلب په لفظ باندې اوچونکه دکلب جمله دَ نفی ماتحت ده نودَ لاتصاویر عطف اعادې دَ عامل سره صحیح شوه اصل عبارت داسې شو "لاتدخل الملائکة بیتا فیه کلب ولاتدخل الملائکة بیتا فیه تصاویر" ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "واعادة لا کإعادة الفعل" یعنی په لاتصاویر کښې دَ لااعاده داسې ده لکه چه "لاتدخل الملائکة" کښې دَ فعل اعاده اوشوه "فلیتدبرفإنه دقیق". لکه چه دَدې حدیث مطلب اودَ مسنداحمد اودَ ترمذی دَ حدیث مطلب هم یودې دَهغې عبارت داسې دې "إن الملائكة لاتدخل بيتا فيه تماثيل أوصورة"

**په کورکښې د ذی روح څیزونو د ساتلو حرمت:** دَحدیث تعلیم دادې چه دَ ساه والاتصویر جوړول اوپه کورکښې ساتل حرام دی اودا ګناه کبیره ده که دا تصویر په کپړا باندې جوړشوې وی یا په نقود او نوټونو او سکو باندې جوړشوې وی دا خو دَ جوړولو او ویستلو خبره ده باقی چه په کورکښې دَ ساتلو دَ کومې پورې تعلق دې نوکه دَ اعزاز اواحترام په توګه دَ کور په دیوالونو باندې وی یا په پټکی او څادرباندې وی یا په کوټ اوبنیان باندې وی دا ټول حرام دی اوچه کوم تصویرونه معزز اومکرم نه وی بلکه مُهان اوپه پښو باندې پامال کولی شی لکه لاندې خورشوی فرش باندې وی یا په تکیه باندې وی اودَ دې تذلیل کیږی نودا په داسې طریقه باندې په کورکښې کیخودل حرام نه دی

**په اخبارونو کښې د تصويرانو حکم**: په دې تفصيل سره داخبره په پوهه کښې راځي چه داخبارا تو تصاوير کوم چه داهانت په توګه په زمکه باندې پراته وي کيدې شي د دې حرمت به دومره سخت نه وي دماهر علماؤ طرف ته رجوع کول ضروري دي والله اعلم

**په نوټونو باندې د تصويرانو حرمت**: زمونږ دملك په سرکاري اداروکښې دَ اعزاز په توګه دَ باني پاکستان محمدعلي جناح تصويرونه زوړندول حرام دي په دې دفترونوکښې به دَ رحمت فرښتې نه راځي په نوټونو باندې چه کوم تصويرونه دي داد ايوب خان دزمانې نه شروع شوي وو ددې ګناه په حکومت باندې ده خکه چه عام خلق دَ اعزاز په توګه دا نه ساتي مجبوري ده

**[۴۴۹۰] د غير ضروري سپي د وژلو حکم**

۴۴۹۰- [۲] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: ② «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَصْبَحَ يَوْمًا وَاجِمًا، ③ وَقَالَ: "إِنَّ جِبْرَائِيلَ كَانَ وَعَدَنِي أَنْ يَلْقَانِي اللَّيْلَةَ، فَلَمْ يَلْقَنِي، ④ أَمَ وَاللّٰهِ مَا أَخْلَفَنِي". ⑤ ثُمَّ وَقَعَ فِي نَفْسِهِ جِرْوُ كَلْبٍ تَحْتَ فُسْطَاطٍ لَهُ، ⑥ فَأَمَرَ بِهِ، فَأُخْرِجَ، ⑦ ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِهِ مَاءً، فَنَضَحَ مَكَانَهُ، ⑧ فَلَمَّا أَمْسَى لَقِيَهُ جِبْرِيلُ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د أم المؤمنين بي بي ميموني رضي الله عنها نه نقل کوي ② چې يو ورځ د سحر په وخت کې رسول الله ﷺ ډير غمجن په نظر راغې، ③ او [د هغه غمجنۍ سبب بيانولو سره بي بي ميموني رضي الله عنها يا بلې بي بي مبارکې ته يا خپل په زړه کې يا د اظهارِ تعجب او حيرت په طور د خپل ځان سره] حضور ﷺ وفرمايل چې حضرت جبرائيل عليه السلام نن شپه زما سره د راتلو وعده کړې وه، ليکن ماته را نغلې، ④ قسم په خداې د دې نه مخکې داسې هيڅ کله نه دي شوي چې هغه وعده خلافي کړې وي. ⑤ بيا ناڅاپه د حضور ﷺ په ذهن کې د سپي هغه بچي (کوترې) په خيال کې راغې چې د حضور ﷺ د خيمې (يعني يو تخت يا ټاټ وغيره) لاندې پروت وو، انو حضور ﷺ پوهه شو چې حضرت جبرائيل عليه السلام د دې کوترې په وجه ماته رانغلې! ⑥ نو حضور ﷺ د هغه کوترې د ويستلو حکم وکړو هر کله چې هغه کوترې وويستل شو. ⑦ نو حضور ﷺ په خپلو لاسونو کې اوبه واخستې. اوپه هغه خاې يې اوبه وشيندلې په کوم خاې چې په هغه کوترې ناست وو. ⑧ بيا چې مابنام شو نو حضرت جبرائيل عليه السلام راغې.

**حل اللغات**: ① وَاجِمًا: غمجن. خفه. ② أَمَ وَاللّٰهِ: قسم په خدائې. ③ مَا أَخْلَفَنِي: وعده خلافي نې راسره نه ده کړې. ④ جِرْوُ كَلْبٍ: د سپې ورړوکی بچې ته جرو وائی يعنی کُوترې ⑤ فُسْطَاطٍ: خيمه. ليکن دلته ترې کټ يا تخت مراد دې ⑥ فَنَضَحَ: نو وائې رولې.

(١) اخرجه مسلم في كتاب الأشربة /باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۸۲ - (۲۱۰۵) وابوداود في السنن رقم الحديث ۴۱۵۷

[۱] فَقَالَ: "لَقَدْ كُنْتَ وَعَدْتَنِي أَنْ تَلْقَانِي الْبَارِحَةَ". [۲] قَالَ: أَجَلْ، وَلَكِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ، [۳] فَأَصْبَحَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَئِذٍ، فَأَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ، [۴] حَتَّى إِنَّهُ يَأْمُرُ بِقَتْلِ كَلْبِ الْحَائِطِ الصَّغِيرِ، [۵] وَيَتْرُكُ كَلْبَ الْحَائِطِ الْكَبِيرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ خني پوښتنه وکړه چې تیره شپه دې زما سره د ملاقات وعده کړې وه ،او را نغلې؟ [۲] حضرت جبرائیل علیه السلام ورته وفرمایل چې هو . لیکن مونږ په هغه کور کې نه داخلیږو چیرته چې سپې یا تصویر وي، [۳] د دې نه پس په دویمه ورځ حضور ﷺ په سحر کې د سپو د وژلو حکم وکړو [۴] تر دې چې د کوشنی باغونو د سپو د وژلو یې هم حکم وکړو [۵] او د لوئ لوئ باغاتو د سپیو د پریخودلوحکم یې وکړو ،ځکه چې په هغه باغونو کې د حفاظت د پاره د سپو ساتل ضروري وو، (مسلم)

**حل اللغات:** ⑥الْبَارِحَةَ: تیره شپه، ⑧أَجَلْ: آو، ⑨الْحَائِطِ: لوئې باغ.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ:

**د سپو د وژلو د حکم زمانه:** دعربویه معاشره کښې هم دَ شوقیه سپو دَ ساتلو رواج وو لکه څنګه چه په نوره دنیاکښې وو. دَ اسلام په شروع کښې رسول الله ﷺ دَسپودَ وژلو مطلقاً حکم ورکړې وو کله چه دَ خلقو په زړونوکښې دَ سپو نه نفرت پیدا شو نوبیا نبی کریم دَ ضرورت دَ وجې نه دَ یوځوقسمه سپو دَ ساتلو اجازت ورکړو. په زیربحث حدیث کښې هم هغه دَ شروع دَ وخت نقشه ده چه نبی کریم دَعامو سپو دَ وژلو حکم ورکړې وو

اودا خبره ده چه دَ لوئی باغ دَ حفاظت کونکی سپی دَ ضرورت دَ وجې نه ئې اجازت ورکړې وو داهم دویمه مرحله وه ګنی دَدې نه وړاندې خودَ یوسپی دَ ساتلو اجازت نه وو

**په عصرِ حاضر کښې د سپوسره جنسی تعلقات ساتل:** دَسپو دَمفاسدو نن صبا اندازه لګیدې شی په مغرب او یورپ کښې په اکثروکورونوکښې ښځې سپی دَ خاوند په درجه کښې ساتی اودهغې نه دَ خاوندکار اخلی. اوس یوځومیاشتې وړاندې په هندوستان کښې یوې ښځې ښه په ښکاره توګه سپی سره واده اوکړو اونکاح ئې اوکړه

**[۴۳۹] د صلیبی اوتصویری څیزونو ماتول**

۴۳۹-[۳] (¹) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا [۳] فِيهِ تَصَالِيبُ إِلَّا نَقَضَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمائې [۲] چې رسول الله ﷺ به په خپل کور کې داسې شې نه پریخودو، [۳] چې په هغې کې به دصلیب نشان یاتصویر وو، مګر حضور ﷺ به هغه

¹) اخرجه البخاری فی کتاب اللباس /باب نقض الصور (رقم-۵۹۵۲) وابوداود فی السنن رقم الحدیث ۴۱۵۱

ماتولو (بخاري)

**حل اللغات:** ① تَصَالِيبُ: دَدي مفرد تصليب دي، دَ صليب تصوير جوړول. ليکن دلته مطلق دَ ساه والاتصوير مراد دي ② نَقَضَهُ: ماتولو به ئې

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فِيهِ تَصَالِيبُ إِلَّا نَقَضَهُ

**دَ تصاليب څخه مراد:** دَ صليب تصوير جوړول دی کوم چه دَ عيسايانو مقدس علامت دي ليکن دلته دَ تصاليب نه مراد مطلق دَ ساه والاتصوير دي کوم چه منع دي. نبی کريم که به چرته داسې تصوير ليدلو نوفوری به ئې ماتولو

**[۴۴۳] دَ قيامت په ورځ دَ تصوير دَ جوړونکي عذاب**

۴۴۳-[۳] (١) ① «وَعَنْهَا، ② أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ، ③ فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَامَ عَلَى الْبَابِ، فَلَمْ يَدْخُلْ، ④ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ. ⑤ قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَتُوبُ إِلَى اللهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، فَمَاذَا أَذْنَبْتُ؟ ⑥ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا بَالُ هَذِهِ النُّمْرُقَةِ؟ ⑦ " قُلْتُ: اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا، وَتَوَسَّدَهَا!

**ترجمه:** ① او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دي. ② هغې يو څل داسې تکيه واغستله، چې په هغې کې تصويرونه وو. ③ رسول الله ﷺ د بي بي عائشې رضي الله عنها په حجره کې د داخليدو په وخت چې هغه تکيه وليده، نو په دروازه کې ودريدلو، او حجرې ته دا خل نه شو. ④ بي بي عائشه رضي الله عنها د هغه تصوير داري تکيې په وجه د حضور ﷺ په مخ مبارك د ناګوارۍ په اثراتو پوهه شوه. ⑤ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ما عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ زه نافرماني پريخودلو سره د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د رضا طرف ته متوجه کيږم، ما داسې څه ګناه کړي ده (چې تاسو زما حجرې ته نه داخليږئ؟) ⑥ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا څرنګه تکيه ده؟ او تا د کوم ځاي نه راوړي ده؟ ⑦ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما په جواب کې اوويل ما دا تکيه ستاسو ﷺ د پاره اخستى ده چې تاسو کله غوارئ په دي تکيه لګولو سره کينئ. او کله چې غوارئ د اوده کيدو په وخت د سرمبارك لاندې يې ايږدئ.

**حل اللغات:** ① الْكَرَاهِيَةَ: ناخوښي. خفګان. ② أَذْنَبْتُ؟: آيا ما څه ګناه کړي ده؟ ③ النُّمْرُقَةِ: وړه تکيه. بالخت. ④ تَوَسَّدَهَا: تاسو ورته ووده اولګوئ.

① فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ② وَيُقَالُ لَهُمْ: "أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ". ③ وَقَالَ: "إِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ الصُّورَةُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلَائِكَةُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١] اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب من لم يدخل بيتا فيه صورة (رقم-۵۹۶۱) ومسلم في كتاب الأشربة باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۹۶ - (۲۱۰۷) واحمد في المسند: ۶/۲۴۶

**ترجمه**: [۱] رسول الله ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل چې ياد لره ددي تصوير جوړونکو ته به د قيامت په ورځ عذاب ورکول کيږي، [۲] او هغوی ته به وئيل کيږي چې کوم تصويرونه تاسو جوړکړي دي، [په هغې کې ساه واچوئ، او] هغه ژوندي کړئ، [۳] او حضور ﷺ وفرمايل په کوم کور کې چې تصوير وي، په هغې کې فرشتي نه داخليږي (دغه شان د انبياؤ او اولياؤ د پاره هم دا مناسب نه دي چې هغه د تصوير والا کور کې داخل شي) (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات**: ⑤ الصُّوَرِ: تصويران، ⑥ أَحْيُوا: ژوندی ئې کړئ، ساه پکښې واچوئ ⑦ مَا خَلَقْتُمْ: کوم څه چه تاسو پيدا کړی دی.

**تسهيلات**:

**قوله**: أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ:

**د نمرقة مصداق**: علامه نووی رحمه الله ليکلی دی چه دَبعضو علماؤ وينا ده چه دې نه پرده مراد ده [۱]. که چرې پرده مراد واخستې شی نوبيا احاديثو باندې به پوهيدل آسان شی اوداخبره خوثابته شوې ده چه که تصويرونه دَ کيمرې مشين سره وی اوکه په لاس سره جوړشوې وی ټول ناجائزدی اوکه هغه دَ مجسمې په شکل کښې وی اوکه غيرمجسمې په شکل کښې وی. ګورئې دلته په پرده باندې چه کوم تصوير وو داخوڅه مجسمې نه وې بلکه دَنن صبا دَ کاغذ دَ پاڼو او په کپړوباندې دَ تصويرونو په شان وو.

**[۳۳۴] د زيب او زينت دپاره د پردې د زوړندولو حکم**

۳۳۴-(۵) ( ) [۱] وَعَنْهَا [۲] «أَنَّهَا كَانَتِ اتَّخَذَتْ عَلَى سَهْوَةٍ لَهَا سِتْرًا فِيهِ تَمَاثِيلُ [۳] فَهَتَكَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاتَّخَذَتْ مِنْهُ نُمْرُقَتَيْنِ [۴] فَكَانَتَا فِي الْبَيْتِ، يَجْلِسُ عَلَيْهِمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې يو خل هغی په خپلی دونکاچې داسې پرده واچوله، چې په هغې کی تصويرونه وو، [۳] رسول الله ﷺ چې هغه پرده وليده، نو هغه يې کټ کړه، بي بي عائشه رضي الله عنها (د هغه کټ شوي پردي دا مصرف راويستلو چې) د هغې نه يې دوه تکيې جوړې کړې، [۴] هغه دواړه تکيې په کور کې پرتې وې، نبی عليه السلام په هغه دواړو به تکيه ګانو کيناستلو (بخاری او مسلم)

**حل اللغات**: ① سَهْوَةٍ: دونکاچه، په کور کښې لوړ ځانې، ② سِتْرًا: پرده، ③ تَمَاثِيلُ: تصاوير، ④ فَهَتَكَهُ: نو اوئې شلوله، ⑤ نُمْرُقَتَيْنِ: دوه بالختونه.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب: هل تکسر الدنان التی فيها الخمر، أو تخرق الزقاق. فإن کسر صنما، أو صليبا، أو طنبورا، أو ما لا ينتفع بخشبه (رقم-۲۴۷۹) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائکة بيتا فيه کلب ولا صورا (رقم-۹۴ - (۲۱۰۷) والنسائی فی کتاب الزينة/باب التصاوير (رقم-۵۳۵۵)واحمد فی المسند:۱۰۳/۶

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّهَا كَانَتِ اتَّخَذَتْ عَلَى سَهْوَةٍ لَهَا سِتْرًا فِيهِ تَمَاثِيلُ:

**د سهوة په مصداق كښې دوه اقوال:** ① په كور كښې دننه ورې شان دونكاچه او لوړ خانې ته وائي يعنى دَ كيناستو هغه وړوكې شان خانى چرته چه ښځې خپل سامان ايږدى
② په ديوال كښې دننه هغه طاخ ته سهوة وائى كوم چه ښځې دَ خزانې او بكس اودَصندوق په توګه استعمالوى دكوم مخې ته چه پرده زوړنده وى.

**قوله:** فَهَتَكَهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:

**د پردې د شلولو دوه وجوهات:** ① نبى كريم هغه پرده اوشلوله. يوه وجه خو بې ځايه اسراف او آرائش او زيبائش وو
② دَ ساه والا ناجائز تصويرونه وو.

**قوله:** فَاتَّخَذَتْ مِنْهُ نُمْرُقَتَيْنِ:

**تعارض:** دې نه مخكښې هم دَ حضرت عائشه رضي الله عنها حديث كښې دى چه نبى كريم په تكيه باندې دَ جوړشوى تصويرونودَ وجې نه كورته نه راتلو حالانكه دلته دَ تصويرونووالا دكپړې دوه تكياګانې كوركښې دَ نبى كريم دَ استعمال دپاره كيخودې شوې وې داتعارض دې دَدې څه جواب دې؟

**د تعارض دوه جواب:** ① نبى كريم دَ بې ځايه آرائش اوزيبائش او بې ځايه اسراف دَ وجې نه پرده شلولې وه لكه څنګه چه په راتلونكى حديث نمبر(۴۴۴) كښې تفصيل موجود دې. په دې حديث كښې په هغه پرده باندې دَ ساه والا څيز تصوير نه وو اګرچه په دې باندې دَ تماثيل اطلاق كړې شوې دې. دا تاويل كمزورې شان دې دويم جواب كوم چې ليكى شى بنه دې.
② په زيربحث حديث كښې "هتكه"لفظ راغلې دې چه نبى كريم دغه پرده اوشلوله په دې سره دَ تصويرونو حيثيت ختم شو لهذا تعارض پاتې نه شو
دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ مجسمې نه علاوه په كپړا يا كاغذ باندې تصوير جوړول هم منع دى.

**[۴۴۴]بلا ضرورته د نمائشى پردو حكم**

۴۴۴-[۲] ()[۱] وَعَنْهَا [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ فِي غَزَاةٍ [۳] فَأَخَذْتُ نَمَطًا فَسَتَرْتُهُ عَلَى الْبَابِ [۴] فَلَمَّا قَدِمَ فَرَأَى النَّمَطَ [۵] فَجَذَبَهُ حَتَّى هَتَكَهُ [۶] ثُمَّ قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَأْمُرْنَا أَنْ نَكْسُوَ الْحِجَارَةَ

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب اللباس/باب ما وطئ من التصاوير (رقم-۵۹۵۴) ومسلم فى كتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۹۲ - (۲۱۰۷))وابوداود فى السنن رقم الحديث ۴۱۵۳

وَالطِّينَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چي [يو ځل] رسول الله ﷺ د جهاد د پاره تشريف يوړلو، [۳] نو ما [د حضور ﷺ د تلو نه پس] يوه کپړه حاصله کړه، او د هغې پرده مي په دروازه خوړنده کړه، [۴] حضور ﷺ چي د جهاد نه واپس تشريف راوړو، او هغه پرده يي وليده، [۵] نو هغه يي رابنکلو سره کښ کړه، [۶] او وي فرمايل چي الله ﷻ مونږ ته د دي حکم نه دي راکړي چي مونږ دي خاورو او کاڼرو ته کپړي واغوندوو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① نَمَطًا : قيمتي نرمه بستره، ② هَتَكَهُ : اوني شلوله، ③ أَنْ نَكْسُوَ : چه کپړې دې واغوستو، واچوو، ④ الطِّينَ: خاوره، ختّه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَرَأَى النَّمَطَ، فَجَذَبَهُ حَتَّى هَتَكَهُ:**

**د پردې شلولو دوه وجوهات:** ① دا پرده غير ضروري آرائشي اوزيبائشي وه په دې وجه نبي کريم اوشلوله. دَ حديث آخري الفاظ دَدې احتمال تائيد کوي ځکه چه نبي کريم دَ ناخوبنئي وجه دا اوخودله چه مونږ الله تعالى دَدې پابندنه يوجوړکړي چه مونږ خاورو او کاڼرو ته کپړې واغوندو.

② يوبنکلي قيمتي قسم نرمې بسترې ته واني په کيجاوه باندې هم اچولې شي کيدې شي چه دادَ نمده نه معرب وي. رسول الله ﷺ دا په دې وجه اوشلوله چه په دې باندې دَ اس تصوير جوړشوې وو ګني په دروازه باندې کپړا اچول اوپرده کول دَ نبي کريم دَ ارشاد تعميل وو.

### [۴۴۹۵] د تصوير جوړونکي دپاره وعيد

۴۴۹۵-[۷] ([۱]) [۱] وعنها عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ [۳] يُضَاهُونَ بِخَلْقِ اللهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چي حضور ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به د ټولو نه زيات عذاب په هغوئ خلقو وي، [۳] چي په تخليق کي د الله ﷻ مشابهت اختيار وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① يُضَاهُونَ: دَمضاهات نه دي دَمشابهت په معنی کښې دي. ② بِخَلْقِ اللهِ: په پيدا کولو د الله کښې.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب سورة اقرأ باسم ربک الذی خلق (رقم-۴۹۵۴) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه کلب ولا صورة (رقم-۹۲ - (۲۱۰۷) والنسائی فی کتاب الزينة/باب التصاوير (رقم-۵۳۵۶) واحمد فی المسند:۶/۳۶

**تسهيلات:**

**قوله:** أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا:

**د حکم په اعتبار سره د تصویر د جوړولو درې صورتونه:** ① که تصویرکشی صرف دَ زیب زینت او شوق اوذوق په غرض سره وی نودا فسق اوفجور اومعصیت دې سرې به دکبیره گناه مستحق جوړیږی. بیا داحدیث تشدید، تغلیظ اوتهدید اوتوبیخ باندې محمول وی هغه چا ښه ونیلی

② که چرې تصویر جوړونکې دَ شرك اودَ بتانودَ عبادت په غرض سره تصویر جوړوی نو دا خوکفردې په دې وجه به په قیامت کښې ده ته دَ ټولونه زیات سخت عذاب ورکولې شی

③که دَ بت پرستنی په غرض سره نه وی بلکه دَ تخلیق خداوندی دَ مشابهت په غرض سره نی جوړوی نوداهم کفردې په دې وجه به ډیر سخت عذاب ورکړې کیږی

**دأَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ابن ملك رحمه الله فرمائی که چرې دَ مصور فعل هم دَدې عقیدې لاندې وی (چه هغه دَتخلیق خداوندی مشابهت کونکې وی) نوهغه کافرکیږی. په دې صورت کښې به دَ حدیث مطلب داشی چه په دې قبیح کفرباندې به دغه سړی ته دَ نورو کافرانو په نسبت زیات سخت عذاب کیږی. (په دې صورت کښې به دَ الناس نه مراد کافر وی اوکلام به په حقیقت باندې محمول وی)

② که چرې داسې عقیده نه لری نوبیا به دَدغه سړی په حق کښې داحدیث تغلیظ اوتهدید باندې محمول وی الخ (په دې صورت کښې به دَالناس نه مسلمانان مراد وی اوکلام به په زجر. توبیخ. تهدید اوتشدید باندې محمول کولې شی)

**د بعضې تصویرونو د مذکوره وعید څخه استثناء:** حال دَ تصویرنه دَ ساه والاتصویر مراد دې

① علماء فرمائی چه دَ حدیث دَدې سخت وعید نه هغه تصویرونه خارج دی چه دومره واړه اونری وی چه که هغه په زمکه باندې واچولې شی نوولاړ سړی ته هغه صفا نه ښکاری

② داسې تصویرونه وی کوم سره چه داسې اندامونه نه وی دکوم نه بغیرچه سړې ژوندې نه شی پاتې کیدې لکه چه نیم تصویر وی. داسې تصویران دَ مجبورئی دَ وجې نه دَ حج عمرې یا شناختی کارډ وغیره دستاویزاتو دَپاره کیدې شی دابه حرام نه وی

③ داسې واړه تصویرونه اودغه شان هغه تصویرونه چه په توګه دَاکرام نه وی بلکه مُهان وی دَهغې په کورکښې کیخودوسره کیدې شی چه دا وعید نه وی. سره دَدې چه علماء په دې کښې هم احتیاط کوی.

**قوله:** يُضَاهُونَ:

**تصویرجوړول د الله تعالی د تخلیق سره مشابهت:** دَمضاهات نه دې کوم چه دَمشابهت په

معنی کیښي دي بعضو نسخو کښې همزه هم ده هغه

هم يولغت دي صورت جوړول دَ الله تعالی کار دي اود الله تعالی صفت دي ﴿يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ﴾ [آل عمران، ۶] نوچه کوم کس تصوير جوړوی هغه په حقيقت کښې خپل فعل دَ الله تعالی دَ فعل سره مشابه کولوسره پيش کوی کوم چه لويه ګناه ده ددې حديث نه معلومه شوه چه دَ تصويرونو جوړولو ممانعت يوه وجه دالله تعالی دَ تخليق سره مشابهت دي

**[۴۴۹۶] دالله تعالی د صفت تخليق خپلولو وعيد**

۴۴۹۶-[۸] (١) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "«قَالَ اللهُ تَعَالَى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِي، فَلْيَخْلُقُوا ذَرَّةً، أَوْ لِيَخْلُقُوا حَبَّةً، أَوْ شَعِيرَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل "الله جل جلاله فرمايي د هغه سړي نه به زيات ظالم څوك وي چې زما د پيدا كولو په شان پيدا كړي. [يعنې څرنګه چې زه صورت جوړوم، هغسې هغه هم صورت جوړوي. اګر كه هغه په حقيقت كې د هغه مادي نه صورت نشي جوړولي. د كومې مادي نه چې د الله جل جلاله جوړ شوي صورتونه دي، بيا هم هغه څه صورت جوړوي او دا ګمان كوي چې دا صورت ما جوړ كړي دي. كه تصوير او صورت جوړونكي واقعةً د تخليق دعوي كوي]. نو هغه خو دي د يوكښتني ميږي قدر جوړكړي (ساه دي پكې واچوي) يا يوه دا نه خو دي پيدا كړي. يا يوه وربشه خو دي پيدا كولو سره وښايي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① ذَرَّةٌ: واړه سره ميږی. ② لِيَخْلُقُوا: پيدا دې کړی. ③ حَبَّةٌ: دانه (د غنمو وغيره). ④ شَعِيرَةٌ: اوربشه

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِي:**

**په مصوربانديې د اظلم اطلاق:** يعني په تصويرونو جوړولوسره كه دَ الله تعالى دَتخليق مشابهت اختيارول وي نوبياخو ښكاره ميدان ته راشه اويوميږي پيداكړه په هواكښې الوتونكي يوه ذره پيداكړه يا دَ اوربشو يوه دانه پيداكړه په حديث كښې دَامر صيغه دَ تعجيزدپاره ده بهرحال دَ ټولې دنيا بادشاهان اوعوام يوځاى كيدو سره يوچيچاكې خاوره نه شي پيداكولې دَ چرګانو چرګوړو زړه رانيكونكي تصويرانوكښې مشابهت اختياروي

---

١) اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب سورة اقرأ باسم ربك الذى خلق (رقم-۴۹۵۳) ومسلم في كتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۱۰۱ - (۲۱۱۱) واحمد في المسند:۲/۲۳۲

ليكن دَ پوره دنيا بادشاهان اوعوام يوځائي كيدوسره دَ چرګې يوه هګئي نه شي پيدا كولې. لږشان خودې يوه هګئي پيدا كولوسره اوبنائي كه چرې نه شي كولې نوبيا دَ بل په تخليق كښې بې ځايه جوړتوړ ولې كوي؟ عاجزكيدوباوجود دَ قادر جوړيدو كوشش كول څومره لوئي ظلم دې.

### [۴۴۹۷] مصورته دَټولو څخه دزيات عذاب

۴۴۹۷-[۹] ( ) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "«أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللّٰهِ الْمُصَوِّرُونَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي ② چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل چې د الله جل جلاله په نزد د سخت ترين عذاب مستوجب [مستحق] مصورين دي (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمُصَوِّرُونَ:

**په مصور اونقاش كښې فرق:** په اصطلاحي توګه دَ ساه والاتصوير جوړونكي ته مصور وائي دَ غيرساه والاتصوير جوړونكي ته نقاش وائي دلته دَ ساه والاتصوير مراد دي

**نوټ:** حديث اوتيرشوى حديث نمبر(۴۴۹۶) توضيح اوتشريح هم يو شان ده هلته تفصيل تيرشوې دې.

### [۴۴۹۸] د تصويرونوجوړولوپه شمارد عذاب ملاويدل

۴۴۹۸-[۱۰] ( ) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② "«كُلُّ مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ ③ يُجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا ④ فَيُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ»". ⑤ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَإِنْ كُنْتَ لَا بُدَّ فَاعِلًا ⑥ فَاصْنَعِ الشَّجَرَ وَمَا لَا رُوحَ فِيهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ② چه هر مصور به په دوزخ كې اچول كيږي، ③ او د هغه د هر جوړ كړي تصوير په بدله كې به يو جسم پيدا كړې شي، ④ چې تصوير جوړونكي ته به په دوزخ كې عذاب وركوي. ⑤ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل كه تا ته د تصوير جوړولو ضرورت وي، ⑥ نو د و نو يا يو غير ذي روح تصوير جوړ كړه (بخاري، مسلم)

---

[1] اخرجه البخاری فی كتاب تفسير القرآن/باب {ما ودعک ربک وما قلی} [الضحی: ۳] (رقم-۴۹۵۰) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۹۸ - (۲۱۰۹) والنسائی فی كتاب الزينة/باب ذكر أشد الناس عذابا (رقم-۵۳۶۴) واحمد فی المسند: ۱/۴۲۶

[2] اخرجه البخاری فی كتاب البيوع/باب بيع التصاوير التی ليس فيها روح، وما يكره من ذلک (رقم-۲۲۲۵) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا صورة (رقم-۹۹ - (۲۱۱۰) واحمد فی المسند: ۱/۳۰۸

**تسهيلات:**

**قوله: يُجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا:**

**هر تصوير د عذاب په شكل كښې:** يعنې چه څومره تصويرونه د ساه والا مصور جوړ كړى دى دغه ټولو تصويرانوته به د قيامت په ورځ يوحيوانى شكل وركولې شى اودوزخ په اوركښې به دغه حيوان د عذاب په شكل كښې په دغه مصور باندې مسلط كولې شى

**قوله: فَيُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ:**

**په ضمير كښې دوه احتمالات:** ① فيعذبه كښې كه چرې د مذكر صيغه شى نوضمير فاعل به لفظ د الله طرف ته راګرځى

② كه چرې د مؤنث صيغه فيعذبها شى نوضمير فاعل به د نفس طرف ته راؤګرځى بهرحال هر يومصور له سوچ پكاردې چه هغه څومره تصويرونه جوړوى هم دومره به خپل عذاب زياتوى

**[۳۳۹] درې لونى ګناهونه او په هغې باندې عجيبه سزا**

۴۳۹۹—[۱۱] (١) ١ وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ٢ "«مَنْ تَحَلَّمَ بِحُلْمٍ لَمْ يَرَهُ. كُلِّفَ أَنْ يَعْقِدَ بَيْنَ شَعِيرَتَيْنِ، وَلَنْ يَفْعَلَ، ٣ وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ أَوْ يَفِرُّونَ مِنْهُ، ٤ صُبَّ فِي أُذُنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ٥ وَمَنْ صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ ٦ وَكُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا، ٧ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ٢ كوم سړي چې د داسې خوب ليدو دعوې وكړي چې هغه نه وي ليدلې ،يعني د دروغو خوب بيان كړي، ٣ نو هغه به د قيامت په ورځ په دوو وربشو كې په غوټه وركولو مجبوره كړل شي. چې هغه به يې هيڅ كله نشي كولي. ٤ او كوم سړي چې د خلقو خبرو ته خپل غوږ لګوي. هر كله چې هغه خلق د هغه سړي اوريدل نه خوښوي، او د هغه نه فرار اختياروي. ٤ نو د قيامت په ورځ به د هغه سړي په غوږ كې سيسه (سيكه) اچول كيږي. ٥ او كوم سړي چې تصوير جوړوي، هغه ته به په آخرت كې عذاب وركول كيږي. ٦ او په دې خبره به مجبوره كړل شي. چې په هغه تصوير كې روح واچوي. ٧ حالانكې هغه به هيڅ كله په كې روح نشي اچولې (بخاري)

**حل اللغات:** ① تَحَلَّمَ: خوب نې بيان كړو. ② بِحُلْمٍ: داسې خوب. ③ يَعْقِدَ: چه غوټه وركړى، اونې تړى، ④ شَعِيرَتَيْنِ: دوه اوربشې. ⑤ اسْتَمَعَ: خوږ ايږدى (خبرو آوريدوته) ⑥ يَفِرُّونَ: تختى، تيختنه كوى،

١) اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب هجرة النبى صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة (رقم-٣٩١٦) والترمذى فى كتاب اللباس عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المصورين (رقم-١٧٥١) وابن ماجه فى كتاب تعبير الرؤيا/باب من تحلم حلما كاذبا (رقم-٣٩١٦) واحمد فى المسند: ٣٥٨/١

⑦ صُبَّ: اچولې به شی ⑧ الْآنُكُ: سیسه، سیکه، ⑨ أَنْ يَنْفُخَ: چه پوک پکښې اوکړی، ساه پکښې واچوی

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ تَحَلَّمَ بِحُلْمٍ لَمْ يَرَهُ". كُلِّفَ أَنْ يَعْقِدَ بَيْنَ شَعِيرَتَيْنِ، وَلَنْ يَفْعَلَ:

**د دروغو خوب جوړونکی سزا:** یعنی داسې خوب نی بیان کړوچه لیدلې نی نه ووبلکه دَ دروغونه نی جوړکړواوبیان نی کړو نودَ هغه به دا سزا وی چه دَ اوربشو دوؤ دانو به خپل مینځ کښې په غوټه کولوباندې مجبورکولې شی اوغوټه به ورنه کړې شی نوهمیشه به په دغه عذاب کښې راګیرکړې شی. ځکه چه دا تعلیق بالمحال دې

**د سزا وجه:** دَ دروغوخوب بیانول دَعام دروغ وئیلونه ډیره سخته ګناه ځکه ده چه دَ دروغو په خوب کښې دې په عالم غیب باندې دروغ وائی. بل دا چه خوب خودَ نبوت دَ اجزاؤ نه یوجز دې نولکه دغه سړی دَ نبوت په یوه حصه کښې دروغ اووئیل کوم چه لوئی جرم دې مثلاً داسړې وائی چه ما خوب لیدلې چه ماته دَ ولایت فلانکې درجه راکړې شوې ده یا دَ فلانکی سړی مغفرت شوې دې یا ماحج کړې دې یا ما نبی کریم په خوب کښې لیدلې دې یاماته دَ جنت پروانه ملاؤشوې ده داسې دَ دروغو خوب بیانول دَ عذاب سبب دې.

**قوله:** وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ أَوْيَفِرُّونَ مِنْهُ:

**د چا پټ راز د معلوملو سزا:** یعنی دَ څه خلقو دَ پټو خبرو دَ اوریدو دَپاره غوږ ایږدی اوخبرې اوریدو سره هغه خوره وی اوفساد خوره وی دا حرام دی خودخپل قوم او ملک اومذهب د حفاظت دپاره که سارنه اوکړې شی نودا په دې وعید کښې نه راځی بلکه هغه په اسلام کښې مطلوب دې ځکه چې په مختلفو غذاګانوکښې نبی علیه السلام د تجسس او جاسوسۍ څخه کار اخستې دې

**قوله:** وَمَنْ صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ وَكُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا، وَلَيْسَ بِنَافِخٍ:

**په تصویر کښې روح پوک وهلو باندې د مکلف کیدلو سزا:** یعنی کوم سړی چه دَ ساه والا تصویرجوړکړو په قیامت کښې به هغه مجبورولې شی چه اوس په دې کښې ساه واچوه هغه سړې به په دې کښې ساه نه شی اچولې نو په دې باندې به هغه ته سزا ورکولې کیږی اودا سزابه دَهمیشه دَپاره وی. داهم تعلیق بالمحال دې چه په دې کښې روح واچوه ګنی په عذاب کښې به پروت نی نوچه کله روح نه شی اچولې نوهم په عذاب کښې به پروت وی.

**[۴۵۰۰] د نرد شير د لوبې کولو مذمت**

۴۵۰۰ - [۱۲] ()[۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ [۳] فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت بريده ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د نرد شير لوبه وکړه، [۳] هغه ګويا د خنزير په غوښه او وينه کې خپل لاس دوب کړو. (مسلم)
نرد شير: د کتار د قسم نه يوه لوبه ده.

**حل اللغات:** ① النَّرْدَشِيرِ: يو قسم لوبه ده. ② صَبَغَ: رنګ ئې کړو. ککړ ئې کړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ

**په مذکوره باب کښې د نردشير ذکر کولو وجه:** په دې قسم لوبه کښې دَ تصويرونو استعمال کيږي په دې وجه ئې دا دَ تصويرونو په باب کښې ذکرکړو. دَ خنزير غوښه او وينه حرام کيدو سره دَ طبيعت دَنور نفرت سبب هم دی په دې وجه دَ نفرت پيدا کولو دَپاره دَهغې ذکراوکړې شو.

**د نردشير پيژندګلو:** دَ چوسر دَ قسم نه يوه لوبه ده. دا لوبه دَټولونه اول دَ فارس بادشاه شاه پور بن اردشير بن بابك ايجاد کړې وه. کوم سړې چه دا لوبه کوی هغه لکه چه مجوسی رسم ژوندې کول ساتل غواړی په کوم کښې چه ګناه ده. دوئمه يوه لوبه ده کوم ته چه شطرنج وائی دَدې تذکره وړاندې راروانه ده.

**د نرد شير او شطرنج په حکم کښې ۲ مذاهب:**

① دَ شوافع په نيزکه وخت نه ضائع کيږی مونځ نه قضا کيږی صرف دَ ذهنونو تيزولو په نيت سره وی نودا دواړه لوبې مباح او جائزدی. دَ امام شافعی ﷫ يوقول دې شطرنج مکروه دې

② دَ احنافو په نيزدا دواړه لوبې مکروه تحريمی دی

**داول فريق دليل:** هرکله چې دا لوبې د ګناه سبب نه ګرځی بلکه ذهنونه پرې تيزيږی نو په دې کښې څه قباحت دې؟

**داول فريق ددليل جواب:** دَوعيد مخې ته دَ تشحيذ اذهان هيڅ اهميت اوحيثيت نشته دې.

**د دويم فريق دليل:** هغه ټول روايات د دوی مستدلات دی په کومو کښې چې په دې لوبو باندې وعيدونه راغلی دی.

() اخرجه مسلم فی صحيح رقم الحديث ۱۰/ ۲۲۶۰ وابوداود فی السنن رقم الحديث ۲۹۳۹

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۵۰] په بستره د تصویر جوړولو جواز

۲۵۰-[۱۳] ()[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ: [۳] أَتَيْتُكَ الْبَارِحَةَ، فَلَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَكُونَ دَخَلْتُ [۴] إِلَّا أَنَّهُ كَانَ عَلَى الْبَابِ تَمَاثِيلُ، [۵] وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ، [۶] وَكَانَ فِي الْبَيْتِ كَلْبٌ،

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷛ وايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ماته حضرت جبرائيل ﷵ راغلي وو، او ونيل يې [۳] زه تيره شپه تاته راغلي وم، ليکن کور ته د راتلو نه يو شي زه منع کړم. هغه دا وو چې [۴] د دروازې په پرده تصويرونه وو، [۵] په دې طور چې په کور کې کومه رنګينه منقشه کپړه وه، د هغې پرده جوړه کړې شوې وه، او په هغې تصويرونه جوړ کړې شوي وو، [۶] او په کور کې سپي هم موجود وو.

**حل اللغات:** ① اَلْبَارِحَةَ: تيره شپه، ② تَمَاثِيلُ: بتان، تصاوير، ③ قِرَامُ: نرمه پرده، ④ سِتْرٍ: پرده.

[۱] فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي عَلَى بَابِ الْبَيْتِ فَيُقْطَعْ، [۲] فَيَصِيرَ كَهَيْئَةِ الشَّجَرَةِ، [۳] وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ، [۴] فَلْيُجْعَلْ وِسَادَتَيْنِ مَنْبُوذَتَيْنِ تُوطَآنِ، [۵] وَمُرْ بِالْكَلْبِ فَلْيُخْرَجْ ". [۶] فَفَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] نو تاسو د هغه تصويرونو د سرونو د کټ کولو حکم وکړئ، چې د دروازې په پرده دی، او د هغه تصويرونو سرونه دې داسې کټ کړې شي، [۲] چې د هغوئ هيئت او شکل بدل شي، او هغه د ونې په شکل شي، [۳] او بيا د هغه د پردې کټ کولو سره د هغې د دوو تکيه ګانو جوړولو حکم وکړئ، [۴] چې د سهاره اخستو سره د ناستې او تکيه لګولو سره د اوده کيدو په کار کې د راتلو د پاره په کور کې په فرش پرتې وي، او تر پښو لاندې کيږي، [۵] او د سپې هم د کور نه بهر د ويستلو حکم وکړئ، [۶] نو رسول الله ﷺ دغه شان وکړه [ځکه چې حضرت جبرائيل ﷵ ورته ونيلی وو] (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** ⑤ وِسَادَتَيْنِ: دوه تکيه ګانې، دوه بالختونه، ⑥ مَنْبُوذَتَيْنِ: چه پرتې وی، ⑦ تُوطَآنِ: چه پامال کولې شی يعنی استعمالولې شی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي عَلَى بَابِ الْبَيْتِ فَيُقْطَعْ:

**غير مکروه تصويرونه:** ① کوم تصويران چه واړه وی د هغې هم ممانعت نشته دې. د وړوکی تصوير د پاره معيار دادې چه هغه دومره نرې وی چه ولاړ سړې هغه په زمکه باندې کيږدی

---

۱) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ۴۱۵۸ والترمذی فی کتاب الادب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم باب ما جاء ان الملائکة لا تدخل بيتا فيه صورة ولا کلب (رقم_۲۸۰۶) واحمد فی المسند ۲/ ۳۰۵

نو دَهغې اندامونه جدا جدا نه معلومیږي.
② په کومو تصویرونو کښې چه هغه اعضاء نه وي دکوم نه بغیرچه انسان ژوندې نه شي پاتې کیدې لکه خیټه نه وي دَ نامه نه لاندې نه وي په دې کښې هم سخت وعید نشته دې.
③ دکومو تصویرونوچه سر کټ شوې وي دَهغې ممانعت نشته دې.
**دحکم په اعتبار سره د هغو تصویرونودوه صورتونه:** ① که تصویرونه لوئی وی نوفتاویٰ قاضی خان کښې لیکلی دی چه که مونځ گذار په داسې حالت کښې مونځ کوی چه تصویرونه دَهغه دَ مصلي مخې ته وی یا پورته په دیوال باندې نبی اوګس طرف ته زوړند وی یا په اغوستلې شوې کپړو باندې وی نو په داسې حالت کښې مونځ مکروه دی.
②که چرې دا تصویران په بستره او فرش باندې دَ مُهان په درجه کښې وی نوراجح قول دادې چه دَ سجدې په ځائی باندې نه وی نومونځ به مکروه نه وی دا تفصیل دَهغه تصویرونو باره کښې دې کوم چه غټ وی په وړو تصویرونوکښې دا کراهت نشته دې.(کذا فی فتاویٰ الخانیة)
**قوله:** وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ، فَلْيُجْعَلْ وِسَادَتَيْنِ مَنْبُوذَتَيْنِ تُوطَآنِ:
**د سرکټ تصویر حکم:** یعنی کله چه دَ دغه تصویرونو سرمات کړې شي یا پرده اوشلولې شي نو بیا به تصویر باقی نه وی لهذا تکیه جوړول جائز شو

**[۲۵۰۲] د تصویر جوړونکو دپاره د جهنم څخه د څټ راوتل**

٢٥٠٢- [١٣] (¹) [١] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«يَخْرُجُ عُنُقٌ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [٣] لَهَا عَيْنَانِ تُبْصِرَانِ، [٤] وَأُذُنَانِ تَسْمَعَانِ، [٥] وَلِسَانٌ يَنْطِقُ يَقُولُ: [٦] "إِنِّي وُكِّلْتُ بِثَلَاثَةٍ: [٧] بِكُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ، [٨] وَكُلِّ مَنْ دَعَا مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ، [٩] وَبِالْمُصَوِّرِينَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د قیامت په ورځ به د دوزخ نه یوه غاړه (څټ) راوځي [یعنی د اور یوه لمبه د اوږدی غاړې په صورت کې به راوځي [٣] په هغه غاړه کې به کتونکي دوه سترګي وي، [٤] د اوریدلو دوه غوږونه به وي، [٥] و ویونکي ژبه به وي، هغه غاړه به وایي [٦] چې زه په دري قسمه خلقو مسلط کړې شوې یم [یعنی الله ﷻ زه په دې خبره مقرر کړي یم چې زه دري قسمه خلق دوزخ ته راخکلو سره بوځم، او د خلقو په مخکې هغه ذلیل او رسوا کولو سره په عذاب کې مبتلا کړم، په هغوئ کې به یو قسم خو هغه خلق وي] [٧] چې هغه د حق سره د تکبر او عناد سلوك کړي وي [یعني په دنیا کې په هغوئ حق ظاهر شوي وي، خو هغوئ حق قبول کړي نه وي] [٨] په دویم

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة النار(رقم-٢٥٧٤) واحمد فی المسند: ٢/٣٣٦

قسم خلقو کې هر هغه سړي شامل دي چې هغه د الله ﷻ سره بل معبود هم بللي وي ګرځولي وي.[۹] او دريم قسم هغه خلق دي چې هغوئ تصويرونه جوړ کړي دي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ①عُنُقٌ: څټ، ②جَبَّارٍ: ظالم، متکبر، ③عَنِيدٍ: سرکشه، ضدی،

**تسهيلات: قوله:** جَبَّارٍ عَنِيدٍ:

**د جبار او عنيد په تعريف کښې دوه اقوال:** ① د "جبار" نه مراد ظالم او "عنيد" نه مراد ضدی او متکبر دې کوم چه د حق نه اعراض کړې وي،

② په نهايه کښې ذکر دي چه "جبار" سرکش ته وائي او "عنيد" نه مراد هغه کس دې کوم چه د علم باوجود هم د حق نه اعراض کوي.

**[۴۵۰۳] د نغارې د استعمال حکم**

۴۵۰۳-[۱۵] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى حَرَّمَ الْخَمْرَ، وَالْمَيْسِرَ، وَالْكُوبَةَ، [۳] وَقَالَ: كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ». قِيلَ: الْكُوبَةُ الطَّبْلُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷠ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] بلا شبه الله ﷻ شراب، قمار او نغاره ډغول [د لسان نبوت په ذريعه] حرام ګرځولي دي، [۳] او حضور ﷺ وفرمايل هر نشه ور شي حرام دي، او وئيل شوی دي چې (کوبه) طبل ډهول ته وايي. (بيهقي)

**حل اللغات:** ①الْكُوبَةَ: أي الطَّبْلُ: نغاره يعنی طنبل غړول. ②الطَّبْلُ: طنبل.

**تسهيلات: قوله:** الْكُوبَةُ

**د کوبه په مصداق کښې درې اقوال:** ① دې څخه ستار مراد دې

② دې څخه مراد تنبل او دوپړئی ده.

③ دې څخه مراد شپيلئی ده

**د غازی د تنبل استثناء:** د دې تنبل نه د غازی تنبل مستثنی دې. داحديث کيدې شی چه د نرد د وجې نه دلته ذکر کړې شوی دې په کوم کښې چه تصويرونه وی.

**[۴۵۰۴] د بعضې حرامو مشروباتو ممانعت**

۴۵۰۴-[۱۶] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنِ الْخَمْرِ، وَالْمَيْسِرِ، وَالْكُوبَةِ، وَالْغُبَيْرَاءِ. [۳] وَالْغُبَيْرَاءُ: شَرَابٌ يَعْمَلُهُ الْحَبَشَةُ مِنَ الذُّرَةِ [۴] يُقَالُ لَهُ: السُّكُرْكَةُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

( ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأشربة /باب فی الأوعية (رقم-۳۶۹۶) واحمد فی المسند: ۲۸۹/۱

( ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأشربة /باب فی الأوعية (رقم-۳۶۹۶) واحمد فی المسند: ۲۸۹/۱

**ترجمه:** ① او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دي② چې رسول الله ﷺ د شراب، قمار، کوبه او غبيرا نه منع کړيده، ③ او غبيرا يو قسم شراب دي چې د حبشي خلق يې د جوارو نه جوړوي، ④ او هغه ته سکرك وايي. (احمد، ابوداود)

**حل اللغات:** ① الْمَيْسِرِ: جوارى، ② الْكُوبَةِ: أي الطَّبْلُ: نغاره يعنى طنبل غړول ③ الْغُبَيْرَاءِ: د جوارو نه جوړشوى شراب، ④ الذُّرَةِ: جوار، ⑤ السُّكُرْكَةِ: دَ غبيرا شرابو دويم نوم سُکرکه دې.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مفهوم واضح دې باقي د ګرانو ټکووضاحت په حل اللغات کښې شوې دې.

## [۳۵۰۵] د نرد لوبې حرمت

۳۵۰۵-[۱۷] (¹) ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ② «مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ ③ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوموسي اشعري ﷺ نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې په نرد سره لوبه وکړه، ③ [په حقيقت کې] هغه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ نافرماني وکړه (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** ① بِالنَّرْدِ: يو قسم لوبه ده.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ:

**د نرد لوبې د حرمت وجه:** نرد سره لوبې کول د الله تعالى او هغه د رسول د نافرمانى مرادف دي، ددې وجهې نه که په دې لوبه کښې شرط ولګولې شي نو دا حقيقتًا جوارګرې ده او که بغير د شرط نه وي نو بيا هم صورتاً جوارګرى ده، او ددې بيان مخکې تير شو چه نرد سره لوبى کول مطلقًا حرام دي.

## [۳۵۰۶] د کونترو د الوزولو حکم

۳۵۰۶-[۱۸] (²) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى رَجُلًا يَتْبَعُ حَمَامَةً، ③ فَقَالَ: " شَيْطَانٌ يَتْبَعُ شَيْطَانَةً» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دي ②چې يو ځل رسول الله ﷺ يو سړي وليدلو چې کوترو پسې پسې شوى وو ايعني د هغوئ سره يې لهو ولعب کولو، او د هغوئ په الوځولو کې مشغول وو ③ حضور ﷺ وفرمايل چې دا شيطان دي او په شيطاني پسې شوي دي (احمد، ابوداود، ابن ماجه، بيهقي)

**حل اللغات:** ① حَمَامَةً: کونتره

¹) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۴۹۳۸ وابن ماجة رقم الحديث ۳۷۶۲ ومالک فى الموطا رقم الحديث ۶ من کتاب الرويه

²) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۴۹۴۰ وابن ماجة رقم الحديث ۳۷۶۵ واحمد فى المسند: ۳۴۵/۲

**تسهيلات:**

**توله:** شَيْطَانٌ يَتْبَعُ شَيْطَانَةً:

**د كونترو د الوزولود حرمت وجوهات:** كونتربازى ناجائزده خكه چه په دې كښې ډيرې زياتې خرابئى دى

① سړې دَ مونځ نه غافل كيږى،

② په دې سره وخت ضائع كيږى،

③ دَ الله تعالى دَ ذكر نه غفلت پيدا كيږى،

④ عام طور كونترې په چتونو باندې خيژى كوم چې دَ بې پردګئى سبب دې

⑤ بعضې وخت په دې الوزولو كښې شرطونه هم لګولى شى كومه چې جوارى ده

⑥ دا انسان دَ فسق اوفجور بنكار شى نو تيك تاك شيطان جوړشى

**كونترې ته د شيطان وئيلو وجه:** كونترو ته په دې وجه شيطان ونيلې شوى دې چه هغه دَ سړى دَ دغه بربادئى سبب او ذريعه جوړه شوې ده اودَ دغه ټولو مفاسدو مركز جوړشو كه يوسړې دَ نسل زياتولو په غرض سره كونترې ساتى اودَهغې خيال كوى نوجائزدى

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۴۵۰۷] د تصوير جوړولو د پيشې حکم

۴۵۰۷-[۱۹] (¹) ① عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ قَالَ: ② «كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ، ③ فَقَالَ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ! إِنِّي رَجُلٌ، إِنَّمَا مَعِيشَتِي مِنْ صَنْعَةِ يَدِي، ④ وَإِنِّي أَصْنَعُ هَذِهِ التَّصَاوِيرَ. ⑤ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَمِعْتُهُ يَقُولُ: ⑥ "مَنْ صَوَّرَ صُورَةً، فَإِنَّ اللهَ مُعَذِّبُهُ ⑦ حَتَّى يَنْفُخَ فِيهِ الرُّوحَ ⑧ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ فِيهَا أَبَدًا".

**ترجمه:** ① او حضرت سعيد ابن ابي الحسن تابعي رحمه الله وايي ② چې يوه ورځ زه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خدمت كې حاضروم، ناڅاپه يو سړي هغه ته راغي، ③ او هغه اوويل اي ابن عباسه رضي الله عنهما زما د معاشي ژوند انحصار زما د لاسونو په محنت او مزدوري دي، ④ چې د هغې په ذريعه زه دا تصويرونه جوړوم (اوس سوال دادي چې زه څه وكړم؟ ځكه چې شريعت دا كسب حرام ګرځولي دی، او په بله پيشه زه نه پوهيږم، چې د هغې په ذريعه د خپلې روزي انتظام وكړم، نو آيا د دې مجبورئ په وجه زما د پاره دا كسب جائز دی كه نه؟) ⑤ (ابن عباس رضي الله عنهما چې دا وليدل چې د تصوير كشي كار سره د دې سړي تعلق د سخت نوعيت دي، او شايد زما په منع كولو سره منع نشي نو د هغه په مخكې يې د

¹) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب بيع التصاوير التي ليس فيها روح، وما يكره من ذلك (رقم-۲۲۲۵) واحمد في المسند: ۳۶۰/۱

حضور ﷺ حديث بيان کړو، ورته يې وفرمايل] چه زه ستا په مخکښ د هغه خبرې نه علاوه بله څه نبره نه بيانوم کومه چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې ده. [نو ته يې په توجه سره واوره] ما د حضور ﷺ نه واوريدل[۶] کوم سړې چې تصوير سازي کوي الله ﷻ به يې په عذاب کښې مبتلا کړي،[۷] تر دې چې هغه په هغه تصوير کښې روح اوپوکی.[۸] حالانکې هغه په به تصوير کښې هيڅ کله روح نشي اچولې،

**حل اللغات**: ① صَنْعَةِ يَدِي: په لاسونو کار کول، محنت مزدوري.

[۱] فَرَبَا الرَّجُلُ رَبْوَةً شَدِيدَةً، وَاصْفَرَّ وَجْهُهُ، [۲] فَقَالَ: وَيْحَكَ إِنْ أَبَيْتَ [۳] إِلَّا أَنْ تَصْنَعَ فَعَلَيْكَ بِهَذَا الشَّجَرِ [۴] وَكُلِّ شَيْءٍ لَيْسَ فِيهِ رُوحٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] هغه سړې [په دې عذاب اوريدو سره] يوه اوږده ساه واخستله، او د هغه مخ د ويرې د وجې زيړ شو،[۲] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د هغه دا حالت ليدو سره ورته وفرمايل په تا افسوس دې، که ته د تصوير کشئ د کسب نه علاوه د نورو کسبونو د قبلولو نه انکار کوي،[۳] [اخکه چې ته په بل کسب نه پوهيږې] نو ته داسې وکړه چې د هغه ونو [۴] او د هغه څيزونو تصويرونه جوړوه کوم چې بې ساه دې (بخاري)

**حل اللغات**: ② فَرَبَا: نو يوه اوږده ساه ئې واخستله، يو سوړ آسويلې ئې اوکړو. ③ رَبْوَةً شَدِيدَةً: سخت سوړ آسويلې، ④ اصْفَرَّ وَجْهُهُ: زيړ شومخ دهغه، ⑤ وَيْحَكَ: په تا افسوس دې، ⑥ إِنْ أَبَيْتَ: که ته انکار کوې (د نور کار کسب نه).

**تسهيلات**:

**قوله**: فَرَبَا الرَّجُلُ رَبْوَةً شَدِيدَةً:

**د مذکوره جملې مفهوم**: ربا يربو نه دې يعني يوه اوږده يخه ساه ئې واخستله اودَ الله تعالى دَ ويرې نه ئې رنګ زيړ شو اس چه کله منډه وهی اوستړې کيدوسره اوږده ساه اخلی هغې ته ربا الفرس ربوة وائی

**[۳۵۰۸] قبر سره د صاحب قبر د تصوير جوړولو حکم**

۳۵۰۸–(۳۰) (¹) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «لَمَّا اشْتَكَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] ذَكَرَ بَعْضُ نِسَائِهِ كَنِيسَةً يُقَالُ لَهَا: مَارِيَةُ، [۴] وَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَأُمُّ حَبِيبَةَ أَتَتَا أَرْضَ الْحَبَشَةِ، [۵] فَذَكَرَتَا مِنْ حُسْنِهَا وَتَصَاوِيرَ فِيهَا، [۶] فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: [۷] "أُولَئِكَ إِذَا مَاتَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ [۸] بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا، [۹] ثُمَّ صَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ، [۱۰] أُولَئِكَ شِرَارُ خَلْقِ اللَّهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او بې بې عائشه رضي الله عنها فرمايي[۲] کوم وخت چې رسول الله ﷺ ناجوړه شو،[۳] نو د

---

¹) اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب هجرة الحبشة (رقم-۳۸۷۳) ومسلم في كتاب المساجد/باب النهي عن بناء المساجد على القبور واتخاذ الصور فيها والنهي عن اتخاذ القبور مساجد (رقم-۱۶ - (۵۲۸) واحمد في المسند: ۵۱/۶

حضور ﷺ د بعضې بیبیانو نه بعضو د هغه کنیسې ذکر وکړو چې هغې ته یې ماریه ویله [کنیسه د یهودو او نصارٰی ؤ عبادت ګاه ته وایي چې د کِنِیشتَ معرب دي، په دې باره کې بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایي چه د حضور ﷺ په ناروغئ کې د حضور ﷺ سره ناستې بیبیانې د حضور ﷺ د دلبستګي د پاره په خبرو کې مشغولې وې]،۴ [د حضور ﷺ بیبیانې مبارکې] ام سلمه رضي الله عنها او أم حبیبیه رضي الله عنها حبشه ته تللې وې [نو هغوئ په ملك حبش کې کنیسه لیدلې وه ځکه چې د هغه خاي خلق د عیسائیت پیروی کونکی وو]۵ نو دواړو [یعنی ام سلمه رضي الله عنها او أم حبیبیه رضي الله عنها] د کنیسه د خوبصورتې او په هغه کې د جوړ شوو تصویرونو ذکر وکړو۶ حضور ﷺ (د دې په اوریدو سره) خپل سرمبارك راپورته کړو. او وې فرمایل ۷ هغه خلق (یعني د حبشه والا یا نصارې داسې کوي چې) کله په هغوئ کې څوك نیك او صالح سړی مړي،۸ نو هغوئ د هغه په قبر عبادت ګاه جوړولې (چې هغې ته کنیسه وئیل کیږي)۹ او په هغه کنیسه کې د خپل نیك او صالح خلقو تصویرونه جوړولې،۱۰ دغه خلق په حقیقت کې د الله ﷻ بدترین مخلوق دي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① کَنِیسَةً: دَ یهودیانو او نصارىٰ ؤ عبادت خانه، ② مَارِیَةً: د دغه کنیسې نوم ماریه وو ③ أَتَتَا: چه تلې وې دواړه،

**تسهیلات:** **قوله:** وَتَصَاوِيرَفِيهَا أي ذكرناحسن تصاويرها: دَ ګرجې بنائست او په دې کنبې دَتصویرونو بنائست ئې دَتعجب په توګه بیان کړو.

**قوله:** إِذَامَاتَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا، ثُمَّ صَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الْقُبُورَ:

**د شرک د شروع کیدو تاریخ:** یعنی قبرونه به ئې عبادت خانې جوړولې اوبیابه ئې دَهغې په نوم باندې کنیسې جوړولې اوبیابه ئې په دې کنبې دَ هغه صالحینو تصویرونه جوړول اودَ زړه دَتسلئ دَپاره به ئې کیخودل. کله چه به هغه بوډاګان مړه کیدل نو نوی نسل ته به شیطان وئیل چه ستاسو مشرانو به دَدې تصویرونو او نیکانو دَدې مجسمو عبادت کولو نو نوې نسل به دَ بتانو په عبادت کنبې راګیریدو.

لکه څنګه چه دَ حضرت نوح علیه السلام په زمانه کنبې دَشرك ابتدا هم دغه شان شوې وه معلومه شوه چه دَ تصویرونو په ذریعه دَ شرك شروع هم شوې اوبیا به هم شرك هم په دې لار راځي

**قوله:** أُولَئِكَ شِرَارُ خَلْقِ اللَّهِ:

**د بدترینه خلقو هغه د کیدو وجه:** یعنی تصویرونه جوړونکی اوبیا قبرونه عبادت خانې جوړونکی بدترین خلق دی ځکه چه پخپله هم ګمراه شوی او نور ئې هم ګمراه کړل

[۲۵۰۹] پنځه قسمه خلقو دپاره سخت ترین عذاب

۴۵۰۹ـ[۲۱] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، مَنْ قَتَلَ نَبِيًّا، [۳] أَوْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ، [۴] أَوْ قَتَلَ أَحَدَ وَالِدَيْهِ، [۵] وَالْمُصَوِّرُونَ، [۶] وَعَالِمٌ لَمْ يَنْتَفِعْ بِعِلْمِهِ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به سخت ترين عذاب په هغه سړي وي، کوم چې نبي قتل کړي. [۳] يا په جهاد کې هغه د نبي په لاس قتل کړي شي، [۴] يا د مور پلار نه يو قتل کړي، [۵] او کوم سړي چې تصوير جوړ کړي، [۶] يا کوم عالم چې د خپل علم نه خلق وانه خلي (يعني خپل علم ضائع کړي او عمل پرې اونکړي) په هغوئ به سخت ترين عذاب وي.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**پنځه قسمه خلق په سخت عذاب کښې:** په دې حديث کښې د پنځه قسمه خلقو بيان دې چه په قيامت کښې به په ډير سخت عذاب کښې وي

① چاچه يو نبي شهيد کړو

② څوک چې په جهاد کښې د نبي دلاسه قتل شي

③ کوم بدبخت کښې مور پلار کښې يوقتل کړو

④ دَ ساه والا څيزونوتصويرونه جوړونکې

⑤ بې عمله عالم چه دَعلم حق نه اداکوي

[۲۵۱۰] شطرنج لوبه د عجميا نو جواري

۴۵۱۰ـ[۲۲] ()[۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: [۲] الشِّطْرَنْجُ هُوَ مَيْسِرُ الْأَعَاجِمِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت علي ﷺ نه روايت دي چه هغه به فرمايل [۲] چه شطرنج د عجمي خلقو (يعني د غير مسلمو قومونو) قمار دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** الشِّطْرَنْجُ هُوَ مَيْسِرُ الْأَعَاجِمِ:

**د شطرنج حرمت:** يعنی دَ عجم او اهل فارس دَمجوسيانو جواری او قماربازی ده لهذا دَدغه مجوسيانو مشابهت اختيارول جائزنه دی په دې وجه دَهغوی خاص لوبې نرد چوسر

[۱] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۷۸۸۸

[۲] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۶۵۱۸

او شطرنج سره لوبې کول جائزنه دی.

**نوټ:** د شطرنج د حکم تفصيل دې څخه وړاندې د حديث نمبر(۴۵۰۰) په تسهيل کښې تير شوې دې

**[۴۵۱] د شطرنج لوب غاړى باندې د ګناهګار اطلاق**

۴۵۱-[۲۳] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ أَبَامُوسَى الْأَشْعَرِيَّ قَالَ: [۲] لَا يَلْعَبُ بِالشَّطْرَنْجِ إِلَّا خَاطِئٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن شهاب رحمه الله نه روايت دې چه حضرت ابو موسي اشعري رضي الله عنه وفرمايل [۲] شطرنج لوبه يواځې هغه سړي کوي چې خطا کار وي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَلْعَبُ بِالشَّطْرَنْجِ إِلَّا خَاطِئٌ:

**د خاطى څخه مراد:** ددې نه مراد ګناهګار دې دا هم د احنافو مستدل دې چه نرد او شطرنج دواړه حرام دې، جامع صغير کښې يو روايت نقل دې چه شطرنج لوبه کونکې ملعون دې او کتونکې (يعنى تماشا کولو والا) د خنزير غوښه خوړونکي په شان دې (مرقات ج۸، ص ۳۳۷)

**[۴۵۲] د شطرنج د لوبې عدم جواز**

۴۵۲-[۲۴] (۲) [۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ لَعِبِ الشَّطْرَنْجِ، [۲] فَقَالَ: هِيَ مِنَ الْبَاطِلِ، وَلَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْبَاطِلَ. [۳] رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن شهاب رحمه الله نه روايت دې چه د هغه نه د شطرنج باره کې پوښتنه وشوه، نو وي فرمايل [۲] دا يوه باطله لوبه ده، او الله جل جلاله باطل نه خوښوي، [۳] مذکوره بالا څلور واړه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** هِيَ مِنَ الْبَاطِلِ، وَلَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْبَاطِلَ:

**د شطرنج د حرمت دلائل:**

① جامع صغير کښې يو روايت نقل دې چه شطرنج کونکې ملعون دې

② نساب الاحساب کتاب کښې امام غزالى رحمه الله ليکلى دى چه د امام شافعى رحمه الله په نيز شطرنج کول مکروه دى کيدې شى چه د امام شافعى رحمه الله نه دوه قوله نقل وى په يو کښې مباح او بل کښې مکروه دې

(۱) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۶۵۱۸

(۲) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۶۵۱۸

③ په هدايه کښې ليکلي دی چه په حديث کښې دَ وعيد دَوجې نه شطرنج او نردشير لوبه کول مکروه تحريمي دی.

④ درمختار کښې ليکلي دی دَدې قسم ټولې لوبې مکروه دی.

**[۲۵۳] د سپي او پیشو د ساتلو په حکم کښې فرق**

۴۵۰۳-[۲۵] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ②«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَأْتِي دَارَ قَوْمٍ مِنَ الْأَنْصَارِ ③وَدُونَهُمْ دَارٌ ④فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ ⑤فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! تَأْتِي دَارَ فُلَانٍ، وَلَا تَأْتِي دَارَنَا. ⑥ فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِأَنَّ فِي دَارِكُمْ كَلْبًا. ⑦ قَالُوا: إِنَّ فِي دَارِهِمْ سِنَّوْرًا. ⑧ فَقَالَ: النَّبِيُّ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "السِّنَّوْرُ سَبُعٌ» ". رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي② چې رسول الله ﷺ به په انصارو کې د بعضې خلقو کور ته تشريف وړو،③ حالانکې د هغه په ګاونډ کې د بل کس کور وو (ليکن حضور ﷺ به هغوئ ته نه ورتلو)④ په هغه خلقو دا خبره ډيره ګرانه (مشکله) تيريدله [چې حضور ﷺ زمونږ د ګاونډي کور ته تشريف راوړي، ليکن زمونږ کره نه راځي]، ⑤ نو هغه خلقو عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ تاسو د فلاني کور ته خو تشريف راوړئ، ليکن زمونږ کور ته تشريف نه راوړئ؟ (مونږ څه قصور کړي دي چې زمونږ کور ستاسو ﷺ د تشريف آوري نه محروم دي)⑥ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل [زه ستاسو کور ته ځکه نه درځم] چې تاسو په کورکي سپي ساتلي دي،⑦ هغوئ عرض وکړو [چې يوقسم اعتراض وو په هغه بل انصاري دچاکره چې به رسول اکرم صلي الله عليه وسلم تشريف وړو] چې د هغوئ په کور کې خوهم پيشو ساتل کيږي [اودپشو او د سپي څه فرق دي؟]⑧ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل پشو درنده ده [اودسپي پشان نجس العين نده اوسبب دمنع کيدو د فرشتو د کورونو نه هغه سپي دي نه پشو] .(دار قطني)

**حل اللغات:** ① دُونَهُمْ: هغوی سره نزدې. ② فَشَقَّ: نو ګرانه شوه، سخته شوه. ③ سِنَّوْرًا: پيشو. ④ سَبُعٌ: درنده دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَأْتِي دَارَ قَوْمٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَدُونَهُمْ دَارٌ، فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ:

**د نبی عليه السلام د بعضې انصارو کورونو ته تشريف اوړل:** نبی کريم به دَانصارو بعضو کسانوته تشريف اوړلو په لارکښې به دَ څه نورو انصارو کورونه هم راتلل. دَهغې نه تيريدلوسره دَ رسول الله ﷺ وراندې تلل په هغوی باندې مشکل وو چه نبی کريم مونږ له ولې نه راځی دې دَپاره چه مونږ ته هم دا لوئی عزت او اعزاز حاصل شی.

() اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ۵ من كتاب الطهارة

**قوله**: السِّنَّوْرُسَبُعٌ:

**د پیشوه ساتلو جواز**: رسول الله ﷺ دغه خلقو ته معذرت اوکړو چه تاسوخلقو په محله کښې سپي ساتلي دي په دې وجه زه ستاسو محلې ته نه راځم هغوی اوونیل چه کوموخلقو له تاسو ورځئ هغه خلقو په کورونو کښې پیشوګان ساتلي دی نبی کریم په جواب کښې اوفرمائیل پیشو درنده دې دَ سپي په شان نه دې سپي خو شیطان دې او شیطان سره دَفرښتو دښمنی ده پیشو شیطان نه دې په دې وجه دا په سپي باندې نه شي قیاس کولې

**اشکال**: دلته په ظاهره د صحابؤ د تپوس سره د نبی علیه ا لسلام د جواب مطابقت نه ښکاری ځکه چې پیشو سبع دې اوسبع درنده ماتونکی ځناور ته وائی که چرته اوکتلې شی نو ماتونکې او څیرونکې ځناور چې په یوځائې کښې وی نو دهغه ځائې څخه خو ویره پکار ده دا نه چې هلته ورتلل پکار دی.ددې حدیث په دې مشکل پسې مې شروحات اولټول خوڅه راته په نظر رانغلو.

**داشکال جواب**: زما په ذهن کښې یوه خبره راغله هغه دا چې دلته نبی علیه السلام د پیشو په کور کښې ساتلو جواز طرف ته اشاره کړې ده چې په کورکښې مږې وی نو د پیشو په ساتلو سره مږې تختی او کور د مږو د ضرر څخه محفوظ وی نوهغوی که په کورونو کښې پیشوګانې ساتلی دی دا د هغوی مجبوری ده اوتاسوچې سپې ساتلی دی نو په دې کښې ستاسو مجبوری نه ده ددې وجې سپې په پیشو باندې مه قیاس کوئ دویمه دا چې اصل کښې خبره د فرښتو د راتګ ده جبریل علیه السلام خو ماته وحی راوړی نوکه زه ستاسو په کورونو کښې یم اوجبریل علیه السلام وحی راوړل غواړی نو ستاسوکورنوته تشریف نه راوړی په دې وجه په وحی کښې تاخیرکیدې شی اودهغوی په کورونوکښې که پیشوګانې دی نود پیشوګانو وجود د جبریل علیه السلام د راتلو دپاره رکاوټ اومانع نه دې ځکه د هغوی کورنوته ورځم او ستاسو کورونو ته نه درځم که دا دواړه توجیهات صحیح وی د الله تعالی د طرفه به وی اوکه صحیح نه وی نو زما او د شیطان دطرفه به وی

# [۲۳] كِتَابُ الطِّبِّ وَالرُّقَى

## د طبابت او دم چو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية وخمسون حديثاً مشتملة على تسع مسائل:**

① استعمال الدواء لكل داء: ۱، ۲، ۱۹، ۲۵ ـ

② ذكربعض المعالجات والأودية: ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰ ، ۱۱، ۱۲، ۱۸ ،۲۱، ۲۲، ۲۳ ،۲۴، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰ ، ۳۱ ، ۵۲، ۵۳، ۵۴، ۵۵، ۵۶، ۵۷۔

③ الرخصة في الرقى الخاصة والعامة: ۱۳ ، ۱۴ ، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۳۵، ۴۳، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴۷، ۴۸، ۵۱۔

④ منع بعض أنواع الرقى تحريماً او تنزيهاً: ۵، ۳۹، ۴۰، ۴۱، ۴۲۔

⑤ حسن المعاملة مع المرضى: ۲۰۔

⑥ المنع عن بعض أنواع الدواء: ۲۵، ۲۶، ۳۲۔

⑦ مواضع الإحتجام و أيامه: ۲۹، ۳۰، ۳۳، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷: ۳۸، ۵۶، ۵۷، ۵۸۔

⑧ التعوذ من الجن: ۴۸، ۴۹۔

⑨ مدار صحة الجسم على صحة المعدة: ۵۱۔

**دَ طب لغوی او اصطلاحی معنی** : لفظ طب مثلثة الطاء دي دَ باب ضرب اونصر دواړو نه مستعمل دي دَ کوم معنی چه علاج کول دی اودَ دې اطلاق په جسمانی او روحانی دواړو قسمه علاجونوباندې کیږی. ونیلی شی طب الرجل کله چه جادو پرې کړې شوې وی دارنګ دَ دې استعمال اراده خواهش حال اوشان او عادت دَ پاره هم کیږی. په اصطلاح کښې علم طب هغه علم ته ونیلی کیږی په کوم چه دَ بدنی مرضونو د علاج معالجې بیان او د صحت دَ حفاظت تدابیرمذکور وی

**درقیه لغوی معنی:** الرقیٰ دَ رقیة جمع ده اورقیه دم درها پوکی اومنتر جنتر ته وائی معتزله دَ دم درها قائل نه دی په دې سلسله کښې یوه قصه اوګورئی

**د دم درها منکر معتزلی چپ کول:** شیخ فضل محمد صاحب په توضیحات کښې لیکلی دی چې ماد خپلو استاذانونه یوه قصه اوریدلې ده چه یوالله والا سړې وو دَ کوم نوم چه ابوالخیری وو. یوه ورځ هغه یو بیمار دم کولو چه یو روشن خیال معتزلی هلته راغلو او په ابوالخیری باندې ئی اعتراض اوکړو چه اذاترفض فلاشی یعنی په دې دم سره به څه فائده اوشی داخو صرف پوپوکې دې کله چه تا واچولو نو په هواکښې تحلیل کیدوسره ختمیږی

دَدې څه وجود خوباقي نه دې نوڅه اثربه اوکړی؟
دې الله والا خپل دم اچول بندکړل اودغه معتزلی ته ئې ښه مغلظات اوونيل دَ معتزلی سترګې سرې شوې په غصه سره ئې رګونه راؤوتل اوحالت ئې خراب شو نو ابوالخيری اوونيل څه چل اوشو؟ هغه اوونيل لا پوښتنه هم کوې چه څه چل اوشو دومره کنځلې دې اوکړې چه زما په بدن کښې اور اولګيدلو. ابوالخيری ورته اوونيل چه داکنځلې خو يو پوکې وو اذاترفض فتلاشی هغه اوونيل چه ماته ئې سخت تکليف راؤرسولو الله والا اوونيل چه کله زما په کلام کښې دا تاثيردې نودَالله تعالی په کلام کښې به څومره اثر وی؟

**دَطب موضوع** : دَ دې فن موضوع انسانی بدن يا ابدان ذی روح دی من حيث الصحة والمرض

**دَ علم طب شروع اودَ دې مختصر تاريخ** : فن طب الهامی فن دې دَ مختلفو پيغمبرانو عليهم السلام طرف ته دَ دې نسبت کيږی.

① بعضې حضرات فرمائی چه دَ ټولونه اول داعلم حضرت آدم عليه السلام ته ورکړې شوې وو بياهم دَ هغوی په واسطه حضرت شيث عليه السلام ته بيا په بنيادموکښې دَ دې علم اشاعت اوشو مفسرين حضرات دَ قرآن آيت ﴿وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ﴾ په تفسيرکښې فرمائی چه الله تعالی حضرت آدم عليه السلام ته دَ دنيا نافع اومضر څيزونه او دَ هغې خواص اوآثار. د هر ساه لرونکی اودَ هرقوم مزاج او طبائع اودَهغوی آثاروغيره ټول خودلې وو. نودَ ټولونه اول دَ طب دَ فن معلومات حضرت آدم عليه السلام ته خودلې شوې وو اودَ هغوی نه پس دَ هغوی اولاد ته راغلل

② دَ بعضې حضراتو داخيال دې چه دَ دې فن شروع دَ حضرت سليمان عليه السلام نه شوې ده بزار او طبرانی دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت نقل کړې دې چه حضرت سليمان عليه السلام به چه کله مونځ کولو او يو ونه به مخې ته شوه نودَ مونځ نه پس به ئې دَ دغه ونې نه دَ نوم تپوس کولو اودابه ئې هم معلومول چه ته دَ کوم کاردَ پاره پيداکړې شوې ئې نوهغه ونې به خپل خواص خودل کوم چه به هغوی ليکل دغه شان دَ ونو بوټو دَ خواصوعلم اودَ دې فن شروع اوشوه

③ په سديدی کښې دی چه حضرت موسی عليه السلام بيمارشو نوهغه دَ بيمارئی علاج اونه کړوبلکه انکارئی اوکړو نودَ الله تعالی دَ طرف نه ورته آواز راغلو ولې ته داغواړې چه په توکل باندې زماحکمت بيکاره کړې؟ زما نه بغيرڅوک دی چه په عقاقير اوحشائش کښې ئې دا منافع کيخودې دی صحت به نشی درکولې ترکومې چه دې دا دوايانې استعمال کړې نه وی. نوموسی عليه السلام علاج اوکړو او روغ شو. يهوديانو په دې وجه دَ دې علم ايجاد دَ حضرت موسی عليه السلام طرف ته منسوب کړې دې

④ په تفسيرعزيزی کښې دی چه دَ جالينوس په خيګرکښې درد شو هرقسم علاجونو وغيره سره ئې کوششونه اوکړل خو ښه نه شو. په خوب کښې ئې اوکتل چه يو نورانی سړې

هغه ته حکم ورکوی چه دا شریان (دَ ګس لاس په شا باندې دَ غټې ګوتې او مسواکې ګوتې په مینځ کښې یورګ دې) نه وینه اوباسه په دې سره به دې بیماری کښې شفاراشی. جالینوس پاسیدو او هغه سرې ئې او لټولو او فصدئې اوکړو او ښه شو.

دا ټول اقوال صحیح معلومیږی خکه چه داخبره په مسلمات کښې ده چه دَ دې علم د روحانی معاملاتو سره خاص تعلق دې په کوم طبیب کښې چه څومره قدر روحانیت محسوسیږی نوهم هغه هومره دَ هغه تشخیص او تجویز مؤثر معلومیږی لکه چه مشاهده او تجربه هم ده.

**د علم طب د ایجاد مختلف دعویداران:** ① اهل هند وائی دَ دې شروع برهماجی کړې ده

② اهل چین وائی دَ دوایانودَ استعمال اول رواج ورکونکې رومبې سړې شهنشاه هورنګ ئې دې دَ چا زمانه چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام نه ۳۲۸۷ کاله وړاندې ده بیا دَ ده نه نورو کسانو زده کړه اوکړه

③ بابل والاوائی چه دَ ټولونه وړاندې دَ بابل والا دَ دې شروع کړې ده دَخلقو په وړاندې ئې بیمار راوستلو شو او هر سړی به په خپل تجویزسره دَ هغه علاج کولو او په کوم سره چه به فائده کیدله دَ تانبې او چاندئې په تختویاندې به هغه لیکلې کیدل اوهغه به ئې دَ خپل بت په غاړه کښې اچول دغه شان اهل بابل دا ایجاد کړه.

④ عبرانیانو او اسرائیلیانو دَ دې شروع دَحضرت سلیمان علیه السلام طرف ته منسوب کړې ده

⑤ اهل مصر وائی چه پخوانی مصری بادشاه آتهوسس داعلم ایجاد کړې دې چه دَحضرت عیسیٰ علیه السلام نه شپږ زره کاله وړاندې بادشاه وو په علم طب باندې هغه یوکتاب هم لیکلې وو

⑥ دَ اهل یونان وینا ده چه دَ دې شروع دَ اسقلبوس نه شوې ده اهل یونان ابوالطب وائی د دوی خیال دی چه په ده باندې دا علم دَ الله تعالی دَ طرف نه الهام شوې وو هغه خپل اولاد ته دا فن زده کړو اودَ هغه خاندان کښې لوئ لوئ حکماء او اطباء پیدا شو بیا فیساغورس چه دَحضرت عیسیٰ علیه السلام نه ۵۸۰ کاله وړاندې پیداشوې وو هم هغه دې فن ته رواج ورکړو خولادې وخت کښې دا فن مدون شوې نه وو

**دَعلم طب تدوین:** دَ اسقلبوس په شپاړسم (۱۲) نسل کښې تقریبًا د حضرت عیسیٰ علیه السلام ۴۲۰ کاله وړاندې حکیم بقراط پیدا شو کوم چه په یونانیانوکښې رومبې سړې وو چاچه دَ نوروعلوموپه شان فن طب باقاعده مرتب کړو او په دې باندې ئې کتابونه اولیکل. دَ بقراط نه پس ارسطاطالیس حکیم شو دَ چا په علمی تحقیقاتواوکوششونو سره چه علم طب کښې ډیره زیاته اضافه اوشوه. دَ دې نه پس دَ حکیم جالینوس دور راغلو چا چه نورو نومړو اطباؤ سره یوځائ علم الادویه باندې قابل قدر کتابونه اولیکل.

دَ هغه زمانې مشهور اطباء ثاؤفرسطس او ویسقوریدوس برمانیدس او افلاطون وغیره دی دې نه پس دَ یونانی ژبې نه عربی ژبې ته دا وربدل کړې شودَ مسلمانانو دَ ترقئی په زمانه کښې په دې علم کښې ډیره ترقی اوشوه او اضافه او ترمیم هم اوشو. په دمشق کښې دَ مسیحی او یهودی استاذانو په امداد سره د یونانی طب په تعلیم باندې ډیر کوششونه اوکړې شو په بغداد کښې دَخلیفه هارون الرشید په زمانه کښې یولوئ دارالعلوم قایم کړې شو چه په کلونو پورې چلیدلو په دولت امویه او عباسیه کښې د بقراط او د جالینوس وغیره ډیرکتابونه په دې درس گاه کښې په درس کښې داخل وو. دَ اسلامی طب عروج دَ ابوبکر محمدبن زکریا رازی ۸۵۰ء نه شروع کیږی کوم چه په بغداد کښې دَ علوم تحصیل اوکړو او علم طب ئې د حکیم ابوالحسن بن زید طبری صاحب کتاب فردوس الحکمة نه تحصیل اوکړو دَموصوف تصنیفات دَ سلو نه زیات دی په علم طب باندې حاوی کبیر ډیر ښکلې کتاب دې دَ کوم شهرت چه ترننه پورې قایم دې. دَ رازی نه پس دَ ابوعلی بن سینا دور راغلو نودې فن ته نوره ترقی ملاو شوه. په اسلامی اطباؤ کښې مشهور حکماء ابوالقاسم زهراوی، ابومروان عبدالملک او ابوالولید محمدبن احمدبن رشد مشهور طبیبان دی هغوی په فلسفه اوطب باندې کتابونه اولیکل چنانچه دَ اسلامی فلسفې دَ هغه د نوم سره خاص تعلق دې. دَ دې نه علاوه نور هم نوموړی اطباء تیرشوی دی لکه ابن بیطار. داؤد انطاکی، ابوعلی بن عیسی، علی بن عباس قرشی، سمرقندی او ارزانی او مؤمن وغیره

**دَ قرآن اوحدیث څخه دَ طب ثبوت**: نصرانی د هارون الرشید طبیب یختینوع علی بن حصین بن واقد ته اوونیل چه ستاسو په قرآن کښې دَ طب متعلق هیڅ هم نشته نوهغه جواب ورکړو چه الله تعالی ټول طب دَ قرآن حکیم په دې آیت کښې راجمع کړې دې(كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ) هغه بیا اوونیل ستاسو دَ نبی په تعلیم کښې دَ طب ذکرنشته نو علی بن حصین په جواب کښې اوفرمائیل رسول الله ﷺ خپل فرمان[۱] المعدة بیت کل داء والحمیة رأس کل دواء کښې طب بیان کړې شوې دې. نو یختیشوع اوونیل بیا خو ستاسو نبی دَ جالینوس دَ پاره هیڅ هم نه دی پریخی

**داسلامی طب جامعیت**: دَ عقلاؤ فیصله ده چه دَ ژوند ضرورتونه او علوم مفیده او فنون نافعه قاطبةً په مذهب اسلام کښې خودلې شوی دی روحانیت، تمدن، اخلاق، صحت بدنی، معاشرت ومعیشت او دَ ښکلې ژوند ټول قوانین په دې کښې موجود دی. اهل ایمان خپل ټول علوم او فنون دَ خپل نبی کریم دَهدایت مطابق جدا جدا مرتب کړی دی اوعلم طب هم دَ دې علوموڅخه یوعلم دې. نن هم چه دَ حفظان صحت متعلق ډاکټرانو کوم

[۱] (دا دَ حضورپاک طرف ته صرف شهرة منسوب دې گنی دا دَ حارث بن کلده قول دې)

اصول قايم کړی دی هغه د اول نه په اسلام کښې موجود دی غرض دا چه هيڅ يو عملی او عملی خوبی او ښکلا نشته کوم چه په اسلام کښې نه وی.

په حقيقت کښې نبی کريم ﷺ امت ته که يوطرف ته دَ شريعت د احکامو تبليغ کړې دې نودې سره سره ئی دَ معاشرت او معيشت آداب هم واضح انداز کښې بيان کړې دې. کتب احاديث کښې هيڅ يوکتاب داسې نشته په کوم کښې چه آداب بيان کړې شوې نه وی اودې سره سره دَ بدنی علاج دَ پاره هم رسول الله ﷺ ډير څيزونه او دواياني بيان کړې دی اوهم دې ته طب نبوی وائی.

**د طب دوه قسمونه:** ① بدنی طب په دې طب کښې علاج کښې د صحت په حفاظت او په دفع د مرض سره کيږی.

② نفسانی په دې طب کښې علاج د نفس بازالة اخلاق رذيله مهلکه سره وی

**د دواياتو دوه قسمونه:** ① حسيه، طبعيه بيا به حسيه طبعيه مفرده وی يا مرکبه، رسول الله ﷺ د خپل امت علاج په حسيه طبعيه سره هم مؤثر خودلې دې. کما فی کتاب الطب والرقی.

② روحانيه ربانيه، لکه قران کريم، رسول الله ﷺ د خپل امت علاج په حسيه طبعيه سره هم مؤثر خودلې دې. روحانيه ربانيه هم کما فی قوله ويزکيهم.

د رقې لغوی معنی: الرقی بضم الراء وفتح القاف د (رقية) جمع، منتر ته وائی کوم چه په تبې والا او پيريانو وهلې وغيره باندې ونيلې شی

**د رقيه دوه صورتونه اوه هر يو حکم:** ① يوه رقيه په آيات قرانی يا اسماء الهی يا ذکر الله باندې مشتمل وی هغه بالاجماع جائز ده، خو د کومو کلماتو معنی چه معلومه وی او هغه د دين او شريعت مخالف هم نه وی نو هغه هم جائز ده

② که رقيه د عجمی لغت په ذريعه يا د داسې الفاظ او کلمات نه وی چه د هغې معنی معلوم نه ده نو هغه ناجائز ده ځکه چه په هغې کښې په کفر باندې مشتمل څه کلمه کيدې شی

**اشکال:** په بعض رواياتو کښې دی يارسول الله (إنك نهيت عن الرقى) د دې نه (نهى عن الرقى) ثابت ده؟

**داشکال درې جوابونه:** ① اول د نهی حکم راغلې دې بيا دا حکم منسوخ شو او اجازت ورکړې شو واستقر الشرع على الاذن.

② يا د کومې رقی معنی چه معلوم نه وی د احتمال کفر د وجې نه په هغې باندې نهی وارد ده کما مر.

③ د نهی حکم د هغه چا دپاره دې کوم چه د رقی کلماتو لره مؤثر بالذات ګنړی لکه چه په جاهليت کښې به داسې کيدل.

**د مبداء په اعتبار سره د علمِ طب دوه ذرائع:** ① بعض علم طب خو د وحی په ذریعه معلوم شو ② بعضې علم طب په تجربې سره معلوم شو كما روى البزار والطبراني عن ابن عباس أنه قال إن نبي الله سليمان كان إذا قام يصلي رأى شجرة نابتة بين يديه فيقول سليمان لها ما اسمك فتقول الشجرة كذا فيقول لأي شئ أنت) يعنی په تا كښې د كوم مرض دوائی ده؟ (فتقول لكذا فإن كانت لدواء كتبت) الحديث

**د علاج په جواز اوعدم جواز كښې ۲ مذاهب:**

① غلو كونكی صوفياء د علاج معالجې نه انكار كوی، او وائی چه مرض وغيره هم د الله پاك د قضاء او قدر نه دې د هغې مقابله كولو سره علاج معالجه نه دی كول پكار دی

② د ائمه اربعو بلكه د جمهورو سلفو اود عامة الخلف په نزد علاج كول مستحب دی.

**داول فريق دلائل:** په روايت كښې دی چه (الذين يدخلون الجنة بغير حساب لايرقون ولايسترقون وعلى ربهم يتوكلون) داسې قسم هغه نور احاديث په كوم كښې چه د علاج او رقيه نه كولو د فضيلت ذكر دې د هغه احاديثو مخالف دی چه په هغې كښې د علاج معالجې كولو ذكر دې كقوله لكل داء دواء؟

**د اول فريق د دليل دوه جوابونه:** ① دلته د هغه خلقو متعلق دخول جنت بغير د حساب ذكر دې كوم خلق چه د علاج بالحرام يا د مجهول المعنى رقيه او د كفری رقيه نه پرهيز كولو په حالت كښې مړۀ شوې دی، لهذا دا د هغه احاديثو خلاف نه دی چه په هغې كښې د علاج بالحلال يا د جائز رقية ذكر دې هغه خو سنت دی.

② په كومو احاديثو كښې چه د ترك رقية مدح ده هغه د بيان افضليت دپاره دې او په كومو احاديثو كښې چه د رقيه او د علاج ذكر دې هغه د بيان جواز دپاره دې فلاتعارض (كما في شرح مسلم للنووي ۲۱۹/۲ والمرقاة ۳۳۹/۸، والاشعة ۶۳۹/۳)

**د دويم فريق دليل:** په حديث كښې دی عن جابر أنه عليه السلام قال لكل داء دواء فإذا أصيب دواء الداء برأ بإذن الله تعالى رواه مسلم، په قول د بقراط علاج كله بالضدوی اوكله په طبيب باندې د مرض او دوايئ حقيقت پټ پاتې شی په دې وجه د علاج باوجود صحيح طور دوائی اثر نه كوی او د زرګونو علاجونو باوجود شفاء نه ملاويدل د علم بحقيقة المداواة د نيشت والی د وجې دې د دوايئ د نيشت والی د وجې نۀ وی. هم د دې خبرې طرف ته ئې اشاره اوكړه (فإذا أصيب الخ) بهر حال د علاج كولو مستحب كيدل د دې قسم احاديثو څخه ثابت دی.

**دعلاج اوتقديرپه مينځ كښې عدمِ منافات:** په علاج كولو سره د تقدير مقابله كول نه لازميږی، بلكه علاج كول هم په تقدير كښې دی، كما روى الترمذی (انه سئل النبي ﷺ أرأيت أدوية نتداوى بها ورقى نسترقيها هل ترد من قدر الله شيئا قال هي من قدر الله)

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

[۳۰۳] د هري بيمارۍ د علاج امکان

۳۰۳-(۱) ()[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] (« مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً »). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره ﷺ وايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله ﷻ يوه داسې ناروغي نه ده پيدا کړي چې د هغې د پاره يې شفاء نه وي نازله کړي، [يعنی الله ﷻ د هر مرض سره د هغه علاج هم پيدا کړي دي، که هغه مرض لاحق شي، نو د هغه علاج په ذريعه ورته شفا ورکړي]. (بخاري)

**حل اللغات:** ① دَاءٌ: مرض، بيمارى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً:

**د بيمارۍ څخه د شفاء نه ملاويدو وجه:** د حديث الباب حاصل دا دي چه الله تعالى هيڅ يو داسې بيماری نه ده پيدا کړي چه د هغې د شفاء دپاره ئي دوا نه وی مقرر کړې ليکن ډاکټر يا حکيم چه کله ددي بيمارئی علاج کوي نو بعضی وخت هغه د جوړيدو په ځائي نور هم بيمار شي نو ددي اصل وجه دا چه دهغه مرض اصل دوائی ته د ډاکټر يا د حکيم نسخه نه وی رسيدلې

**په زهرو سره شفا ملاويدل:** لکه يو واقعه مشهور ده چه يو مريض د ډاکټر نه علاج کولو نو هغه مريض نه جوړيدل نو په دي کښې ډير وخت تير شو او ډاکټر د مريض نه تنګ شو نو هغه ډاکټر مريض ته زهر ورکړه چه دا مريض مړ شي نو هغه مريض د مړکيدو په ځائی تندرست شو نو ددي نه دا معلومه شوه چه ددې مريض تندرستی په زهرو کښې وه ليکن ډاکټر ددغه مرض علاج ته او نه رسيدو خو چه کله ئی د مړکولو دپاره دوائی ورکړه نو هغه روغ شو

[۳۰۵] دوائی دعلاج ظاهری ذريعه

۳۰۵-(۲) ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ [۳] فَإِذَا أُصِيبَ دَوَاءُ الدَّاءِ [۴] بَرَأَ بِإِذْنِ اللّٰهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د هري ناروغي دوا

---

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الطب/باب ما أنزل الله داء إلا أنزل له شفاء (رقم-۵۶۷۸) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب ما أنزل الله داء. إلا أنزل له (رقم-۳۴۳۹)

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب لکل داء دواء واستحباب التداوی (رقم-۶۹ - (۲۲۰۴) واحمد فی المسند: ۳۳۵/۳

شته، [۳] هر کله چې هغه دوا د ناروغي موافق شي، [۴] نو ناروغ د الله ﷻ په حکم (يعني د هغه په مشيت او ارادې) سره ښه شي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① بَرَأَ: شفاياب كيږي.

**تسهيلات:**

**د بيمارۍ دپاره د علاج مسنونيت:** دَدې حديث نه اودَدې نه مخکښې حديث نه داخبره واضحه معلوميږي چه کله چاته بيماري اولګي نو علاج معالجه اودوائي استعمالول مستحب دي. څنګه چه بيماري راتلل دَتقدير الهي تابع دي دغه شان دوائي اودَ مرض ختميدلو هره جائز ذريعه هم دَتقدير الهي تابع دي.

**په علاج کښې مؤثرِ حقيقي:** دَدې حديث نه دويمه خبره دا ثابتيږي چه دَ دوائي دَاستعمال نه پس اثر اچونکې اوشفاورکونکې دَالله تعالى ذات او دَهغه حکم دې. دوائي خو صرف يوسبب او ذريعه ده مؤثرحقيقي نه دې. هم دغه هغه څيزدې چه دَ هريو علاج او دم درها دَپاره په توګه دَاصل او قاعدې په خيال کښې ساتل ضروري دی چه کومه يوه دوائي يا دم درها مؤثر بالذات ګنړل صحيح نه دی. مؤثر حقيقي خوصرف او صرف دَالله تعالى ذات دې دَهغه دَ طرف نه دوائي وغيره ته مستقل حکم کيږي نوهله دوائي اثر کوی. هم دا نظريه دَعقاندو په کتابونوکښې بيان کړې شوې ده

**دخوراک څکاک څخه روسته دالله تعالى مستقل حکم:** چه اشاعره وماتريديه متکلمين وائي چه دَخوراک څښاک نه پس دَالله تعالى مستقل حکم کيږي چه داخوراک دې دَ خوړونکي خيټه مړه کړی اواوبه دې دَ دغه څکونکي په څکلوسره تنده ماته کړی اوکه چرې يوسړې په اورکښې پريوځي نودَ پريوتلونه پس دَالله تعالى دَ طرف څخه حکم کيږي چه دې اوسوزوه ګني اور اثر نه کوی لکه چه په حضرت ابراهيم عليه السلام باندې اور اثر اونه کړو.

**د شفاء ملاويدو عجيبه روايت:** ملاعلى قاري رحمه الله په حواله دَحميدی يو روايت نقل کړې دې دکوم خلاصه چه داده چه کله يوسړې بيمارشي نوالله تعالى يوه فرښته ورليږی دکومې په لاس کښې چه يوه پرده وی. فرښته دغه پرده دَ بيمار دَ بيمارئي اودوائي په مينځ کښې حائل کوی دَدې نتيجه دا راوځي چه بيمارکومه دوائي هم استعمالوی هغه مرض ته نه لګي (شفا نه حاصليږی) کله چه دَالله تعالى اراده اوشي چه بيماردې ښه شي نو فرښتې ته حکم کيږی چه دَمرض او دوائي نه پرده اوچته کړه دې نه پس چه کله بيمار دوائي استعمالوی نوالله تعالى دَدغه دوائي په ذريعه شفا ورکوی.

## [۴۵۲] په دريو څيزونو کښې د شفاء ثبوت

۴۵۲ —[۳] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«الشِّفَاءُ فِي ثَلَاثٍ: [۳] فِي شَرْطَةِ مِحْجَمٍ [۴] أَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ [۵] أَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ. [۶] وَأَنَا أَنْهَى أُمَّتِي عَنِ الْكَيِّ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په دريو څيزونو کې شفاء ده [۳] په ښکر لګولو (وينه اوخکلو) کې [۴] يا په شات څکلو کې (که خالص شات وڅکي يا اوبه يو ځاي کولو سره يې وڅکي) [۵] يا په اور سره په داغلو کې، [۶] ليکن زه خپل امت د داغلو نه منع کوم. (بخاري)

**حل اللغات**: ①شَرْطَةِ مِحْجَمٍ: د حجام ښکر لګول، ②عَسَلٍ: شهد، ③كَيَّةٍ: داغ لګول

**تسهيلات**:

**قوله**: شَرْطَةِ مِحْجَمٍ:

**د مذکوره لفظونو معنی**: شرطه دَ فعلة په وزن باندې نشتر وهلوته وائی مګردلته صرف دَ وهلودَپاره استعمال کړې شوې دې. دَ نشتر مفهوم په دې کښې نشته خکه چه وړاندې "محجم" لفظ دې دکوم نه چه دَ حجام يعنی دَ نائی دَ اوسپنې هغه آله مراد ده دکوم په ذريعه چه حجام په بدن کښې زخم لګوی اووينه راؤباسی.

**قوله**: أَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ:

**په داغ سره علاج کول**: دريم څيزکوم کښې چه شفاء ده هغه په اورباندې داغولوکښې ده يعنی داغ لګونکی اوسپنه په اورکښې ګرمه کړه په هغې سره ئې بيمار اوداغلو او په اسپند کښې ئې اور اولګولو داغ ئې ورکړو. نن صبا هم دَدې ماهرين داکارکوی اوعلاج کاميابيږی

**په احاديثو کښې تعارض**: په اور سره داغلوعلاج نه بعضې احاديثوکښې ممانعت راغلې دې لکه چه زيربحث حديث کښې دی. دَ بعضې رواياتونه معلوميږی چه نبی کريم پخپله دَ داغ په عمل سره دَ بعضې صحابه کرامو علاج کړې دې. دَصحابه کرامو په معمولاتوکښې هم دَداغ عمل موندلې شی اوپه دې رواياتوکښې په ظاهره تعارض دې دَدې څه جواب دې؟

**جواب**: اصل حقيقت داسې دې چه د داغلو عمل دَجائزعلاجونونه يوعلاج دې ليکن دَدې دَ استعمال نه دَمنع کولو څه خارجی وجوهات دی

① نبی کريم دَ زياتې مبالغې او دکيّې فاحش نه منع کړی ده دَ حاجت په اندازه مخکښې

[۱]) اخرجه البخاری فی كتاب الطب/باب: الشفاء فی ثلاث (رقم-۵۶۸۰) وابن ماجه فی كتاب الأشربة/باب الشرب بالأكف والكرع (رقم-۳۴۳۱)

هم اجازت وو اواوس هم دي لهذا په احاديثو كښې هيڅ تعارض نشته دي.

② دَ داغلو عمل به عريو مؤثربالذات گنړلو په دې وجه نبی كريم دَدې غلطې عقيدې دَ وجې نه داغ منع كړو مطلق ممانعت نه دې.

③ نبی كريم په امت باندې دَ شفقت او رحمت په توگه دَ داغلونه امت منع كړې ده چه تركومې پورې نور علاج ممكن وی دَ داغ طرف ته نه دی راتلل پكار ځكه چه اور سخت څيزدې ليكن چه كله نوره څه آسانه طريقه موجودنه وی نوبيا په مجبورئی كښې معذوری دې.

**[۳۵۱۷] دجابر رضی الله عنه پلار داغل**

۳۵۱۷—[۳] ( ) ① وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «رُمِيَ أُبَيٌّ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى أَكْحَلِهِ ③ فَكَوَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي ② چې د غزوة احزاب [چې هغې ته غزوه خندق هم وايي] په ورځ د حضرت أُبي بن كعب شاه رگ په غشی ولگيدلی (چې د هغې نه وينه جاري شوه) ③ نو رسول الله ﷺ هغه او داغلو، [يعنی حضور ﷺ د زخم خله د داغلو حكم وكړو يا په خپل لاس مبارك سره يې او داغلو چې وينه يې بنده شي] ، (مسلم)

**حل اللغات:** ① يَوْمَ الْأَحْزَابِ: غزوه خندق، ② أَكْحَلِهِ: د شاه رگ، ③ فَكَوَاهُ: داغ ئې وركړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** رُمِيَ أُبَيٌّ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى أَكْحَلِهِ، فَكَوَاهُ رَسُولُ اللَّهِ.

**د رگ جان په درې حصو كښې تقسيم:** اكحل دَرگ جان نوم دې

① كه چرې دا سټ سره وی نودَدې نوم ابهر وی

② چه مټ ته دا رگ راشی نودَدې نوم اكحل كيږی

③ چه دا رنگ په پتون او پنډئی كښې راشی نودَدې نوم النساء كيږی كوم چه دَعرق النساء په نوم سره مشهوردې.

**د حديث پس منظر:** غزوه خندق اوغزوه احزاب هم دَ يوې غزوې دوه نومونه دی په څلورم هجری كښې دا غزوه پيښه شوې وه. لس زره كافرانويوه مياشت دَ مدينې منورې محاصره كړې وه دَدوارو طرفونه لاس په لاس دَ جنگ موقع دَخندق دَ وجې نه رانغله البته غشی وريدل په دې كښې ډيره صحابه كرام زخميان شو حضرت ابی بن كعب ﷺ ته اكحل يعنی دَ مټ په رگ باندې غشې اولگيدو هم په دغه اكحل كښې حضرت سعدبن معاذ ﷺ هم په غشی اولگيدو وينه نه بنديدله نونبی كريم دواړه اوداغل

[۱]) اخرجه مسلم فی - كتاب السلام/باب لكل داء دواء واستحباب التداوی (رقم-٧٤ - (٢٢٠٧) واحمد فی المسند:٣/٣٠٣

**[۴۵۱۸] د نبي عليه السلام سعد بن معاذ لره داغل**

۴۵۱۸–[۵] (¹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «رُمِيَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فِي أَكْحَلِهِ، [۳] فَحَسَمَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِيَدِهِ بِمِشْقَصٍ، [۴] ثُمَّ وَرِمَتْ، فَحَسَمَهُ الثَّانِيَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [۲] چه د حضرت سعد ابن معاذ رضي الله عنه شاه رګ په غشي ولګيدو اچي په هغې سره وينه جاري شوه [۳] نو رسول الله ﷺ په لاس مبارك سره د غشي د څوکي په ذريعه زخم اوداغلو، [۴] بيا چې د هغه لاس وپړسيدو، نو حضور ﷺ دوباره وداغلو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَكْحَلِهِ: د شاه رګ، ② فَحَسَمَهُ: نو داغ ئې ورکړو ③ مِشْقَصٍ: دغشي څوکه، ④ وَرِمَتْ: اوپړسيدو

**تسهيلات:**

**نوټ:** د اکحل رنګ باره کښې وضاحت دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۵۱۷) په تشريح کښې تيرشوې دې.

**[۴۵۱۹] د ابي بن كعب داغل**

۴۵۱۹–[۶] (²) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: [۲] «بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ طَبِيبًا، [۳] فَقَطَعَ مِنْهُ عِرْقًا، [۴] ثُمَّ كَوَاهُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ ابي ابن كعب رضي الله عنه ته يو طبيب وليږلو، [۳] طبيب د هغه يو رګ کټ کړو [۴] او [زخم يې] اوداغلو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① عِرْقًا: رګ، ② كَوَاهُ: داغ ئې ورکړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ كَوَاهُ عَلَيْهِ:

**په رواياتو کښې تعارض:** د حديث نمبر ۴۵۱۷، ۴۵۱۸، ۴۵۱۹ څخه د داغلو جواز معلوميږی اود پورته درې وارو احاديثو څخه دا معلوميږی چه په اور سره داغ لګول جائزنه دي

**د داغ لګولو ممانعت روايات:** ① په ابوداود کښې يو روايت دې "عن عمران بن حصين أنه قال نهانا النبي صلى الله عليه وسلم عن الكي فابتلينا به" نو د دې حديث نه نهی معلوميږي

(¹) اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب لكل داء دواء واستحباب التداوي (رقم-۷۵ - (۲۲۰۸))والترمذي في كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في النزول على الحكم (رقم-۱۵۸۲) واحمد في المسند:۳/۳۸۶

(²) اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب لكل داء دواء واستحباب التداوي (رقم-۷۳ - (۲۲۰۷) وابوداود في كتاب الطب/باب في قطع العرق وموضع الحجم (رقم-۳۸۶٤) وابن ماجه في كتاب الطب/باب من اكتوى (رقم-۳٤۹۳)واحمد في المسند:۳/۲٤۱

② په مسلم شریف کښې هم ددوي نه روایت دي "انه قال کنت اسمع تسلیم الملائکة فلما اکتویت حبست عنه فتبت فرجع الحال" چه فرښتو به ماته سلام کولو نو کله چه ما د داغ لګولو عمل شروع کړو نو فرښتو زمانه حجاب کول شروع کړل لیکن کله چه ما د داغ لګولو عمل ترک کړو نو بیا فرښتو ماته سلام کول شروع کړو.

③ په یو بل حدیث کښې ذکر دي چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل "إني لأحب الكي"

**د تعارض دريم جوابونه:** ① نهی والا احادیث په هغه صورت باندې محمول دي چه بغیر د مرض نه داغ لګول وی یا مرض خه کولو کښې د داغ لګولو ضرورت نه وي بلکه په دوا وغیره باندې خه کیږي.

② دا ممانعت په هغه صورت باندې محمول دې چه په فاسده عقیده یا شرک خفی کښې د واقع کیدلو خطره وي او که داسې نه وي نو بیا ممانعت نشته.

③ بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه د نبی کریم ﷺ بعضې صحابه کرامو ته د داغ لګولو حکم کول په دې اعتبار سره وو چه د هغه صحابه کرامو زخم ډیر خراب شوي وو او د بعضو د اندامونو کټ کیدولو په وجه وینه نه اودریدله او نبی کریم ﷺ ته دا معلومه وه چه داغ لګولو په صورت کښې صحت یقینی دي نو ځکه ئي د داغ لګولو حکم ورکړو.

**تطبیقی مجبوره:** افضل دا دي چه د داغ لګولو عمل دې ترک کړې شي او که د مجبوری په حالت کښې یو حاذق طبیب اووائی چه د مرض علاج هم په داغ لګولو کښې دې نو بیا جائز دی (التعلیق الصبیح ج۵، ص۲۱)

## [۴۵۲۰] د کلونجي خاصیت

۴۵۲۰—[۷] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② "«فِي الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ، إِلَّا السَّامَ» ③" قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: السَّامُ: الْمَوْتُ. ④ وَالْحَبَّةُ السَّوْدَاءُ: الشُّونِيزُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه هغه د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی ② چې توره دانه د سام د ناروغئ نه علاوه د هرې ناروغئ د پاره شفاء ده. ③ ابن شهاب رحمه الله بیان وکړو چې د سام نه مرګ مراد دي. ④ او د تورې دانې نه کلونجي مراد ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ: أي الشُّونِيزُ: د کلونجی تورې دانې ② الشُّونِيزُ: دَ کلونجی دَ بوټی اصل نوم دې. ③ السَّامَ: أي الْمَوْتُ: مرګ

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب الحبة السوداء (رقم-۵۶۸۸) ومسلم فی کتاب السلام/باب التداوی بالحبة السوداء (رقم-۸۸ - (۲۲۱۵) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحبة السوداء (رقم-۲۰۴۱)

**تسهيلات:**

**قوله: فِي الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ شِفَاءٌ:**

**د الحبة السوداء مصداق:** دتورې داني نه مراد کلونجي ده. داد يو بوټي تخم دې ددې حجم رنګ روغن او خوند بالکل د پياز د تخم په شان دې شبه پيدا کيږي چه هم دغه کلونجي دې ليکن دا کلونجي نه دې بلکه کلونجي د پنجاب په علاقو کښې پيدا کيږي دا باقاعده کرلې شي د دې بوټې ورو کې شان وي.

**قوله: وَالْحَبَّةُ السَّوْدَاءُ: الشُّونِيزُ.**

**د کلونجي په شفاء کيدو کښې دوه اقوال:** ① دعلامه طيبي رحمه الله خيال دې چه کلونجي صرف دهغه مرضونوعلاج دې کوم امراض چه د رطوبت اوبلغم څخه پيدا شوي وي څکه چه د کلونجي مزاج خشك او گرم دې نود طبائع مرطوبه بلغميه دپاره مفيد دې عام نه دې ② دعلامه طيبي رحمه الله نه علاوه ټول شارحين داپه عموم باندې حمل کوي او وائي چه کلونجي واقعي د مرګ نه علاوه دهرې بيمارئي دپاره شفاء ده ليکن په دې توګه باندې شفاء ده چه نورو دوايانونه سره دا يوځائي کړې شي اود کلونجي جز په دې کښې اهم او اعظم وي.

**د کلونجي افاديت:** علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه په حديث کښې عموم دې په دې وجه عام معنی اخستل زيات بهتر دي. په کلونجي باندې خلقو مستقل کتابونه ليکلي دي دبې شميره بيمارو دپاره ددې خاص خاص نسخې تجويز کړې شوې دي

**[۴۵۱۳] په شاتو کښې شفاء**

۴۵۱۳-[۸] (¹) ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ③ إِنَّ أَخِي اسْتَطْلَقَ بَطْنُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اسْقِهِ عَسَلًا". ④ فَسَقَاهُ، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: ⑤ سَقَيْتُهُ فَلَمْ يَزِدْهُ إِلَّا اسْتِطْلَاقًا. ⑥ فَقَالَ لَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. ⑦ ثُمَّ جَاءَ الرَّابِعَةَ، فَقَالَ: "اسْقِهِ عَسَلًا".

**ترجمه:** ① او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي ② چه يوه ورځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې يو سړي حاضر شو. هغه اوويل ③ چې زما د ورور نس (خيټه) خرابه شويده، يعنې مسلسل دستونه ورته راځي، حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل عسل (شهد) ورباندې وڅکه، ④ هغه سړي لاړلو او په خپل ورور يې عسل (شهد) اوڅکل، [څه وخت وروسته] بيا راغې، او

¹) اخرجه البخاري في كتاب الطب/باب الدواء بالعسل وقول الله تعالى: {فيه شفاء للناس} [النحل: ۶۹] (رقم-۵۶۸٤) ومسلم في كتاب السلام/باب التداوي بسقي العسل (رقم-۹۱ - (۲۲۱۷) والترمذي في كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الحجامة (رقم-۲۰۵۲) واحمد في المسند: ۱۹/۳

وي ویل ⑤ ما عسل (شهد) ورباندی اوڅکل، لیکن د عسلو (شهد) سره یې دستونه نور زیات شو، ⑥ حضور ﷺ هغه ته دري ځلې دا حکم ورکړو [یعني حضور ﷺ به ورته هر ځل دا فرمایل چې په هغه عسل (شهد) وڅکه، هغه سړي به عسل (شهد) ورباندی څکل بیا به راتلو سره یې وئیل چې ما عسل (شهد) ورباندی اوڅکل خو دستونه یې د مخکې نه هم نور زیات شوا ⑦ تر دي چې هغه په څلورم ځل راغي [او هغه اوویل په دستونو کې زیاتي شوي دي] نو حضور ﷺ ورته بیا وفرمایل چې په هغه عسل (شهد) وڅکه.

**حل اللغات:** ① اسْتَطْلَقَ بَطْنُهُ: نس (خیټه) خرابه شویده، د اسهال بیماری ورته لګیدلې ده.

| |
|---|
| ① فَقَالَ: لَقَدْ سَقَيْتُهُ، فَلَمْ يَزِدْهُ إِلَّا اسْتِطْلَاقًا ② فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَدَقَ اللهُ، وَكَذَبَ بَطْنُ أَخِيكَ". ③ فَسَقَاهُ، فَبَرَأَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ① هغه عرض وکړو چې (یا رسول الله ﷺ) ما عسل (شهد) ورباندی اوڅکل خو عسلو (شهد) یې دستونه نور هم زیات کړي دي، ② بیا ورته حضور ﷺ وفرمایل الله ﷻ خو رینښتیا فرمایلي دي، خو ستا د ورور نس (خیټه) دروغجنه ده، ③ آخر هغه سړي په څېل ورور بیا عسل (شهد) اوڅکل (خالص یا د اوبو سره یو ځاي کولو سره یې ورباندی اوڅکل) نو هغه ښه شو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ② فَبَرَأَ: نو جوړ شو، شفا یاب شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** اسْقِهِ عَسَلًا:

**په شاتو باندې د استطلاق البطن علاج:** دخلقو اوعامو طبیبانو خیال وو چه شات پخپله مسهل دی د استطلاق بطن د بیمارډپاره مناسب نه دی لیکن نبی کریم هم په شاتو باندې زور ورکولو اود اطباؤ ظاهربیني نی رد کوله کله چه علاج اوشو نو طب او اطباؤ ټولو اومنله چه د استطلاق بطن اصل علت په کولموکښې یوفاسد ماده وی ترکومې پورې چه هغه ختمه شوې نه وی بیماری به ختمیږی نه په شاتوسره د دست دپاسه دست کیدود وچې آخرکښې هغه فاسد ماده ختمه شی نوبیا علاج ممکن کیږی په دې حقیقت باندې طبیبان نه پوهیدل حالانکه دا علاج بالمثل دې اودطبیبانو په نیز دا یومسلم حقیقت دې

**په کلونجې او شاتو سره شفا ملاویدل:** د کلونجی اوشاتو په برکت باندې یقین ساتلوسره هم شفاء حاصلیږی صحابه کرامو د مختلف مرضونودپاره شات استعمال کړی دی بلکه په ظاهری بدن باندې شات مږلوسره به نی علاج کولو په زخم باندې د شاتو پټئی عجیب الاثر ده په دې شرط چه شات خالص وی خالص شات دې وخت کراچۍ کښې ۸۰۰ روپئی کلو دی ۲۰۰۵ء.

## [۴۵۲۲] د قسط بحری په ذریعه علاج

۴۵۲۲–[۹] ()[1] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ أَمْثَلَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ الْحِجَامَةُ، ③ وَالْقُسْطُ الْبَحْرِيُّ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷜ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم څیزونه چې تاسو د دوا او علاج په طور اختیاروئ، په هغې کې بهترین شي ښکر لګول (وینه اوخکل) ③ او د بحري قسط استعمالول دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحِجَامَةُ: ښکر لګول (وینه ویستل) ② الْقُسْطُ الْبَحْرِيُّ: دا د یوبوټی نوم دي کوم ته چه کوټ هم وائی دا یو خوشبوداره سمندري لرګي دي اوبطور د علاج هم استعمالیږي

**تسهیلات:** **قوله:** وَالْقُسْطُ الْبَحْرِيُّ

**د قسط بحری پیژندګلو:** دادَ یودوائی (بوټی) نوم دې چه په ځنګلونو کښې وی وړوکې شان بوټې دې دهغې جرړه ده دکشمیرپه علاقوکښې ډیر وی خاص کر دَ کیل او ذواریه په ځنګلونو کښې ډیروی.

دَ انګریز په زمانه کښې دَدې په راویستوباندې سخته پابندی وه. دَ ۳۰۲ قتل کیس به جوړیدلو دَ طبیبانو په نیزدَ قسط بې شمیره فائدې دی. دَدې دوه قسمونه دی یوته قسط بحری وائی اودویم ته قسط هندی وائی. دکوم رنګ چه تور سوربخن وی قسط بحری زیات فائده مند دې. په زیربحث حدیث کښې قسط بحری په بهترین دوایانو کښې شمیر کړې شوې دې.

## [۴۵۲۳] د ماشومانو په قسط سره د علاج کولو ترغیب

۴۵۲۳–[۱۰] ()[2] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَا تُعَذِّبُوا صِبْيَانَكُمْ بِالْغَمْزِ مِنَ الْعُذْرَةِ، ③ عَلَيْكُمْ بِالْقُسْطِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷜ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② تاسو د خپلو کوشنیانو د حلق ناروغي ته په لاس یا په کپړې سره هغوی ته تکلیف مه رسوئ، ③ بلکې تاسو ته قُسط استعمالول پکار دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْغَمْزِ: په لاس سره زور کول ② الْعُذْرَةِ: دَ پینو څکونکو ماشومانو په تالواو مرئی کښې یوه بیماری پښتو کښې ورته جبې وائی ③ الْقُسْطِ: یوقسم دوائی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب الحجامة من الداء (رقم-۵۶۹۶) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب حل أجرا الحجامة (رقم-۶۳ - (۱۵۷۷) واحمد فی المسند:۱۰۷/۳

[2] اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب الحجامة من الداء (رقم-۵۶۹۶) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب حل أجرا الحجامة (رقم-۶۳ - (۱۵۷۷) واحمد فی المسند:۱۰۷/۳

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُعَذِّبُوا صِبْيَانَكُمْ بِالْغَمْزِ مِنَ الْعُذْرَةِ:

**د ماشومانو دخاص بيمارۍ علاج:** دَعذره سبب دَ وينې دباؤ وی. دَ ماشومانو منيندې دَهغه ماشومانو په تالوکښې ګوته ورکوی او تالوته زور ورکوی په کوم کښې چه دَ پوزې په لار باندې توره وينه راؤځی په دې عمل سره ماشومانوته سخت تکليف کيږی. نبی کريم دَدې په ځائی آسان علاج خودلې دې چه قسط حل کولوسره اوبه حاصل کړنی اودغه اوبه دَ ماشوم په پوزه کښې واچونی دا اوبه دَجمع شوې وينې ځائی ته رسيږی نووينه اوچيږی او ماشوم ته شفاء حاصله شی

**د طبيبانو حيرانتيا:** دلته هم طبيبان حيران شوچه قسط سخت ګرم دې اودا بيماری هم دګرمنی نه پيدا کيږی دَدې دَپاره ئی قسط څنګه تجويزکړو دَدې جواب دا ورکړې شو چه دا وينه اودَ دباؤ په اصل کښې دَ بلغم دَ وجې نه کيږی لکه چه دَدې بيمارئی اصل فاسد ماده بلغم دې او قسط سره بلغم ختميږی لهذا دا دَدې بهترين او آسان علاج دې

**[۴۵۴۳] د ذات الجنب علاج**

۴۵۴۳-[۱۱] ()[۱] وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«عَلَى مَا تَدْغَرْنَ أَوْلَادَكُنَّ بِهَذَا الْعِلَاقِ؟[۳] عَلَيْكُنَّ بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ؟[۴] فَإِنَّ فِيهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ،[۵] مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ [۶] يُسْعَطُ مِنَ الْعُذْرَةِ،[۷] وَيُلَدُّ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام قيس رضي الله عنها فرمائي چی رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] تاسو د خپلو کوشنيانو د حلق علاج داسې دباؤ کولو سره ولې کوئ،[۳] بلکه چې تاسو ته د هغوئ علاج د عود هندي يعنی د کوټ په ذريعه کول پکار دي.[۴] څکه چې په عود هندي کې د اوو ناروغيو علاج دي،[۵] چې په هغه کې يوه ذات الجنب دي،[۶] د عذره په صورت کې دي ورته سعوط وکړل شي [يعني د عذره ناروغئ د لرې کولو د پاره عود هندي په اوبو کې حل کولو سره په پوزه کې دي وڅخول شي][۷] او د ذات الجنب په صورت کې دي لدود وکړل شي [يعني د ذات الجنب د ناروغئ د لرې کولو د پاره عود هندي په اوبو کې حل کولو سره په خله کې دي وڅخول شي] بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① تَدْغَرْنَ: دا دَ دغرنه دې زور ورکول ② الْعِلَاقِ: زور ورکول او نچوړی کول ③ الْعُودِ الْهِنْدِيِّ: دا دَ يوبوټی نوم دې کوم ته چه کوټ هم وائی ④ أَشْفِيَةٍ: د ناروغتيا علاجونه، ⑤ ذَاتُ الْجَنْبِ: په خيټه کښې يو اړخ ته بادی درد، ⑥ يُسْعَطُ: په پوزه کښې دې ورته واچولې شی، ⑦ الْعُذْرَةِ: د ماشومانو د جبې بيماری، ⑧ يُلَدُّ: په خوله کښې دې ورته دوائی واچولې شی.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب اللدود (رقم-۵۷۱۳)ومسلم فی کتاب السلام/باب التداوی بالعود الهندی وهو الکست (رقم-۸۶ - (۲۲۱٤) واحمد فی المسند:۳۵۵/۶

**تسهيلات: قوله:** عَلَى مَا تَدْغَرْنَ أَوْلَادَكُنَّ بِهَذَا الْعِلَاقِ؟:
**په عود هندي سره د علاج کولو ترغيب:** په دې کښې په عين باندې دريواړه حرکات راځي دَ نچوړی کولو په معنی کښې دې داهم دَ دغر په معنی کښې دې دباوول او نچوړی کول مراد دی. يعنی تاسو ښځې ولې او په کومه وجه دَخپلو وړو ماشومانو په حلق کښې ګوته اچولو سره تالو دباؤ کونی اوهغوی په سخت تکليف کښې اخته کوئی. تاسو عودهندی ولې نه استعمالوئی په کوم کښې چه دَدې بيمارئی نه علاوه دَنورو بيمارو علاج هم دې. عودهندی هم دَدغه قسط اوکوټ نوم دې.
**قوله:** ذَاتُ الْجَنْبِ:
**د ذات الجنب دوه قسمونه:** ① يودا چه په سينه کښې دننه دَعضلاتو دَ وجې نه پړسوب راځی داخطرناك صورت دې اومهلك بيماری ده.
② چه په اړخ کښې باد جمع شی اودرد پيداکيږی. عود هندی او قسط هندی دا دويم قسم ذات الجنب دَپاره مفيد دی. ځکه چه عود هندی دَ بادو دَ مرضونو دوائی ده دَ ذات الجنب دَ علاج دَپاره عودهندی په اوبوکښې خوټکولوسره دَ وښکی دَ طرف نه په خله کښې ورڅخولې شی.
**قوله:** سَبْعَةُ أَشْفِيَةٍ:
**د اووه بيمارو علاج:** يعنی دَ اووه بيمارو علاج په قسط کښې دې. دَ دوو ذکر نبی کريم اوکړو اودَ باقی پنځونوم نی وانخستلو. کيدې شی چه په خلقو کښې دغه بيمارئی مشهورې وې
**د قسط د دوائی نورې فائدې:** بل داهم ياد لرئی چه دَ قسط دا دوائی صرف په دغه اووه قسمونوبيمارو علاج کښې منحصرنه دې. نبی کريم تذکره دَ اووه کړې ده دَباقی نفی نه ده
① دَ دماغودَ قوت دَپاره مفيددې.
② قسط دَ ځلورمې ورځې دَتبې دَپاره مفيد دې.
③ فالج لقوه رعشه يعنی ګوزن دَپاره مفيددې.
④ دَ اندام مخصوصه دَپاره مفيد دې.
⑤ دَ مردانه قوت دَپاره مفيددې.
⑥ دَ خيتې دَ چينجودَپاره مفيددې.
⑦ دَ وبائی مرضونودَ پاره مفيد دې.
⑧ دَ مخ دَ داغونودَپاره مفيد دې.
⑨ دَ بادی بيمارو دَپاره مفيددې. (مظاهرحق)

**[۴۵۳۵]په اوبو سره د تبې علاج**

۴۵۳۵—[۱۲]()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲]«الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ[۳] فَابْرُدُوهَا بِالْمَاءِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن خدیج رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل تبه د جهنم بخار دي،[۳] نو تاسو هغه په اوبو سره یخوئ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحُمَّى: تبه، ② فَيْح: تپش، ګرمانش، ③ فَابْرُدُوهَا: نو یخوئ ئې

**تسهیلات: قوله: الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ:**

**په اوبو سره د تبې علاج:** یعنې تبه دَ دوزخ دَ اوردَ ګرمانش یوه نمونه ده. په دې کلام کښې تشبیه بیانول مقصود دی. دَتبې حرارت او تپش دَدوزخ دَ ګرمانش په شان دې. دَدې ګرمانش دَ ختمولودَپاره بهترین علاج اوبه دی ځکه چه دَ اوبو په طبیعت کښې یخوالې دې دا یخوالې به دا حرارت ختم کړی.

**د تبې دوه قسمونه:**① دَ بعضې تبې دَپاره اوبه ډیر فائده مندې وی. ما یوخل په سخته تبه کښې غسل اوکړو اوس لادَ غسل نه فارغ شوې نه وم چه تبه ختمه شوه.

②دَ بعضې تبې دَپاره اوبه اوغسل ډیر زیات نقصان ورکونکې وی. لهذا دَ دې ارشادنبوی دَپاره ضروری دی چه سرې اول دَ دغه تبې تعین اوکړی دَ کوم دَپاره چه غسل فائده مند ګرځولې شوې دې. په حجاز مقدس کښې حجازی تبه وه دَ دې دَپاره اوبه فائده مندې وې. هسې په عامه تبه کښې دَ یخو اوبو پټئی او په بدن باندې واؤره مړل ډیره فائده ورکوی. عام ډاکټران په تیزه تبه کښې دَدې حکم ورکوی اوفائده کیږی.

**[۴۵۳۶]د دَم په ذریعه د علاج کولو اجازت**

۴۵۳۶—[۱۳]()[۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ:[۲]«رَخَّصَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الرُّقْيَةِ[۳] مِنَ الْعَيْنِ وَالْحُمَةِ[۴] وَالنَّمْلَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت انس رضي الله عنه وایي[۲] چې رسول الله ﷺ د دم درود په ذریعه د علاج کولو اجازت ورکړي دی،[۳] د بد نظر، د چیچلو[۴] او د نمله (وړی وړی دانې دي چې اکثر په ترخ

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب صفة النار. وأنها مخلوقة " (رقم-۳۲۶۳) ومسلم فی کتاب السلام/باب لکل داء دواء واستحباب التداوی (رقم-۸۱ - (۲۲۱۰) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تبرید الحمی بالماء (رقم-۲۰۷٤) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب الحمی من فیح جهنم. فابردوها بالماء (رقم-۳٤۷۱) واحمد فی المسند: ۵۰/۶

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب استحباب الرقیة من العین والنملة والحمة والنظرة (رقم-۵۸ - (۲۱۹۶) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی ذلک (رقم-۲۰۵۶) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب ما رخص فیه من الرقی (رقم-۳۵۱۶) واحمد فی المسند: ۱۱۸/۳

کښې راخيجي خارش هم ورسره وي او مرداري اوبه هم کوي] (مسلم)

**حل اللغات :** ① رَخَّصَ: اجازت ئې ورکړې دې ② الرُّقْيَةِ: دم چف کول، ③ الْعَيْنِ: نظر (بدنظر)، ④ الْحُمَةِ: زهر، د لړم تيک ورکول ⑤ النَّمْلَةِ: په بدن نرۍ نرۍ داني، سره مخه،

**تسهيلات:**

**قوله:** رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فِي الرُّقْيَةِ مِنَ الْعَيْنِ:

**د ممانعت څخه روسته د دم اجازت:** دَاجازت ورکولو په معنی کښې دې. اول دَ دم درها ممانعت ووچه چرته دَ جاهليت الفاظ په دې کښې رانه شي کله چه داخطره پاتې نه شوه نواجازت ملاؤشو رخص دَممانعت نه پس اجازت ته وائي

**قوله:** مِنَ الْعَيْنِ

**د بدنظرۍ تاثير:** بد نظرته وائي دَبعضې خلقو په سترګوکښې په قدرتی توګه دَ بدنظر داسې جراثيم وی چه نظرلګيدوسره لاړشی اوپه منظوراليه باندې پريوځی نوهغه متاثر کيږی دبعضو جراثيم ډير سخت اوتيزوی نودهغه بدنظر ډير زيات مضروی

**د بنواسدنظربازی:** په عربو کښې دَبنواسد خلق په دې کښې مشهوروو په دوی کښې بعضې داسې وو چه په کورکښې به ئې ښځې ته وئيل چه نغرى باندې کټوئی کيږده زه اوس غوښه راؤړم دې وينا نه پس به بهر لاړو او يوخناور باندې به ئې نظر ورخښ کړو کتلو به ئې خناور به مړشو خلقو به غوښه جوړوله اوتقسيموله به ئې په هره علاقه کښې داسې خلق وو

**قوله:** النَّمْلَةِ:

**داني ته د نملة وئيلووجه:** په اصل کښې ميږی ته وائی دلته دَ بدن په اطرافو باندې وړوکو دانوته اووئيلې شو ځکه چه دا داني هم دَميږو په شان په بدن کښې خوريږی. کله دَپولئی او دَ دانو شکل اختياروی. راتلونکې حديث نمبر(۴۵۶۰) کښې دَدې تفصيل موجود دې.

**[۴۵۲۷] د بد نظرۍ دپاره دم اچول**

۴۵۲۷—[۱۳](۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهَا-قَالَتْ: ② «أَمَرَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَنْ نَسْتَرْقِيَ مِنَ الْعَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ② چه رسول الله ﷺ حکم وکړو چې مونږ د بد نظر د دفع کولو د پاره دم چف کوو، (بخاري مسلم)

**حل اللغات :** ① نَسْتَرْقِيَ: مونږ دم چف کوو

**تسهيلات: نوټ:** ددې تشريح تيره شوې ده

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب رقية العين (رقم-۵۷۳۸) ومسلم فی کتاب السلام/باب استحباب الرقية من العين والنملة والحمة والنظرة (رقم-۵۵ - (۲۱۹۵) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب من استرقى من العين (رقم-۳۵۱۲) واحمد فی المسند:۶/۶۳

## [۴۵۲۸] د بد نظري په وجه په مخ كښې زيړوالې

۴۵۲۸-[۱۵] (¹) ۞ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- ۞ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً ۞ فِي وَجْهِهَا سَفْعَةٌ -تَعْنِي صُفْرَةً- ۞ فَقَالَ: "اسْتَرْقُوا لَهَا، فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او د بي بي ام سلمه ﷞ نه روايت دې ۞ چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د هغې په كور كې يوه جنۍ وليده، ۞ چې د هغې مخ زيړ شوي وو، ۞ نو حضور ﷺ وفرمايل په دې دم چف كړئ ځكه چې دې ته بد نظر لګيدلي دې. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① سَفْعَةٌ: دَمخ زيړوالې، ② صُفْرَةً: زيړوالې، ③ النَّظْرَةَ: بد نظر.

**تسهيلات:** **قوله**: سَفْعَةٌ:

**د سفعة په مصداق كښې مختلف اقوال:** ① راوى په زيړرنګ سره ترجمه كړې ده.

② د دې ترجمه په علامة الشيطان سره هم كړې شوې ده

③ شيخ عبدالحق ﷫ دَ مخ په توروالى سره د دې ترجمه كړې ده.

④ ضربة واحدة يعنى دَ شيطان په څپيړه وهلوسره دَدې ترجمه شوې ده.

## [۴۵۲۹] د دم درها جواز

۴۵۲۹-[۱۶] (²) ۞ وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ۞ «نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الرُّقَى، ۞ فَجَاءَ آلُ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! ۞ إِنَّهُ كَانَتْ عِنْدَنَا رُقْيَةٌ نَرْقِي بِهَا مِنَ الْعَقْرَبِ، ۞ وَأَنْتَ نَهَيْتَ عَنِ الرُّقَى، فَعَرَضُوهَا عَلَيْهِ ۞ فَقَالَ: "مَا أَرَى بِهَا بَأْسًا، ۞ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَنْفَعَ أَخَاهُ فَلْيَنْفَعْهُ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت جابر ﷜ وايي ۞ چې رسول الله ﷺ د منتر ويلو او د پوكلو نه منع وفرمايلو. ۞ نو د عمرو ابن حزم د خاندان خلق (چې د منترونو په ذريعه به يې دَم چف كولې) حاضر شو. او عرض يې وكړو چې يا رسول الله! ﷺ ۞ زمونږ سره يو منتر دې، چې مونږ يې په لړم چيچلې چف كوو. ۞ اوس تاسو ﷺ د منترو نه منع فرمايلې ده. د دې نه پس هغوئ منتر ويلو سره حضور ﷺ ته واورولو (چې حضور ﷺ د دې منتر د صحيح يا غلط كيدو فيصله وفرمائي) ۞ منتر اوريدو سره حضور ﷺ وفرمايل په دې منتر كې زه هيڅ حرج نه وينم. ۞ په تاسو كې چې كوم سړې خپل ورور ته نفع رسولې شي، نو هغه دې ضرور ورته نفع ورسوي، (كه دم چف په ذريعه وي، كه په بلې يوې طريقې سره وي. په شرط د دې چې په هغې كې خلاف شرع څه خبره نه وي) (بخاري، مسلم)

---

(¹) اخرجه البخارى فى كتاب الطب/باب رقية العين (رقم-۵۷۳۹) ومسلم فى كتاب السلام/باب استحباب الرقية من العين والنملة والحمة (رقم-۵۹ - (۲۱۹۷)

(²) اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب استحباب الرقية من العين والنملة والحمة (رقم-۶۳ - (۲۱۹۹)

**حل اللغات** : ① الرُّقَى: دم چف، ② العَقْرَب: لړم. ③ فَعَرَضُوهَا : نو وراندي ئې كړو، يعنى ورته ئې واؤرولو.

**تسهيلات:**

**نوټ:** وړاندې د دم درها تفصيل تيرشوي دي.

**[۴۵۳۰] د دم درها كولو مشروط جواز**

۴۵۳۰-[۱۷] ()[۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ [۳] فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ تَرَى فِي ذٰلِكَ؟ [۴] فَقَالَ: "اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ [۵] لَا بَأْسَ بِالرُّقَى مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ شِرْكٌ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عوف ابن مالك اشجعي ﷛ وايي [۲] چې مونږ به د جاهليت په زمانه كې د دم چف په ذريعه منتر ويلو، [هر كله چې د اسلام زمانه راغله] ، [۳] نو مونږ عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ تاسو ﷺ د دې منترو باره كې څه حكم فرمايي؟ [۴] حضور ﷺ وفرمايل تاسو دا منتري ويلو سره ماته واوروئ، [۵] تر څو چې په دې كې شرك نه وي، زه په دې كې څه حرج نه وينم، (مسلم)

**حل اللغات:** ① اعْرِضُوا: راته وړاندې كړې، وائې ورویٔ، ② الرُّقَى : دم دُرها.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ شِرْكٌ:

**نوټ:** د جائزدم تفصيل وړاندې تيرشوي دي.

**د آيات شفاء باره كښې واقعه:** شيخ عبدالحق محدث دهلوى ﷫ أشعة اللمعات كښې دَدې حديث لاندې يوه قصه ليكلې ده چه شيخ ابوالقاسم قشيرى ﷫ بيان كړې دې چه يوځل زما خوئې ډيرسخت بيمارشو تردې چه مونږ دَهغه دَ ژوند نه نااميده شو. هم په دې دوران كښې ما نبى كريم ﷺ په خوب كښې اوليدلو ماد بچى دَ بيمارئى شكايت اوكړو نبى كريم اوفرمائيل چه ته دَ آيات شفا نه ولې غافل كيږې؟ زه چه كله بيدارشوم نو په قرآن كريم كښې مې دَ شفا آياتونه اولټول چه ټول شپږ ملاؤشو. دا ما په كاغذ باندې اوليكل او وينځلوسره مې په ماشوم باندې اوڅكل ماشوم فورى راپاسيدو لكه چه دَهغه دَخپو بندونه پرانستلې شو. هغه شپږ آياتونه دادى كوم چه دَ نيم آياتونو په شكل كښې دى.

① ﴿وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ﴾ اسورة التوبه، ۱۴.

② ﴿وَشِفَاءٌ لِمَا فِي الصُّدُورِ﴾ اسورة يونس، ۵۷ا

---

() اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب لا بأس بالرقى ما لم يكن فيه شرك (رقم-۶۴ - (۲۲۰۰)وابوداود فى كتاب الطب/باب ما جاء فى الرقى (رقم-۳۸۸۶)

③ ﴿يَخْرُجُ مِنْ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ [سورة نحل، ۶۹]

④ ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [سورة بنی اسرائیل، ۸۲]

⑤ ﴿وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ﴾ [سورة اسقراء، ۷۰]

⑥ ﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ﴾ [سورة حم سجده، ۴۴]

## [۴۵۳۱] د بد نظری اثر

۴۵۳۱-[۱۸] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«الْعَيْنُ حَقٌّ، [۳] فَلَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرِ سَبَقَتْهُ الْعَيْنُ، [۴] وَإِذَا اسْتُغْسِلْتُمْ فَاغْسِلُوا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [۲] بد نظر حق دي [یعني نظر لګیدل یو حقیقت دي] [۳] که په تقدیر سبقت وړونکي یو شي وو، نو هغه به نظر وي، [۴] او هر کله چې ستاسو نه [د اندامونو] د وینځلو مطالبه وشي، نو تاسو يي وینځئ او هغه اوبه پره مریض توئ کړئ [چې د نظر علاج دی] (مسلم)

**حل اللغات:** ① سَابَقَ: مخکښې کیدې شو، ② اسْتُغْسِلْتُمْ: د وینځلو مطالبه اوشی ستاسو نه.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْعَيْنُ حَقٌّ.

**دبدنظرئ جراثیم:** یعنی دَ بدنظرلګیدل یوحقیقت دي داځه وهم یا توهم نه دي. دَ کتونکو په نظرکښې کله یوڅیز بنه لګی نودَهغې اثر منظورالیه ته رسیږی اوهغه متاثر کیږی. لکه دَ عاین دَ سترګونه دَ وائرس په صورت کښې یومسموم زهریلا مادہ اوخی اودَ جراثیم په صورت کښې تللوسره دَمنظورالیه بدن پورې اینخلی اواثرکوی لګه ځنګه چه دَ بعضې مارانو په سترګوکښې الله تعالی دا تاثیرکیخودې دې چه هغه دَخپل نظر اونظام په ذریعه سره دَ منظور الیه طرف ته خپل زهر ورمنتقل کوی.

که دَ دغه وائرس او جراثیم مخې ته څه رکاوټ موجودشی نودَهغې اثر منظورالیه ته نه رسی مثلاً منظورالیه سره دَ دفع دَ نظر تعویذ وی یاځه بل څه وظیفه وی.

**د معتزلو مسلک:** معتزله وائی چه بد نظرلګیدل څه حقیقت نه لری دا صرف انسانی وهم دې ځکه چه په تقدیر کښې کوم څه لیکلې شوی دی هم هغه کیږی. دَ بدنظر دخل په تقدیرکښې نه شی کیدې. علماء حق فرمائی چه دَمعتزلو خیال غلط دې اودَ نظرلګیدل دَ قرآن نه ثابت دی او په احادیثوکښې دَدې ډیر وضاحت دې. باقی دَ بدنظر اوتقدیر په مینځ کښې هیڅ تضاد نشته دې بلکه پخپله دابدنظر دَمقدرات الهیۀ نه دې.

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب الطب والمرض والرقی (رقم-۴۲ - (۲۱۸۸) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن العین حق والغسل لها (رقم-۲۰۶۲)

**قوله**: فَلَوْكَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرِ

**بدنظری د تقدیر حصه کیدل**: یعنی په دې کائنات کښې چه کوم څه دی هغه دَ تقدیرالهی په دائره کښې دی هیڅ یوڅیزدَ تقدیردَ گرفت نه بهرنه دې. فرض کړه که یوڅیزداسې وې چه هغه دَ تقدیردائره ماته کړی وړاندې وتلې شوې نوهغه به بدنظر وی لیکن دَتقدیر دَ دائرې نه هیڅ څیزبهرنه دې. لهذا بدنظر هم دَ تقدیرپه دائره کښې دننه دې.

**قوله**: وَإِذَا اسْتُغْسِلْتُمْ فَاغْسِلُوا

**د بد نظر اثر ختمولو پاره د ناظر غسل کول**: یعنی که یوسړې داسې دې چه دَهغه نظرلگی اوپه خلقوکښې معروف اومشهوردې اودَهغه نظرچاته اولگیدو نودَ نورو علاجونو نه علاوه پیغمبراسلام یوعلاج داخودلې دې چه دَ عاین نه مطالبه اوکړې شی چه تاسو غسل اوکړئی اوبیا اوبه تې وغیره کښې محفوظ کړئی او بیائی منظورالیه ته ورکړئی چه په دغه اوبوسره دې غسل اوکړی نوتیك به شی. چنانچه راتلونکی حدیث نمبر(۴۵۶۳) کښې دَدې تفصیلی قصه راځی.

**ناظرته د غسل کولوحکم**: دَ زیربحث حدیث مطلب هم دغه دې چه کوم سړې دَ نظره شوې دې که هغه دَ نظره کونکی نه مطالبه اوکړی چه ته غسل اوکړه اوبه ماته راکړه نوهغه له زر داسې کول پکاردی او په دې جهالت کښې نه دی راتلل پکار چه په دې کښې زما بې عزتی ده. دَاسلام نه وړاندې به دَعربوخلقو هم دغه عمل کولو اسلام هم دا عمل په ځائی اوساتلو په دې کښې به تاثیروی گنی کم نه کم دا فائده خوبه اوشی چه دَ منظورالیه وهم به لرې شی چه اوس په ماباندې دَ بدنظر اثر پاتې نه شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۴۵۶۲] د هرمرض د علاج امکان

۴۵۶۲-[۱۹] (۱)[۱] عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ: [۲]«قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ أَفَنَتَدَاوَى؟[۳] قَالَ: "نَعَمْ، يَا عِبَادَ اللهِ! تَدَاوَوْا[۴] فَإِنَّ اللهَ لَمْ يَضَعْ دَاءً إِلَّا وَضَعَ لَهُ شِفَاءً[۵] غَيْرَ دَاءٍ وَاحِدٍ، الْهَرَمُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] حضرت اسامه رضی الله عنه ابن شریك وایي[۲] چه بعضې صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ آیا مونږ په ناروغی کې دوا او علاج کوو؟[۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل چې هو، اي د الله بنده ګانو! دوا او علاج کوئ،[۴] څکه چې الله ﷻ یوه داسې ناروغي نه ده پیدا کړي چې د هغې د پاره یې شفاء نه وي ایښې،[۵] علاوه د یوي ناروغۍ نه چې هغه

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب /باب فی الرجل یتداوی (رقم-۳۸۵۵) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی الدواء والحث علیه (رقم-۲۰۳۸) وابن ماجه فی کتاب الطب /باب ما أنزل الله داء، إلا أنزل له (رقم-۳۴۳۶) واحمد فی المسند: ۲۷۸/۴

زورتوب [بوډاتوب] دي (احمد، ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** ①الْهَرَمُ: زوړتوب، بوډا والي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَفَنَتَدَاوَى:

**د صحابه کرامو تپوس کول:** آيا مونږ دوائي استعمال کړو صحابه کرامو سوال څکه اوکړو چه کيدې شي چه دا دوائي استعمالول دَ تقدير الهٰی منافی وی يا دَاعلی توکل خلاف وی. نبی کريم په جواب کښې اوفرمائيل علاج کونی دادَ الله تعالی دَ طرف نه دې. الله تعالی دَهرې بيمارئی دَ پاره دوائی نازل کړې ده. داپخپله دَتقديريوه حصه ده او بوډاوالې داسې مرض دې چه دَدې هيڅ علاج نشته دې.

**[٣٥٣٣] په مريض په زوره د خوراک او څکاک کولو ممانعت**

٣٥٣٣-[٢٠] ()[١] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[٢] "«لَا تُكْرِهُوا مَرْضَاكُمْ عَلَى الطَّعَامِ[٣] فَإِنَّ اللَّهَ يُطْعِمُهُمْ وَيَسْقِيهِمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ[٤] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] چه په خپلو مريضانو په زبردستې مه خورئ، [مه څکئ] [٣] څکه چې الله ﷻ په هغوئ خورې او څکې. (ترمذي، ابن ماجه)[٤] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** ①لَاتُكْرِهُوا: زور زبردستی مه کوئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتُكْرِهُوامَرْضَاكُمْ عَلَى الطَّعَامِ:

**ناجوړه په خوراک کولو د مجبوره کولوممانعت:** دَ انسانی ژوندبَاقی پاتې کيدودَپاره صرف خوراك نه دې داخو دَ ظاهری اسبابو نه يو سبب دې. الله تعالی که اوغواړی نو په څه غيبی ذريعه انسان ژوندې ساتلې شی مثلاً مريض دې هغه که ظاهری خوراك نه شی کولې نو هغه مجبورکونی مه الله تعالی دَ هغه دَ بقاء غيبی انتظام فرمائيلې دې هغه داسې چه دَ بيمار دَ بدن رطوبت ويلې کيږی اودَبيمارد خوراك په ځائی کار ورکوی نوالله تعالی په هغه باندې دَ غيب نه خوراك څنباك کوی. تاسو هغه مجبوره کونی مه التّه به نقصان اوکړئی.

[١]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تكرهوا مرضاكم على الطعام والشراب (رقم-٢٠٤٠) وابن ماجه في كتاب الطب/باب لا تكرهوا المريض على الطعام (رقم-٣٤٤٤)

## [۴۵۴۴] د سرې مخې په داغلو سره علاج كول

۴۵۴۴-[۲۱] (¹) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَوَى أَسْعَدَ بْنَ زُرَارَةَ مِنَ الشَّوْكَةِ». ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ د سعد ابن زراره رضي الله عنه په بدن د سُرخ باده (ناروغۍ د علاج) د پاره داغ ورکړو. ③ دا روايت ترمذي رحمه الله نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات:** ① كَوَى: داغ اولګولو، ② الشَّوْكَة: وهي حمرة تعلو الوجه والجسد: سره مخه چه مخ او بدن ورسره سور شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ الشَّوْكَةِ:

**د شوكة مفهوم:** (مرقات) يعني شوكه دَ هغه سرخئى نوم دې چه په مخ او بدن باندې حاوى كيږى. دې ته اطباء سرخ باده يعني سره مخه وائى. دَ بدن دَ يوځائى نه شروع كيږى بيا پوره بدن كښې دا بيمارى خوريږى. دې ته سره مخه وائى كيدې شى په پښتوكښې دې ته لمبه هم وائى. سخته بيمارى ده.

## [۴۵۴۵] په قسط بحرى اوزيتون سره د ذات الجنب علاج

۴۵۴۵-[۲۲] (²) ① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ نَتَدَاوَى مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ ③ بِالْقُسْطِ الْبَحْرِيِّ وَالزَّيْتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت زيد ابن ارقم رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ مونږ ته هدايت وفرمايلو چې مونږ دې د ذات الجنب په ناروغۍ كې علاج كوو ③ د قسطِ بحرى او د زيتونو د تيلو په ذريعه. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① ذَاتِ الْجَنْبِ: په خيټه كښې يو اړخ ته بادى درد، ② الْقُسْطِ الْبَحْرِيِّ: دا دَ يوبوټى نوم دې كوم ته چه كوټ هم وائى. ③ الزَّيْت: د زيتونو تيل.

**نوټ:** د قسط البحرى تشريح دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۵۲۲) په شرح كښې تيره شوې ده.

---

¹) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرخصة فى ذلک (رقم-۲۰۵۰)

²) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى دواء ذات الجنب (رقم-۲۰۷۹) واحمد فى المسند: ۳۶۹/۴

## [٤٥٣٦] د ذات الجنب بيمارۍ دپاره د زيتون تيل تجويز كول

٤٥٣٦-[٢٣] (١) ١ وَعَنْهُ، قَالَ: ٢ «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَنْعَتُ الزَّيْتَ وَالْوَرْسَ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ» .رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت زيد ابن ارقم ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ به د ذات الجنب د علاج د پاره د زيتون د تيلو او د ورس تعريف كولو. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① يَنْعَتُ: تعريف به ئې كولو، ② الْوَرْسَ: يوقسم سور يا زير رنګ وابنه دی.

**تسهيلات:** يَنْعَتُ...وَالْوَرْسَ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ:

**ﺩ ورس پيژندګلو:** دا يوقسم وابنه دی دَ كوم رنګ چه سور او زير وی دَدې ريشې يعنی رګونه دَ زعفران په شان وی په ډيرو دوايانوكښې استعماليږی.

## [٤٥٣٧] په جلاب سره علاج كول

٤٥٣٧-[٢٤] (٢) ١ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَأَلَهَا: "بِمَ تَسْتَمْشِينَ؟" ٣ قَالَتْ: بِالشُّبْرُمِ ٤ قَالَ: "حَارٌّ جَارٌّ" ٥ قَالَتْ: ثُمَّ اسْتَمْشَيْتُ بِالسَّنَا ٦ فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَنَّ شَيْئًا كَانَ فِيهِ الشِّفَاءُ مِنَ الْمَوْتِ؛ لَكَانَ فِي السَّنَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ او د بي بي اسماء بنت عميس ﷺ نه روايت دی ٢ چې رسول الله ﷺ د هغې نه پوښتنه وكړه چې تاسو د كوم څيز نه جلاب (مسهل) اخلئ؟ ٣ هغې اوويل د شبرم نه، ٤ حضور ﷺ ورته وفرمايل شبرم خو ګرم دې ګرم، ٥ بي بي اسماء ﷺ فرمائي بيا ما د سناء نه جلاب واخستلو، ٦ رسول الله ﷺ وفرمايل كه په څه څيز كې د مرګ نه شفاء وی، [يعنی د مرګ علاج په څه دوا كې وی] نو هغه به سناء وی، (ترمذي، ابن ماجه) او ترمذي رحمه الله ويلي دي چه دا حديث حسن غريب دی.

**حل اللغات:** ① تَسْتَمْشِينَ: تاسو جلاب كوئ، ② الشُّبْرُمِ: يوقسم وابنه دی، دهغې داني مراد دی ③ حَارٌّ جَارٌّ: ګرم دی ګرم، ④ السَّنَا: يوقسم بوټي دي دهغې پاڼې مراد دی

**تسهيلات:**

**قوله:** أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ:

**دحضرت اسماء بنت عميس تعارف:** دَحضرت جعفرطيار ﷺ بی بی محترمه ده دَ ده دَ شهادت نه پس دَ حضرت صديق ﷺ په نكاح كښې راغلې وه

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی دواء ذات الجنب (رقم-٢٠٧٨) وابن ماجه فی كتاب الطب/باب دواء ذات الجنب (رقم-٣٤٦٧) واحمد فی المسند: ٣٧٢/٤

[2] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی السنا (رقم-٢٠٨١) وابن ماجه فی كتاب الطب/باب دواء المشی (رقم-٣٤٦١)

**قوله:** قَالَتْ: بِالشُّبْرُمِ:

**د شبرم پيژندګلو:** دا دَ وښو نوم دې دَ دغه بوټي داني مراد دی. په دې کښې وړې وړې داني وی چه دَمسورو برابر وی. په دې دانوسره دستونه راځي دې له په اوبوکښې جوش ورکولې شي اوبيا دغه اوبه څکلې شي په کوم سره چه جلاب کيږي.

**قوله:** قَالَ: "حَارٌّ جَارٌّ:

**د شبرم ګرموالي:** دا لفظ دَ تاکيد په توګه مکرر راوړلې شوې دې. بعضې نسخوکښې دَ حار نه پس جار جيم سره دې هغه صرف د وزن جوړولودپاره دَ الفاظ مهمله نه دې لکه کتع بتع يا اوبه مويه. طبيبان وائي چه شبرم دَ څلورمې درجې دَ ګرمو دوايانوڅخه دې ډيرزيات دستونه راولي په دې وجه په دې کښې احتياط شرط دې.

**قوله:** فِي السَّنَا:

**د سنا پيژندګلو:** قصر سره دې بعضو مدسره هم لوستلې دې. يوبوټي دې دَهغې پاڼروته سنا وائي دَ تکريزودَ پاڼرو په شان وی. دَدې ښه قسم سنا مکي دې دا اوږه کوی اوبيا ني استعمالوی سخت تريخ دې. دا په درجه اول کښې ګرم دې معتدل دې.

**د سنا فوائد:** په سنا کښې دَ هيڅ قسم نقصان خطره نه وی.

① صفراء پرې کوی

② دَ بلغم اسهال اوتنقيه دپاره فائده ورکوی.

③ دَ زړه کورته طاقت ورکوی

④ دَ سودائي وسوسې لرې کوی.

**[۳۵۳۸] په حرامو څيژونود علاج کولو ممانعت**

۳۵۳۸-[۲۵] (¹) ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ، ③ وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً، فَتَدَاوَوْا، ④ وَلَا تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابودرداء ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله ﷻ ناروغۍ هم راليږلي ده او دوا هم، ③ او د هري ناروغۍ د پاره يې دوا مقرره کړيده، نو تاسو په دوا سره د ناروغۍ علاج کوئ، ④ ليکن په حرام شي سره دوا او علاج مه کوئ. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ

**په حرامو څيزونو کښې عدم شفاء:** دَحرام څيزنه مراد دَ خنزير اجزاء او شراب وغيره څيزونه دی. دَ ميلو غوښې دَ ازمری وغيره مردارو څناورو اجزاؤ سره علاج کول حرام دی. په ډيرو

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب/باب في الأدوية المكروهة (رقم-۳۸۷۴)

احاديثو كښې په حرام څيزونو سره علاج كول منع كړې شوى دى لكه چه په دې كښې هډو شفانشته دې نو استعمال ئى فضول دې
**په حرامو څيزونو د شفاء د نشتوالى دلائل:** ① يو صحابى حضرت طارق جعفى رضي الله عنه دَنبى كريم نه دَ شرابو په ذريعه دَعلاج اجازت اوغوښتلو نونبى كريم اوفرمائيل چه شراب دوائى نه ده بلكه درد او مرض دې
② يوحديث كښې نبى كريم دَهغه مريضانودَ شفانه كيدو دَپاره بددعا اوغوښتله چه په حرامو څيزونو سره علاج كوى. فرمائى "من تداوى بالحرام فلاشفاه الله"
③دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه په يوروايت كښې دى چه الله تعالى كوم څيزونه حرام كړى دى په هغې كښې ئى ستاسودَپاره شفاهم نه ده كيخودې. [اشعة اللمعات: ۳/۶۴۹]
**په حرامودعلاج كولو د رخصت صورت:** ملاعلى قارى رحمه الله وغيره شارحينوليكلى دى كه يوحاذق ماهر اوديندار اوپرهيزګار طبيب يوبيمار ته اووائى چه ستا علاج دَ شرابو نه علاوه په بل څه دوائى كښې نشته دې نوبيادَ علاج په توګه دَ دې استعمال به جائزوى داخبره په خپل ځائى صحيح ده ليكن دَ دې متحقق كيدل محال دى مثلاً تول طبيبان په دې باندې څنګه متفق كيدې شى چه دَدې مرض علاج دَ شرابونه علاوه بل هيڅ څيزكښې نشته دې دغه شان دَ حاذق اوماهر طبيب وجود هم ډير نادر دې لكه چه دې قيدونوسره دَ شرابو دَ استعمال جواز تعليق بالمحال دې

**[۴۵۳۹] د حرامو دوائي استعمال څخه ممانعت**

۴۵۳۹—[۲۶] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الدَّوَاءِ الْخَبِيثِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي[۲] چې رسول الله ﷺ د خبيثې دوا نه منعه فرمايلې ده (احمد، ابوداود، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْخَبِيث: حرامه يا ترخه.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الدَّوَاءِ الْخَبِيثِ:

**د دواء الخبيث په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① دې نه مراد حرامه دوائى ده دكومې تفصيل چه پورته ليكلې شوې دې

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الطب/باب فى الأدوية المكروهة (رقم-۳۸۷۰) والترمذى فى كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن قتل نفسه بسم أو غيره (رقم-۲۰۴۵) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب النهى عن الدواء الخبيث (رقم-۳۴۵۹) واحمد فى المسند:۲/۳۰۵

④ دې ښخه مراد هغه دوائی ده دکوم نه چه طبیعت نفرت کوی. طبیبانو لیکلی دی چه دکومې دوائی نه طبیعت نفرت کوی په هغې کښې عموماً علاج اوشفاء نه وی. په دې صورت کښې به دا نهی په کراهت باندې محمول وی

**[۴۵۳۰] د سر او پښو د درد علاج**

۴۵۳۰-[۲۷] (١) ① وَعَنْ سَلْمَى خَادِمَةِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَتْ: ② «مَا كَانَ أَحَدٌ يَشْتَكِي إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَجَعًا فِي رَأْسِهِ ③ إِلَّا قَالَ: "احْتَجِمْ" ④ وَلَا وَجَعًا فِي رِجْلَيْهِ إِلَّا قَالَ: "اخْتَضِبْهُمَا"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او بي بي سلمیٰ ﷞ چې د نبي کریم ﷺ خادمه وه، وایي ② هر کله چې به چا نبي کریم ﷺ ته د سر د داسې ناروغۍ شکایت کولو، اچې د هغې تعلق به د وینې د زیاتوب او د باؤ سره وو ③ نو حضور ﷺ به فرمایل (د وینې اوخکلو د پاره) ښکر ولګوه، ④ او کوم سړي چې به د پښو د درد شکایت کولو (یعنې داسې درد چې د ګرمې د حرارت په بناء به وو) نو حضور ﷺ به فرمایل په پښو نکریزې ولګوه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① وَجَعًا: درد، ② اخْتَضِبْهُمَا: نکریزې ورکړه دواړو (ښپو) ته.

**تسهیلات:** **قوله:** وَلَا وَجَعًا فِي رِجْلَيْهِ إِلَّا قَالَ: "اخْتَضِبْهُمَا":

**د خضاب لګولو ښخه مراد:** دَدې وسمې لګولونه مراد نکریزې لګول دی یعنی په کوم ځائی کښې چه ښپو یا سرباندې درد وی په هغه ځائی باندې نکریزې خوشتې کړې شی او اولګولې شی نودرد ختمیږی. سړو له پکاردی چه په نوکونوباندې نکریزې نه لګوی دې د پاره چه ښخوسره مشابهت رانه شی

**[۴۵۳۱] په زخم باندې د نکریزو لګول**

۴۵۳۱-[۲۸] (٢) ① وَعَنْهَا، قَالَتْ: ② «مَا كَانَ يَكُونُ بِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَرْحَةٌ وَلَا نَكْبَةٌ ③ إِلَّا أَمَرَنِي أَنْ أَضَعَ عَلَيْهَا الْحِنَّاءَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او بي بي سلمیٰ ﷞ فرمائي ② چې د رسول الله ﷺ د بدن په یوه حصه چې به څه زخم راغې (که هغه د توري، چړې یا د څه داسې څیز د کټ کیدلو په صورت کې به وو) یا په کاڼې، ازغې سره حضور ﷺ زخمي شو، ③ نو ماته به یي حکم راکولو، چې په هغه زخم نکریزي ولګوم (ترمذي)

**حل اللغات:** ① قَرْحَةٌ: د بدن پولۍ او دانې، ② نَكْبَةٌ: زخم،

[1] اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ۳۸۵۸ واحمد فى المسند ۶/ ۴۶۲

[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التداوى بالحناء (رقم-۲۰۵۴) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب الحناء (رقم-۳۵۰۲)

**تسهيلات: قوله**: إِلَّا أَمَرَنِي أَنْ أَضَعَ عَلَيْهَا الْحِنَّاءَ

**په زخم تكريزي لګول**: دَ بدن پولو اودانوته ونيلي شي اودَ چاړه چاقوپه زخم باندي هم دَدي اطلاق كيږي دواړه معاني اخستې شي ليكن دَ پولو معنى به زياته بهتر وی دې دَپاره چه په حديث كښې عموم راشي ځكه چه دَ زخم ذكر روستو پخپله موجود دې.

**قوله**: مَا كَانَ يَكُونُ بِرَسُولِ اللهِ قُرْحَةٌ وَلَا نَكْبَةٌ:

**په نكبة اوقرحة كښې فرق**: مطلق زخم ته هم وائی ليكن كه دَ قرحة نه زخم مراد اخستلو په صورت كښې فرق كول مقصود وی نونكبة به په كاڼړی ياپړې كونكی وغيره زخم باندې حمل كولې شی.

**[٤٥٣٢] دښكر دلګولو مسنونيت**

٤٥٣٢—[٢٩] ()[١] وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَحْتَجِمُ عَلَى هَامَتِهِ، وَبَيْنَ كَتِفَيْهِ، [٣] وَهُوَ يَقُولُ: "مَنْ أَهْرَاقَ مِنْ هَذِهِ الدِّمَاءِ، [٤] فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ لَا يَتَدَاوَى بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوكبشه انمازي ﷺ وايي [٢] چی رسول الله ﷺ به په خپل سر مبارك او د دواړو اوږو تر مينځ ښكر لګولو، [٣] او فرمايل به يې چې كوم سړي د دې وينې نه څه اوباسي، [٤] او بيا هغه د يو ناروغۍ علاج ونه كړي، نو هغه ته به هيڅ نقصان او ضرر نه رسيږي ‹ابوداؤد، ابن ماجه›

**حل اللغات**: ① هَامَتِهِ: سر، كوپړۍ، ② أَهْرَاقَ: تويه ني كره، اوني بهيوله، ③ بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ: يعنى په هيڅ څيز سره،

**د عمر بن سعد مختصر تعارف**: ده په نوم كښې ډير اختلاف دې بعضې عمر اوبعضو عمرو بن سعد او بعضې مسلم هم ونيلي دي. دا غلام وو اوپيغمبر ﷺ دې آزاد كړې وو. (٣) په غزوه بدر أحد او نورو غزواتو كښې شريك شوې وو. (٤)

**وفات**: ٢٢ جمادی الثانی ١٣ ھ سه شنبه دَحضرت عمر ﷺ په دورخلافت كښې وفات شو.

**مرويات**: دَ هغه نه يوځو روايتونه نقل دی چه دَ هغې پوره شميرخودلونه اسماء الرجال والا عاجزدی.

**تسهيلات: قوله**: مَنْ أَهْرَاقَ:

**د اهراق معنى**: په زيات مقداركښې وينه غورزولودَپاره دا لفظ استعماليږي يعنى دَښكر راښكلونه پس به دَ بل څه علاج ضرورت نه پيښيږي.

---

[١] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الطب/باب فى موضع الحجامة (رقم-٣٨٥٩) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب موضع الحجامة (رقم-٣٤٨٤)

**[۴۵۴۴] د بريښ دپاره د ښکر لګول**

۴۵۴۴—[۳۰] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-: [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- احْتَجَمَ عَلَى وَرِكِهِ [۳] مِنْ وَثْءٍ كَانَ بِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ پر خپل ورون ښکر ولګولو، [۳] خکه چې د حضور ﷺ په پښې مباركې كې بريښ راغلي وو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① وَرِكِهِ: ورون، پتون، ② وَثْءٍ: بريښ، بادي درد،

**تسهيلات:** **قوله:** مِنْ وَثْءٍ

**د وثء دوه معاني:** ملاعلي قاري رحمه الله اوعلامه طيبي رحمه الله ليكي چه دا لفظ دَ واؤ په زبر دَ ثاء په سكون او آخر كښې همزې سره دي.

① دَخپې هډوكي ختلو ته وائي.

② غوښه كښې زخم لګيدو ته وائي.

**[۴۵۴۵] دَ فرشتو د طرفه د ښكر لګولو تاكيد**

۴۵۴۵—[۳۱] (²) [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «حَدَّثَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ لَيْلَةِ أُسْرِيَ بِهِ: [۳] أَنَّهُ لَمْ يَمُرَّ عَلَى مَلَأٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا أَمَرُوهُ: [۴] "مُرْ أُمَّتَكَ بِالْحِجَامَةِ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [۵] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د معراج دشپې واقعاتو بيانولو كښ دا هم اوونيل، [۳] چې حضور ﷺ د ملائكو په كوم جماعت تير شو هغوئ (د الله ﷻ د طرف نه) دا حكم واورولو، [۴] چې خپل امت ته (د وينې د اوخكلو د پاره) د ښكر لګولو حكم وركره (ترمذي، ابن ماجه) [۵] او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دي

**تسهيلات:** **قوله:** مُرْ أُمَّتَكَ بِالْحِجَامَةِ:

**د ښكر د اهميت وجه:** په دې حديث سره دَ ښكرلګولو دَاهميت اندازه كيږي. دَدې دَاهميت وجه داده چه امراض دموی دَ فساد دَ وينې نه پيداكيږي خكه چه فساددَوينې دَټولو مرضونو جرړه ده كوم ته چه امراض دموی وائی دَ وينې دَ فشار او فساد سره بلډپريشر پيدا كيږي په كوم سره چه شوګر كيږي. اوشوګر يوقسم مرګ دې دَ امراض دموی دَ ټولو نه لونی علاج وينه ويستل دی كوم ته چه حجامه وائی.

¹) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الطب/باب متى تستحب الحجامة (رقم-۳۸۶۳) والنسائی فی كتاب مناسك الحج/باب حجامة المحرم من علة تكون به (رقم-۲۸۴۸) وابن ماجه فی كتاب الطب/باب موضع الحجامة (رقم-۳۴۸۵)
²) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الحجامة (رقم-۲۰۵۲)

**۵ امت په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَامت څخه مراد صرف عرب دی. څکه چه دَهغوی دَپاره په خاص توګه فائده ورکونکې دې اودا څکه چه دَهغوی ملك ډیر سخت ګرم دې. عام مفهوم اخستل زیات واضح دی.

② دامت څخه مراد پوره امت دې چاته چه دَ دې علاج ضرورت پیښ شی داعام مفهوم دې کفارو اغیارو دَ مسلمانانونه دَهغوی دَعلاج طریقه په زور واخستله اوس هغوی داڅیزونه دَ نافع په ځائی مضر ګرځوی اومسلمانان حکمرانان صرف ګوری.

**[۴۵۳۵] د چیندخې څخه د دوائی جوړولو ممانعت**

۴۵۳۵–[۳۲] () ۞ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ: ۞ «إِنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ، ۞ فَنَهَاهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَتْلِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ او د حضرت عبد الرحمن ابن عثمان ﷛ نه روایت دې ۞ چې یو طبیب د حضور ﷺ نه د چیندخې په دوا کې د شاملولو باره کې پوښتنه وکړه (چې آیا دا درست دې که نه؟) ۞ نو رسول الله ﷺ هغه د چیندخې د وژلو نه منع کړو. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① ضِفْدَعٍ: چیندخ.

**تسهیلات:**

**قوله: عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ**

طبیب دَنبی کریم نه سوال څکه اوکړو چه دَدې نه وړاندې دَ طبیبانودا دستور وو چه په دوائی کښې به ئې چیندخه شاملوله. په اسلامی نقطه نظرسره طبیب سوال اوکړو نبی کریم دَ چیندخې وژلو اودا په دوائی کښې شاملولونه منع اوفرمائیله.

**د چیندخې څخه دوائی جوړولو د ممانعت وجه:** یعنی نبی کریم دَ چیندخې دَ وژلو ممانعت په دې باندې ترس خوړلو یا دَ دې دَتقدس دَ وجې نه نه دې فرمائیلې بلکه نبی کریم دَدې دَ وژلونه منع څکه فرمائیلې ده چه په چیندخې کښې دَ دې دَنجاست اوکراهت طبع په بنیادباندې علاج نشته دې. (مرقات)

**دنبی علیه السلام معجزه:** حافظ فضل محمد صاحب مدظله العالی لیکلی دی زما په خیال کښې دا حدیث دَ نبوت دَعلاماتو نه یوعلامت او معجزه ده څکه چه په پوره دنیاکښې میډیکل تجربات هم په چیندخو باندې کیږی په کروړونو چیندخې بې مقصده وژلې شی. نبی کریم منع اوفرمائیله چه په دې کښې فائده کمه اونقصان زیات وو نجس هم وه اوطبیعت ترې نفرت هم کوی.

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الأدویة المکروهة (رقم-۳۸۷۱)والنسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الضفدع (رقم-۴۳۵۵)واحمد فی السند: ۴۵۳/۳

## [۴۵۳۶] د نبی کریم ﷺ د څټ په رګونو کښې ښکر لګول

۴۵۳۶-[۳۳] (١) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَحْتَجِمُ فِي الْأَخْدَعَيْنِ وَالْكَاهِلِ». ③ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَكَانَ يَحْتَجِمُ لِسَبْعَ عَشْرَةَ، وَتِسْعَ عَشْرَةَ، وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ به د غاړې په دواړو رګونو کې، د اوږو په مينځ کې ښکر لګولو (وينه اوخکله) ③ ابوداؤد، ترمذي رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله دا عبارت هم نقل کړي دي چې حضور ﷺ به په اوولسم، نولسم او يويشتم تاريخ ښکر لګولو.

**حل اللغات:** ① الْأَخْدَعَيْنِ: د غاړې يعنی څټ دواړه رګونه، ② الْكَاهِلِ: دَ اوږو دَمينځ حصې ته کاهل وائی. بلکه دَ سټ لاندې شاته په شپږو مهرو باندې مشتمل پوره حصې ته کاهل وئيلی شی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حديث مفهوم آسان دې. اود ګرانوټکو معانی په حل اللغات کښې ذکرشوی دی

## [۴۵۳۷] په مخصوص ورځو کښې د ښکر لګولو حکم

۴۵۳۷-[۳۴] (٢) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَسْتَحِبُّ الْحِجَامَةَ لِسَبْعَ عَشْرَةَ، وَتِسْعَ عَشْرَةَ وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي ② چې رسول الله ﷺ په به اوولسم، نوولسم، او يويشتم تاريخ ښکر لګول (وينه يې اوخکل) خوښول. شرح السنة.

**تسهیلات:**

**قوله:** كَانَ يَسْتَحِبُّ الْحِجَامَةَ لِسَبْعَ عَشْرَةَ:

**د ښکر لګولو تاريخونه:** يعنی په کومو تاريخونو کې ښکر لګول پکار دی، حديث الباب کې ذکر دی چه نبی کريم ﷺ وفرمائيل چه کوم کس د مياشتی په اولسم او نورلسم او يو يشتم تاريخ باندې ښکر ولګولو نو په دې کښې د هر قسم بيماری شفاء ده،

**په مذکوره تاريخونو کښې د ښکر لګولو وجه:** علماء کرامو ليکلی دی چه په دې کې حکمت دا دې چه د مياشت په شروع کې د سرې وينه په جوش کښې وی او په اخر کښې بلکل کمه يا کمزوره شی، لهذا د مينځ والا حصه ډيره مناسب ده، امام بخاری رحمه الله هم په کتاب

---

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی موضع الحجامة (رقم-٣٨٦٠) والترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحجامة (رقم-٢٠٥١) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب موضع الحجامة (رقم-٣٤٨٣) واحمد فی المسند:١١٩/٣

(٢) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٣٢٢٥

الطب کې د حجامت (ښکر لګولو) متعلق مختلف ابواب قائم کړي دي او يو ترجمه دا هم ده "أي ساعة يحتجم" او په هغې ئې کښې دا مرفوع حديث ذکر کړې دې "احتجم النبي صلى الله عليه وسلم وهو صائم" او يو روايت ئې تعليقاً "احتجم ابو موسى ليلاً" ذکر کړې دې، په بخارۍ کې د اوقاتو د تعيين والا روايت نشته، البته په سنن ابو داود او ابن ماجه کښې روايات شته، او په فيض الباري کې دي "لعل البخاري يشير إلى حديث عند ابي داود فيه تفصيل الأيام للاحتجام الخ "الأبواب والتراجم"

## [۴۵۳۸] د حجامت مخصوص ورځې

۴۵۳۸—[۳۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] " «مَنِ احْتَجَمَ لِسَبْعَ عَشْرَةَ، وَتِسْعَ عَشْرَةَ، وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ [۳] كَانَ شِفَاءً لَهُ مِنْ كُلِّ دَاءٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې په اوولسم، نوولسم او يوويشتم تاريخ ښکر لګوی (وينه اوکاږي) [۳] هغه ته د هري ناروغي نه شفاء ملاويږي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**نوټ:** دحديث تشريح دې څخه وراندې حديث نمبر(۴۵۴۷) په تسهيل کښې اوګورئ.

## [۴۵۳۹] د سه شنبه په ورځ د ښکر لګولو ممانعت

۴۵۳۹—[۳۶] ()[۱] وَعَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-: [۲] «أَنَّ أَبَاهَا كَانَ يَنْهَى أَهْلَهُ عَنِ الْحِجَامَةِ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ [۳] وَيَزْعُمُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَنَّ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ يَوْمُ الدَّمِ [۴] وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يَرْقَأُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي کبشه رضي الله عنها بنت ابي بکره نه روايت دې [۲] چې د هغې پلار به خپل کور والا د نهې (سې شنبې) په ورځ د ښکر د لګولو (د وينې د اوخکلو) نه منع کول، [۳] او د رسول الله ﷺ نه به يې نقل کول، چې د نهې ورځ د وينې د غلبې ورځ ده، [۴] او په دې ورځ کې يو داسې ساعت راځي چې په هغې کې وينه نه بنديږي، انو په دې ورځ د وينې د اوخکلو په صورت کې دا کيدې شي که هغه ساعت راشي او وينه بنده نشي نو د هغې سره هلاکت هم واقع کيدې شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ: دسه شنبې ورځ، د نهې ورځ، (منګل).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّ أَبَاهَا كَانَ يَنْهَى أَهْلَهُ عَنِ الْحِجَامَةِ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ:

---

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب/باب متى تستحب الحجامة (رقم-۳۸۶۱)
[۲] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب/باب متى تستحب الحجامة (رقم-۳۸۶۲)

**د سه شنبه په ورځ د ښکر لګولو ممانعت وجه**: په دې حدیث کښې دنهې په ورځ د وینې ویستلو نه منع کړې شوې ده اووجه ئې داخودلې ده چه په دې کښې یووخت دې په کوم کښې چه که چرې وینه اوویستلې شوه نوکله به بنده نه شي سرې به مرشي اوکیدې شي چه د حضرت آدم علیه السلام دځوئی هابیل وینه قابیل هم په دې ورځ ویستلې وه لهذا دا د وینوتویولوورځ ده. د یزعم لفظ د شك دپاره استعمالیږی نوداحدیث دمرفوع په ځائی موقوف کیدې شي.

**[٣٥٥] د چهارشنبه هفتې په ورځ د ښکر لګولو ممانعت**

٤٥٥٥–[٣٧] ( )[١] وَعَنِ الزُّهْرِيِّ مُرْسَلًا، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] («مَنِ احْتَجَمَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ، أَوْ يَوْمَ السَّبْتِ، [٣] فَأَصَابَهُ وَضَحٌ، [٤] فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، [٥] وَقَالَ: وَقَدْ أُسْنِدَ وَلَا يَصِحُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت زهري تابعي رحمه الله د رسول الله ﷺ نه بطريق ارسال نقل کوي، چه حضور ﷺ وفرمايل[٢] کوم سړي چې د خالي په ورځ يا د چهار شنبي په ورځ ښکر لګوي (وينه اوباسي)[٣] او بيا هغه ته د کوړ (برګي) مرض ولګيږي،[٤] نو هغه دې خپل ځان ملامت کړي. (ابوداؤد احمد)[٥] او ابوداود رحمه الله ويلي دي چې دا حديث (په يو روايت کې) مسندا بيان شوي دي (يعني هغه روايت په راويانو د اعتبار سره متصل دي خو هغه اسناد صحيح نه دي).

**حل اللغات**: ① يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ: د چارشنبې ورځ (بدھ). ② وَضَحٌ: کوړ، برګې مرض، (برص).

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنِ احْتَجَمَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ، أَوْ يَوْمَ السَّبْتِ، فَأَصَابَهُ وَضَحٌ:

**په مذکوره ورځو کښې د ښکر لګولو نقصان**: په دې حديث کښې د هفتې او چارشنبې په ورځ د وينې ويستلو نه منع کړې شوې ده. وَضَحٌ دا د رڼا اووضاحت نه اخستې شوې دې مراد دادې چه په دې ورځوکښې به وينه دومره زياته پريوځی چه سړې به د برګی په مرض کښې راګيرشي وضح برګی مرض ته وائی يعنی د بدن سپينيدل.

**قوله**: فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ.

**په سنت د عمل نه کولو نقصان**: يعنی په يوقانون اوشرعی ضابطه باندې الزام مه لګوئی شريعت خودهغې رهنمائی فرمائيلې ده کله چه هغه په دې باندې عمل اونه کړو نواوس دې خپل ځان ملامت کړی.

[1] اخرجه البغوی فی شرح السنة

## [۴۵۵۱] د چهارشنبه یا هفتې په ورځ د ښکر لګولو ممانعت

۴۵۵۱—[۳۸] (¹)[۱] وَعَنْهُ مُرْسَلًا، قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنِ احْتَجَمَ أَوِ اطَّلَى يَوْمَ السَّبْتِ أَوِ الْأَرْبِعَاءِ [۳] فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ فِي الْوَضَحِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ"

**ترجمه:** [۱] او حضرت زهري رحمه الله بطريق ارسال وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] کوم سړي چې د خالي يا چهار شنبې په ورځ ښکر لګوي (وينه اوکاږي) يا د خپل بدن په يو عضو پلستر لګوي،[۳] نو هغه دې په کوړ [برګی] مرض کې په مبتلا کيدو خپل ځان ملامت کړي (شرح السنة)

**حل اللغات:** ① اطَّلٰى: پلستر اولګوی، ② الْوَضَح: کوړ، برګي مرض، (برص)

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث د مضمون وضاحت دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۵۵۰) په تسهيل کښې تيرشوې دې.

## [۴۵۵۲] د تعويذ حکم

۴۵۵۲—[۳۹] (²)[۱] وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ عَبْدَ اللهِ رَأَى فِي عُنُقِي خَيْطًا، فَقَالَ: مَا هٰذَا؟ [۳] فَقُلْتُ: خَيْطٌ رُقِيَ لِي فِيهِ [۴] قَالَتْ: فَأَخَذَهُ فَقَطَعَهُ، ثُمَّ قَالَ: [۴] أَنْتُمْ آلَ عَبْدِ اللهِ لَأَغْنِيَاءُ عَنِ الشِّرْكِ، [۵] سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "إِنَّ الرُّقَى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ" [۶] فَقُلْتُ: لِمَ تَقُولُ هٰكَذَا؟ لَقَدْ كَانَتْ عَيْنِي تَقْذِفُ [۷] وَكُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلَى فُلَانٍ الْيَهُودِيِّ [۸] فَإِذَا رَقَاهَا سَكَنَتْ،

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ښځه بي بي زينب رضي الله عنها فرمائي[۲] چه يوه ورځ حضرت عبد الله زما په غاړه کې تار پروت وليدلو، نو پوښتنه يې وکړه چې دا څه دي؟ [۳] ماورته اوويل چې دا تار دي، په دې زما د پاره منتر وئيل شوي دي (يعني د منترونو په ذريعه د دې تار کښې اچولو سره ما په خپله غاړه کې اچولي دي)[۴] بي بي زينب رضي الله عنها فرمائي (د دې په اوريدو سره) حضرت عبد الله هغه تار زما د غاړي نه وخکلو، او هغه يې ټکرې ټکرې کړو، بيا يې اوويل[۵] چې اې د عبد الله کور والو! تاسو د شرک نه بې پروا يې .[۵] ما د رسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي چې بلا شبه منتر، تعويذونه او ټوټکي (جادو، طلسم، د دوړ جاهليت شيان) شرک دي،[۶] ما ورته اوويل ته دا خبره څرنګه کوئ (يعني تاسو ګويا د منتر نه پرهيز او د توکل د اختيارولو تلقين کوئ، حالانکه ماته د منتر نه ډيره فائده شويده) زما سترګې د درد نه اوبه ويستلې،[۷] زه به فلاني يهودي ته تلم راتلم، [۸] هغه منتر ويلو سره چې کله سترګه راله دم کړه، نو آرام ورته راغې ،

¹) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۲۳۵
²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی تعليق التمائم (رقم-۳۸۸۳) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب تعليق التمائم (رقم-۳۵۳۰)

[۱] فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: إِنَّمَا ذَلِكِ عَمَلُ الشَّيْطَانِ، [۲] كَانَ يَنْخَسُهَا بِيَدِهِ، [۳] فَإِذَا رُقِيَ كَفَّ عَنْهَا، [۴] إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكِ أَنْ تَقُولِي كَمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۵] "أَذْهِبِ الْبَاسَ، رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي، لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ، شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عبد الله رضی الله عنه اوويل چې (دا ستا ناداني او غفلت دي) او هغه درد او د هغې بنه کيدل د منتر په سبب نه وو، بلکې (په حقيقت کې) هغه د شيطان کار وو. [۲] شيطان ستا سترګې ته زور ورکولو (چې د هغې نه تاته درد محسوسيدو) بيا چې منتر اوويل شو، [او هغه د شيطان کار وو، نو] شيطان تکليف ورکول پريخودل. [۳] ستا د پاره هغه دعا بالکل کافي وه کومه چې رسول الله ﷺ به ويله، چې [۵] أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاءُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا. يعنى اي د خلقو پروردګاره! ته زمونږ ناروغئ لرې کړې، او شفاء راته راکړې (ځکه چې) شفاء ورکونکې ته يې، ستا د شفاء نه علاوه شفاء نشته، داسې شفاء چې ناروغئ باقي پرې نهږدي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① خَيْطًا: تار، ② رُقِيَ: دم درها، ③ لَأَغْنِيَاءُ: ويزاره، بې پرواه، ④ التَّمَائِمَ: دَتميمة جمع ده دانو مرو (او کنجکې) ته وائي. ⑤ التِّوَلَةَ: د جادو تويتکې. ⑥ تَقْذِفُ: د سترګې درد لکه چه څه پکښې غورزيدلې وی، ياد درد په وجه ئې اوبه غورزولې، ⑦ أَخْتَلِفُ: تلم راتلم به، ⑧ يَنْخَسُهَا: زور ورکوی، دباوهی ئې، ⑨ كَفَّ: بند به شو، ⑩ لَا يُغَادِرُ: چه پرې نږدی، ⑪ سَقَمًا: بيماری.

**تسهيلات:** **قوله:** الرُّقَى:

**د حرام دم درها مصداق:** يعنی هغه دم درها په کوم کښې چه دَ يوبت شيطان يا فرعون يا هامان نوم وی يا څه شرکيه کلمه وی ياد کوم معنی چه معلومه نه وی داسې دم درهاکول منع دی.

**قوله:** وَالتَّمَائِمَ

**د تعويذونو دوه قسمونه:** ① په کومو تعويذونو کښې چه دَالله تعالى نوم وی ادعيه ماثوره وی صالح وظائف وی هغه جائز دی.

② هغه دم درها په کوم کښې چه دَ يوبت شيطان يا فرعون يا هامان نوم وی يا څه شرکيه کلمه وی يادکوم معنی چه معلومه نه وی داسې دم درهاکول منع دی. دا فرق پيژندل ډير ضروری دی. شرکی تعويذونه منع دی اوشرعی تعويذات جائز دی.

**د ممانعت مصداق:** عربوبه څه هډوکی اومهرې وغيره واخستل اودَهغې هاربه ئې جوړولو او بيا به ئی دَ ماشومانو په غاړه يا څپه کښې تړلو دَهغوی خيال وو چه په دې سره به دَ بدنظر وغيره نه بچ کيږی. دَ تمائم اصل حقيقت هم دغه دې. بيا په دې کښې وسعت پيدا شو او دَدې اطلاق په عام تعويذونوباندې کيدل شروع شو.

**قوله**: وَالتِّوَلَةَ:

**د تولة وضاحت**: په تاء باندې زیردې واؤ اولام باندې زبردې دَجادو توټکې ته وائی. چه په تارباندې دَ جادوځه توټکې اولولی دې سره ښځه په سړی اوسړې په ښځه باندې عاشق جوړولی شی کوم ته چه په پښتوکښې کوډې وائی په دې کښې عمومًا دَ جادو اودَ شرك عمل کیږی داټول ناجائزدی په دې وجه نبی کریم فرمائیلی دی داټول شرك دې یعنی بې شکه منتر مرنی دانې اوتوټکې شرك دې.

**د بعضو غلقو غلطه تشریح**: بعضې گمراه خلق دَدې حدیث دَ الفاظو صحیح تشریح نه کوی اوعوامو ته وائی چه مطلق تعویذونه منع دی حالانکه دَهغوی دا ویناکول غلط دی. دَ تعویذونو جوړول ثابت دی البته داکاروبارجوړول غلط انداز اختیارول غلط دی نو دَ غلطو خلقو غلط کارته دې غلط اووئیلې شی نه چه مطلق تعویذ ته دې غلط اووئیلې شی

**قوله**: عَمَلُ الشَّیْطَانِ:

**د شیطانی عمل وضاحت**: یعنی دَ شیطان یوه منظم منصوبه وی هغه دَعقائدو اواعمال خرابولودَپاره داسازش کوی. چه اول ئی په ځه ځائی باندې زورکړی بیمارئی کړی نوچه کله انسان ناجائز دم درهاکوی یا په مزارباندې حاضری کولوسره ځادرې غوړوی اویادَغیرالله په نوم باندې نذر اونیاز او حلاله کوی نوشیطان دَهغه ځائی نه گوته اوچتوی نوسړې تیك شی اودَهغه عقیده په دغه غلطو منترونواو توټکوباندې پخه شی.

**قوله**: یَنْفُثُهَا:

**د نفث مفهوم**: یعنی دباووی اووهی ئی. کف: یعنې دا یهودی ملحدچه کله دم کوی نوشیطان هغه ځائی پرېږدی. بیمار گنړې چه دا کمال دَ یهودی دَ منتردې. تاسوله پکاردی چه دَ نبوی ارشاداتومطابق داوظائف لولئی.

**[۳۸۸۳] نشره دشیطان کاردی**

۴۵۵۳-[۳۰] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «سُئِلَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنِ النُّشْرَةِ فَقَالَ: [۳] "هُوَمِنْ عَمَلِ الشَّیْطَانِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷺ وایې [۲] چې د رسول الله ﷺ نه د نشره باره کې پوښتنه وشوه، نو وې فرمایل [۳] چې دا شیطاني کار دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① النُّشْرَةِ: یو سفلی علم دې چه پیریان وغیره پرې دفع کولې شی. په قاموس کی دي چې نشره رقیه یعنی منتر دی، د دی په ذریعه به یې د مجنون او مریض علاج کولی، دا د زمانهٔ جاهلیت د عملیاتو نه یو عمل دی، چې د بتانو او د شیطانانو په نومونو او د هغوئ نه به په اعانت مشتمل وو.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی النشرة (رقم-۳۸۶۸) واحمد فی المسند: ۳/۲۹۴

**تسهیلات:**

**قوله:** النُّشْرَةِ

**د نشرة په تعریف کښې دوه اقوال:** ① علامه طیبی رحمه الله لیکی چه نشره یو رقیه اومنتردې دکوم په ذریعه چه دَمجنون دَجنون علاج کولې شی. اودې ته نشره په دې وجه وائی چه جنات دامرض دَمجنون نه واخلی اواخوادیخوا ئی خوروی

② دایوقسم سفلی عمل دې چه دَ غیب عالم(دَ پیریانوسایه) دَ دفع کولودَپاره کولې شی.

**قوله:** هُوَمِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ:

**په حدیث کښې د نشرة په مراد کښې دوه اقوال:** ① په حدیث کښې چه دکوم نشره ذکر دې داسې معلومیږی چه دې نه دَجادوعمل مراددې.

② دَدې ځخه دَتعویذونواو منترو جنترو عمل هم مراد کیدې شی خو په دې صورت کښې به دَتعویذونو اودم درها نه دَ جاهلیت شرکیه تعویذونه مراد وی اوغلط دم درهابه مرادوی ځکه چه جائزتعویذونه جائزدی.

**[۳۵۵۳] د درې ځیزونوباره کښې د نبی علیه السلام لاپرواهی**

۳۵۵۳-[۳۱] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ:[۲] «مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ[۳] إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا[۴] أَوْتَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً[۵] أَوْقُلْتُ الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِي». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما وایي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل[۲] چه زه د هر عمل نه لاپروایم،[۳] که زه تریاق (زهر مهره، د زهر اثر لري کولو دارو) اوځکم،[۴] یا په غاړه کې منکه (تمیمه) واچوم،[۵] یا د خپل زړه نه او په خپل قصد او ارادي سره شعر ولیکم (یعني خپله اشعار جوړ کرم) ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① تِرْيَاقًا: زهر مهره، د زهرو د اثر لرې کولو دارو، ② تَعَلَّقْتُ: رازوړند کرم، ③ تَمِيمَةً: دانو مرو (او کنجکو) ته وائی.

**تسهیلات: قوله:** وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ:

**د عبدالله ځخه مراد:** دلته دکاتب په غلطئ سره دَمشکوة په نسخوکښې عبدالله بن عمر لیکلې شوې دې داعبدالله بن عمرو بن العاص دې عبدالله بن عمربن خطاب نه دې.

**قوله:** مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا الخ.

**دحدیث پس منظر:** په هغه زمانه کښې به په تریاق کښې شراب یادَمار غوښه شاملولې شوه اوبیابه دَزهرو علاج کیدلو که چرې دا ناجائزځیزونه په تریاق کښې نه وی نوفی نفسه

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی النشرة (رقم-۳۸۶۹) واحمد فی المسند: ۱۶۷/۲

ترياق خوړ يوجائز مرکب نوم دې کوم چه ممنوع نه دې. دغه شان که شرکيه غوټې نه وي صالح تعويذونه وي نو دَ امت دپاره هغه هم منع نه دی اوشعرخوصرف دَنبی کريم دَپاره منع وو.

**دحديث مفهوم:** دَحديث مطلب دادې که چرته زه دَدغه دريوارو څيزونوارتکاب اوکړم نوبيازما هيڅ پرواه نشته دې چه زه دَخه جائز ياناجائز ارتکاب اوکړم بياخويه دَ هر يو نامشروع کار ارتکاب هم جائز شي. که چرې دَدغه ناجائزڅيزونو ارتکاب زه اوکړم کله چه زه دَ دې ناجائز ارتکاب نه کوم نودَدغه دريوارو څيزونو به هم نه کوم

**درې ناجائز کارونه:** ① يوناجائزخوړ ترياق استعمال دې کله چه په دې کښې دَشرابو يا مار غوښه شامل کړې شوی وی نودازمادپاره اوزمادَامت دَټولو دَپاره حرام دی

② يا زه شرکيه غوټې اومرئی په غاړه کښې زوړندکړم نودا شرکيه غوټې زمادَپاره هم اوزمادَ ټول امت دَپاره هم حرام دی.

③ يازه شعر اووايم دازمادَپاره حرام دی البته زمادَامت دَپاره حرام نه دی ځکه چه شعر يوکلام دې. حسنه حسن وقبيحه قبيح. ليکن دَنبوت دَشان سره دا منافی دی چه زه شعرونه وايم شاعر جوړشم اوشعر جوړکړم اودَبل يوشعر نيم وئيل هغه منع نه دی.

**[۳۰۰۰] د داغ لګولو او دم درها کولو حکم**

۳۰۰۰- [۳۲] ()[۱] وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنِ اكْتَوَى [۳] أَوِ اسْتَرْقَى، [۴] فَقَدْ بَرِءَ مِنَ التَّوَكُّلِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مغيره ابن شعبه رضی الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې داغ ولګوي، [۳] يا منتر چف کړی، [۴] نو هغه د توکل نه بري شو. (احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① اكْتَوَى: داغ اولګوی، ② اسْتَرْقَى: دم درها کوی، ③ بَرِءَ: ويزاره شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوِ اسْتَرْقَى، فَقَدْ بَرِءَ مِنَ التَّوَكُّلِ:

**د دم درها په جواز او عدم جواز کښې روايات:**

**دَعدمِ جواز روايات:** ① روايت مغيرة بن شعبة رضی الله عنه ذکردې په دې باب کښې

② حديث ابن مسعود رضی الله عنه اخرجه ابوداؤد وفيه ان الرقى والتمائم والتولة شرك (الحديث)

③ حديث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه الترمذی ۶۷/۲ هم الذين يكتوون ولا يسترقون ولا يتطيرون وعلى ربهم يتوكلون. (الحديث)

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية التعليق (رقم-۲۰۵۵) وابن ماجة رقم الحديث ۳۴۸۹ واحمد فی المسند: ۲۴۹/۴

③ حدیث عمران بن حصین رضی الله عنه اخرجه الطحاوی دا روایت حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت په معنی دې.

**دَ جواز روایات:** ① حدیث انس رضی الله عنه په دې باب کښې ذکر دي

② حدیث بریدة رضی الله عنه اخرجه مسلم وابن ماجه لفظه لا رقیة الامن عین او حمة.

③ حدیث عمران بن حصین رضی الله عنه اخرجه الترمذي في الباب.

④ حدیث جابر رضی الله عنه اخرجه مسلم لفظه نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الرقی فجاء آل عمرو بن حزم فقال یا رسول الله انه کانت عندنا رقیة نرقی بها من العقرب وانت نهیت عن الرقی فعرضوها علیه فقال ما اری بها بأسًا من استطاع منکم أن ینفعَ اخاه فلینفعه.

⑤ حدیث عائشة رضی الله عنها اخرجه الشیخان قالت امر النبی صلی الله علیه وسلم ان یسترقی من العین.

⑥ حدیث عائشة رضی الله عنها اخرجه الشیخان قال رخص رسول الله صلی الله علیه وسلم الرقیة من کل ذي حمة.

⑦ حدیث طلق بن علی رضی الله عنه اخرجه الطحاوي قال کنت مع النبی صلی الله علیه وسلم فلدغتنی عقرب فجعل یمسحها ویرقیة.

⑧ حدیث عمرو بن حزم رضی الله عنه اخرجه ابن ماجه لفظه عرضت او اعرضت النهشة من الحیة علی رسول الله صلی الله علیه وسلم فأمر بها.

⑨ حدیث ابی خزامة عن ابیه اخرجه الترمذي في الباب لا ترد الرقی والدواء من قدر الله شیئًا.

⑩ حدیث ابی سعید الخدري رضی الله عنه في الباب الآتی.

⑪ حدیث اسماء بنت عمیس في الباب الآتی بعده.

**دَ مذکوره روایاتو په مینځ کښې تطبیق:**

① دَ عدم جواز دَ روایاتو محمل هغه عجمی الفاظ دی دَ کوم معنې چه معلومې نه وی خکه چه په هغې کښې دَ کفر اندیښنه ده اودَ جواز دَ روایاتو محمل هغه ادعیه دی کوم چه ماثور اومنقول دی.

② عدم جواز دَ هغه خلقو په حق کښې دې څوک چه رقیه مؤثر بالذات گنړی. کما کانت الجاهلیة تزعمه او روایات دَ جواز محمل هغه صورت دې چه دم درها صرف دَ اسبابو په درجه کښې گنړی لکه څنګه چه په طب کښې دارو دَ علاج معالجه دپاره وی.

③ علامه توربشتی رحمه الله فرمائیلی دی چه اول عدم جواز وو بیا منسوخ شو اجازت اوشو. واستقر الشرع علی الاذن نودا تول روایتونو دَ جواز دَ آثار دَ سلفو نه هم مستفاده کیږی. دې نه علاوه دَ ابواب الدعوات دَ روایتونو نه اجازت معلومیږی.

④ حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی فقد برء من التوکل مطلب دا دې چه بغیر دَ ضرورت نه داغونه لګول دم درها پوک وهلو باندې یقین کونکې دَ توکل دَ اعلیٰ مقام او درمیانه مقام نه بری

او خلاص دي بلکه دَ دې ښکته درجه ورته هم حاصله نه ده. خوکه په مجبورئی کښې ئی داغ اولګولو یا په شرعی حدودوکښې اوسیدلو سره دم درها اوکړه نودَ توکل ښکته درجه ده ته حاصله ده. دا ځکه چه ده دا څیزونه دَ اسبابو په توګه اختیارکړل اودا ئی مؤثر بالذات اونه ګڼړل.

**[۲۵۵۶] د تعویذ باره کښې د عبدالله بن حکیم عقیده**

۴۵۵۶—[۲۳] ()[۱] وَعَنْ عِيسَى بْنِ حَمْزَةَ قَالَ: [۲]«دَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عُكَيْمٍ وَبِهِ حُمْرَةٌ[۳] فَقُلْتُ: أَلَا تُعَلِّقُ تَمِيمَةً؟[۴] فَقَالَ: نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ ذَلِكَ[۵] قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِلَ إِلَيْهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عیسی ابن حمزه رضي الله عنه وایي[۲] چې یوه ورځ زه عبد الله بن عکیم رضي الله عنه ته ورغلم نو ومې لیدل چې د هغه بدن د سرفي په ناروغۍ کې مبتلا وو،[۳] ما ورته اوویل تاسو تعویذ ولې نه اچوئ؛[۴] هغه اوویل چې زه د دې کار نه د الله جل جلاله پناه غواړم،[۵] ځکه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي کوم سړي چې څه شي زوړندوی، یا یې تړي، نو هغه شي ته حواله کول کیږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① حُمْرَةٌ:سور والي ② تُعَلِّقُ: راځړوندوي، ③وُكِلَ: حواله کولې او سپارلې شی

**تسهیلات:**

**قوله: وَبِهِ حُمْرَةٌ:**

**دحدیث مفهوم:** د "ه" ضمیر مرجع عبدالله دی او باء د الصاق دپاره ده، مطلب دا شو چه ددوی مخ او جسم د سرخی طرف ته مائل وو نو ما ورته اوئیل چه تاسو تعویذ ولی نه اچوئ نو دوی د الله تعالی نه پناه اوبښتله چه دا د شرک یو قسم دې یا دوی د تعویذ اچولو نه د الله پناه راوغوښتله ځکه چه دوی په مقام د توکل او رضا باندی فائز وو او دوی تعویذ اچول د مرتبه توکل منافی اوګڼړل اګرچه د نورو دپاره جائز دی.

د حدیث حاصل دا شو چه کوم خلق دا څیزونه مؤثر بالذات ګڼړی نو دوی د الله تعالی د مدد او اعانت نه محرومیږی او دوی ته شفاء نه حاصلیږی، ځکه چه د الله تعالی د مرضی نه علاوه هیڅ یو څیز نه فائده ورکوی او نه نقصان ورکوي نو دحدیث مقصد د تفویض او توکل طرف ته راغب کول دی.

**نوټ:** دتعویذ باره کښې تفصیل وړاندې د حدیث نمبر (۴۳۹۷) په تسهیل کښې تیرشوې دې هغې ته رجوع اوکړئ.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة التعلیق (رقم-۲۰۷۲) واحمد فی المسند: ۴/۳۱۰

## [٤٥٥٧] د دَم کولو د اثر ذکر

٤٥٥٧-[٣٤] (١) ١ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " ٢ «لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او د حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ٢ منتر [يعنى د دَم چف اثر] خو بس په نظر يا د زهر دار حيوان (لکه د لړم وغيره) په چيچلو کې وي. (احمد، ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** ① عَيْنٍ: بد نظر، ② حُمَةٍ: د زهريله حيوان يعنى مار لړم تک ته وائى.

٤٥٥٨-(٢) ١ وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ بُرَيْدَةَ.

**ترجمه:** ١ او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د حضرت بريده رضي الله عنه نه نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** - لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ:

**د دوو بيمارو دپاره دم درها کول:** يعنى دم درها ډير فائده ورکونکې اوبهتر دَ دې دوو قسم بيمارانو دپاره دى.

① څوک چه دَ نظره شوې وى ② څوک چه لړم چيچلې وى. دې نه علاوه دَ نورو مرضونو سقمونو دپاره هم فائده ورکونکې دى. دلته حصر مقصود نه دې خکه چه په نورو احاديثو کښې دَ نورو مرضونو دپاره دم درها کول راغلى دى.

**دګنګوهى تحقيق:** حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى دَ دې معنى داده چه مناسب نه دى چه سړې اضطراراً رقيه اوکړى خو په دې دواړو مرضونو کښې يعنى په حالت دَ اضطرار يعنى بې قرارئى په دې دواړو مرضونوکښې دم درها کول او دې نه علاوه په نورو مرضونو کښې رقيه کول بهتر دى خو ظاهره ده چه په نورو احاديثوکښې دَ نورو مرضونونه هم رقيه کول راغلى دى نودَ نورو مرضونو دپاره هم رقيه جائز ده.

## [٤٥٥٩] د دوو څيزونو دپاره د دم درها کول

٤٥٥٩-[٣٥] (٣) ١ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ " «لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه وايي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ٢ منتر خو بس په نظر يا د

[١] اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ٣٨٨٤ والترمذى فى كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرخصة فى ذلک (رقم-٢٠٥٧) واحمد فى المسند: ٤/٤٣٦
[٢] اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الطب/باب ما رخص فيه من الرقى (رقم-٣٥١٣)
[٣] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الطب/باب ما جاء فى الرقى (رقم-٣٨٨٩)

زهرجن شي په چيچلو او په وينه اثر کوي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① دَمِ: دې نه مراد پوزې وينه ده.

**تسهیلات: نوټ:** د حديث د مفهوم وضاحت دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۴۵۵۸) په تسهيل کښې تيرشوې دې.

**[۴۵۶۰] د تيز نظر سره د تقدير بدليدو ويره**

**۴۵۶۰–[۳۶] ()[۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] «يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ وَلَدَ جَعْفَرٍ تُسْرِعُ إِلَيْهِمُ الْعَيْنُ، [۳] أَفَأَسْتَرْقِي لَهُمْ؟ قَالَ: " نَعَمْ [۴] فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابِقَ الْقَدَرِ لَسَبَقَتْهُ الْعَيْنُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.**

**ترجمه:** [۱] او د بي بي اسماء بنت عميس رضی الله عنها نه روايت دې، چه هغې عرض وکړو [۲] چې يا رسول الله! ﷺ د جعفر طيار رضی الله عنه اولاد (خوبصورته او خوب سيرته دې، په دې وجه هغوی) ته نظر ډير زر لګی، [۳] نو آيا زه د هغوئ د پاره دم وکړم؟ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې هو، [۴] که څه شي تقدير باندې سبقت وړې، نو هغه به نظر وو [يعني د نظر اثر يقيناً يو سخت ترين شي دې، نو د دې دفعيه د پاره دم کول جائز دي] احمد ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات:** ① تُسْرِعُ: ډير زر لګی، ② الْعَيْنُ: نظر، ③ أَفَأَسْتَرْقِي: آيا دم اوکړم؟ ④ سَابِقَ الْقَدَرِ: د تقدير نه مخکښې کيدې شو.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ وَلَدَ جَعْفَرٍ تُسْرِعُ إِلَيْهِمُ الْعَيْنُ، أَفَأَسْتَرْقِي لَهُمْ؟

**د حديث مفهوم:** دَ حضرت جعفر رضی الله عنه اولاد ډير ښائسته وو په کومو چه به بد نظر ډير اثر کولو. نو حضرت اسماء رضی الله عنها دَ حضوراکرم ﷺ نه معلومه کړه چه په دوی باندې دم وغيره پوک وهلې شم که نه؟ نو حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل چه بد نظر خو ډير اثر کونکې دې دَ کوم چه ډير زر اثر کيږی دَ الله تعالی تقدير او قضا هميشه غالب وی که په دې باندې څه څيز غالب راتلو نو بد نظر داسې دې چه په هر څيز به غالب راتلو ولې دَ الله تعالی په تقدير باندې هيڅ څيز غالب نشی راتلې نو په دې وجه بد نظر په دې باندې غالب نشی راتلې

**قوله:** -تُسْرِعُ:

**په بنه صفت ليدو سره د نظر لګيدل:** دَ تاء په ضمه دَ راء په کسره او تاء په فتحه هم ضبط کړې شوې دې په معنی دَ تعجل يعنی دَ هغه ماشومانو دَ صوری حسن په کمال او د معنوی حسن په کمال باندې بد نظر په هغوی باندې زر اثر کوی

() اخرجه الترمذي في السنن كتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرقية من العين (رقم-۲۰۵۹) وابن ماجه في كتاب الطب/باب من استرقى من العين (رقم-۳۵۱۰)

**د اهل سنت والجماعت عقیده:-** اهل سنت والجماعة فرمائی چه په هر شی کښې دَ الله تعالی ذات مؤثر دې بغیردَ هغه دَ حکم نه هیڅ اثر نه کیږی خو دَ بد نظر اثر په حکم دَ الله تعالی ډیر زر کیږی.

**دَ بد نظر تاثیر:-** بعض علماؤ بیان فرمائیلې دی چه عائن ( دَ چا چه نظر لګی) دَ نظر نه زهرژن اثر د معیون (څوک چه دَ نظره شی) بدن ته رسی اودَ دې په وجه معیون بیمار کیږی. دَ عائن دا نظر استعجابی کیږی. بعض وخت یوښکلی څیز ته په استعجابی نظر سره اوکتلې شی نو زر په هغې کښې نقص پیدا شی. یوسړی یوه ډیره ښکلې شیشه اولیدله او وئی وئیل چه څومره ښکلې ده دَ دې اوبه څومره صفا او مزیدارې دی نو زر په هغې کښې چاؤدې راغلو. دغه شان دَ واصلینو کاملینو او عارفینو دَ نظر اثر ډیرو وختونوکښې کافر مؤمن جوړکړی فاسق او فاجر صالح او نیک جوړکړی. شپه ورځ دَ دې مشاهده کیږی.

**[۳۵۶]د نمله دم درها**

۳۵۶-[۴۷]()[۱] وَعَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]«دَخَلَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ، [۳]فَقَالَ: أَلَا تُعَلِّمِينَ هٰذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ [۴]كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي شفاء بنت عبدالله ﷺ وايي[۲] چې یوه ورځ زه دام المؤمنین بي بي حفصی ﷺ سره ناسته وم، چې رسول الله ﷺ تشریف راوړو،[۳] او زماپه لیدو سره يې وفرمایل آیا ته حفصي ﷺ ته د نمله (یعنی د هغه تکلیفجنو دانو چې په ترخ کښې راخیجي) منتر نه ښایې؟[۴] څرنګه چې تا هغې ته لیکل ښودلي دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات :** ① النَّمْلَةِ: دانې پولې، (دا داسې خارښ کوی لکه چه میږی پرې ګرځی څکه ورته نمله وائی.)

**تسهیلات:**

**قوله:** رُقْيَةَ النَّمْلَةِ:

**دحدیث پس منظر:** نمله هغه پولوته وائی چه دَانسان په پوښتو باندې راؤځی او ډیر تکلیف ورکوی. کوم سړې چه په دغه پولوکښې راګیرشی هغه ته داسې محسوسیږی لکه چه دَهغه په بدن باندې میږی ګرځی کیدې شی چه هم په دې وجه دغه پولوته نمله (میږی) وئیلی کیږی. حضرت شفاء به په مکه مکرمه کښې دَدغه نمله دَ لرې کولودَپاره یو منتر لوستلو او دم درها به ئی کوله. کله چه حضرت شفاء اسلام قبول کړو اوهجرت کولو سره مدینې ته راغله نوخپل دامنترئی نبی کریم ته وړاندې کړو نبی کریم دَدې اجازت ورکړو

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب /باب ما جاء فی الرقی (رقم-۳۸۸۷) واحمد فی المسند: ۳۷۲/۶

**قوله**: أَلَاتُعَلِّمِينَ هٰذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ:

**حفصه ته د رقيه نبودلو ترغيب**: اوبيائى اوفرمائيل چه څنګه تاحفصه ته خط اوكتابت اوخودل دامنتردې هغې ته ولې اونه خودلو؟

دَ نبى كريم اشاره دَهغه منترطرف ته وه چه دَعربونښځو به يوڅوكلمات په وخت دَدم درها ونيلى هغه كلمات دادى

العروس تنتعل وتختضب وتكتحل وكل شئ تفتعل غيرانهالاتعصى الرجل

يعنى ناوې به څپلئى اچوى نكريزې او رانجه به لګوى هرڅه به كوى ليكن دَخاوند نافرمانى به نه كوى. نبى كريم په خاص توګه دَحضرت حفصه ﷺ دَ پاره دَدې منتر خودلو حكم څكه اوكړو چه په دې كښې لاتعصى الرجل الفاظ دى په دې كښې په حضرت حفصه ﷺ باندې تعريض دې چه هغې په واقعه دَ شرب عسل كښې دَنبى كريم راز ښكاره كړې وو كومه چه نافرمانى وه اووفاداره ښځه دَخاوند نافرمانى نه كوى

**قوله**: كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ:

**اشكال**: څنګه چه تاحفصه ته خط خودلې وو. په يوحديث كښې دى لاتعلموهن الكتابة ښځوته خط مه ښايئى په دې دواړو احاديثوكښې تعارض دې؟

**داشكال درې جوابونه**: ① په شروع كښې اجازت وو روستودَښځودَ پاره دَ فساد زمان په وجه ممانعت راغلو لكه څنګه چه په شروع كښې جمات ته تلل اودَ جمع دَمونځ اجازت وو مګر اوس نشته دې.

② دَخط اوكتابت ممانعت روستو راغلې دې داقصه مخكينئى ده لهذا دَخط خودلو حكم منسوخ شوې دې

③ په خط اوكتابت كښې ازواج مطهرات ته په خاص توګه اجازت وو باقى دَعامو ښځو دَپاره ممانعت وو

**[۲۵۱۳] د نظر لګيدو يوه واقعه**

۴۵۱۳-[۳۸] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «رَأَى عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَغْتَسِلُ، فَقَالَ: [۳] وَاللهِ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ [۴] وَلَا جِلْدَ مُخَبَّأَةٍ. [۵] قَالَ: فَلُبِطَ سَهْلٌ، [۶] فَأُتِيَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقِيلَ لَهُ: يَارَسُولَ اللهِ! [۷] هَلْ لَكَ فِي سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ؟ وَاللهِ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ. [۸] قَالَ: "هَلْ تَتَّهِمُونَ لَهُ أَحَدًا".

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابو امامه ابن سهل ابن حنيف وايي. [۲] چه يوه ورځ عامر ابن ربيعه ﷺ (زما پلار) سهل ابن حنيف ﷺ په لمبيدو وليدو. نو هغه اوويل [۳] قسم په خداي (د

[۱]) اخرجه مالک فى الموطا كتاب العين/باب الوضوء من العين (رقم-۲) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب من استرقى من العين (رقم-۳۵۱۱)

سهل د بدن او د هغه د رنګ او ډول به څه وایي) ما خو د نن ورځ په شان (داسې خوبصورته بدن هيڅ کله ) نه دي ليدلي.۴ او د پرده نشيني ښځي (خوبصورته ښځي) چمړه هم (د سهل رضي الله عنه په شان نازکه او خوش رنګه) مي نه ده ليدلي.۵ ابوامامه رضي الله عنه وايي چه د عامر رضي الله عنه دا وئيل وو چې داسې محسوسه شوه لکه چې سهل رضي الله عنه وغورځول شو. [يعنې هغه ته د عامر رضي الله عنه داسې بد نظر ولګيدلو، چې بيهوشه کيدو سره وغورځيدوا].۶ هغه پورته کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستل شو. او عرض وشو چې يارسول الله ﷺ ۷ تاسو د سهل رضي الله عنه د علاج د پاره څه تجويز کوئ؟ قسم په خداي دي خو د سر پورته کولو هم قدرت نه لري.۸ حضور ﷺ د سهل رضي الله عنه حالت ليدو سره وفرمايل چې آيا د چا باره کې ستاسو خيال دي، چې هغه د نظره کړي دي؟

**حل اللغات :** ① جِلْدَ: څرمن. ② مُخَبَّأةٍ: په پرده کښې ناسته جينئ. ③ فَلُبِطَ : پرمخې راپريوتلو. ④ تَتَّهِمُونَ: تاسو تهمت لګوئ، ګمان کوئ.

---

۱ فَقَالُوا: نَتَّهِمُ عَامِرَ بْنَ رَبِيعَةَ. ۲ قَالَ: فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامِرًا ۳ فَتَغَلَّظَ عَلَيْهِ، وَقَالَ: ۴ "عَلَامَ يَقْتُلُ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ؟ ۵ أَلَا بَرَّكْتَ؟ اغْتَسِلْ لَهُ). ۶ فَغَسَلَ لَهُ عَامِرٌ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَمِرْفَقَيْهِ ۷ وَرُكْبَتَيْهِ وَأَطْرَافَ رِجْلَيْهِ وَدَاخِلَةَ إِزَارِهِ فِي قَدَحٍ ۸ ثُمَّ صُبَّ عَلَيْهِ ۹ فَرَاحَ مَعَ النَّاسِ لَيْسَ بِهِ بَأْسٌ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ"

---

**ترجمه:** ۱ خلقو عرض وکړو چې هو، د عامر ابن ربيعه رضي الله عنه باره کې زمونږ ګمان دي چې هغه د نظره کړي دي.۲ راوي وايي چه په دي اوريدو سره رسول الله ﷺ عامر رضي الله عنه را وغوښتو.۳ سخته زورنه يې ورکړله، او ورته وي فرمايل۴ چې په تاسو کې څوک ولي د خپل ورور په وژلو پسې لګی.۵ تا سهل رضي الله عنه ته د برکت دعا ولي ونه کړه [يعنی که ستا په نظر کې د سهل رضي الله عنه بدن او رنګ وغيره ښه ښکاره شوي وو، نو تا دا الفاظ ولي ونه ويل؟ بَارَكَ اللهُ عَلَيْكَ چې په هغه ستا د نظر اثر نه کيدو. بيا حضور ﷺ عامر رضي الله عنه ته حکم ورکړو چې] ته د سهل رضي الله عنه د پاره خپل اعضاء و وينځه، او هغه اوبه په هغه واچوه.۶ نو عامر رضي الله عنه په يو لوښي کې خپل مخ، لاس، څنګلي،۷ ګونډې، د دواړو پښو اطراف او لاندی د نامه بدن (يعني ستر) او ارخونه وينځل،۸ او بيا هغه اوبه (چې عامر رضي الله عنه وربانډی تول اعضاء وينځلي وو) په سهل رضي الله عنه واچولی شو (د دي اثر دا شو چې)۹ سهل رضي الله عنه سمدستي ښه شو، اوپه اودريدو سره دخلقوسره داسې روان شوګويا چې په هغه هډو څه شوي نه وو (شرح السنه)

**حل اللغات :** ⑤ فَتَغَلَّظَ : نو غصه شو ورته، اوني رټلو. ⑥ بَرَّكْتَ: چه د برکت دعا دي کړي وي. بارك الله عليك به دي وئيلي وو ⑦ وَدَاخِلَةَ إِزَارِهِ: او لنګ کښې دننه خاني. ⑧ قَدَحٍ: غټه پيالۍ. کاسه. ⑨ صُبَّ : واړولی شوي.

---

۴۵۶۳ — ۱ وَرَوَاهُ مَالِكٌ. وَفِي رِوَايَتِهِ قَالَ: "۲ «إِنَّ الْعَيْنَ حَقٌّ. ۳ تَوَضَّأْ لَهُ"، فَتَوَضَّأَ لَهُ».

**ترجمه:** [۱] او امام مالک هم دا روايت نقل کړې دې او د امام مالك رحمه الله په يو روايت کې دا منقول دي چې حضور ﷺ (د نظره کونکې ته) وفرمايل[۲] چې بد نظر حق دې،[۲] ته د نظر وهلې د پاره اودس وکړه، نو هغه د نظر وهلې د پاره اودس وکړو

**تسهيلات: قوله: قوله:** وَلَاجِلْدَ مُخَبَّأَةٍ

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى عامرد سهل متعلق اووئيل چه دَده څرمن خوداسې نرمه نازكه اوښائسته ده چه ترننه پورې مې داسې ښائسته ځيزنه دې ليدلې بلكه په پرده كښې دَ ناستې جينئى څرمن هم داسې ښكلې نه ده ليدلې.

**قوله:** فَلُبِطَ

**د فلبط په معنى كښې دوه احتمالات:** ① ملاعلى قارى رحمه الله داصيغه دَ ضرب او نصر نه مجهول صيغه گرځولې ده لكه چه داسې محسوس شوه چه سهل پرمخې په زمكه راغورزولې شوې وى

② علامه طيبى رحمه الله داصيغه دَ باب تفعيل نه دَمعروف صيغه اخستې ده اوسهل دَدې فاعل دې لبط پرمخې په زمكه راپريوتو په معنى كښې دې [الكاشف: ۸/۳۳۲]

**قوله:** اغْتَسِلْ لَهُ

**د ناظر په ذريعه د منظور علاج:** يعنى اوس دَخپلو اندامونودَ وينځلو اوبه ده له وركړه علماؤ ليكلى دى چه عاين اوناظر دې غرغرې او اودس اوكړى خپې اودَ زنگونونو اونامه لاندې علاقه دې اووينځى او په يولوښى كښې دې اوبه راجمع كړى اوبيا دې دَ نظره شوى سرې دَ شا دَ طرف نه په هغه باندې راواچوى دادَشريعت حكم دې جائز او نافع دې دَ چا په پوهه كښې راځى كه نه راځى په دې كښې خپل عقل ته دخل وركول بې فائدې دى.

**حكومت وخت دپاره د ناظرپه كور كښې بندول:** قاضى عياض مالكى رحمه الله ليكلى كوم سرې چه دَنظره كولوكښې مشهور وى نودَهغه نه ځان ساتل پكاردى اودَ هغه مخې ته نه راتلل او احتياط كول لازم دې او په حاكم باندې لازم دى چه داسې سرې دې دَخلقو سره يوځائى كيدو نه منع كړى اودې پابندجوړكړى چه صرف كور كښې دې اوسيږى بهردَ وتلوكوشش دې نه كوى. كه غريب وى نودَهغه دَ خوراك څښاك انتظام دې دَبيت المال نه اوكړى مگر ده له دې دَبهر راتلو اجازت نه وركوى

**په ناظرباندې د منظوردپاره د غسل كولووجوب:** علامه مازرى رحمه الله فرمائى چه دَناظر غسل كول اواوبه منظور اليه ته وركول په هغه باندې واجب دى لهذا كه هغه دَدې نه انكاركوى نوهغه به مجبوركولې شى بلكه قيدكولې به شى. يومړكيږى بل وَرته دَاندامونودَوينځلو اوبه نه وركوى داكوم انصاف دې؟

**[۳۵۱۳]د بد نظر څخه پناه غوښتل**

۳۵۱۳—[۴۹]()[۱]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: [۲]«كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَتَعَوَّذُ مِنَ الْجَانِّ وَعَيْنِ الْإِنْسَانِ، [۳]حَتَّى نَزَلَتِ الْمُعَوِّذَتَانِ، [۴]فَلَمَّا نَزَلَتْ أَخَذَ بِهِمَا وَتَرَكَ مَا سِوَاهُمَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، [۵]وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعيد خدري ﷛ وايي[۲] چې رسول الله ﷺ به د جناتو او انسانانو د بد نظر نه پناه غوښتله،[۳] تر دې چې معوذتان [يعنی سورة قل أعوذ برب الفلق او سورة قل أعوذ برب الناس] نازل شو،[۴] نو حضور ﷺ به د دې دواړو په ذريعه دعا غوښتله، او د دې نه علاوه د نورو څيزونو سره پناه غوښتل يې پريخودل (ترمذي ابن ماجه) [۵] او ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:** ①يَتَعَوَّذُ: پناه به ئې غوښتله، ②الْجَانِّ: د جناتو نه، ③عَيْنِ: بدنظر.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَتَعَوَّذُ:

**د حفاظت دپاره د معوذتينو لوستل:** د حديث الباب حاصل دا دې چه نبی کريم ﷺ به د نظر بد ختمولو دپاره د معوذتين د نزول نه مخکې مختلف دعاګانې وئيلې. کله چه د معوذتين نزول وشو نو بيا نبی کريم ﷺ د نورې دعاګانې ډيرې وئيل ترک کړل او زيات به ئې معوذتين سره د نظر بد علاج کولو.

**[۳۵۱۵]د مُغَرِّبُونَ ذکر**

۳۵۱۵—[۵۰]()[۱]وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]«قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ رُئِيَ فِيكُمُ الْمُغَرِّبُونَ؟" [۳]قُلْتُ: وَمَا الْمُغَرِّبُونَ؟ [۴]قَالَ: "الَّذِينَ يَشْتَرِكُ فِيهِمُ الْجِنُّ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. [۵]وَذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ: "خَيْرُ مَا تَدَاوَيْتُمْ" فِي "بَابِ التَّرَجُّلِ".

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷝ فرمايي [۲] چې يوه ورځ رسول الله ﷺ ماته وفرمايل په تاسو کې دننه (يعني په انسانانو کې) مُغَرِّبُونَ ښکاره شوي دي،[۳] ما عرض وکړو چې مغربون څوک دي؟[۴] حضور ﷺ وفرمايل مغربون هغه خلق دي چې د هغوئ سره جنات (يعني شياطين) شريکيږي (ابوداؤد)[۵] او د حضرت ابن عباس روايت خَيْرُ مَا تَدَاوَيْتُمْ الخ په باب التَّرَجُّل کې نقل شوي دي.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرقية بالمعوذتين (رقم-۲۰۵۸) والنسائی فی کتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من عين الجان (رقم-۵۴۹۴) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب من استرقى من العين (رقم-۳۵۱۱)

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الصبی يولد فيؤذن فی أذنه (رقم-۵۱۰۷)

**حل اللغات:** ① رُئِيَ: ښکاره شوی دی. ② الْمُغَرِّبُوْنَ: أي الَّذِيْنَ يَشْتَرِكُ فِيْهِمُ الْجِنُّ: يعنی چاسره چه شيطان شريکيږی زناکار انسانان يا بدکاره جنات مراد دی

**تسهیلات:**

**قوله:** هَلْ رُئِيَ فِيْكُمُ الْمُغَرِّبُوْنَ؟:

**د استفهام نوعیت:** يعنی آيا په انسانانوکښې مغربون ښکاری؟ دلته استفهام دَ تنبيه او استيقاظ دَپاره دې اوهل په معنی دَقددې المغربون دَباب تفعيل نه دَاسم فاعل صيغه ده دَ لرې کولو او لرې کيدو په معنی کښې راځی

**قوله:** قُلْتُ: وَمَا الْمُغَرِّبُوْنَ؟:

**د عائشې رضی الله عنها استفسار:** دَدې مفهوم په تعين کښې چونکه اشتباه وه په دې وجه حضرت عائشه رضي الله عنها پوښتنه اوکړه ومالمغربون يعنی داخلق څوك دی دَدوی حقيقت څه دې دکوم جنس او کومې طبقې سره دَدوی تعلق دې؟

**قوله:** الَّذِيْنَ يَشْتَرِكُ فِيْهِمُ الْجِنُّ

**د مغربون پيژندګلو:** نبی کريم په جواب کښې اوفرمائيل چه مغربون هغه طبقه اوخلق دی چاسره چه دَ جناتو اشتراك عمل دې.

**د اشتراکِ عمل په مفهوم کښې څلوراقوال:** ① دمغربون نه مراد زناكار سړی اوزناکارې ښځې دی چه دَزنا په ذريعه حسب اونسب غيبولوسره خرابوی. بل بعيدنسب خپل نسب کښې شاملوی يا خپل قريب نسب دَ بل بعيدنسب کښې شاملوی اودا ټول کار دَ شيطان په اشتراك عمل سره کيږی په زنابانديې تيارول دَ شيطان عمل او دَهغه کاردې لکه [سورة النور: ۲۱] ﴿يَأْمُرُهُمْ بِالْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ ليکن الله تعالی فرمائی ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰٓى إِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً وَّسَآءَ سَبِيْلًا﴾ [سورة بنی اسرائيل: ۳۲]

② دَمغربو ترجمه لرې کيدل او لريوالې دې اودَدې لفظ يومفهوم او مطلب دادې چه مغربون هغه خلق دی چه دَجماع په وخت دَالله تعالی دَذکرنه لرې وی يعنی دَجماع شروع کولونه اول بسم الله نه وائی اودا دعانه کوی اللهم جنبنا الشيطان وجنب الشيطان ما رزقتنا کله چه دا خلق خپل ځان دَالله تعالی دَذکر نه اودَدې دعانه لرې ساتی نوشيطان رانيزدې کيږی او دَ جماع کونکی سړی ذکرسره خپل ذکررانغاړی او په جماع کښې دې سړی سره شريك شی. دَدې په تنيجه کښې چه کوم اولاد پيداکيږی هغه دَخير اونيکئی نه لرې وی اودَ شيطان په هغه باندې قابو راځی کوم ته چه بعضې توق مار خلق وائی داهلك بې بسم الله پيدا شوې دې.

شارحين حضرات ليکی چه نن صبادَنوی نسل دَ ورانيدو يوه لويه ذريعه هم دا کوتاهی ده.

قرآن عظيم كښې ﴿وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ﴾ [سورة بنى اسرائيل:۶۴] آيت كښې هم دې حقيقت طرف ته اشاره كړې شوې ده

③ مغربون اودَدې داَشتراك عمل بل مفهوم دادې چه په انسانانوكښې دكاهنانواو نجوميانوهغه طبقه ده دَچاچه بعضې شيطانانوسره نيغ په نيغه تعلقات وى چنانچه شيطانان دآسمان نه خبر راوړى دوى ته ئې وركوى اودا جوګيان خلق دا په عامو انسانانو كښې خوروى اودروغ وغيره ورسره ملاؤكړى خپل كاروبار روښانه كوى اوچلوى ئې روميې مفهوم ډيرواضح دې

④ مغربون اودَدې سره داَشتراك عمل بل مفهوم دادې چه دې نه مراد دَ جناتو هغه سړى دى دَ چاچه دَ انسانانو ښځوسره ناجائزتعلقات قائم وى اوهغوى دې ښځوسره زنكوى اودَهغې په نتيجه كښې دَهغوى اولاد پيداكيږى دغه شان جنات انسانانوسره شريك شو انسان چه كله دَخپل دين نه لرې شى نو جن په هغه باندې سوړ شى خكه چه دَحفظت هغه بارختم شى اودحفاظت قلعه ماته شى

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۵۲۶] په انسانى بدن كښې د معدې اهميت

۴۵۲۶-[۵۱] ([1]) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «اَلْمِعْدَةُ حَوْضُ الْبَدَنِ، ③ وَالْعُرُوقُ إِلَيْهَا وَارِدَةٌ، ④ فَإِذَا صَحَّتِ الْمِعْدَةُ ⑤ صَدَرَتِ الْعُرُوقُ بِالصِّحَّةِ، ⑥ وَإِذَا فَسَدَتِ الْمِعْدَةُ ⑦ صَدَرَتِ الْعُرُوقُ بِالسَّقَمِ» "رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د سړي معده د بدن حوض دې. ③ او د نس (خيټې) رګونه (چې د بدن د اعضاؤ سره وابسته دي) د معدې طرف ته [د اوبو څكونكې په شان راځي] ④ هر كله چې معده درسته وي. ⑤ نو دا رګونه د معدې نه د صحت بخش رطوباتو سره [د بدن د اعضاؤ طرف ته] ځي [چې په هغې سره بدن ته صحت او طاقت حاصليږي] ⑥ او هر كله چې معده خرابه شي. ⑦ نو دا رګونه د فاسدو رطوباتوسره [د اعضاؤ طرف ته ځي] چې په هغې سره بدن ته ناروغي او ضعف لاحق كيږي

**حل اللغات:** ① اَلْمِعدَةُ: معده. ② حَوْض: تالاب. كنده. ③ اَلْعُرُوقُ: رګونه. ④ صَدَرَتْ: ځي روان شي (شروع كړى).

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْمِعدَةُ حَوْضُ الْبَدَنِ

**د معدې د حوض سره تشبيه:** يعنى داَنسان دَ بدن او دَده دَ معدې په مينځ كښې چه كوم

[1] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۵۷۹۶

نسبت اورشته اوتعلق دې هغه هم هغه نسبت دې کوم چه دَاوبواو دَ حوض اودَ ونې او دَ فصل په مینځ کښې وی نوځنګه چه دَاوبواوتالاب په غاړه ولاړه ونه دَخپلو جرړو په ذریعه دَ اوبونه دَخپلې بقادپاره حیاتیاتی رطوبات حاصلوی دغه شان انسانی بدن دَمختلف رګونوپه ذریعه دَخپلې معدې نه دَصحت او طاقت رطوبات حاصلوی. نوکه په حوض کښې اوبه صفا اودَ صحت دپاره برابر وی بیا هغه دَ ونې دَ تازګئی سبب جوړیږی اوکه اوبه ترخې او دَصحت دَپاره مضروی نوهغه دَ ونې دَ اوچیدو او دَ تباهئی سبب جوړیږی. داخودَدې حدیث مفهوم اومطلب دې. وړاندې دَنظام هضم متعلق څه لیکل غواړم دې دَپاره چه پوره وضاحت اوشی

## [۴۵۱۷] د لړم چیچلې علاج

۴۵۱۷–[۵۲] ([1]) ① وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«بَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ لَيْلَةٍ يُصَلِّي، فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ، ③ فَلَدَغَتْهُ عَقْرَبٌ، ④ فَنَاوَلَهَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِنَعْلِهِ فَقَتَلَهَا. فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: ⑤ "لَعَنَ اللّٰهُ الْعَقْرَبَ، مَا تَدَعُ مُصَلِّيًا وَلَا غَيْرَهُ - ⑥ أَوْ نَبِيًّا وَغَيْرَهُ" - ⑦ ثُمَّ دَعَا بِمِلْحٍ وَمَاءٍ، فَجَعَلَهُ فِي إِنَاءٍ، ⑧ جَعَلَ يَصُبُّهُ عَلَى أُصْبُعِهِ حَيْثُ لَدَغَتْهُ ⑨ وَيَمْسَحُهَا وَيُعَوِّذُهَا بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ"

**ترجمه:** ① او حضرت علي رضی الله عنه فرمايي ② چې يو ځل د شپې رسول الله ﷺ د مانځه کولو په وخت کې خپل لاس په زمکه ایښي وو، ③ چې د لاس پرګوته لړم وچيچلو، ④ حضور ﷺ د خپل پيزار (څپلی) په ذريعه هغه لړم مړ کړو، او کوم وخت چې د مانځه نه فارغه شو نو وي فرمايل ⑤ په لړم دي د الله جل جلاله لعنت وي، نه مونځ ګذار پريږدي نه غير مونځ ګذار، ⑥ يا دا يي وفرمايل چې نه نبي پريږدي نه غير نبي، ⑦ د دې نه پس حضور ﷺ مالګه او اوبه را وغوښتلې. دواړه يي په يو لوښي کې حل کړل، ⑧ بيا حضور ﷺ هغه شي (چې په لوښي کې وو يعنې اوبه او مالګه) د ګوتې په هغه حصه اچول چيرته چې لړم چيچلي وو ⑨ او ګوته به يي مږله. او قل أعوذ برب الفلق او قل أعوذ برب الناس يي ورباندې ويل، [دا دواړه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دي]

**حل اللغات:** ① فَلَدَغَتْهُ: نو اوني چيچلو، ② عَقْرَبٌ: لړم، ③ فَنَاوَلَهَا: نو اوئې وهله ④ بِنَعْلِهِ: په خپل پيزار سره.

**تسهیلات:**

**قوله: مَا تَدَعُ مُصَلِّيًا وَلَا غَيْرَهُ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① لړم اذيت او تکليف ورکولو نه نه منع کيږی

[1]) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۲۵۷۵

په حالت د مونځ کښې که نبي وي او که ولي وي

② دا لړم ټک ورکول نه پرېږدي که د مونځ په حالت کښې وي او که د مونځ نه غير حالت کښې وي دا جمله د لعنت د مستحق کيدو علت دې ابن ماجه کښې يو روايت د حضرت عائشه رضي الله عنها په حوالې سره نقل دې "لعن الله العقرب ما تدع المصلي وغير المصلي اقتلوها في الحل والحرم" لړم باندې دې د الله تعالى لعنت وي چه دا مونځ کونکې او غير مونځ کونکى بغير د ټک ورکولو نه نه پرېږدي لهذا تاسو لړم لره په حل يا حرم کښې چرته هم اوګورئي نو قتل ئي کړئ

## [٤٥٦٨] د نبي كريم ﷺ د وېښته مبارک برکت

٤٥٦٨-[٥٣] (¹) ① وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَ: ② أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ، ③ وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ ④ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ ⑤ فَأَخْرَجَتْ مِنْ شَعْرِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑥ وَكَانَتْ تُمْسِكُهُ فِي جُلْجُلٍ مِنْ فِضَّةٍ ⑦ فَخَضْخَضَتْهُ لَهُ، فَشَرِبَ مِنْهُ ⑧ قَالَ: فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ ⑨ فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حُمْرَاءَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت عثمان ابن عبد الله ابن موهب وايي ② چې يوه ورځ زما کور والو زه د اوبو يوه پياله راکولو سره أم المؤمنين بي بي ام سلمه ﷞ ته وليږلم، ③ معمول دا وو چې کله به چاته بد نظر ولګيدو، ④ يا به څه ناروغي وه، نو بي بي ام سلمه ﷞ ته به يې يوه پياله ليږله، ⑤ ام سلمه ﷞ به د حضور ﷺ وېښته مبارک راوخکلو ⑥ چې د سپينو په يو لوښي کې به يې ايښى وو، ⑦ او هغه وېښته مبارک به يې په اوبو کې اچولو سره حرکت ورکولو، او بيا به مريض به يې هغه اوبه څکلي [چې د هغې د برکته به ورته الله ﷻ شفاء ورکوله] ⑧ راوي وايي چې ما د سپينو زرو په هغه لوښي کې وکتل، ⑨ نو ماته د حضور ﷺ څو سره وېښتان په نظر را غلل. (بخاري)

**حل اللغات:** ① مِخْضَبٌ: د اوبو ټب، خانک، ② جُلْجُلٌ: جرس، ټلئ (دلته ترې د ټلئ په شان ډبې مراد دي) ③ فَخَضْخَضَتْهُ: نو خوزولو به ئې،

**تسهيلات:**

**قوله: وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ:**

**د نبي عليه السلام په وېښتانو شفا حاصلول:** يعنى هغه وخت معمول دا وو چه څوک به بيمارشونو هغه به خپل لوښي ام سلمه ﷞ کره ليږلو اوحضرت ام سلمه ﷞ سره دَ رسول الله ﷺ وېښته مبارک دَچاندئ په يوه نلئ کښې پراته وو حضرت ام سلمه ﷞ به دَهغه وېښتونه يو يا زيات وېښته راويستل دَ هغه کس دَ پيالئ په اوبوکښې به ئې خوزول دې

¹) اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب ما يذكر في الشيب(رقم-٥٨٩٦)

دپاره چه د وينتو مباركو بركت په اوبو كښې راشي هغه سرې به د خپلې پيالئى دغه مبارك اوبه اختسې اوتلو به اوبه خپل بيماربانديې به ئى د شفاء په غرض سره څكلې.

**قوله**: وَكَانَتْ تُمْسِكُهُ فِي جُلْجُلٍ مِنْ فِضَّةٍ:

**د جلجل څخه مراد**: يعنى دغه وينته حضرت ام سلمه ﷞ د چاندئى په يوډبى اونلكه كښې محفوظ ساتلي وو. جلجل سره دَدې چه جرس اوټلئى ته وائى ليكن دلته د ټلئى په شان ډبې مراد دې چه دچاندئى نه جوړوو اودَدې مقصد دپاره د چاندئى استعمال جائز وو لكه څنګه چه كعبې ته ريښم وراغوستلې شى اوسره زر پرې لګولې شى.

**قوله**: فَخَضْخَضَتْهُ:

**په ضمير كښې دوه احتمالات**: ① ملاعلى قارى ﷫ دلته دا ضمير د جلجل طرف ته راجع كړې دې. هغه فرمائى "اي حركت الجلجل فى الماء" ډبې به ئى په اوبوكښې كيخودلو سره خوزولو. شيخ عبدالحق ﷫ په أشعة اللمعات كښې صراحت سره ليكلى دى چه حضرت ام سلمه ﷞ به وينته مبارك دَهغه سرې د اوبو په لوښى كښې اچولواو حركت به ئى وركولو دې دپاره چه په هغې كښې بركت راشى.

② مضمضته په شان لفظاً اومعنىً دې. يعنى حضرت ام سلمه ﷞ به د نبى كريم وينته د هغه سرې د لوښى په اوبوكښې خوزولو دې دپاره چه په اوبوكښې بركت راشى. دامطلب زيات واضح دې څكه چه دې نه مخكښې حديث كښې تصريح موجود ده چه ام سلمه ﷞ به وينته راوستل چه د چاندئى په ډبى كښې ئى كيخودې وو.

**[٣٥٣] د پوڅكى (خريړى) خواص**

٣٥٩— [٥٣] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ② «أَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالُوا لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③ الْكَمْأَةُ جُدَرِيُّ الْأَرْضِ؟ ④ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ، ⑤ وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ، ⑥ وَالْعَجْوَةُ مِنَ الْجَنَّةِ، ⑦ وَهِيَ شِفَاءٌ مِنَ السُّمِّ".

**ترجمه**: ① او د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دي ② چې د رسول الله ﷺ په صحابه و ﷺ كې څو حضراتو عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ ③ پوڅكى [خريړي] د زمكي چيچك دي؟ ④ رسول الله ﷺ وفرمايل چې نه، بلكي پوڅكى [خريړي] د من د قسم نه دي، ⑤ او د دي اوبه د ستركو د پاره شفاء ده ⑥ او عجوه (چي د كجورو د ټولو نه نفيس او ښه قسم دي) د جنت خرما ده. ⑦ او په دي كې د زهرو نه د شفاء خاصيت دي،

**حل اللغات**: ① الْكَمْأَةُ: پوڅكى، خريړي، كهنمبى، ② جُدَرِيُّ: دانې، پولى، ③ الْمَنّ: مرزان، ④ الْعَجْوَةُ: د مديني اعلى ښه كجورې، ⑤ السُّمّ: زهر،

¹) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب الكمأة والعجوة (رقم-٣٤٥٥) واحمد فى المسند:٢/٥١١

[۱] قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَأَخَذْتُ ثَلَاثَةَ أَكْمُؤٍ أَوْ خَمْسًا أَوْ سَبْعًا [۲] فَعَصَرْتُهُنَّ، وَجَعَلْتُ مَاءَهُنَّ فِي قَارُورَةٍ، [۳] وَكَحَلْتُ بِهِ جَارِيَةً لِي عَمْشَاءَ، فَبَرَأَتْ». [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چه د حضور ﷺ دا ارشاد اوريدو سره مادري يا پنځه يا اووه پوڅکی (خريړې) واخستل، [۲] هغه مي نچوړ کړل (يعني تکولو سره د هغه عرق مي وويستل) او د هغې د عرق نه مي يوه شيشه ډکه کړله، [۳] بيا ما هغه اوبه خپلي يوي وينځې (چي سترګي يي برينبيدلي يعني شب کوری) په سترګو کې واچولي. نو هغه ښه شوه، [۴] دا روايت ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث حسن دي.

**حل اللغات:** ⑨ فَعَصَرْتُهُنَّ: نو نچوړې مي کړل، ⑥ قَارُورَةٍ: شيشه، ⑧ عَمْشَاءَ: شب کورې، چه د شپې ني نظر نه لګی، يا سترګې ني برينبی.

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث د مختلفو الفاظو وضاحت د حديث نمبر (۴۱۸۴) په تسهيل کښې تيرشوې دې

**[۴۵۷۰] د شاتو خاصيت**

۴۵۷۰-[۵۵] (¹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲][۲] «مَنْ لَعِقَ الْعَسَلَ ثَلَاثَ غَدَوَاتٍ فِي كُلِّ شَهْرٍ [۳] لَمْ يُصِبْهُ عَظِيمٌ مِنَ الْبَلَاءِ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲][۲] کوم سړې چې په هره مياشت کې درې ورځې د سحر په وخت کې عسل (شات) څټې، [۳] نو هغه به په څه لوي مصيبت کې نه مبتلاء کيږي

**حل اللغات:** ① لَعِقَ: څټی، ② غَدَوَاتٍ: د غدوة جمع ده، سحر وخت.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ لَعِقَ الْعَسَلَ ثَلَاثَ غَدَوَاتٍ فِي كُلِّ شَهْرٍ لَمْ يُصِبْهُ عَظِيمٌ مِنَ الْبَلَاءِ

**هره مياشت درې ورځې د شاتو استعمال:** په حديث کښې دَهرې مياشت درې ورځې خودلی دی بيا که هغه هرې درې ورځې وی ليکن دَ شروع مياشتې درې ورځې مقررکړې شی نو دَ نظم اوضبط په اعتبارسره به بهتروی البته په نهره څټلوته دَغدوات په لفظ سره اشاره کيدې شی لهذا په نهره باندې اوبوکښې ملاوول اوڅکل پکاردی يادې هسې اوڅټی مګر شرط دادې چه شات خالص وی دَ فارم نه وی نه دَچينونه جوړکړې شوی وی.

**د شاتو بعضې طبی فائدې:**

① طبيبان ليکی چه په نهره باندې شات څکل يا څټل بلغم ختموی

¹) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الطب/باب العسل (رقم-۳۴۵۰) والبيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۳۰

② معده صفا كوي
③ دَمعدې لزوجت او فضلات لرې كوي
④ معده په اعتدال سره گرمه ساتي
⑤ دَ بدن غوټې كولاووي
⑥ دَ بدن استرخاء اوهرقسم بادونه ختموي
⑦ متيازې حيض او دَ ښځو پيښې جاري كوي
⑦ دَمثانې اوگردو كانړي ماتوي
⑧ دَ بدن ردي مادې خارجوي [اشعة اللمعات:۳/۶۵۹]

**[۱۵۷ -۴] دَشفاء دوه لوئي ذرائع**

۴۵۷۱-[۵۲] (¹) ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«عَلَيْكُمْ بِالشِّفَاءَيْنِ: ③ الْعَسَلِ وَالْقُرْآنِ» ". ④ رَوَاهُمَا ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ. ⑤ وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ أَنَّ الْأَخِيرَ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ مَسْعُودٍ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② شفاء وركونكي دوه څيزونه په خان لازم كړئ، ③ يوخو عسل (شهد) دويم قرآن، ④ دا دواړه روايتونه ابن ماجه ﷫ او بيهقي ﷫ په شعب الايمان كې نقل كړي دي، ⑤ او بيهقي ﷫ وېلي دي چه صحيح دا دي چې دويم حديث يعنى عليكم بالشفائين مرفوع (د حضور ﷺ ارشاد) نه دي، بلكي په ابن مسعود ﷛ موقوف دي، يعنى د هغه خپل قول دي.

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَيْكُمْ بِالشِّفَاءَيْنِ:**

**د قرآن نه په شاتو سره او قرآن سره دشفاء ثبوت:** يعنى د ظاهري بيمارو نه ظاهري وباطني شفاء يا ديني او دنياوي بلاوگانو (مصائبو) نه شفاء شهد او قرآن دي
① د شهد متعلق ارشاد دي "فيه شفاء للناس"
② د قرآن كريم متعلق ارشاد دي "وشفاء لما في الصدور"
نومطلب دا شوچه بيمارونه د شفاء دپاره شهد هم استعمالوي او قرآني آياتونوسره دم هم كوئ

**[۴۵۷۲] بې ضرورته د ښكر لګولو نقصان**

۴۵۷۲-[۵۷] (²) ① وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ②«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - احْتَجَمَ عَلَى هَامَتِهِ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُومَةِ. ③ قَالَ مَعْمَرٌ: فَاحْتَجَمْتُ أَنَا مِنْ غَيْرِ سُمٍّ كَذَلِكَ فِي يَافُوخِي، ④ فَذَهَبَ

---

¹) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الطب/باب العسل (رقم-۳۴۵۲) والبيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۲۵۸۱
²) رواه رزين

حُسْنُ الْحِفْظِ عَنِّي، [۵] حَتَّى كُنْتُ أَلْقَنُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فِي الصَّلَاةِ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو كبشه انماري رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د هغه ناروغۍ په سبب چې د بزي (چيلۍ) زهرجنې غوښې خوړلو په وجه ورته لاحق شوي وه، ښكر ولګولو (وينه يې اوخكله) [۳] دحديث راوي د معمر رحمه الله بيان دي چې ما د يو زهرجن شي د خوړلو نه بغير دغه شان په سر ښكر ولګولو، [۴] نو زه د خپلې حافظې د خوبۍ نه محروم شوم، [۵] تر دې چې ماته به په مانځه كې د الحمد د زده كولو ضرورت پيښېدو (زرين)

**حل اللغات:** ① هَامَتِهِ: په كپرۍ خپله كښې، ② الشَّاةِ: چيلۍ، بزه، ③ الْمَسْمُومَةِ: زهريله، زهر ګډ شوې، ④ فَاحْتَجَمْتُ: نو ما حجامه اوكړه، ⑤ سُمٍّ: زهريله، تريخ، ⑥ يَافُوخِي: يافوخ تندې طرف ته تالو دپاسه د سر مينځنۍ حصې ته وائي، ⑦ حُسْنُ الْحِفْظِ: ښه بهترينې حافظه، ⑧ أُلْقَنُ: تلقين به راته كولې شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَاحْتَجَمْتُ أَنَا مِنْ غَيْرِ سُمٍّ كَذٰلِكَ فِي يَافُوخِي.

**بلا ضرورته د ښكر لګولو ممانعت:** يعنې دَ ضرورت څخه بغير ياتجربې نه بغير دَ سر په تالو باندې ښكر اولګولې شي نودې سره دَحافظې قوت ختميږي. دې نه معلومه شوه چه دَ ضرورت څخه بغير نه اپريشن كول پكاردي اونه وينه ويستل پكاردي. كه ضرورت هم وي بيا هم دَتجربه كار په نګرانۍ كښې كول پكاردي. وئيلې شي نيم حكيم خطره دَ ځان او نيم ملا خطره دَ ايمان.

**[۴۵۷۳] د ښكر لګولو ورځې**

۴۵۷۳-[۵۸] (١) [۱] وَعَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -: [۲] يَا نَافِعُ! يَنْبُغُ بِي الدَّمُ، فَأْتِنِي بِحَجَّامٍ [۳] وَاجْعَلْهُ شَابًّا، وَلَا تَجْعَلْهُ شَيْخًا وَلَا صَبِيًّا. [۴] قَالَ: وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۵] "الْحِجَامَةُ عَلَى الرِّيقِ أَمْثَلُ، [۶] وَهِيَ تَزِيدُ فِي الْعَقْلِ، [۷] وَتَزِيدُ فِي الْحِفْظِ، [۸] وَتَزِيدُ الْحَافِظَ حِفْظًا، [۹] فَمَنْ كَانَ مُحْتَجِمًا فَيَوْمَ الْخَمِيسِ عَلَى اسْمِ اللّٰهِ تَعَالَى،

**ترجمه:** [۱] او حضرت نافع رحمه الله وايي چې يوه ورځ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وفرمايل [۲] اي نافع! زما په بدن كې وينه جوش وهي، لږ ښكر لګوونكي (وينه كښوونكي) راوله، [۳] ليكن ځلمې سړي راوله، بوډا يا كوشنى مه راوله [ځكه چې طاقتور سړي به يې په ښه شان راكاږي] [۴] نافع رحمه الله وايي چه د دې نه پس حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وفرمايل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [۵] چې ښكر لګول (وينه اوخكل) په نهاره خيټه زيات ښه دي، [۶] په دې سره په عقل كې زياتوب كيږي، [۷] د كوم سړي چې حافظه نه وي، د هغه حافظه تيزيږي، [۸] او د چا

---

(١) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الطب/باب في أي الأيام يحتجم (رقم-٣٤٨٧)

حافظه چې تيزه وي، په هغې کې اضافه کيږي. ۹ نو کوم سړي چې ښکر لګول (وينه اوخکل) غواړي، هغه دي د الله ﷻ نوم اخستوسره د زيارت (جمعرات) په ورځ وينه اوباسي.

**حل اللغات:** ① يَنْتَهُ: جوش وهي، ② شَابًّا: ځلمي، خوان، ③ شَيْخًا: بوډا، ④ الرِّيقِ: په نهره، ⑤ أَمْثَلُ: ډيرښه دي، فائده مند دي، ⑥ يَوْمَ الْخَمِيسِ: د زيارت ورځ، پنجشنبه (جمعرات).

> ١ وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ، ٢ فَاحْتَجِمُوا يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الثُّلَاثَاءِ، ٣ وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ، ٤ فَإِنَّهُ الْيَوْمُ الَّذِي أُصِيبَ بِهِ أَيُّوبُ فِي الْبَلَاءِ. ٥ وَمَا يَبْدُو جُذَامٌ وَلَا بَرَصٌ إِلَّا فِي يَوْمِ الْأَرْبِعَاءِ أَوْ لَيْلَةِ الْأَرْبِعَاءِ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او په جمعه، خالي او اتوار په ورځ د ښکر لګولو نه پرهيز کوئ. ٢ بيا د سه شنبه او نهي په ورځ ښکر لګوئ، ٣ او د چهار شنبې په ورځ د وينې اوخکلو نه پرهيز کوئ. ٤ ځکه چې د چهار شنبې ورځ هغه ورځ ده چې په هغې کې حضرت ايوب علیه السلام په بلا (ناروغي) کې مبتلا شوی وو. ٥ او د جذام يا کوړ (برګي کيدو) ناروغي د چهار شنبې په ورځ يا د چهارشنبې په شپه ظاهريږي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ⑦ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ: د چارشنبې ورځ (بدھ). ⑧ الْبَلَاءِ: آزمائش، مرض. ⑨ يَبْدُو: ښکاره کيږي. ⑩ جُذَامٌ: يو مرض دې چه اندامونه ورسره رجيږي. ⑪ بَرَصٌ: برګي مرض

**تسهيلات:**

**قوله:** الثُّلَاثَاءِ

**په حديثونو کښې تعارض:** په حديث نمبر (۴۵۴۹) کښې ذکردی چه دنهې په ورځ ښکر مه لګوئ اودلته په حديث کښې دَدې ورځې اجازت هم دې داتضاد دې؟

**دتعارض دوه جوابونه:** ① فضيلت اواجازت دَهغه نهې دَ ورځې باره کښې دې چه دَ هرې مياشتې په اولسم تاريخ باندې راشي دَ هرې نهې دَ ورځې فضيلت اواجازت نشته دې

② دَحضرت کبشه کوم حديث چه تيرشوې دې په هغې باندې کلام دې

**[۴۵۶۳] د مياشتې په اوولسم تاريخ د ښکر لګولو فائده**

> ۴۵۶۳ - [۵۹] (¹) ١ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ٢ «الْحِجَامَةُ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ لِسَبْعَ عَشْرَةَ مِنَ الشَّهْرِ دَوَاءٌ لِدَاءِ السَّنَةِ» ". ٣ رَوَاهُ حَرْبُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْكِرْمَانِيُّ صَاحِبُ أَحْمَدَ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ، هَكَذَا فِي "الْمُنْتَقَى"

**ترجمه:** ١ او حضرت معقل ابن يسار رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د سې شنبې په ورځ په اوولسم تاريخ وينه اوخکل (ښکر لګول) د يوکال د ناروغيو علاج دي. ٣ دا روايت حرب ابن اسماعيل کرماني رحمه الله نقل کړي دي چې د امام احمد بن حنبل رحمه الله

---

¹) رواه رزين

مصاحب [ملګری] دي، او د روايت اسناد داسې (قوي) نه دي چې اعتماد وربانديې وشي د ابن جارود رحمه الله په کتاب، منتقي کې هم داسې منقول دي،

٤٥٨٥-(١) وَرَوَى رَزِينٌ نَحْوَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه**: [١] او دغه شان روايت رزين رحمه الله هم د ابوهريره رضي الله عنه نه نقل کړي دي.

**تسهيلات**: **نوټ**: دحديث شرح ددې څخه وړاندې د حديث نمبر (٤٥٧٣) په تسهيل کښې ذکر شوې دې

# [١] بَابُ الْفَألِ وَالطِّيَرَةِ

**د فال او بدفالۍ بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على أربعة مسائل:**

① النهي عن الطيرة: ١، ٢، ٧، ٨، ٩، ١١، ١٣.

② الرخصة في الفال: ١، ٧، ١٢، ١٣، ١٦.

③ النهي عن اعتقاد تعدى المرض إلى الآخر: ٢، ٣، ٤، ٥، ١١.

④ استعمال الأسباب للتداوي: ٢، ٦، ١٤، ١٥.

**د فال لغوى معنى:** لفظ فال په همزې سره هم مستعمل دې او بغير د همزې نه هم كثير الاستعمال دې په نهايه كښې دى چه فال په خير او شر دواړو كښې مستعمل دې

**د طيره لغوى معنى:** طيرة په كسرې د طاء او په فتحې د ياء سره صرف په شر كښې مستعمل دې پس فال ته عام طور وئيلې شى نيك فال او بد فال وفي القاموس الفأل ضد الطيرة في غالب الاستعمال.

**دفال او طيره په مينځ كښې فرق:** ① د فال اكثر استعمال په خير كښې دې لكه چه يو مريض د صحت نه د نااميدئ په حالت كښې د چانه واورى ياسالم، يا واجد، نو د دې نه دې د صحت او نيك فال واخلى او طيره د اصل وضع په اعتبار سره په شر كښې مستعمل ده، فال مختص بالخير كيدو باوجود كله كله په شر كښې هم استعماليږى والطيرة لا يستعمل إلا في الشر.

② د نهايه نه فهميږى چه د اصل وضع په اعتبار سره فال د طيره نه اعم دې چه فال په خير او شر دواړو كښې مستعمل دې او طيره صرف په شر كښې او بعض وخت په استعمال كښې ترادف وى ③ د احاديثو نه فهميږى چه طيره د فال نه اعم ده (كما في ظاهر قوله عليه

(١) رواه رزين

السلام لا طیرة وخیرها الفال ﴾ د دې فال او طیرة په وزن باندې د دې دواړو د مصدرونو نه علاوه بل یو مصدر مستعمل نه دې نیک فال اختیارول محمود او سنت دې رسول الله ﷺ به د انسان یا د خاني د نوم نه نیک فال نیولو، او طیره یعنی بدفالی اخستل منهی عنه او مذموم دې کما فی حدیث ابن عباس ﴿کان النبی ﷺ یتفاول ولا یتطیر وکان یحب الاسم الحسن﴾ یعنی ښه نوم به رسول الله ﷺ خوښولو او که د چا نوم په بد وو نو هغه به نې بدلولو او ښه نوم به نې پرې کیخودلو دا هم یو قسم تفاول دې ځکه چه د ښه نوم نه د ښه کار د صدور امید کولې شی دا خبره نه ده چه ښه نوم مؤثر بالذات وی

**د تطیره وجه تسمیه**: د تطیر وجه تسمیه دا ده چه اهل عرب به د څه کار دپاره که په سفر کښې د تلو اراده کوله نو مارغۀ به نې شړلو سره والوزولو که هغه به ښی طرف ته والوتلو نو هغه سفر به نې مبارک ګنړلو او نیك فال به نې ترې اخستلو. او که هغه به ګس طرف ته والوتلو نو سفر به نې سپیرۀ ګنړلو او سفر به نې نه کولو.

**دفال د غوره والی اوتطیر د مذموم والی وجه**: فال د غوره کیدو او د تطیر د مذموم کیدو نکته دا ده چه فال کوم چه د اکثر استعمال په اعتبار سره د نیکئ په امیدوارئ کښې استعمالیږی د الله پاك د دربار نه په هر حال کښې د خیر، فضل او د رحمت امید ساتل غوره دي په دې وجه نیك فال هم غوره دې اګر چه کله خطاء شی او په غلطئ کښې پریوخی او طیره کوم چه د اصل وضع په اعتبار سره په شر کښې مستعمل دې هغه مذموم دې ځکه چه د الله پاك نه نامیده کیدل عقلا او شرعا مذموم دي

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۵۲۶] په شریعت کښې د بدفالی نفی

۴۵۲۶-[۱] (¹) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] «لَا طِيَرَةَ، وَخَيْرُهَا الْفَالُ " [۳] قَالُوا: وَمَا الْفَالُ؟ [۴] قَالَ: (الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا أَحَدُكُمْ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۲] چه بدفالي بي حقیقته شي دي. د دې نه ښه خو فال دي. [۳] صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض وکړو یا رسول الله! ﷺ او فال څه شي دي؟ [۴] حضور ﷺ وفرمایل هغه ښه کلمه چې په تاسو کښې یو کس د چا نه واوری او د هغې نه د خپل مراد توقع پیدا کړي. بخاري. مسلم.

**حل اللغات**: ① طِيَرَةَ: بد فالی. بدشګونی. ② الْفَالُ: چه دچانه څه ښه خبره واوری او دهغې نه ښه امید اوتوقع پیدا شی

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب الطیرة (رقم-۵۷۵۴)ومسلم فی صحیح رقم الحدیث ۱۱۰/ ۲۲۲۳ واحمد فی المسند: ۲/۲۶۶

**تسهيلات:**

**قوله: لَاطِيَرَةَ:**

**دطيره د نفي مطلب:** يعنى دَ بدشگونئي اوبدفالئي هيڅ حقيقت نشته دې. دَ نفع نقصان حقيقي مالك دَ الله تعالى ذات دې. دَ نقصان په لرې كولوكښې دَ بدفالئي هيڅ عمل دخل نشته دې. لهذا دَدې طرف ته نسبت كول اوداحقيقي گنړل شرك دې. دَ بدفالئي دَ ذكر نه پس نبي كريم دَ نيك فال تعريف فرمائيلې دې او فرمائي "وخيرها الفال" يعنى دَ دې بدشگونئي نه خو بهتر فال دې.

**قوله: وَخَيْرُهَا الْفَالُ:**

**اشكال:** نبي كريم دَ فال باره كښې اوفرمائيل چه دا دَ طيرة نه ډير ښه دې. دې نه معلوميږي چه په طيره كښې هم څه نا څه ښه شته دې اوحال دادې چه په طيره كښې هيڅ ښه نشته دې؟

**داشكال جواب:** دلته دَ خير لفظ دَ اسم تفضيل په معنى كښې نه دې استعمال شوې بلكه په خپله اصل فعلي معنى كښې استعمال شوې دې لكه "ألصيف أحر من الشتاء" دلته په شتاء كښې دَ حرارت اوگرمائش تصور نه دې چه دَ صيف حرارت دَدې نه زيات وى بلكه دومره خودل دى چه دَ گرمئ موسم گرم وى. دغه شان دَ "وهواهون" صيغه دَ هين په معنى كښې ده.

**[۴۵۷۷] د مرض بل ته د لېږدو مسئله**

۴۵۷۷ــ[۲] (۱) ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«لَاعَدْوَى ٣ وَلَاطِيَرَةَ ٤ وَلَاهَامَةَ وَلَاصَفَرَ ٥ وَفِرَّمِنَ الْمَجْذُومِ ٦ كَمَاتَفِرُّمِنَ الْأَسَدِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چه رسول الله ﷺ اوفرمايل ٢ د ناروغي يو بل ته لګيدل، ٣ بدشګوني (بدفالي) ٤ هامه ، او صفر [دا ټول څيزونه بي حقيقته دي] ، ٥ البته تاسو د جذامي نه داسې تښتئ، ٦ لكه څرنګه چې د زمري نه تښتئ (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَدْوَي: يوه بيماري بل ته لګيدل. ② طِيَرَةَ: بدفالي، بد شګوني، ③ هَامَةَ: د سر كپرئ، (خو دلته ترې ګونګې مارغه نه بدفالي اخستل مراد دي). ④ صَفَرَ: د صفر مياشت سپيره ګنړل ⑤ فِرَّ: تختئ، تيښته كوئ، ⑥ الْمَجْذُومِ: چاته چه د جذام مرض لګيدلې وى، دا داسې مرض دې چه اندامونه ورسره رجيږى ⑦ الْأَسَدِ: زمري،

**تسهيلات:**

**قوله: لَايُعْدِي شَيْءٌ شَيْئًا:**

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الطب/باب الجذام (رقم-۵۷۰۷) واحمد في المسند: ۲/۴۴۳

**دعدمِ عدوی مفهوم**:دا دَ اعدی نه ماخوذ دې دَ کوم معنی چه دَ چامرض وغیره بل ته لګیدل هم دَ دې نه عدوی اسم دې یعنی مرض فی نفسه دَ بل طرف ته متعدی نه وی لکه څنګه چه دَ جاهلیت دَ خلقو ګمان وو هم الله تعالی نې بیمار جوړوی او بیماری ختموی

**د طبیبانوپه نیزاووه قسمه امراض متعدی کیدل**:دَعامو طبیبانو خیال دې چه اوه قسم داسې بیمارئی دی چه دَ یونه بل ته لګی اوهغه دادی.

① تنکې ② جذام ③ دانې پولئی ④ خارښ ⑤ رمد یعنی دَ سترګو خوګیدل ⑥ دَ خلې ګنده بوئی ⑦ وبائی مرضونه.

دَ طبیبانو خبره اودَهغوی تجربات په خپل ځائی لیکن دَ احادیث مقدسه او دَ شریعت تعلیم دادې چه دَ یونه وتل او بل ته دَ بیمارئی لګیدو عقیده لرل اوداګنړل چه صرف هم دَدې بیمار دَ وجې نه ماته دا بیماری لګیدلې ده. وهم پرستی ده

**قوله**: وَلَاطِيَرَةَ:دَدې تشریح دې نه مخکښې حدیث نمبر(۴۵۷۶) په تسهیل کښې شوې ده.

**قوله**: وَلَاهَامَةَ-

**د هامه په مفهوم کښې مختلف اقوال**:دَ عربی لغت په اعتبارسره هامه دَ سر کهوپړئی ته وائی لیکن دلته دَدې لفظ مختلف مفهومونه بیان کړې شوی دی

①دَ هامه نه مراد ګونګې دې. دَعربو عقیده وه چه کله یوسړې څوك قتل کړی نودَمقتول دَ کهوپړئی اوسر نه دَ ګونګی په شان یوه مرغئی راپیداکیږی دا ګونګې چغې وهی چه په ما باندې اوبه اوڅکئی یعنی انتقام واخلئ ترکومې چه دَ مقتول وارثانو قصاص اوبدله نه وی اخستې دا مرغئی فریاد کوی دَ جاهلیت عربو شاعرانو داعقیده په خپلو شعرونو کښې ښه رابنکاره کړې ده

② دَهامه او بوم او بومه نه هم دغه متعارف ګونګې مراد دې دَ ګونګی متعلق دَ عربو خیال وو چه دا چرته هم راشی اودَ چا په کور مکان وغیره باندې کینی نوهغه ځائی وران اوتباه بربادیږی لکه چه دَ ګونګی مقام ویران وجاړ مقام دې

دَعربونه علاوه دَعجم بعضو وهم پرستو جاهلوخلقو هم دَ ګونګی متعلق هم دغه خیال لرلې دې شریعت دغه اوهام مسترد کړی دی

③ دَ هامه نه مراد هغه مرغئی ده چه دَمړی دَ کهوپړئی نه پیداکیږی د جاهلیت په زمانه کښې دَ عربو داعقیده وه چه سړې مړکیږی نودَهغه دَ کهوپړئی نه یوه مرغئی پیداکیږی هغه دَمړی کورته راځی کوم چه دَ دغه کور دَ پاره دَ سپیره توب علامت وی اسلام دا عقیده رد کړه چه داسې قصه صحیح نه ده داخو وهم دې

**قوله: وَلَاصَفَرَ:**

**د صفرپه مفهوم کښې درې اقوال:** ① محمد بن راشد وئیلی دی چه دَ صفر نه دَ محرم نه پس میاشت مراد ده کومه چه دَ جاهلیت خلقو دَ بلاګانو او مصیبتونو دَ نازلیدلو میاشت ګڼړلو سره سپیره ګڼړله. اولکه چه زمونږ په دې زمانه کښې هم دَ صفر میاشت دَ واده ښادئی دَ پاره سپیره ګڼړی. نبی کریم ﷺ ولاصفر فرمائیلوسره دا عقیده باطل اوګرځوله

② اهل عربو به وهم کولو چه دَ سړی په خیټه کښې یو مار دې کوم چه دَ اولږې په وخت کښې چیچل کوی په کوم سره چه سړی ته تکلیف رسی. نووی رحمه الله فرمائیلی په ګمان دَ عربو صفر په خیټه کښې دننه یو قسم چینجې دې کوم چه دَ اولږې وخت کښې چیچل کوی اوکله دَ انسان په بدن کښې درد پیدا کولو سره هلاک کوی هم

③ دَ ولاصفر نه نسیئ رد کول مراد دی یعنی محرم روستو کولو سره دَ صفر میاشت محرم ګرځولو سره میاشت دَ حرام کښې شمیرل. کمافی تفسیرقوله تعالی انما النسئ زیادة فی الکفر. دَ جاهلیت دا ټولې عقیدې باطل کولو سره اوفرمائیل ولاصفر

**قوله: وَفِرَّمِنَ الْمَجْذُومِ:**

**دجذام پیژندګلو:** جذام یوه خطرناکه بیماری ده په کوم سره چه اندامونه غیرمتوزان او سره پړې کیږی

**دجذامی څخه د پرهیزنه کولوروایت:** ① عَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ فَوَضَعَهَا مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ، وَقَالَ: "كُلْ ثِقَةً بِاللّٰهِ، وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ"». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

یعنی نبی کریم دَ جذام والا سړې دَ لاس نه اونیولو اوځان سره ئې دَ خوراك دَپاره کینولو اوونې فرمائیل په الله تعالی باندې یقین لره او توکل باندې خوراك کوه.

**دجذامی څخه د ځان ساتلوروایات:** ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: «كَانَ فِي وَفْدِ ثَقِيفٍ رَجُلٌ مَجْذُومٌ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّا قَدْ بَايَعْنَاكَ فَارْجِعْ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

یعنی یوخل دَجذام والا سړی دَ نبی کریم نه دَ بیعت اخستلو اراده اوکړه نبی کریم پیغام وراولیږلوچه واپس لاړشه مونږ بیعت اوکړو

② دغه شان په زیر بحث حدیث کښې دی چه دَ جذام والاسړی نه داسې تختئی لکه څنګه چه تاسو ازمرې خطرناك ګڼړئی او ترینه تختئی.

**په روایاتو کښې تعارض:** دَزیربحث حدیث په دواړو جملوکښې هم تعارض دې خکه چه په یوکښې دی "لاعدوی" یعنی بیماری یونه بل ته نه اوړی او هم په دې کښې دی چه دَ جذام سړی نه تختئی نودَدې تعارضاتو څه جواب دې؟

**د تعارض څلور جوابونه:** ① دَ جذام والانه دَ تختیدو حکم دَظاهری اسبابو په بنیاد باندې

دي دَحقيقت په اعتبارسره نه دي. دَدې تفصيل دادې چه دَ جذام والا سړي په دې بيمارئی کښې يوبونې وی په عام اختلاط سره هغه بوئی په بل باندې اثرکوی اوبل ته بيماری لګی. دااثر صرف دَ ظاهری اسبابو دَحده پورې وی په حقيقت کښې بيماری دَ الله تعالی په حکم سره راځی. نودَ مجذوم سره دَ عدم اختلاط حکم صرف دَ حفظان صحت دَ اصولو لاندې دي. دَ عدوی او اوريدو راوړيدو دَ اصول لاندې نه دي.

③دَ جذامی سړی متعلق کوم احاديث او احترازات او اجتناب دې هغه "سداً للذرائع" دی مطلب دادې چه په حقيقت کښې بيماری هم الله تعالی راولی ليکن دَخلقو وهم او وسوسه وی اوشك ئی وی چه کيدې شی دا بيماری دَ دغه بيمار سره دَ يوځائی کيدو اولګيدو دَ وجې نه راغلی وی. دغه شان به دَ خلقو عقيدې خرابې شی. نوخلق په دې غلطئی کښې دَ پريوتلونه دَ بچ کولودَ پاره اوفرمائيلې شو ګنی اصل حکم هم هغه دې چه بيماری دَ الله تعالی په حکم سره راځی اودَ يونه بل لګيدو هيڅ حيثيت اوځه حقيقت نشته دې. داخودَ "لاعدوی" سره تعارض دفع شو.

④"لاعدوی" دَعام حکم نه صرف دَ جذام بيماری مستثنی ګرځولې شوې ده چه په دې کښې تجاوز دې باقی کښې نشته دې.

⑤ باقی نبی کريم ته چونکه کامل يقين وو او په الله تعالی باندې ئی مکمل باور وو اودَ حقيقی علت صحيح معرفت ورته وو په دې وجه ئی دَ جذام والا سړې ځان سره کينولو اوخوراك ئی پرې اوخوړلو او نور خلق ئی اوويرول.

**د کرونا وائرس کال** :په کال ۲۰۱۹ کښې د چين په يوښار کوهان کښې د کرونا وائرس په نوم باندې يوه وبا خوره شوه.دا يوه متعدی بيماری وه چې د يوځخه به بل ته لګيدله هغوی هلته خلق په کورنوکښې محصور کړل اواحتياطی تدابير ئې اوکړو نو په دې بيماری باندې ئې د زرګونو خلقو د هلاکت ځخه روسته ځخه حده پورې قابو راوستل خو په ۲۰۲۰ کښې نوره دنيآ کښې هم دا وبا خوره شوه او ټوله دنيآ ئې اوجړقوله. په لکونو خلق ددې وبا په بيماری بيماران شول او په لکونوخلق هلاک شو دا وفا د دووه سونو ځخه زياتو ملکونو کښې خوره شوه او د لاک ډاؤن په نوم باندې ددې وبا ځخه متاثره هر ملک خپلو عوامو ته په کورنو کښې د اوسيدو تاکيد اوکړو. حکومتی او غيرحکومتی ټولې ادارې بندې کړې شوې.امتحانات ملتوی کړې شو.د کال ۲۰۲۰ په ۲۱ مارچ په پاکستان کښې د وفاق المدارس د طرفه په ټول ملک کښې امتحان شروع کيدونکې وو هغه هم ملتوی کړې شو.په ديارلسم مارچ ټولې تعليمی ادارې بندې کړې شوې او دوه درې ورځې پس وريسې مکمل لاک ډاون يعنی ،،ټول کاروبارونه بند،، کړې شول.صرف د خوراکی موادو دوکانونو ته محدود اجازت وو.او د ټولو ځخه د خفګان خبره دا ده چې حرمين شريفين د

رمضان څخه وړاندې هم بند کړې شو او اوس رمضان المبارک کښې هم لږ غوندې خلق په حرمینو کښې مونځونه کوی هغه حرمین چې په رمضان کښې به په کښې د خپې کیخودو ځائې نه وو اوس خالی پراته دی. په عمرو باندې پابندی ده او د سعودی د مذهبی امورو وزیرد ټولې دنیا اسلامی ملکونوته خطونه اولیږل چې تاسو د ۲۰۲۰ د حج تیآریانې فی الحال موقوف کړی په پنځلسم رمضان به تاسو ته نوې خبرې درکولې شی خوهغه پنځلسم رمضان هم تیرشو دویم تاریخ ئې د رمضان آخری ورځې ورکړی دی چې د رمضان په آخرکښې به تاسو ته خبردرکولې شی چې د حج دپاره تیآرې شروع کړئ که نه ؟ اود وروکی اخترڅخه روسته ئې اعلان اوکړو چې په دې کال ۲۰۲۰ کښې به صرف د سعودی خلق حج کوی اوهغه هم صرف لس ذره کسانو ته اجازت دې د سعودی څخه ما سوا د نورې دنیا حاجیان دا ځل حج ته نشی راتلې د سعودی عرب او مصر وغیره ملګونوکښې جماتونو کښې په مونځونو پابندی ده په پاکستان کښې هم د احتیاطی تدبیرونو خپلولو په شرط د ډیر سوچ اوفکرڅخه روسته اجازت ورکړې شو. غرض دا چې دا وبا داسې ده چې ټوله دنیآ ترې متاثره ده. اوس په رمضان کښې د پاکستانی خلقو د غریبۍ او لاچارۍ د وجې د کاروبارونو شروع کولو مشروط اجازت ورکړې شو او د ۳۱ مئ پورې د سرکاری دفترونود چتیو اعلان شوې دې. د امتحانانو نه منعقد کیدو په وجه حکومت پاکستان په اوله مرحله د اتمه صنف پورې ټول طالبان بغیرد امتحان ورکولو څخه پاس کړل او اوس څو ورځې وړاندې ئې دا اعلان هم اوکړو چې د نهم لسم او یولسم اودولسم طالبان هم د امتحان څخه بغیر پاس دی معلومه نه ده چې مخکې به څه کیږی الله تعالی دې دا وبـ د پاکستان اوټولو اسلامی ملکونوڅخه بالخصوص او د ټولې دنیآ څخه بالعموم پورته کړی او مونږ ته دې حفاظت نصیب کړی دنن ورځې آج آخبار د خبر مطابق په ټوله دنیا کښې د کرونا وائرس څخه د متاثره کسانو شمیر (۵۱۲۷۴۳۱) دې په دې کښې (۳۳۰۹۴۶) کسان مړشوی دی او (۲۰۴۴۱۵۳) کسانو ته شفا ملاؤ شوې ده اوپه پاکستان کښې د کرونا متاثرینو شمار (۴۸۰۹۱) دې په دې کښې (۱۰۱۷) کسان مړشوی دی او (۱۴۱۵۵) کسانو ته شفاء ملاؤ شوې ده

## [۴۵۷۸] د متعدی بیمارې نفی

۴۵۷۸ــ[۳] (۱) ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ وَلَا صَفَرَ" ۳ فَقَالَ أعرابيٌّ: يَا رَسُولَ اللهِ! ۴ فَمَا بَالُ الْإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ لَكَأَنَّهَا الظِّبَاءُ ۵ فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيرُ الْأَجْرَبُ فَيُجْرِبُهَا؟ ۶ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَمَنْ أَعْدَى الْأَوَّلَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب لا هامة (رقم - ۵۷۷۰)ومسلم فی ۱۰۱ - (۲۲۲۰) واحمد فی المسند: ۲/۲۶۷

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د يوې ناروغۍ د يو نه بل ته [الوتلو سره] لګيدل، هامه او صفر [د دې ټولو څه حقيقت نشته] ،[۳] يو اعرابي [باندچي (کليوال)] چې د خپلې ناقصې مشاهدې او تجربې په بناء خارښ (کاه) يې متعدي ناروغي ګڼله، د حضور ﷺ دا ارشاد ګرامي اوريدو سره هغه] عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ [۴] نو بيا د هغه اوښانو باره کې به څه وئيل کيږي، چې (د خپلې تندرستۍ او د چمړې د صفايي او پاکي په اعتبار سره) د هوسۍ په شان په ريګستان (صفا ماحول) کې زغلي ګرځي،[۵] ليکن کله چې يو خارښي اوښ د هغې سره يو ځاي شي، نو هغه نور اوښان هم خارښي کړي؟[۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل (ښه دا راته اووايه) چې هغه مخکني اوښ چا خارښي جوړکړو؟ [يعنی د خارښ د پيدا کيدو د پاره دا ضروري نه ده، چې هغه د چا نه الوتو سره ولګي، بلکه څرنګه چې د هغه تندرست اوښانو سره يو ځاي کيدونکي د خارښ والا په اوښ کې د خارښ پيدا کيدل په تقدير الهي سره وي، دغه شان نور اوښان هم خارښي کيدل، د حکم الهي لاندې او د نظام قدرت مطابق وي] (بخاري)

**حل اللغات:** ① الرَّمْلِ: شره، ريګستان، ② الظِّبَاءُ: دَ ظبي جمع ده هوسۍ ته وائي. ③ الأَجْرَبُ: خارښي اوښ، ④ فَيُجْرِبُهَا: نوهغه هم خارښ والاجوړکړی، ⑤ أَعْدَى: دخارښ بيماری پرې راوستې ده.

**تسهیلات:**

**قوله: فَيُجْرِبُهَا:**

**خارښ د يوځنه بل ته منتقل کيدل:** يعنی دغه ټولو صحت مندو اوښانو لره يوخارښ والا اوښ خارښ والاجوړوی نودا دَ يونه بل ته دَ لګيدو اثر دې اودَ يودَ بيمارئی بل ته تجاوز اومتعدی کيدو دليل دې.

**قوله: فَمَنْ أَعْدَى الأَوَّلَ:**

**دبيمارۍ متعدی کيدو نفی:** يعنی دَ ټولو نه مخکښې چه په کوم يواوښ باندې دَ خارښ بيماری راغلې ده هغه چا راوستې ده؟ ښکاره خبره ده چه هغه دَ الله تعالی په حکم اودَ هغه په قدرت سره راغلې ده په دې وجه دَ اوريدو راوړيدو اودَبيمارئی تجاوز اومتعدی کيدو عقيده غلطه ده دابې حقيقت او بې اصل خبره ده.

**د بحث خلاصه:** ددَې قسم احاديثو خلاصه داده چه دَ شارع ﷺ نظريه حقيقی علت او حقيقی سبب باندې وی. انبياء کرام دَ ظاهری اسبابو په ځائی دَاصل حقيقت خبره دَ تعليم په توګه پيش کوی اوعامو خلقو او طبيبانو اوتجربه کارو خلقو نظر په ظاهری اسبابو باندې وی. په دې وجه هغوی دَ ظاهری سبب طرف ته نسبت کوی لکه چه په شروع کښې ليکلې شوی دی.

**[۳۵۷۹] دځلورو شیزونو نفی**

۳۵۷۹—[۴] (۱)وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "(۲)«لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صَفَرَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** (۱) او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل(۲) د يو نه بل ته ناروغي لګيدل، هامه، نوء، او د صفر هيڅ حقيقت نشته. (مسلم)

**حل اللغات:** ① نَوْءَ: دَ نوء جمع أنواء ده يو ستوري يا برج مراد دي ② صَفَرَ: د صفر مياشت.

**تسهيلات.**

**قوله:** وَلَا نَوْءَ

**د نوء په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په نهايه کښې ليکلي دي چه دَنوء جمع انواء ده دَ کوم معنى چه دَقمر اوسپوږمئی دَهغه منازلو ده کوم ته چه نچهتر وائي. دَ قمر او سپوږمئ اته ويش منازل دي دکوم طرف ته چه په قرآن عظيم الشان کښې اشاره ده ﴿ وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ ﴾ [سورة يس:۳۹]

اهل جاهليت به بارانونه هم دې منازل او نچهترونوطرف ته منسوب کول اودامنازل اونچهترونه به ئې دَ باران دَپاره مؤثرحقيقي ګڼل. چنانچه په جاهليت کښې دَعربوخيال وو چه سپوږمئی يا يوستوري ترکومې په دغه منازلو کښې دې فلانکی منزل ته راکوزيږی نوباران کيږی. داعقيده شريعت شرك اوګرځوله.

دَعجم خلق هم بعضې بارانونه هم دې قسم ستورو طرف ته منسوب کوی مثلاً کله چه سهيل ستورې راخيژی نووائی چه دادَ سهيل باران دې يادادَ سهيلئی باران دې. دادګپ باران دې دا دَګپ رئين باران دې. داټول شرکيه عقائد دی.

② دادَ يوستوری راښتل دی اودَبل ډوبيدل دی. اوپه موسم ربيع کښې دا بدلون راځی دَعربو عقيده وه چه دَدې ستورو په راښتلو او ډوبيدلو سره بارانونه کيږی. شريعت دا مسترد کړل اوونی خودل چه باران دَالله تعالى په حکم باندې کيږی په ستورو سره نه کيږی.

**[۳۵۸۰] د غول نفی**

۳۵۸۰—[۵] (۱)وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (۲)" «لَا عَدْوَى وَلَا صَفَرَ وَلَا غُولَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[1] اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح (رقم-۱۰۶ - (۲۲۲۰)

[2] اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح (رقم-۱۰۷ - (۲۲۲۲) وابوداود في السنن رقم الحديث ۳۹۱۳ واحمد في المسند: ۳۱۲/۳

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چه د يو نه بل ته ناروغي لګيدل، صفر او د غول هيڅ حقيقت نشته «مسلم»

**حل اللغات:** ① غول: دَ غول جمع اغوال اوغيلان دي، دا دَ جناتو اوشياطينو يوجنس اوقسم دي کوم ته چه بلا وائی

**تسهيلات:**

**نوټ:** د عدوی اوصفر د نفي وضاحت وړاندې تيرشوې دي هغې ته رجوع اوکړئ.

**قوله:** وَلَاغُولَ

**دغول تعارف:** دَغول اصل حقيقت چړيل دي کوم ته چه پښتو ګډيرچ يعني شيشکه وائی. دادَ جناتو يوقسم دې چه شکل او صورت بدلوی او خلق ويروی دې نه چه څوك اوويريدلو هغه مړ کيږی

**د غول مختلف شکلونه بدلول:**

① دا چړيل کله دَاس په شکل راشي نوڅه ساعت پس دَ سپی په شکل کښې راښکاره شی

② څه وخت پس دَ ويرونکي چړيل په شان دَ ښځې په شکل کښې راځی

③ څه وخت پس دَ يولوئی ديو په شکل کښې راشی.

④ کله دَچرګې اوبچو په شکل کښې کړك کړك کونکې راځی

کتونکې ويريږی خوچه څوك اوويريدلو هغه مړشو اوکه څوك اونه ويريږی نو دا هيڅ هم نه شی کولې

**دغول باره کښې غلطه عقيده:** دَعربوخيال وو چه په ځنګلاتوکښې داقسم جنات اوشيطانان دی چه ځيل رنګ روغن اوشکل اوصورت بدلوی اوخلق هلاك کوی اودَ لارونه ئی اړوی نبی کريم دَهغوی دا عقيده ردکړه چه دَالله تعالی دَ حکم نه بغيرغول اوشياطين هيڅ نه شی کولې تاسو دَدې بې حقيقت خطرې نه خطره مه محسوسوئی اودَدوی دَ مشرانونه پناه مه غواړئی

**دغول د ضرر نفی:** نبی کريم هم دې حقيقت طرف ته اشاره اوکړه چه دَهلاك کولوطاقت دَدې په لاس کښې نشته دې غول اوچړيل صرف ويرول کوی نونبی کريم دَ لاغول فرمائيلو سره دَغول دَ وجودنفی نه ده کړې بلکه دَغول دَدغه کرتبونو او ضررونواونقصاناتونفی ئی کړې ده چه ويريږئی مه دې سره هيڅ نقصان نه کيږی اونه په دې کښې داسې څه طاقت شته چه څوك دَلارې نه واړوی. کوم خلق چه صحرائی اوقبائلی نظام باندې نه پوهيږی هغه دَدې حديث په مفهوم باندې په آسانئی سره نه شی پوهيدلې.

**[۴۵۸۶] د جذامي سره بيعت نه کول**

۴۵۸۶—[۶] (۱) ۱ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: ۲ «كَانَ فِي وَفْدِ ثَقِيفٍ رَجُلٌ مَجْذُومٌ ۳ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۴ " إِنَّا قَدْ بَايَعْنَاكَ فَارْجِعْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمرو بن شريد د خپل پلار نه نقل کوي چې هغه بيان وکړو ۲ چه د بني ثقيف د خلقو کوم وفد چې د رسالت دربار ته راغلي وو، په هغې کې يو جذامي هم وو [هر کله چې هغه جذامي د بيعت د پاره د حضور ﷺ په خدمت کې د حاضريدو اراده وکړه] ۳ نو نبي کريم ﷺ هغه ته يو سړي اوليږلو او ورته يې اوويل ۴ چې مونږ (ستا لاس په خپل لاس کې د اخستو نه بغير) ستا نه زباني بيعت اخستې دي، نو ته لاړ شه [ګويا حضور ﷺ هغه مخې ته راونه غوښتو چې د مجلس حاضرينو ته کراهت محسوس نشي] مسلم.

**حل اللغات:** ① ثَقِيفٍ: بنو ثقيف يوه قبيله ده، ② مَجْذُومٌ: چاته چه د جذام مرض وي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث الباب کښې د جذامي سره د بيعت نه کولو ذکر دې دې څخه معلوميږي چې جذام د يو څخه بل ته متعدي کيږي. او د بعضې احاديثو څخه د متعدي کيدو نفي راغلې ده ددې تفصيل وړاندې د حديث نمبر (۴۵۷۷) په شرح کښې تيره شوې ده هغې ته رجوع اوکړئ.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۵۸۷] د نيک فال نيولو ثبوت**

۴۵۸۷—[۷] (۲) ۱ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَفَاءَلُ ۳ وَلَا يَتَطَيَّرُ، ۴ وَكَانَ يُحِبُّ الِاسْمَ الْحَسَنَ» رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ۱ حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي ۲ چې رسول الله ﷺ به ښه فال اخستو، ۳ او بدفال به يې نه اخستو، ۴ او حضور ﷺ به د ښو نومونو په ذريعه فال اخستل خوښول (شرح السنه)

**حل اللغات:** ① يَتَفَاءَلُ: ښه فال به ئې اخستلو، ② لَا يَتَطَيَّرُ: بدفال به ئې نه اخستلو.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكَانَ يُحِبُّ الِاسْمَ الْحَسَنَ:

**دحديث مفهوم:** ددې مفهوم مخالف دا دې چه نبي کريم ﷺ به بد نوم نه خوښولو او ددې

---

(۱) اخرجه مسلم فى صحيح ۱۲۶/ ۲۲۳۱ والنسائى فى كتاب البيعة/باب بيعة من به عاهة (رقم-۴۱۸۲) وابن ماجه فى كتاب الطب/باب الجذام (رقم-۳۵۴۴) واحمد فى المسند: ۳۸۹/۴

(۲) اخرجه احمد فى المسند: ۲۵۷/۱

نه به ئی بد فالی نیولی حالانکه داسی نه ده او په "ولا یتطیر" کښې عموم دې او نبی کریم ﷺ به بد نوم په خه نوم سره بدلولو، ددې نه د امام طیبی رحمه الله دهغه قول ضعف هم معلومیږی، چه دا د نبی کریم ﷺ د تفاول بیان دې،چونکه نبی کریم ﷺ به ددې نه تجاوز نه کولو او په دې باندې د حضرت انس ﷺ او د حضرت بریره ﷺ حدیث دلالت کوی لکه کوم چه مخکښې راغې

**[۴۵۸۳] شیطانی اعمال**

۴۵۸۳–[۸] ( )[۱] وَعَنْ قَطَنِ بْنِ قَبِيصَةَ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲]«الْعِيَافَةُ وَالطَّرْقُ وَالطِّيَرَةُ مِنَ الْجِبْتِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت قطن ابن قبیصه د خپل پلار نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د عیافه، طرق او شګون بد (بدفال اخستل) دا ټول څیزونه د جبت نه دي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْعِيَافَةُ: د مرغۍ د الوتلو د سمت او آواز وغیره نه ښه او بدفال اخستلو فن ته عیافه وائی. ② الطَّرْقُ: ښاورې ویشتلو سره ښه او بدفال اخستلو ته وائی. ③ الطِّيَرَةُ: بدفالی، ④ الْجِبْتِ: جادو او کهانت، یا دا چه شیطانی کارونه دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْعِيَافَةُ.

**دعیافت صورت:** عیافه په عربو کښې یو فن ګڼړلې شو اوپه دې سره دفال ویستلو یوعام رواج وو. ددې به دا صورت وو چه یوسړی به یوه مرغئی شړله او الوزوله به ئی یابه هغه پخپله والوتله نودې سړی به کتل چه دغه مرغئی نوم څه دې ددې آواز څنګه دې او کوم طرف ته په کوم انداز سره الوزی ددې ټولو څیزونو نه به عربو فال ویستلو زیات به ئې دمرغئی په نوم او دهغې په آوازسره فال ویستلو

**دعیافت مثالونه:**

① د الوتونکې مرغئی نوم که چرې عقاب وو نودهغې نه به ئی دعقوبت بدفالی اخستله
② که چرې غراب یعنی کارغه به وونودې نه به ئی دغریب الوطن اود سفربدفالی ویستله.
③ که چرې نوم به ئی ملاچرګك وو نوددې نه به ئی هدایت او لارخودنه مراد اخستله.

**په عیافة او طیره کښې فرق:** په عیافه اوطیره کښې دومره فرق دې چه طیره عام ده که هغه مرغئی وه که ځناور یا انسان وی ددې نه بدفالی اخستلوته طیره وائی. لیکن عیافه دمرغو نومونو او آوازونوسره خاص ده. نن صباهم دغه شان وهمی خلق موجود دی چه په دې مرض کښې اخته دی.

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الخط وزجر الطیر (رقم-۳۹۰۷) واحمد فی المسند: ۴۷۷/۳

**قوله:** الطَّرْقُ

**د طرق په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَعربوخلقو به په شګه وغیره باندې مختلف هندسې لیکلې دغه شان به ئې کرښې رابنکلې او زائچې به ئې جوړولې اودې نه به ئې خپل مطلب ویستلو لکه څنګه چه علم رمل اوجفروی داهم شریعت منع کړی دی.

② طرق کانړی ویشتونکوته وائی په عربوکښې دَ فال ویستلو یوداصورت هم ووهغه خلقو به دَخپل مطلب معلومولودَپاره په هواکښې کانړی ویشتل اوخاوره یا ایره وغیره به ئې شیندله کوم طرف ته چه به خاوره اوایره ډیره والوتله دې خلقوبه هم دغه طرف ته سفرکولو بل طرف به ئې سپیره ګڼړلو. زمونږ طرف ته به یو ښکاری سړی په یوه وړه شان تهیلئی کښې ایره ساتله اوبیابه ئې په ګوته باندې داپه مینځ کښې وهله کوم طرف ته چه به زیاته ایره تلله هغه سړې به هم هغه طرف ته ښکارله تللو. شریعت دامنع کړل چه وهم پرستی ده.

**قوله:** الْجِبْتِ

**دجبت په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَ جبت نه مراد شیطان دې نودَحدیث مطلب به داشی چه داټول کارونه شیطانی دی. شیطان دا خوښوی اوخلق دَدې طرف ته تیاروی.

② لفظ دَ جبت نه یا جادو اوکهانت مراددې نومطلب به داشی چه دَمرغو په تیریدو سره اودَهغوی په آواز او نومونو سره کانړی غورزولو سره او خاورې شیندلوسره بدشګونی نیول اودې سره فال ویستل یا رمل او زائچه په ذریعه حالات معلومول ټول په ټول دَ جادو اوکهانت په حکم کښې دی کوم چه دَشرک کارونه دی.

**[٤٥٨٣] په بدفالی د شرک اطلاق**

٤٥٨٣–[٩] (١) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[٢] «اَلطِّيَرَةُ شِرْكٌ» قَالَهُ ثَلَاثًا" [٣] وَمَا مِنَّا إِلَّا، وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ» ". رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، [٤] وَقَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيْلَ يَقُوْلُ: كَانَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ يَقُوْلُ فِي هٰذَا الْحَدِيْثِ: [٥] «وَمَا مِنَّا إِلَّا، وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ». هٰذَا عِنْدِيْ قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ.

**توجمه:** [١] اوحضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٢] چه بدفالي اخستل شرك دي، حضور ﷺ (د زیات نه د زیات اهمیت د ظاهرولو د پاره) دا خبره دري څله وفرمایله (چي خلق د دې نه پرهیز وکړي) [٣] او په مونږ کې چې کوم

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الطیرة (رقم-٣٩١٠) والترمذی فی کتاب السیر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الطیرة (رقم-١٦١٤) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب من کان یعجبه الفال ویکره الطیرة (رقم-٣٥٣٨) واحمد فی المسند: ٤٣٨/١

سړي داسې وي اچې د هغه په زړه کې کله د بدشگونۍ (بدفالۍ) په ذريعه تردد او خلجان پيدا کيږي] نو الله ﷻ هغه په هغې باندې د باور او اعتماد کولو نه منع کوي، [يعنى دا د ايمان تقاضه ده چې د څه کار او سفر د قصد او ارادې په وخت څه شې ظاهر شي چې د هغې سره بتقضايي بشريت په زړه او دماغ کې څه وهم او تردد پيدا شي، نو په هغه وهم او تردد قطعًا باور او اعتماد ندې کول پکار، بلکې په الله ﷻ د توکل او يقين ساتلو سره هغه کار دې وکړي، يا په هغه سفر دې لاړ شي] (ابوداؤد ترمذي)۞ او ترمذي رحمه الله وايي چه ما د امام بخاري رحمه الله نه واوريدل، فرمايل يې چې زما استاد او شيخ حضرت سليمان ابن حرب رحمه الله د دې حديث باره کې فرمايل چې د حديث دا عبارت: ۞ اِلَّا، وَلٰكِنَّ اللهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ زما په نزد د ابن مسعود رضي الله عنه قول دى (نه چې د حضور ﷺ ارشاد دى).

**حل اللغات:** ① الطِّيَرَةُ: بدفالى، بد شگونى.

**تسهيلات:**

**قوله:** الطِّيَرَةُ شِرْكٌ:

**بدفالى ته د شرك ويلو وجه:** كه دَ بدشگونئى څوك پخه عقيده لرى اوبدشگونى قطعى او يقينى امر گنړى نوداشرك جلى دې كوم چه حرام دې اوكه چرې دَعام عادت مطابق دَ دستور او رواج په توگه بدشگونى كوى نودا شرك خفى دې. دَ شرك خفى مطلب به داشى چه دا دَمشركانو په طريقو اودَهغوى په عادتونوكښې دې.

**قوله:** وَلٰكِنَّ اللهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ:

**په الله باندې توكل كول:** يعنى دَ وهم پرستئى نه دَ بچ كيدو علاج دادې چه سړې په هره معامله كښې په الله تعالى باندې يقين اوساتى اوشكوك او شبهات مستردكړى اوداعقيده اوساتى چه په كائنات كښې چه كوم څه تغير اوتصرف كيږى هغه صرف اوصرف دَ الله تعالى په قدرت كښې دې. ايام،اوقات اوانسانانو اودَهغوى دَ حالاتو سره دَدې هيڅ تعلق نشته. زمونږ نظام دَالله تعالى په كارونوباندې اثرانداز نه دى بلكه دَالله تعالى نظام زمونږ په كارونو باندې اثرانداز دې.

**دامام ترمذى د قول مطلب:** دَ دې روايت په آخره كښې امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه مادَ امام بخارى رحمه الله نه اوريدلى دى هغوى فرمائيل چه "ومامنا"دَآخره پورې داكلام دَ ابن مسعود رضي الله عنه خپل كلام دې مرفوع حديث نه دې.

........

[۴۵۸۵] د نبی کریم ﷺ د جذامي سره طعام خوړل

۴۵۸۵-[۱۰] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ [۳] فَوَضَعَهَا مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ [۴] وَقَالَ: "كُلْ ثِقَةً بِاللّٰهِ [۵] وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دي [۲] چې یوه ورځ رسول الله ﷺ د یو جذامي لاس اونیولو [۳] او هغه یې د طعام په پیالۍ کې د ځان سره شریک کړو، [۴] او وې فرمایل چې خوره، زما په الله ﷻ اعتماد او باور دي، [۵] او زه د هغه په ذات توکل کوم. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① مَجْذُومٍ: چاته چه د جذام مرض لګیدلې وی، دا داسې مرض دې چه اندامونه ورسره رژیږی ② الْقَصْعَةِ: کاسه، ③ ثِقَةً: اعتماد، ایمان،

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث وضاحت وړاندې د حدیث نمبر (۴۵۷۷) په شرح کښې تیرشوي دي.

[۴۵۸۶] د بدفالۍ نفی

۴۵۸۶-[۱۱] (²) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «لَا هَامَةَ وَلَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ. [۳] وَإِنْ تَكُنِ الطِّيَرَةُ فِي شَيْءٍ [۴] فَفِي الدَّارِ، وَالْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت سعد ابن مالك رضی الله عنه نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] نه هامه څه شي دي، نه د یو نه بل ته ناروغي لګیدل څه حقیقت لري، [۳] او نه په بدشګون (بد فال) کې څه حقیقت شته، [که په څه څیز کې بدفالي وي] [۴] نو په کور کې، په آس کې او په ښځه کې به وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① هَامَةَ: د سر کپری، (خو دلته ترې ګونګې مارغه نه بدفالي اخستل مراد دی) ② عَدْوَى: یوه بیماری بل ته لګیدل، ③ طِيَرَةَ: بدفالی، بدشګونی، ④ الْفَرَسِ: اس.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنْ تَكُنِ الطِّيَرَةُ فِي شَيْءٍ فَفِي الدَّارِ، وَالْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ:

فَفِي الدَّارِ

**په روایاتو کښې تعارض:** بعضې احادیثو کښې مطلقًا دَ هرقسم څیزنه بدشګونی نهی او ممانعت ذکر دې اوپه زیربحث حدیث او دغه شان په بعضې احادیثو کښې دَاس کور او ښځې وغیره اوبعضې څیزونو کښې نحوست ثبوت راغلې دې دا ښکاره تعارض دې.

**دتعارض درې جوابونه:** ① حضرت ابوهریره رضی الله عنه راوی دَحدیث پخپله بیان کړې ده هغوی

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الطیرة (رقم-۳۹۲۵) والترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الأکل مع المجذوم (رقم-۱۸۱۷) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب الجذام (رقم-۳۵۴۲)

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الطیرة (رقم-۳۹۲۱) واحمد فی المسند:۱/۱۸۱

فرمانی چه په کورکښې دَنحوست مطلب دادې چه هغه تنګ وی په اس کښې نحوست دادې چه دې سرکش وی او په ښځه کښې نحوست دادې چه بدزبان اوبداخلاقه وی.

④په زیربحث حدیث کښې دَنبی کریم کلام دَ فرض اوشرط په توګه دې چه فرض کړه که دَ دنیاپه یوځیزکښې نحوست وې نو په دې دریوځیزونوکښې به وې لیکن دَنحوست عقیده لرل صحیح نه دی لهذا په دې دریوارو ځیزونوکښې هم نحوست نشته دې قاضی عیاض رحمه الله هم دغه توجیه کړې ده که چرې په یوځیزکښې نحوست وې نو په دې دریوځیزونوکښې دَدې موقع محل او امکان وو لیکن چه کله په دې کښې نشته دې نو په هیڅ ځیزکښې نشته دې

④ دَ ظاهری اسبابو په اعتبارسره دَدې دریوارو ځیزونو نحوست دَعام احادیثونه مستثنی ګرځولې شوې دې چه په طبعی توګه په دې ځیزونوکښې دَ نحوست دخل دې مؤثرحقیقی خوصرف دَالله تعالی ذات دې.

**[۴۵۸۷]د نیک فالی په توګه ښه نومونو خوښول**

۴۵۸۷—[۱۲] (١)[١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [٢]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَةٍ[٣]أَنْ يَسْمَعَ: يَارَاشِدُ، يَانَجِيحُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] او د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې[٢] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به د څه کار د پاره بهر وتلو، نو دابه ورته ښه معلومیده[٣] چې د چا د ژبې نه دا واورې چې اې راشد اې نجیح ایعنی د څه کار د پاره د تلو په وخت داسې نوم او الفاظ اوریدل نیک فال دې[ (ترمذی)

**حل اللغات:** ①يُعْجِبُهُ: ښه به ورته معلومیده، ②رَاشِدُ: نیک بخت، په نیغه لار، ③نَجِيحُ: کامیاب.

**تسهیلات:** كَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَةٍ أَنْ يَسْمَعَ: يَارَاشِدُ، يَانَجِيحُ

**په ښه نوم سره ښه فال نیول:** ددې وجه هم هغه ده کومه چه منقول ده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به ښه فال خوښولو او طیره به نې نه خوښوله، څنګه چه په "الجامع" کښې ابن ماجه په روایت د حضرت ابو هریره رضی الله عنه او حاکم په روایت د حضرت عائشه رضی الله عنها منقول دی

**[۴۵۸۸]په نوم سره فال نیول**

۴۵۸۸—[۱۳] (٢)[١] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [٢]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ لَا يَتَطَيَّرُ مِنْ شَيْءٍ[٣] فَإِذَا بَعَثَ عَامِلًا سَأَلَ عَنِ اسْمِهِ[٤] فَإِذَا أَعْجَبَهُ اسْمُهُ فَرِحَ بِهِ[٥] وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ.[٦] وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهُ رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ.[٧] وَإِذَا دَخَلَ قَرْيَةً سَأَلَ عَنِ اسْمِهَا[٨] فَإِنْ أَعْجَبَهُ اسْمُهَا فَرِحَ بِهِ[٩] وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ[١٠] وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهَا[١١] رُئِيَ كَرَاهَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(١) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۱۶۱۶

(٢) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الطیرة (رقم-۳۹۲۰) واحمد فی المسند: ۵/ ۳۴۷

**ترجمه**: [۱] او د حضرت بريده ﷺ نه روايت دي [۲] چې رسول الله ﷺ به د يو څيز نه بدفال نه اخستلو، [۳] او هر کله چې يو عامل (کارکن) به يې د يو کار د پاره ليږلو، نو د هغه د نوم به يې پوښتنه کوله، [۴] که د هغه نوم به ښه معلوميدلو، نو حضور ﷺ پرې خوشحاله شو، [۵] او د حضور ﷺ خوشحالي به د مخ مبارك نه ظاهريدله، [۶] او که د هغه نوم به ورته بد معلوم شو، نو د هغه سره به يې د مخ مبارك نه نا ګواري (ناخوښي) ظاهريدله [تر دې چې حضور ﷺ به د هغه نوم د يو ښه نوم سره بدلولو] [۷] دغه شان چې حضور ﷺ به په يو کلي کې داخليدو، نو د هغه د نوم به يې پوښتنه کوله، [۸] که د هغه نوم به ورته ښه معلوم شو، نو د هغه سره به خوشحاليدو، [۹] او خوشحالي به يې د مخ مبارك نه ظاهريدله، [۱۰] او که د هغه نوم به ورته بد معلوم شو، [۱۱] نو نا ګواري (ناخوښي) به يې د مخ مبارك نه ظاهريدله (ابوداؤد)

**حل اللغات**: ① عَامِلًا: کارکونکې، زکات عشر وغيره راټولونکې، ② نُبِيَ: ښکاريدل به، ③ بِشْرٌ: خوشحالي، آثار د خوشحالۍ.

**تسهيلات**:

**قوله**: فَإِذَا بَعَثَ عَامِلًا سَأَلَ عَنِ اسْمِهِ:

**دعامل په ښه نوم سره خوشحاليدل**: يعنی کله چه به رسول الله ﷺ يو عامل چرته ليږلو نو د هغه د ليږلو نه مخکښې به ئې د هغه نوم تپوسلو، که د هغه نوم به ښه وو نو په دې باندې به رسول الله ﷺ خوشحاليدو او هغه خوشحالی به د هغوی د مخ مبارک نه ښکاره کيده (دا خو نيک فالی شوه) او که د رسول الله ﷺ به د هغوی نوم خوښ نه شو نو دا ناخوښی به د هغوی په مخ مبارک باندې ښکاره کيده، دا په ظاهره بدفالی ده) خو شارحينو د دې مطلب داليکلې دې چه دا اثر د بدفالۍ د وجې نه وو بلکه د نيک فالۍ د حاصليدو دا اثر وو.

**[۴۵۸۹] دکورسپيره والې**

۴۵۸۹ - [۱۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا كُنَّا فِي دَارٍ [۳] كَثُرَ فِيهَا عَدَدُنَا وَأَمْوَالُنَا، [۴] فَتَحَوَّلْنَا إِلَى دَارٍ قَلَّ فِيهَا عَدَدُنَا وَأَمْوَالُنَا، [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَرُوهَا ذَمِيمَةً"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت انس ﷺ وايي [۲] چې يوه ورځ په بارګاه رسالت کې يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ مخکې مونږ په يو کور کې وسيدو، [۳] چې په هغې کې زمونږ د افرادو تعداد هم زيات وو، او زمونږ سره مال هم ډير وو، [۴] بيا مونږ يو دويم کور ته منتقل شو، نو په هغې کې زمونږ د سړو تعداد هم کم شو، اوزمونږ مال هم لږ پاتې شو، [۵]

(۱) أخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب/باب في الطيرة (رقم-۳۹۲۴)

رسول الله ﷺ (د دي په اوريدو سره ورته) وفرمايل هغه كور پريږدئ، كوم چې خراب [بد] دي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① فَتَحَوَّلْنَا: منتقل شو مونږ، ② ذَرُوهَا: پريږدئ دغه (كور)، ③ ذَمِيمَةٌ: خراب.

**تسهيلات:**

**قوله:** ذَرُوهَا ذَمِيمَةٌ: يعنى تاته چه كله دا مكان خراب ښكارى نوپريږده ئې.

**اشكال:** خو سوال دې چه نبى كريم دَمكان نحوست څنګه اومنلو حال دادې چه نبى كريم په الطيرة شرك كښې دَدې نفى فرمائيلې ده؟

**داشكال دوه جوابونه:** ① علامه خطابى رحمه الله فرمائيلى دى چه نبى كريم كله اوكتل چه دَدې خلقو دا وهم پيدا شوې دې چه دَدې كور په وجه زمونږ په مالونو او كسانوكښې كمې راغلې دې اومونږ دَدې مكان دَ وجې نه نقصان اوچتوو نونبى كريم هغوى ته دَمكان پريخودو حكم وركړو دې دَپاره چه دَهغوى عقيده خرابه نه شى اودا وهم وړاندې تلو سره دَ هغوى دَ عقائدو حصه جوړه نه شى. په دې وجه نبى كريم په دې كښې مصلحت اوګنړلو چه دَهغوى دَوهم جرړه پرې كړى اودوى دَدې وهم په چاپيرچل كښې انختو اومخفى شرك كښې دَ راګيريدو نه بچ كړې شى نودَمكان پريخودو ئې ورته اووئيل دا دَ اسلوب حكيم په توګه وو.

② دَنحوست باره كښې دكومو دريو څيزونو استثنى كړې شوې ده په هغې كښې كورهم دې هم دَدې طرف ته اشاره ده.

**[۴۵۹۰] د خرابې آب وهوا د پريخودلو حكم**

۴۵۹۰ -[۱۵] ()[۱] وَعَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ بَحِيرٍ، قَالَ: [۲] أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ فَرْوَةَ بْنَ مُسَيْكٍ يَقُولُ: [۳] «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! عِنْدَنَا أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا أَبْيَنُ، [۴] وَهِيَ أَرْضُ رِيفِنَا وَمِيرَتِنَا، [۵] وَإِنَّ وَبَاءَهَا شَدِيدٌ، [۶] فَقَالَ: "دَعْهَا عَنْكَ فَإِنَّ مِنَ الْقَرَفِ التَّلَفَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت يحيى ابن عبد الله ابن بحير وايي [۲] چه ماته هغه سړي بيان اوكړو چې هغه د حضرت فروه رضي الله عنه ابن مسيك نه دا روايت اوريدلې وو چه ، فروه رضي الله عنه اوويل [۳] چې ما عرض وكړو يا رسول الله ﷺ زمونږ سره يوه زمكه ده، چې هغه ته أَبْيَنُ وئيل كيږي، [۴] او هغه زمونږ د زراعت او غلې زمكه ده [يعني هغه غله منډي ده، چيرته چې د تجارت د پاره د نورو ځايونو نه غله راوړلو سره جمع كول كيږي، او نورو ښارونو ته ليږل كيږي] [۵] ليكن د دې زمكې وبا سخته ده [يعني هلته وبائي امراض زيات دي] [۶] د دې اوريدو سره حضور ﷺ ورته وفرمايل چې داپريږدئ [يعني هلته اوسيدل او تګ راتګ

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب/باب في الطيرة (رقم-۳۹۲۳) واحمد في المسند ۳/ ۴۵۳

پریږدئ، ځکه چې هغه د طاعون خپلي آبادئ په حکم کې دهٔ] او د وبا [بیمارئ] ځائ ته نزدیکیدل د هلاکت او د نقصان باعث وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَبْيَن: ددغه زمکې نوم دې، ② رِيفُنَا: رِيف زراعت اوزمینداری ته وائی ③ وَمِيرَتُنَا: میرة غلې ته وائی ④ وَبَاءَهَا: وبائی مرضونه مراد دی ⑤ الْقَرَف: قَرَف نزدیوالی ته وائی خو دلته ترې وبائی مرض مراد دې ⑥ التَّلَف: هلاکت.

**تسهیلات:**

**قوله:** دَعْهَا عَنْكَ فَإِنَّ مِنَ الْقَرَفِ التَّلَفَ

**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب دادې چه وبائی مرضونوته نیزدې کیدل او راتللو سره هلاکت واقع کیږی لهذا تاسو دغه زمکه پریږدئی بل ځائی ته لاړشئ.

**اشکال:** دَ وبائی مرضونو دَ ځائی دَ تیختې نه نبی کریم منع فرمائیلې ده په ډیرو صحیح احادیثوکښې دَدې ثبوت موجوددې اوپه دې حدیث کښې نبی علیه السلام دغه خلقو ته دَ وبائی زمکې نه دَتختیدو اجازت څنگه ورکړو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① نبی کریم دغه خلقوته دَځائی بدلولوحکم دَهغوی دَعقیدې دَ حفاظت په بنیاد ورکړې وو ځکه چه دَهغوی وهم شوې ووچه کیدې شی داځائی دَهغوی دَپاره موافق نه وی اودَدې په وجه آفات زمونږ طرف ته متوجه دی ممکن وه چه دَهغوی دا وهم دَهغوی په عقیده کښې بدل شوې وې اودَبدشگونئی په بده عقیده کښې راگیرشوې وې دَدې دَ بندولوپه غرض نبی ﷺ دَمصلحت لاندې هغوی ته دَ تللو حکم ورکړو

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی نبی کریم په عدویٰ او دَ مرض یونه بل ته دَ لگیدو عقیده باندې دَعمل کولواجازت نه دې ورکړې دا دَ اجازت دَعدویٰ په نقطه نظر سره وو بلکه دَاصول طب مطابق دَصحت دَ حفاظت بنیاد باندې حکم وو ځکه چه دَ دغه ځائی آب وهوا دَخلقو دَ طبائع مطابق نه وه لکه چه دَدې حدیث تعلق دَ وبائی مرضونوسره نه دې بلکه دَ حفظ ماتقدم په بنیادباندې دَ صحت دَحفاظت سره دَدې تعلق دې دَدغه علاقې آب وهوا ستاسو موافق نه ده نودا علاقه پریخودو سره لاړشئی.

**غلط استدلال:** دَدې حدیث نه دااستدلال کول صحیح نه دی چه دَ وبادَځائی نه تختیدل جائزدی مسئله داده چه په یو ځائی کښې دَ وباخوریدونه وراندې دغه ځائی پریخودل جائز دی. دَ وباء خوریدو نه پس دَمرگ دَ ویرې نه تختیدل جائزنه دی. اودَ شریعت داهم حکم دې چه دَبهر نه راتلونکې دَپاره دَ وبائی مرضونو علاقه کښې داخلیدل منع دی. دَ سیلاب طوفان اور اوزلزلې نه تختیدل اومحفوظ مقام ته تلل جائزدی دا په وبائی زمکه باندې نه شی قیاس کولې [الکاشف، ۸/۳۵۲]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۵۹] د مکروه څيز په ليدلو مسنون دعا

۲۵۹–[۱۲] ()[۱] عَنْ عُرْوَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: [۲] «ذُكِرَتِ الطِّيَرَةُ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ: "أَحْسَنُهَا الْفَأْلُ، [۴] وَلَا تَرُدُّ مُسْلِمًا، [۵] فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ فَلْيَقُلْ: [۶] اللّٰهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ، [۷] وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلَّا أَنْتَ، [۸] وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عروه ابن عامر (تابعي رحمه الله) وايي [۲] چې يوه ورځ د رسول الله ﷺ په مخکې د بد شګونۍ (بدفالۍ) ذکر وشو، [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل د دې بهترين صورت ښه فال دي، [۴] او (ياد لرئ) يو مسلمان دي بدشګون (د هغه د مقصد او ارادې نه) منع نه کړي، [يعنى يو مسلمان ته دا مناسب نه دي چې هغه د يو کار کولو اراده وکړي، او بيا يو شي بد شګوني ګڼلو سره د هغه کار نه منع شي]، [۵] او هر کله چې په تاسو کې يو سړي داسې شي ووينې چې هغه يې نه خوښوي (يعني داسې شي چې د هغه په ذريعه بد شګوني اغستلې کيدې شي، او په زړه او دماغ کې وهم او خلجان پيداکوي) نو هغه ته پکار دي چې دا دعا اووائي [۶] اللّٰهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلَّا أَنْتَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ. اې الله! د نيکو او بدو راوستونکي يواځې ته يې [۷] او يواځې ته بدي او خرابي لرې کونکي يې. [۸] او د بدئ نه مخ ګرځونکي او د نيکي طرف ته د راتلو توفيق او طاقت د الله ﷻ د طرف نه دي. دا روايت ابوداود رحمه الله بطريقِ ارسال نقل کړي دي.

**حل اللغات:** ① الْفَأْلُ: ښه فال. ② وَلَا تَرُدُّ: منع دې نه کړی.

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ:

**د وهم د لرې کولو مسنون دعا:** په دې حديث کښې د وهم او فکر ختمولو يو طريقه بيان شوی ده چه مذکوره دعا وائي اللهم لاياتي بالحسنات الاانت ولايدفع السيئات الاانت ولاحول ولاقوة الابالله.

---

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطب /باب في الطيرة (رقم-۳۹۱۹)

# [۲] بَابُ الْكِهَانَةِ

## د فال كتنې بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① النهي عن الإتيان إلى الكهان والعراف: ۱، ۴، ۸۔

② حقيقة الكهانة ۲، ۳، ۹، ۱۰۔

③ النهي عن قول مطرنا بنوء كذا: ۵، ۶، ۱۱، ۱۳۔

④ الزجر بتعلم علم النجوم والكهانة: ۷، ۱۲۔

دكهانة لغوى تحقيق: كرمانى رحمه الله فرمائى چه (كهانة) د كاف په فتحې او كسرې دواړو سره صحيح دې په صراح كښې دى چه كاهن فال ويونكى ته وائى، په قاموس كښې دى چه كهانت په فتح د كاف سره د فال وئيلو كاروبار ته وائى.

**دكاهن تعريف:** د كاهن جمع كهان او كهنة دواړه راځى، علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه كاهن هغه كس دې كوم چه د مستقبل متعلق د حوادثو او د نورو واقعاتو خبر وركوى. او د خبايا او د اسرار د معرفت دعوى اوكړى.

**دكاهنانو قسمونه:**

① په عرب كښې كاهن خلق وو د بعض كاهنانو به جنات تابع وو هغه جناتو به د اسمان نه په غلا خبرونه راوړل او دې كاهنانو ته به ئې بيانول. لكه چه په احاديثو كښې راځى چه د رسول الله ﷺ د مبعوث كيدو نه پس د اسمان حفاظت اوكړې شو.

د كهانت حقيقت دا دې چه د بعض خلقو د روحونو د جناتو او شياطينو د ارواح خبيثه سره مناسبت وى په دې وجه د جناتو نه د كواذبو او مضلاتو استفاده كوى،

② بعض خلق د اقوالو، افعالو او احوالو د مقدماتو، اسبابو او علاماتو په بناء باندې تعارف او شناخت حاصلوى دې خلقو ته عراف وئيلې شى او كله د كاهن اطلاق په عراف او نجومى باندې هم كيږى،

**دكهانت حكم:** فعل د كهانت حرام دې په دې باندې مال اخستل هم حرام دى. اخستلو والا او وركولو والا دواړه گناهگار دى (الاشعة ۳/۶۷۰)

---

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۵۴۳] د نبی علیه السلام څخه درې تپوسونه

۴۵۴۳—[۱] ([۱]) ۝۱ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۝۲ «قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! أُمُوْرًا كُنَّا نَصْنَعُهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ، ۝۳ كُنَّا نَأْتِي الْكُهَّانَ. ۝۴ قَالَ: "فَلَا تَأْتُوا الْكُهَّانَ". ۝۵ قَالَ: قُلْتُ: كُنَّا نَتَطَيَّرُ. ۝۶ قَالَ: "ذٰلِكَ شَيْءٌ يَجِدُهُ أَحَدُكُمْ فِيْ نَفْسِهِ، ۝۷ فَلَا يَصُدَّنَّكُمْ". ۝۸ قَالَ، قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّوْنَ. ۝۹ قَالَ: "كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ، ۝۱۰ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۝۱ حضرت معاویه ابن حکم رضی الله عنه وایي ۝۲ چې ما عرض وکړو یا رسول الله ﷺ! داسې څو څیزونه دي چې مونږ به په زمانه د جاهلیت کې کول، ۝۳ د هغې نه یوخو دا دي، چې مونږ به کاهنانو ته ورتلو، [او د هغوئ نه به مو د غیبو د خبرو پوښتنه کوله]. ۝۴ حضور ﷺ وفرمایل اوس تاسو کاهنانو ته مه ورځئ، ۝۵ حضرت معاویه رضی الله عنه وایي چې ما عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ یو شي دا هم دي چې مونږ به شګون بدکولو. ۝۶ حضور ﷺ وفرمایل دا یو داسې څیز دي چې په تاسو کې یې څوك په خپل زړه کې محسوس کولي شی ۝۷ لیکن دا [یعني په زړه کې د داسې څیزونو خیال راتلل] تاسو دې د څه کار نه منع نه کړي [یعني که په تاسو کې یو سړي بتقضائي بشریت د شګون بد خیال هم راولي، نو د هغه نه متاثر کیدو سره د خپل قصد او ارادي نه دې نه منع کیږي ځکه چې بد شګوني د وهم محضه نه زیات هیڅ حقیقت نه لري]، ۝۸ حضرت معاویه رضی الله عنه وایي چه ما عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ یو شي دا هم دي چې په مونږ کې څه خلق کرښې او خطوط کاږي، ۝۹ حضور ﷺ وفرمایل په انبیاؤ کې یو نبي تیر شوي دي چې [د الله جل جلاله په حکم سره یا د خپل علم لدنّي په ذریعه به] یې کرښې او خطونه اوخکل، ۝۱۰ نو د چا د خط (کرښې) چې د هغه سره موافق وي، هغه به مباح وي (ګنې ناجائز) (مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْكُهَّانَ: پالکر، د غیبو دخبرو دعوه کونکي، ② يَخُطُّوْنَ: کرښې اوخطونه راکاږي.

**حضرت معاویه بن الحکم مختصر تعارف:** نوم معاویه دَپلار نوم حکم بنوسلیم کښې اوسیدلو. دَ هجرت نه پس مسلمان شو په کال کښې اختلاف دې اودَ خپل تعلیم تفصیلی واقعه په پورتنی حدیث کښې پخپله ارشاد فرمائی.

**مرویات:** دَ هغوی نه ۱۳ احادیث نقل دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّوْنَ

---

[۱]) اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب تحريم الكهانة وإتيان الكهان (رقم-۱۲۱ - (۵۳۷) والنسائي في كتاب السهو/باب الكلام في الصلاة (رقم-۱۲۱۸) واحمد في المسند: ۴۴۷/۵

**د یخطون څخه مراد:** یعنی کرښې به ئې راښکلې او څه زائچې به ئې جوړولې داد علم رمل او جفر طرف ته اشاره ده د خطونو او زائچود حساب په ذریعه خلقوبه د راتلونکې وخت متعلق معلومات حاصلول.

**قوله:** كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ:

**دنبی په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د دې نبی حضرت دانیال علیه السلام مراد دې.
② د دې څخه حضرت ادریس علیه السلام مراد دې

**د نبی علیه السلام محتاط جواب:** دوی ته الله تعالی د معجزې په توګه د رمل اوجفر داعلم ورکړې وو چونکه د رمل اوجفر د دې علم نسبت د یونبی طرف ته وو په دې وجه نبی کریم په ډیر حکیمانه انداز سره امت د دې علم نه منع کړو او د مخکینی نبی په دغه عمل ئې اعتراض هم اونه کړو اوونی فرمائیل چه یونبی به داسې عمل کولو لیکن هغه خو مامون محفوظ اومعصوم وو او د معجزې په توګه به ئې داسې کول په دې وجه د هغه عمل صحیح وو

**قوله:** فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ:

**د رمل دعلم حکم:** اوس که چرې ستاسو دغه عمل د دغه نبی د عمل سره بالکل موافق شی نوصحیح به وی اوکه چرې موافق نه شو نو صحیح به نه وی. اوس تاسو پخپله فیصله اوکړئی چه کله تاسو ته معلومه نه ده چه ستاسو عمل د هغه نبی د عمل موافق دې یا نه دې نوچه تاسو دا فیصله نه شې کولې نوبیابه د دغه عمل هیڅ حیثیت پاتې نه شی. لهذا تاسو د دې نه ځان اوساتئی څکه چه داعلم اوس د دنیا نه اوچت شوې دې. په داسې حکیمانه جواب سره نبی کریم د دې عمل نه منع هم اوکړه او په یونبی باندې ئې اعتراض هم اونه کړو.

**[۲۵۳] د کاهن د خبرې د رشتیا کیدو وجه**

۴۵۹۳-[۲] ()[1] ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ② «سَأَلَ أُنَاسٌ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الْكُهَّانِ، ③ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: إِنَّهُمْ لَيْسُوا بِشَيْءٍ. ④ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَإِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَ أَحْيَانًا بِالشَّيْءِ يَكُونُ حَقًّا. ⑤ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ، يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ ⑥ فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ ⑦ قَرَّ الدَّجَاجَةِ ⑧ فَيَخْلِطُونَ فِيهَا أَكْثَرَ مِنْ مِائَةِ كَذْبَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روایت دي ② چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د کاهنانو باره کې پوښتنه وشوه [چې د هغوئ په ښودل شوو خبرو اعتماد کیدي شي که نه؟] ③ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ ته وفرمایل چې هغوی هیڅ نه دي [یعني هغوی چې د کومو خبرو دعوې کوي، هغه بي بنیاده دی، نو د هغوئ په ښودل شوو خبرو اعتماد او بهروسه مه کوئ] ④

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب قول الرجل للشيء: ليس بشيء. وهو ينوي أنه ليس بحق (رقم-۶۲۱۳) ومسلم في كتاب السلام/باب تحريم الكهانة وإتيان الكهان(رقم-۱۲۳ - (۲۲۲۸) واحمد في المسند:۸۷/۶

خلقو عرض وکړو یا رسول الله! ﷺ بعضې وخت هغوی داسې خبره وښایي یا داسې خبر ورکوي، چې رښتیا وي؟ ۵ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه خبره حقه وي، کومه چې جن (يعني شيطان) راوتښتوي، ۶ او د خپل دوست کاهنان په غوږ کې يې داسې اچوي، ۷ څرنګه چې چرګ بل چرګ د دانې اخستو د پاره رابلي، ۸ بیا هغه کاهن په هغه خبره کې د سلو نه زیات دروغ خبرې يو ځاي کوي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① يَخْطَفُهَا: راتختوی نې، ② الجِنِّيُّ: جن، شيطان، ③ فَيَقُرُّهَا: پس اچوی نې، رابلی نې ④ قُرٌّ: د چرګې کرک کرک کول ⑤ الدَّجَاجَةِ: چرګه، ⑥ فَيَخْلِطُونَ: ګډوډ کوی، يوځاي کوی

**تسهيلات:**

**قوله: تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ:**

**د کاهنانو خبرې د رښتيا کيدو وجه:** نبی کريم حضرت عائشه ﷺ ته اوخودل چه د کاهنانوکومه يوه نيمه خبره صحيح ثابتيږی د دې اصل حقيقت دادې چه آسمانونوته د الله تعالى يوحکم راځي د آسمان نه لاندې فرښتې په اوريخوکښې يوبل سره د دغه حکم متعلق خبرې اترې کوی. د جناتو نه سرکش غونډې شيطانان د آسمان نه لاندې په اوريځوکښې پټ ورځی او د فرښتونه يوه نيمه خبره اوريدوسره زمکې ته راوړی.

**قوله: فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ:**

**کاهن ته د غيبو خبر ورکول:** د چرګې کرک کرک آوازدپاره قَرَّ الدَّجَاجَةِ استعماليږی يعنی چرګه چه بله چرګه د دانو طرف ته رابلي او کرک کرک آواز کوی دغه شان دا جن د خپل دوست کاهن اوجوګی په غوږونوکښې د پورته خبره وراچوی اوهغوی دې سره سل دروغ يوځانی کری اوبيانی خوروی.

**[۲۵۴۳] يو رښتيا او سره سل دروغ يوځائي کول**

۲۵۴۳-[۳] (¹) ۱ وَعَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ «إِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَنْزِلُ فِي الْعَنَانِ - وَهُوَ السَّحَابُ - ۳ فَتَذْكُرُ الْأَمْرَ قُضِيَ فِي السَّمَاءِ ۴ فَتَسْتَرِقُ الشَّيَاطِينُ السَّمْعَ ۵ فَتَسْمَعُهُ فَتُوحِيهِ إِلَى الْكُهَّانِ، ۶ فَيَكْذِبُونَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه ﷺ وايي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ۲ چې د فرښتو يو جماعت په وريځ کې راځکته کيږي، ۳ او په خپلو کې د هغه خبرو او د هغه امورو تذکره کوي، کوم چې په آسمان کې (د الله ﷻ په نزد) مقدر شوي وي (او په دنيا کې واقع کيدونکي وي) ۴ نو شيطانان په غلا سره د هغه خبرو د اوريدو د پاره غوږ ورته ايږدي، ۵ او هر کله چې هغه خبره واوري، نو کاهنانو ته يې رسوي، ۶ او هغه کاهنان د شياطينو نه

(¹) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق /باب ذکر الملائکة (رقم-۳۲۱۰)

په اوريدلي خبره کې د خپل طرف نه سل دروغ يو ځاي کوي (بخاري)

**حل اللغات**: ① اَلْعَنَانِ: وريځ، ② اَلسَّحَابُ: وريځ، ③ تَسْتَرِقُ: په غلا سره غوږ ايخودل ④ فَتُوحِيهِ: نو رسوی ئې

**تسهيلات**

**قوله**: فَتَسْتَرِقُ الشَّيَاطِينُ السَّمْعَ فَتَسْمَعُهُ فَتُوحِيهِ إِلَى الْكُهَّانِ:

**د آسمان خبرې غلا کول**: د آدم ﷺ دپيداکيدو په وخت چې ابليس ملعون په آسمانونو کښې وو . او آدم ﷺ او حوا عليها السلام لره دهوکه کول وغيره دهغه وخت واقعات دی چې آدم ﷺ زمکې ته نه وو راکوز شوي . تر دغې وخت پورې د پيريانو او شيطانانو په آسمانونو کښې داخليدل منع نه وو کله چې آدم ﷺ زمکې ته راکوز شو او شيطان هم د آسمانونو څخه راؤښکلې شو نو هله د دوئ داخليدل په آسمانونو کښې بند شو سورة جن کښې چې داسې راغلی دی : ﴿وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ۖ فَمَن يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا﴾[1] نو دې څخه دامعلوميږی چې د نبی اکرم ﷺ د پيغمبر کيدو څخه وړاندې پورې به شيطانانو د آسمانونو هغه خبرې آؤريدلې چې فرښتو به هلته خپل مينځ کښې کولې دې څخه دا لازمی طور نه ثابتيږی چې آسمانونو کښې به داخليدو به ئې دغه خبرې آؤريدلې بلکه د ﴿نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ الخ﴾ څخه دا مطلب راځيږی چې په آسمانی فضا کښې به هلته د غلو پشان کيناستل چرته به چې وريځې وې او آؤريدلې به ئې ددې الفاظو څخه پخپله هم داسې ښکاری چې د نبی اکرم ﷺ د پيغمبر کيدو څخه وړاندې هم د پيريانو او شيطانانو داخله په آسمانونو کښې بنده وه ، مګر آسمانی فضا ته په رسيدو به ئې په غلا څه آؤريدل. د پيغمبر کيدو څخه روستو ئې د وحی دحفاظت زيات انتظام دااوشو چې شيطانان ددغې غلا کولو څخه هم د شهاب ثاقب په ذريعه ايسار کړې شو.

**اشکال اودهغې جواب**: چې آسمان څخه ښکته به شيطانانو د فرښتو خبرې په څه شان آؤريدلې شوې ؟، نو دا څه نامکنه څکه نه ده کيدې شی چې د آسمانونو د اجرام د خبرو آوازونه اوريدلو دپاره نشی مانع کيدلې اودا هم کيدې شی چې څه وخت فرښتې د آسمانونو ښکته هم خپل مينځ کښې خبرې کوی نو شيطانان به ئې په غلا باندې د آؤريدو څخه روستو هلته نه تښتې دحديث الباب څخه هم ددې تائيد کيږی چې فرښتې کله خو د آسمان څخه لاندې وريځو ته راښکته کيږی او آسمانی خبر خپل مينځ کښې کوی شيطانانو به هلته په پټه دا خبرې آؤريدلې چې هغه هم د شهاب ثاقب په ذريعه بندې کړې شوې.

[1]) ترجمه:- او موږ به د آوريدلو دپاره د آسمان په موقعو کښې کيناستو نو څوك چې اوس هم آوريدل غواړی نو خپل ځان دپاره يو تياره شغله موی.

## [۴۵۹۵] نجوميانو او کاهنانو ته د ورتګ نقصان

۴۵۹۵-[۴] (¹) [۱] وَعَنْ حَفْصَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «مَنْ أَتَى عَرَّافًا [۳] فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ [۴] لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةُ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي حفصه رضی الله عنها فرمائي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې کاهن یا نجومي ته ورشي، [۳] او د هغه نه پوښتنه وکړي (یعني د غیب خبري ورنه وپوښتی) [۴] نو د هغه څلویښت ورځي او شپې مونځونه نه قبلیږي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① عَرَّافًا: نجومی، کاهن.

**تسهیلات:**

**قوله: لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةُ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً:**

**څلویښت ورځي مونځ نه قبلیدل:** یعني دَ شپې ورځي فرض مونځونه به ئی نه قبلیږی یا دَ تهجد مونځ به ئی نه قبلیږی. دا سزا دَهغه سړی ده چه دَنجومی تصدیق ئی اوکړو دا څومره دَ لوئی محرومتیا خبره ده چه انسان دَ خپل اهم عبادت مونځ نه محروم شی او دا جرم څومره سخت دي چه څلویښتو ورځو پورې دَدې اثر باقی پاتې وی. حالانکه نجومی سره څه یقینی علم نه وی بلکه ټوله دهوکه ده.

**نجومی دخپل کوره ناخبره:** شیخ سعدی باب په ګلستان کښې یوه قصه لیکلې ده چه دیونجومی ښځې سره دَهغه په کورکښې یوپردې سړې اخته وو خوندئی پرې اخستلو او نجومی نیزدې بازارکښې خلقوته دَ آسمان خبرې خودلې. په دې باندې شیخ سعدی بابا اووئیل:

برا وج فلک چه دانی چیست — چوں نه دانی که درسرائے تو کیست

یعنی ته به دَ آسمان دَاوچتوالی کومې خبرې معلومې کړې چه تاته داهم پته نه ده چه ستا په کورکښې څه کیږی؟

## [۴۵۹۶] ستورو ته د باران کولو نسبت کول

۴۵۹۶-[۵] (²) [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَاةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَةِ [۳] عَلَى أَثَرِ سَمَاءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلِ، [۴] فَلَمَّا انْصَرَفَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، [۵] فَقَالَ: " هَلْ تَدْرُونَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟ " [۶] قَالُوا: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۷] قَالَ: " قَالَ: أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ،

¹) اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب تحريم الكهانة وإتيان الكهان(رقم-۱۲۵ - (۲۲۳۰) واحمد فى المسند: ٦٨/٤

²) اخرجه البخارى فى كتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب يستقبل الإمام الناس إذا سلم (رقم-۸٤٦) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب بيان كفر من قال: مطرنا بالنوء (رقم-۱۲۵ - (۷۱) والنسائى فى كتاب الاستسقاء/باب كراهية الاستمطار بالكوكب (رقم-۱۵۲۵) ومالك فى الموطا كتاب الاستسقاء/باب الاستمطار بالنجوم (رقم-٤)واحمد فى المسند: ۱۱۷/٤

**ترجمه:** ١ او حضرت زيد ابن خالد جهني ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ په مقام حديبيه کې مونږ ته د سحر مونځ راکړو، ٣ او په شپه کې باران شوي وو، ٤ کوم وخت چې حضور ﷺ د مانځه نه فارغه شو، نو زمونږ طرف ته متوجه شو، ٥ او وي فرمايل چې آيا تاسو پوهيږئ؟ چې ستاسو پروردګار دا وخت څه فرمايلي دي؟ (يعني حضور ﷺ ارشاد وکړو چې اوس په ما وحي نازله شوي ده) ٦ صحابه ؓ عرض وکړو چه الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، ٧ حضور ﷺ وفرمايل الله ﷻ فرمايلي دي چه زما بنده ګانو نن په داسې حال کې صبا کړو چې بعضو خو په ما ايمان راوړو، او بعضو کفر وکړو.

**حل اللغات:** ① أَثَرِ سَمَاءٍ: باران.

١ فَأَمَّا مَنْ قَالَ: مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللهِ وَرَحْمَتِهِ، ٢ فَذٰلِكَ مُؤْمِنٌ بِي كَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ، ٣ وَأَمَّا مَنْ قَالَ: مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا ٤ فَذٰلِكَ كَافِرٌ بِي مُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ کوم سړي چې دا اوويل چې په مونږ د الله په فضل وکرم سره باران شوي دي، ٢ نو هغه په ما ايمان راوړو، او ستورو نه يې کفر وکړو (يعني د ستورو د اثر منکر دي) ٣ او کوم سړي چې دا اوويل چې د فلاني ستوري راختو او د فلاني ستوري د غروب کيدو په وجه په مونږ باران شوي دي، ٤ نو هغه زما سره کفر وکړو، او په ستورو يې ايمان راوړو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ② مُطِرْنَا: باران اوشو په مونږه، ③ نَوْء: ستوري،

**تسهيلات:**

**قوله:** مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا فَذٰلِكَ كَافِرٌ بِي مُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ:

**ستوري ته د باران کولو د نسبت دوه صورتونه:** ① که چرې يوسړې په باران ورولوکښې يوستوري يعنی کمل سيلے تپ اوتپ زئی مؤثر حقيقی ګڼړی نودا سړې کافرکيږی

② که چرې د ده عقيده داده چه باران خوصرف هم الله تعالی راوروی دا ستوری ظاهری اسباب دی نودا کفرنه دې مګر داعقيده لرل هم مکروه دی. د حديث الفاظونه مطلق حرمت معلوميږی.

## [٤٥٩٧] د باران په کيدو د بعضې خلقو کافر کيدل

٤٥٩٧-[٢] (¹) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «مَا أَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ بَرَكَةٍ ٣ إِلَّا أَصْبَحَ فَرِيقٌ مِنَ النَّاسِ بِهَا كَافِرِينَ ٤ يُنْزِلُ اللهُ الْغَيْثَ، ٥ فَيَقُولُونَ: بِكَوْكَبِ كَذَا وَكَذَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

¹) اخرجه مسلم في كتاب الايمان/باب بيان كفر من قال: مطرنا بالنوء (رقم-١٢٦ - (٧٢) والنسائي في كتاب الاستسقاء/باب كراهية الاستمطار بالكوكب (رقم-١٥٢٤) واحمد في المسند: ٣٦٢/٢

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کله چې الله ﷻ د آسمان نه څه برکت نازلوي.[۳] نو د انسانانو څه نا څه جماعت د هغې په ذریعه په کفر کې مبتلاکیږي. [یعنی څه ناڅه خلق ضروروداسې وي چې دابرکت د الله ﷻ طرف ته د منسوب کولو په ځاي نورو ذرائع او د اسبابو طرف ته یې منسوب کوي ][۴] لکه الله ﷻ چې باران وروي،[۵] نو بعضې خلق دا وایي چې د فلانې ستورې د اثر نه باران شوې دي. (مسلم)

**حل اللغات:** ① اَلْغَيْثَ: باران

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ بَرَكَةٍ:

**دبرکة څخه مراد:** په حدیث کښې د برکت نه مراد باران دې، او په دې کښې دویم احتمال دا هم دې چه د برکت نه عام یعنی هر قسمه برکت مراد دې.

**نوټ:** د حدیث الباب وضاحت دې څخه وړاندې د حدیث نمبر(۴۵۹۴) په شرح کښې تیرشوې دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۴۵۹۸] دعلم نجوم د حاصلولو حکم

۴۵۹۸-[۷] (۱)[۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ[۳] اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ[۴] زَادَ مَا زَادَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] کوم سړي چې د علم نجوم یوه حصه زده کوي،[۳] نو ګویا هغه د علم سحر یوه حصه زده کوي،[۴] دغه شان هغه دومره زیات د سحر علم زده کوي، څومره زیات چې علم نجوم زده کوي. (ابوداؤد احمد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① اقْتَبَسَ: راواخلي، زده کړي. ② زَادَ مَا زَادَ: څومره چه زیات کړي.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ

**دعلمَ نجوم د سحرسره د تشبیه وجه:** د علم نجوم د سحر سره تشبیه ورکول د ذلت د اظهار دپاره دی چه علم نجوم د جادو په شان یو بد څیز دې، او څنګه چه جادو کفر یا کفر ته نزدې دې نو هم دغه شان علم نجوم هم کفر یا کفر ته نزدې دې لهذا د جادو په شان علم نجوم نه هم د ځان ساتلو حکم دې.

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/ باب فی الکاهن (رقم-۳۹۰۵) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب تعلم النجوم (رقم-۳۷۲۶) واحمد فی المسند، ۳۱۱/۱

### [۴۵۹۹] د کاهنانو خبرولره د ربښتیا ګڼرولو وعید

۴۵۹۹-[۸] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «مَنْ أَتَى كَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ، ۳ أَوْ أَتَى امْرَأَتَهُ حَائِضًا، ۴ أَوْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا ۵ فَقَدْ بَرِءَ مِمَّا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړي چې کاهن ته ورشي، او د هغه وئیلی خبري ربښتیا وګڼي، ۳ یا کوم سړي چې د حیض په حالت کې د خپلې ښځې سره هم بستري اوکړی، ۴ یا کوم سړي چې د خپلې ښځې سره د وروسته د طرف نه بدفعلي کوي، ۵ نو هغه د هغه شي یعني د قرآن سنت او د شریعت نه بیزاره شو، کوم چې په حضرت محمد ﷺ نازل شوي دي (احمد ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَدْ بَرِءَ مِمَّا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ

**د کاهن د خبري دتصدیق دوه صورتونه:** ۱ که چرې دَ نجومی تصدیق نی هم اوکړو اودا حرام کارئی جلال هم اوګنړلو نو په دې صورت کښې دا سړی واقعةً کافر شو

۲ که چرې دې سړی دې کارته حلال اونه وئیل بلکه دَمعصیت په درجه کښې نی ګناه اوکړه نوبیا به دا حدیث تشدید وتهدید اوتوبیخ وتغلیظ باندې حمل وی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۶۰۰] د کاهنانو د غیبو خبرورکولو وجه

۴۶۰۰-[۹] (۱) ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "۲ «إِذَا قَضَى اللّٰهُ الْأَمْرَ فِي السَّمَاءِ ۳ ضَرَبَتِ الْمَلَائِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهِ، ۴ كَأَنَّهُ سِلْسِلَةٌ عَلَى صَفْوَانٍ، ۵ فَإِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ ۶ قَالُوا: مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟ ۷ قَالُوا لِلَّذِي قَالَ: الْحَقَّ ۸ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ.

**ترجمه:** ۱ د حضرت ابوهریره نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۱ کوم وخت چې خداي ﷻ په آسمان کې د څه شي حکم جاري کوي ۲ نو فرشتي د خداي ﷻ فرمان اوریدو سره خوف او عاجزي سره خپل وزر وهل شروع کړي (یعني فرشتي د حکم الهي د هیبت او عظمت د ویرې نه د مرغانو په شان خپل وزرونه خوروي او رپیږي) ۴ او د خداي

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الطب/باب فی الکاهن (رقم-۳۹۰۴) والترمذی فی کتاب الطهارة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة إتیان الحائض (رقم-۱۳۵)واحمد فی المسند: ۴۰۸/۲

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب ﴿حتی إذا فزع عن قلوبهم قالوا [ص:۱۲۲]: ماذا قال ربکم؟ قالوا: الحق وهو العلی الکبیر﴾ (رقم-۴۸۰۰)والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة سبأ (رقم-۳۲۲۳) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-۱۹۶)

ﷻ فرمان يعنى د هغه د كلام اواز گويا د هغه زنځير د اواز په شان شي چې هغه صاف كاڼي باندې راتيرول كيږي[۵] بيا د فرشتو د زړونو نه چې خوف لرې شي [۶] نو لاندې فرشتې مقربو فرشتو نه پوښتنه كوي چې ستاسو پروردگار څه حكم جاري كړي دي؟[۷] مقربې فرشتې ورته هغه حكم ښايي كوم چې پروردگار جاري كړي دي [يا مقربې فرشتې پوښتنه كونكو فرشتو ته وايي چې زمونږ پروردگار څه فرمايلي دي هغه حق دي][۸] او د خداي ﷻ ذات بلند قدر او بلنده مرتبې والادي

**حل اللغات**: ① ضَرَبَت: وهل او خوزول شروع كړې. ② خضعَانًا: دَ عاجزئى او ويرې په وجه د متو حركت كول ③ سِلْسِلَةٌ: زنځير. ④ صَفْوَانٍ: مضبوط كمر، كاڼړې. ⑤ فُزِّعَ: دفرښتودَ زړونونه ويره لرې شي. ⑨ مُسْتَرِقُو: په غلا ني په پټه آورى.

[۱] فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُو السَّمْعِ[۲] وَمُسْتَرِقُو السَّمْعِ هَكَذَا[۳] بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ "[۴] وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَّفَهَا، [۵] وَبَدَّدَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ " فَيَسْمَعُ الْكَلِمَةَ فَيُلْقِيهَا إِلَى مَنْ تَحْتَهُ[۶] ثُمَّ يُلْقِيهَا الْآخَرُ إِلَى مَنْ تَحْتَهُ[۷] حَتَّى يُلْقِيَهَا عَلَى لِسَانِ السَّاحِرِ أَوِ الْكَاهِنِ.[۸] فَرُبَّمَا أَدْرَكَ الشِّهَابُ قَبْلَ أَنْ يُلْقِيَهَا[۹] وَرُبَّمَا أَلْقَاهَا قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَهُ[۱۰] فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ.[۱۱] فَيُقَالُ: أَلَيْسَ قَدْ قَالَ لَنَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا: كَذَا وَكَذَا؟[۱۲] فَيُصَدَّقُ بِتِلْكَ الْكَلِمَةِ الَّتِي سُمِعَتْ مِنَ السَّمَاءِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه**: [۱] نو دا خبري [چې د فرشتو په مينځ كې كيږي] په غلا سره اوريدونكي جنات او شياطين يې اوري[۲] او سفيان په غلا سره داوريدونكو هيئت د خپل لاس [د گوتو] په ذريعه بيان كړو ،[۳] چنانچه حضرت سفيان خپل لاس ككولو سره د گوتو په مينځ كښې فرق ته اوكړو [۴] اوسفيان په خپل ورغوى (لاس) سره دهغې كيفيت بيان كړلو [۵] او وې وئيل چې [هغه جنات او شياطين د آسمان نه زمكې پورې داسې سلسله وار لاندې باندې ولاړ وي او] پورته والا جنّ د فرشتو خبره په غلا غُلطئ اوريدو سره خپل لاندې والا جن ته رسوي[۶] او هغوئ يې خپل لاندې والا جن ته رسوي [۷] تردې چې آخري جن [كوم چې د ټولو نه لاندې وي] هغه خبره ساحر يا د كاهن ژبې ته رسوي [اخوا د هغه جناتو او شياطينو وهلو او تبنتولو د پاره د آسمان نه شغلې ويشتل كيږي][۸] نو كله خو دا شغلې د ساحر يا كاهن پورې هغه خبره رسولو نه مخكې غلا غُلطئ سره اوريدونكې جنّ راونيسي[۹] او كله داسې كيږي چې هغه جن د هغه شغلې رسيدو نه مخكې ساحر يا كاهن ته هغه خبره ورسوي [او هركله چې هغه ساحر يا كاهن ته هغه خبره ورسوي][۱۰] نو هغه پكښې سل دروغ خبرې شاملې كړي [او د خلقو مخكې د هغه دروغ خبرو په منځ كې هغه خبره هم بيانوي چې هغه ته د جناتو او شياطينو په ذريعه رسيږي نو هركله چې يوسړي هغه كاهن د هغه د دروغ خبرو په ذريعه دروغ جن كوي] [۱۱] [يعنى دا وايي چې هغه فلاني فلاني خبره كړي وه هغه دروغ ثابت شويده نو [د هغه گمراه خلقو د طرف نه چې د كاهن خبرې رېښتيا گڼي د

دروغجن کونکي مخکې دا وايي چې آيا دا حقيقت نه دي او آيا ته نه پوهيږې چې هغه کاهن فلاني فلاني ورځ مونږ ته فلاني خبره کړي وه! [۱۲] او دغه شان د هغه کاهن د رښتيا ويلو تصديق د هغه خبري نه کيږي چې هغه ته د جناتو په ذريعه د آسمان نه رسيدلي وه (بخاري)

**حل اللغات:** ⑦ لَمَزَفَهَا: نو دهغې هيئت ئې بيان کړو، ⑧ بَدَّدَ: جدائی او فراخی ئې راوستله، ⑨ الشِّهَابُ: د اورشغله، سکروټه،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَّفَهَا، وَبَدَّدَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ:

**د خبرې د غلا کولو کيفيت بيان:** يعني سفيان ثوری رحمه الله د شيطانانو پورته دختو کيفيت اوخودلو چه هغوی لاس کوږ کړو اوګوتې ئی ښکته پورته کيخودې او په مينځ کښې ئی فرق اوکړو

**نوټ:** د حديث د مضمون وضاحت وړاندې د حديث نمبر (۴۵۹۳) په تسهيل کښې تيرشوې دې

## [۴۶۰۱] د شهاب ثاقب حقيقت

۴۶۰۰-[۱۰] () [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «أَخْبَرَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْأَنْصَارِ: [۳] أَنَّهُمْ بَيْنَا هُمْ جُلُوسٌ لَيْلَةً مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] رُمِيَ بِنَجْمٍ وَاسْتَنَارَ، [۵] فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۶] "مَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا رُمِيَ بِمِثْلِ هَذَا؟ [۷]" قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، [۸] كُنَّا نَقُولُ: وُلِدَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ عَظِيمٌ، [۹] وَمَاتَ رَجُلٌ عَظِيمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي [۲] چه د رسول الله ﷺ د انصاري صحابه رضی الله عنهم نه يو صحابي ماته بيان وکړو [۳] چې يو وخت د شپې په وخت څه صحابه رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ سره ناست وو [۴] چې يو ستوري مات شو، او د هغې تيزه رڼا خوره شوه [۵] نو په دې ليدو سره، رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم ته وفرمايل [۶] تاسو به د جاهليت په زمانه کې داشان ستوري ماتيدو ته څه ويل؟ [۷] هغوی عرض وکړو حقيقت حال خو الله او د هغه رسول ښه پيژني [۸] مونږ خوبه دا ونيل چې نن شپه يو لوی سړي پيدا شوي دي [۹] [او کله به مو دا ونيل چې] نن شپه يو لوي سړي مړ شوي دي [يعنی مونږ به داشان ستوري ماتيدل د څه لوي او اهمي واقعې علامه ګڼل]،

**حل اللغات:** ① اسْتَنَارَ: رڼا ئې خوره شوه

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب السلام/باب تحريم الکهانة وإتيان الكهان (رقم-۱۲٤ - (۲۲۲۹) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة سبأ (رقم-۳۲۲٤) واحمد فی المسند: ۲۱۸/۱

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَإِنَّهَا لَا يُرْمَى بِهَا لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ،[۲] وَلَكِنْ رَبُّنَا تَبَارَكَ اسْمُهُ إِذَا قَضَى أَمْرًا [۳] سَبَّحَ حَمَلَةُ الْعَرْشِ،[۴] ثُمَّ سَبَّحَ أَهْلُ السَّمَاءِ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ،[۵] حَتَّى يَبْلُغَ التَّسْبِيحُ أَهْلَ هَذِهِ السَّمَاءِ الدُّنْيَا،[٦] ثُمَّ قَالَ الَّذِينَ يَلُونَ حَمَلَةَ الْعَرْشِ لِحَمَلَةِ الْعَرْشِ:[۷] مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟

**ترجمه:** [۱] رسول الله ﷺ وفرمايل ستوري نه د چا په مرګ ماتيږي او نه د چا په پيدائش [۲] بلکي حقيقت حال دادي چې زمونږ رب چې د هغه نوم بابرکت دي هرکله چې يوحکم جاري کوي[۳] نو د عرشِ الهي پورته کونکي فرشتي تسبيح [يعنی دسبحان الله سبحان الله ورد کول] شروع کړي [۴] بيا د هغوی د تسبيح اواز اوريدو سره د آسمان فرشتي تسبيح کول شروع کوي کومي چې عرش پورته کونکي فرشتوته نژدې دي [۵] ترديچې د هغوئ اواز د يو دويم آسمان نه د دنيا آسمان باندې اوسيدونکو فرشتو ته ورسيږي[٦] بيا هغه فرشتي چې عرش پورته کونکو فرشتو ته نژدې وي، عرش پورته کونکو فرشتو نه پوښتنه کوي[۷] چه ستاسو پروردګار څه فرمايلي دي؟

**حل اللغات:** ③ سَبَّحَ: تسبيح وئيل شروع کړی، ③ حَمَلَةُ الْعَرْشِ: د عرش پورته کونکي فرشتې، ④ يَلُونَ: چه نژدې دی،

[۱] فَيُخْبِرُونَهُمْ مَا قَالَ،[۲] فَيَسْتَخْبِرُ بَعْضُ أَهْلِ السَّمَاوَاتِ بَعْضًا[۳] حَتَّى يَبْلُغَ هَذِهِ السَّمَاءَ الدُّنْيَا،[۴] فَيَخْطَفُ الْجِنُّ السَّمْعَ،[۵] فَيَقْذِفُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ،[٦] وَيُرْمَوْنَ،[۷] فَمَا جَاءُوا بِهِ عَلَى وَجْهِهِ فَهُوَ حَقٌّ،[۸] وَلَكِنَّهُمْ يَقْرِفُونَ فِيهِ[۹] وَيَزِيدُونَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] هغه فرشتي هغوئ ته هغه خبره ښايي کومه چې پروردګار فرمايلي وي[۲] بيا هغه خبره هغوئ نه نوري فرشتي پوښتنه کوي او د هغوئ نه نوري فرشتي[۳] تردي چې دا سلسله د دنيا آسمان باندې اوسيدونکو ته رسيږي[۴] بيا د هغوئ نه اوريدلي خبره جنات راوتښتوي [يعنی هغوئ غوږ لګولو سره د داسې خبرو منتظر وي او هرکله چې هغوئ په غلا غُلطئ څه خبره واوري] [۵] نو د هغه ځای نه يي خپلو دوستانو يعنی کاهنانو ته رسوي [٦] نو د دې جنات وهلو د پاره ستوري ويشتل کيږي . [نو د دې ستورو د ويشتلو سبب دادي ، نه هغه د کوم چه تاسو اعتقاد لرئ يعنی د چا مرګ يا پيدائش وغيره] [۷] دغه شان کاهن که هغه خبره چې آسمان نه اوريدل شوي وي [او د جناتو په ذريعه هغه ته رسيدلي وي هغسي يعنی] په هغې کې د څه تصرف او کمي پيشی څخه بغير بيان کړي نو هغه يقيناً صحيح ثابتيږي[۸] ليکن هغه [کاهن داسې نه کوي بلکه] په هغې کې د دروغو خبري شاملوي[۹] او د يوي خبري نه ډيري خبري جوړ وي (مسلم)

**حل اللغات:** ④ فَيَخْطَفُ: نو راتښتوی ئې، ⑤ فَيَقْذِفُونَ: نو غورځوی ئې، رسوی ئې، ⑥ وَيُرْمَوْنَ: نو دوی ويشتلي کيږی، ⑧ عَلَى وَجْهِهِ: هم هغسې څنګه ئې چه اوريدلي وی، ⑨ يَقْرِفُونَ: دروغ پکښې شاملوی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا رُمِيَ بِمِثْلِ هٰذَا؟:**

**دنبی علیه السلام دتپوس مقصد:** نبی کریم ﷺ ته د جاهلیت امورو متعلق علم وو لهذا د نبی کریم ﷺ صحابه کرامو نه سوال کول د پوهې دپاره نه وو بلکه ددی دپاره وو چه که هغوی د زمانه جاهلیت د اعتقاد مطابق جواب ورکړی نو چه نبی کریم ﷺ د هغوی غلطو عقائدو ازاله وکړی.

**[۴۶۰۲] د ستورو د پیدائش مقاصد**

۴۶۰۲– [۱۱] ()[۱] وَعَنْ قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] خَلَقَ اللّٰهُ تَعَالَى هٰذِهِ النُّجُومَ لِثَلَاثٍ: [۳] جَعَلَهَا زِينَةً لِلسَّمَاءِ، [۴] وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ، [۵] وَعَلَامَاتٍ يُهْتَدَى بِهَا، [۶] فَمَنْ قَالَ فِيهَا بِغَيْرِ ذٰلِكَ [۷] أَخْطَأَ وَأَضَاعَ نَصِيبَهُ [۸] وَتَكَلَّفَ مَا لَا يَعْلَمُ. [۹] رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ تَعْلِيقًا - [۱۰] وَفِي رِوَايَةِ رَزِينٍ: (وَتَكَلَّفَ مَا لَا يَعْنِيهِ [۱۱] وَمَا لَا عِلْمَ لَهُ بِهِ [۱۲] وَمَا عَجَزَ عَنْ عِلْمِهِ الْأَنْبِيَاءُ وَالْمَلَائِكَةُ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت قتاده رضی الله عنه وايي [۲] چه خداي تعالی ستوري د دريو خبرو د پاره پيدا کړي دي [۳] يو خو دا چې هغه يي د آسمانونو زينت جوړ کړي دي [۴] او دويم د شياطينو او جناتو وهلو د پاره [۵] او دريم علاماتو د پاره چې خلق د هغې په ذريعه [ځنګل او درياب کې] خپله لار معلومه کړې شي [۶] نو کوم سړي چې دي ستورو کې د دې دريو خبرو نه علاوه بل څه غرض بيان کړو [۷] نو هغه خطاء وکړه او خپله حصه يي ضائع کړله [۸] او بيا په هغه شي کې يي تکليف وکړو چې په هغې هغه نه پوهيږي [يعني د آسمان څيزونو باره کې چې کوم حقوق دي د هغې علم د قرآن او سنت نه علاوه بلې څه ذريعې سره حاصلول ممکن نه دي او هرکله چې قرآن او په سنت کې د ستورو غرض دي دريو خبرو نه علاوه نور هيڅ نه دي بيان شوی نو مذکوره خبرو نه علاوه بل څه غرض بيانول د داسې خبري بيانول دي چې د هغې معلومول متصور نه دي] [۹] دا روايت بخاري رحمه الله بغير د سند نه نقل کړي دي [۱۰] او د رزين روايت کې دا الفاظ دي چې هغه د هغه شي تکلف وکړو چې هغه ته هيڅ فائده نه رسوي [۱۱] او په هغه شي کې تکلف وکړو [يعني په هغه شي د پوهيدو دعوې يي وکړه] چې د هغه هغه ته علم نشته [۱۲] او په هغه شي کې يي تکليف وکړو چې د هغه د علم نه انبياء او فرښتې عاجزه دي

[۱] وَعَنِ الرَّبِيعِ مِثْلُهُ [۲] وَزَادَ وَاللّٰهِ مَا جَعَلَ اللّٰهُ فِي نَجْمٍ حَيَوٰةَ أَحَدٍ وَلَا رِزْقَهُ وَلَا مَوْتَهُ [۳] وَإِنَّمَا يَفْتَرُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ [۴] وَيَتَعَلَّلُونَ بِالنُّجُومِ.

**ترجمه:** [۱] او ربيع نه هم ددي پشان روايت دي او په هغې کښې يې دا هم ورسره زيات کړی دی

() اخرجه البخاری تعليقا فی کتاب بدء الخلق/باب فی النجوم

[۲]چې قسم په الله چې الله تعالی په دې ستوروکې نه دچا ژوندابښي دي نه د چا رزق او نه د چا مرګ[۳] د دې نه ماسوا نور هيڅ نه دي چې کاهن د خداي ﷻ باره کې دروغ افتراء ګاني کوي [۴]او د ستورو راختل او ډوبيدل د څه واقعي او حادثي علت ګرځوي

**حل اللغات:** ① رُجُوْمًا: و یشتونکی، ② يُهْتَدَى: لار پرې معلوموی، ③ أَضَاعَ: ضايع ني کرو.

**تسهیلات:**

**قوله:** خَلَقَ اللّٰهُ تَعَالٰی هٰذِهِ النُّجُوْمَ لِثَلَاثٍ:

**دشهابِ ثاقب پیژندګلو:** دَ شهاب ثاقب باره کښې دَ بعضې علماؤ خيال دې چه داعام ستورې نه دی بلکه دَ جناتو دَ ويشتلودَپاره مستقل شغلې اوراكتې دی په ظاهره دادَ آسمان ستورې ښکاری اواګرچه داهم ستورې دی ليکن په آسمان کښې مرکوز ستورې نه دی والله اعلم

**د آسمانی ستورو دتخلیق درې مقاصد:** ① دَ دنيا دَ آسمان دَ ښائست دَپاره دی څکه چه آسمان دَ انسانانودَپاره په منزله دَ چهت دې او په چهت کښې خلق دَ رڼا او ښائست کولودَپاره مختلف څيزونه لګوی. الله تعالی په خپل جوړشوی چهت کښې دَ ښائست او رڼا دَپاره نمر او سپوږمئی او ستوری لګولی دی ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ﴾ [سورة ملک:۵]

② دَ ستورو لګولودويم مقصد دَ شيطانانو ويشتل دی دَوم چه پورته څيژی په هغوی باندې شغله پريوځی.

③ دَ ستورو دَ پيدا کولودريم مقصد دَ دنيا دَ خلقو لارخودنه ده که سمندر وی که دشت وی که بیابان وی اوکه صحرا په دې ايتمی دورکښې هم انسان دَ ستورونه رهنمائی حاصلوی اودې نه بې پرواه کيدې نه شی.

**[۳۰۳] دکاهن حکم**

۴۶۰۳-[۱۲](۱) [۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«مَنِ اقْتَبَسَ بَابًا مِنْ عِلْمِ النُّجُوْمِ[۳]لِغَيْرِ مَا ذَكَرَ اللّٰهُ[۴]فَقَدِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ[۵]الْمُنَجِّمُ كَاهِنٌ،[۶]وَالْكَاهِنُ سَاحِرٌ،[۷]وَالسَّاحِرُ كَافِرٌ»". رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] دوم سړي چې د علم نجوم څه حصه زده کړله[۲]او د زده کولو غرض اد هغه دريو څيزونو نه؛ علاوه څه بل شي سره متعلق وي اکوم چې خداي ﷻ په قرآن کريم کې ذکر فرمايلي دي او د هغې بيان په حديث کې تير شوا[۴] نو هغه بلاشبه د سحر د علم يوه حصه زده کړله . [حالانکه چې د

[۱] رواه رزين

سحر علم يو خراب علم دي ځکه چې د دې بعضې قسمونه فسق کې دا خل دي او بعضې قسم موجب کفر دي] ٥ او [يا د لري] منجم (د نجوم په علم پوهيدونکي) د کاهن په حکم کې دي [ځکه چې د کاهن په شان منجم هم د بعضې علاماتو په ذريعه د غيب خبر ورکوي] ٦ اوکاهن د ساحر حکم لري [ځکه چې کاهن هم د خرابو خبرو ارتکاب کوي او خلقوته نقصان رسوي] ٧ او ساحر [کوم سړي چې سحر وکړي او د هغې د جائز کيدو اعتقاد لري نو هغه] کافر کيږي [دغه شان منجم اوکاهن هم دخپلي بداعتقادئ په بناء کافر کيږي] (رزين)

**حل اللغات:** ① اِقْتَبَسَ: زده کړی، ② اَلْمُنَجِّمُ: نجوموی، د ستورو علم لرونکې،

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْمُنَجِّمُ كَاهِنٌ:

**نجومی ته د کاهن وئيلو وجه:** نجومی ځکه کاهن اوګرځولې شو چه دواړه دَ يوجنس خلق دی يوميدان دې اوهم يوکاردې ځکه چه نجومی هم دکاهن په شان دَ غيب په خبروکښې اولته اوسيده خبرې جوړوی اوبيانی بيانوی.

**قوله:** وَالْكَاهِنُ سَاحِرٌ:

**کاهن باندې د ساحر د اطلاق وجه:** اوکاهن ته په دې وجه ساحر اووئيلې شوچه کوم نقصان انسانانوته جادوګر رسوی هم هغه نقصان کاهن هم وررسوی. لهذا ضرر اونقصان دَدواړو يوشان دې نوکاهن ساحردې اووالساحرکافر يعنی جادوګرکافردې.

**[٣٦٠٥] ستورولره د مؤثر حقيقی ګڼړلو حکم**

> ٣٦٠٥ - [١٣] (١) ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «لَوْ أَمْسَكَ اللّٰهُ الْقَطْرَ عَنْ عِبَادِهِ خَمْسَ سِنِينَ، ثُمَّ أَرْسَلَهُ ٣ لَأَصْبَحَتْ طَائِفَةٌ مِنَ النَّاسِ كَافِرِينَ، يَقُولُونَ: ٤ سُقِينَا بِنَوْءِ الْمِجْدَحِ» ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوسعيد رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ که خداي تعالى (مثلاً) پنځه کاله پورې خپل بندګان د باران نه محروم وساتي او بيا باران ووروي ٣ نو د خلقو يو جماعت (چې نجوم باندې اعتقاد لري) په دې صورت کې به هم کفر کولو سره دا وايي ٤ چې مجدح [يعنی د قمر د منزل] په سبب په مونږ باران شوي دي (نسائي)

**حل اللغات:** ① أَمْسَكَ: بند اوساتی، ② اَلْقَطْرَ: باران، ③ لَأَصْبَحَتْ: نو اوبه ګرځی، ④ بِنَوْءِ الْمِجْدَحِ: د قمر د منزل په سبب،

(١) اخرجه النسائی فی السنن رقم الحديث ١٥٢۶

**تسهيلات:**

**قوله:** سُقِينَا بِنَوْءِ الْمِجْدَحِ

**دمجدح پيژندګلو:** مجدح دَميم په كسرې سره دې جيم ساكن دې په دال باندې زبردې دَ سپوږمئ دَمنازلو نه دَ يو منزل نوم دې.

**دجاهليت دغلطې عقيدې د باطلوالي دليل:** دَ جاهليت په زمانه كښې دَ عربوخيال وو چه په دې منزل كښې كله سپوږمئ داخليږي نو ښه بارانونه كيږي. نبي كريم داعقيده باطله اوګرځوله اودَ دليل په توګه ئې اشاره اوفرمائيله چه مثلاً پنځه كاله چه باران بند شوې وو نومجدح منزل چرته وو هغه باران ولې اونه ورولو. كه چرې باران مجدح منزل ورولو نو دا موجود وو اوباران نه وو. اوس چه الله تعالى باران راؤورولو نوخلقو دَمجدح طرف ته نسبت اوكړودا ډيره دَ افسوس خبره ده.

## [۲۴] كِتَابُ الرُّؤْيَا

**دَخوبونو بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه عشرون حديثاً مشتملة على ثمانى مسائل:**

① فضيلة الرؤيا الصالحة: ۱، ۲، ۶، ۸، ۱۵.

② رؤية النبي ﷺ في النوم: ۳، ۴، ۵.

③ أقسام الرؤيا : ۶، ۸.

④ آداب الرؤيا: ۶، ۹.

⑤ حكم الرؤياء المكروهة: ۶، ۷.

⑥ أوقات صدق الرؤيا: ۸، ۲۰.

⑦ تعبير بعض الرؤيا الخاصة: ۸، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۶، ۱۷، ۱۸.

⑧ الزجر ببيان الرؤيا الكاذبة: ۱۹.

**د رؤيا په تعريف كښې اقوال:** ① واحدي فرمائي په اصل كښې دامصدر دې لكه يسرىٰ بيا دا دَ اسم په ځاى باندې استعماليدل شروع شو. امام راغب فرمائي الرؤية بالهاء ادراك المرأ بحاسة البصر يعني په سترګو سره كتلو باندې دَ دې اطلاق كيږي دغه شان دَ مايدرك بالتخيل دَ پاره هم استعماليږي مثلاً ارى ان زيدًا مسافرًا. دې نه علاوه تفكر نظرى اودَ رائې په معنى كښې هم راځي.

۲ علامه قرطبی رحمه الله وائی چه بعض علماؤ فرمائیلی دی چه رؤیا په معنی دَ رؤیة هم په قرآن کریم کښې وارد دې قال تعالی﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ خکه چه دلته دَ رؤیا نه مراد هغه عجائبات دی چه دَ معراج په شپه حضورپاک ﷺ خودلې شوی وو او جمهور فرمائی دَ معراج دَ شپې وقوع یقظةً شوې دی وهوالقول الاصح

**په رؤیا او رؤیة کښې فرق:** رؤیا او رؤیة دواړه مصادر دی. د دوه حروف تانیث په ذریعه په دواړو کښې فرق اوکړې شو، یعنی په رویة کښې تاء تانیث راوړلو سره او په رؤیا کښې الف تانیث راوړلو سره فرق اوکړې شو رؤیا د حرف راء نه پس په همزې سره مشهور دې او کله د تخفیف دپاره همزه په واؤ سره بدل کړې شی صاحب الکشف فرمائی چه رؤیة په سترګو سره لیدل دی، بقال رأی رؤیة په سترګو لیدل. او رؤیا بغیر د تنوین نه په خوب کښې لیدل (مقدمة فتح الملهم ۷۳. والبیضاوی ۲/۲۶۳)

**دَ خوب حقیقت:** په تفسیر مظهری کښې قاضی ثناء الله پانی پتی فرمائی دَ خوب حقیقت دادې چه انسانی نفس دَ خوب په وخت کښې یا د بې هوشئی په سبب دَ ظاهری بدن دَ تدبیرنه اوزګار شی نوهغه ته دَ هغه دَ خیالی قوت دَ لارې نه څه صورتونه ښکاری هم دَ دې نوم خوب دې.

**د خوب درې قسمونه:** ۱ کله سړې په خوب کښې هم هغه صورتونه وینی کوم چه دَ بیدارئی په حالت کښې ګوری دې ته حدیث النفس وائی.

۲ کله شیطان څه صورتونه او واقعات دَ ده په ذهن کښې اچوی کله خوشحاله کونکې او کله ویرونکې دیته تسویل الشیطان وائی دا دواړه قسمونه باطل دی دَ کوم چه هیڅ اصلیت اوحقیقت نشته دې اونه دَ دې څه واقعی تعبیر کیدیشی.

۳ دَ الله تعالی دَ طرف نه یوقسم الهام دې چه خپل بنده خبردار کوی اویا دَ زیری ورکولو دَ پاره کولې شی الله تعالی دَ خپل غیب دَ خزانونه دَ بنده په زړه او دماغ کښې اچوی داخوب صحیح او حقیقت دې. په حدیث شریف کښې دی دَ مؤمن خوب یو کلام دې په کوم کښې چه هغه خپل رب سره دَ خبرو اترو شرف حاصلوی (طبرانی)

**دَ خوب باره کښې دَ صوفیاؤ قول:** صوفیاء حضرات فرمائی په عالم کښې چه څومره څیزونه په وجود کښې راتلونکی دی دَ دې په وجود کښې دَ راتلونه وړاندې هرڅیز په یوخاص شکل کښې عالم مثالی کښې وی او په دې عالم مثال کښې چه څنګه جواهر او حقائق ثابته صورتونه او شکلونه وی دغه شان دَ معانی او اعراضو هم خاص شکلونه وی په خوب کښې چه کله انسانی نفس دَ ظاهر بدن دَ تدبیرنه فارغ شی نوبعض وخت دَ هغه تعلق عالم مثال سره کیږی اوهلته چه دَ کائنات کوم شکلونه دی هغه ده ته ښکاری اوبیادا شکلونه ده ته دَ عالم غیب نه ښکاری. اوبعض وخت په دې کښې څه غوارض داسې پیدا

کیږی چه اصل حقیقت سره څه باطل خیالات یوځای کیږی او هم په دې وجه تعبیر کونکو ته دَ دې په تعبیرپوهیدل گران شی او بعض وخت هغه دَ ټولو عوارضو نه پاک اوصفا وی نوهم دغه اصل حقیقت وی خو په دې کښې بعض دَ ښه تعبیر کولو محتاج وی ځکه چه په دې حقیقت واقعه واضح نه وی که په داسې صورت کښې هم تعبیرغلط شی نوواقعه مختلف کیږی دَ دې دَ پاره به صرف هغه خوب صحیح او الهام دَ الله تعالی دَ طرف نه اوحقیقت ثابته وی کوم چه دَ الله تعالی دَ طرف نه وی او په دې کښې څه عوارض هم شامل نه وی او تعبیرئی هم صحیح ورکړې شوې وی دَ پیغمبرانو علیهم السلام ټول خوبونه به هم داسې وو هم په دې وجه دَ هغوی خوب ته دَ وحی درجه ورکړې شوې ده دَ عامو مسلمانانو په خوبونوکښې هرقسم احتمال کیدې شی په دې وجه هغه دَ چادَ پاره حجت او دلیل کیدې نه شی دَ دوی په خوبونوکښې بعض وخت طبعی او نفسانی صورتونو گډوډوالې وی او بعض وخت دَ گناهونو ظلمت او خرابوالې په صحیح خوب باندې راخور شی او هغه ناقابل اعتماد جوړکړی او بعض وخت صحیح تعبیر په سوچ او پوهه کښې نه راځی

**داهل سنت والجماعت په نیزدخوب حقیقت**: دَ جمهورو اهل سنت والجماعة په نیز خوبونه تصورات دی کوم چه الله تعالی دَ بنده په زړه کښې پیدا کوی کله دَ فرښتې په واسطه او کله دَ شیطان په واسطه علامه طیبی رحمه الله فرمائیلی دی دَ خوبونوحقیقت دادې چه الله تعالی دَ خوب لیدونکی په زړه کښې علوم او پوهه پیداکوی څنگه چه کله الله تعالی دَ بنده په زړه کښې بیدارئی کښې علوم راپیداکوی اودَ نائم په زړه کښې دَ داسې علومو راپیداکول دَ نورو امورو علامت وی چه وړاندې تک سره عارض کیږی او هم هغه دَ دې تعبیر کیږی لکه چه اوریځ دَ باران علامت دې دغه شان دَ نائم په زړه کښې دَ علومو پیداکیدل دَ نورو امورو علامت دې.

**خوب دطبیبانوپه نظرکښې**:دَ طبیبانو خیال دې چه دَ سړی په مزاج کښې چه کله دَ کوم خلط غلبه وی هم دَهغې په مناسبت سره په خیالونو کښې راځی لکه چه دَ چا مزاج بلغمی دې نو اوبه اودَ هغې سره تعلق لرونکی څیزونه دریاب سمندر په اوبو باندې پورې وتل وغیره به گوری او په چا کښې چه دننه دَ صفراء غلبه ده نوهغه به اُور اودَ دې متعلق څیزونه گوری یا به په هوا کښې الوتل وغیره وینی. علی هذاخلط الدم والسوداء

**خوب د فلسفیانوپه نظرکښې**: فلاسفه وائی چه کوم واقعات په عالم راپیداکیږی دَ هغې مثال صورت دَ فوټو په شکل کښې په عالم بالا کښې نقش دې دَ نفس وړاندې دَ دې نه یوڅیز راځی نودا منعکس کیږی دَ خوب دَ حقیقت باره کښې نور هم ډیر اقوال دی خو په هغې باندې څه برهان قائم نه دې بلکه محض تخیلات دی

**دخوب دتعبیراصول**:دَ ابن سیرین رحمه الله طرف ته منسوب کتاب الرؤیا په شروع کښې دغه

اصول طرف ته اشاره كړي شوې ده دَهغې خلاصه داده.

① چه دَعربي لغت نه استفاده اوكړى اودَهغې په امدادسره تعبير اوويستلې شي. هم دغه وجه ده چه دَ خوب تعبيربه داسې سړى باندې ويستل پكاردى چه دَخوب ليدونكى خيرخواه هم وى اوتعبيرويستلو او دَ قواعدو ماهرهم وى.

② چه دَقرآن پاك يوآيت يا دَ حديث الفاظو ته اوكتلې شي اودَهغې په رڼاكښې تعبيراوويستلې شي.

③ چه دَشريعت دَ قواعدو او ضوابطو لاندې دَ شريعت په رڼاكښې دَخوب تعبير اولټولې شي اوبيا تعبيراوويستلې شي.

**دخوب شرعي حيثيت:** دَخوب شرعي حيثيت دادې چه دَانبياءكرامو خوب دَوحى خفى درجه لرى اودَ نورو صالحانو خوب كه دَشريعت څه ضابطې سره نه ټكراوبړى نوداسې خوبونه دَ تسلئى سبب وى. دې سره څه شرعي ضابطه نه جوړيږى. په احاديثو كښې رښتونى خوبونه مبشرات سره يادكړې شوى دى.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۶۰۶] د نيك مسلمان د خوب رشتينوالى

۴۶۰۶-[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ إِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ" [۳] قَالُوا: وَمَا الْمُبَشِّرَاتُ؟ [۴] قَالَ: "الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] د نبوت د آثارو نه (اوس) هيڅ نه دي پاتې شوي علاوه د مبشراتو نه[۳] صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض وكړو (يا رسول الله) د مبشراتو نه څه مراد دي؟[۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل ښه خوب. (بخاري)

**حل اللغات:** ① اَلْمُبَشِّرَاتُ: زيرى.

۴۶۰۷-(۲) [۱] وَزَادَ مَالِكٌ بِرِوَايَةِ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ: "[۲] «يَرَاهَا الرَّجُلُ الْمُسْلِمُ أَوْ تُرَى لَهُ»".

**ترجمه:** [۱] او امام مالك رحمه الله په هغه روايت كې چې هغوئ د حضرت عطاء ابن يسار رحمه الله نه نقل كړي دي دا الفاظ هم نقل كړي دي [هغه ښه خوب] چې مسلمان يې خان د پاره ويني يا د هغه باره كې يې بل سړي ويني.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ إِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ:

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب التعبير /باب المبشرات (رقم-۶۹۹۰) وابوداود فى السنن رقم الحديث ۵۰۱۷

[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب قوله لهم البشرى فى الحياة الدنيا (رقم-۲۲۷۳) ومالك فى الموطا كتاب الرؤيا/باب ما جاء فى الرؤيا (رقم-۳)

**دمبشرات څخه مراد:** دادَ بشارت نه دې زیری ته وائی یعنی دَ نبوت دروازه اوس بنده شوې ده دَ نبی آخرالزمان نه پس بل څوك نبی راتلونکې نشته. لهذا دَ آسمانی وحی نزول ختم شوې دې. اوس دَ خوب په شکل کښې صرف بشارتونه پاتې دی.

**په خوبونو ه مبشرات د اطلاق وجه:** په خوب کښې چونکه غالب عنصردَ بشارت وی په دې وجه دَ غلبې په توګه دا غالب حیثیت مطلقاً مبشرات ګرځولې شوی دی ګنی بعضې خوبونه رښتیاوی. لیکن په هغې کښې دَ بشارت په ځائې نذارت وی یعنی دَ غم خبر وی. هم په دې وجه بعضو علماؤ وئیلی دی چه دلته دَمبشرات نه مراد مطلق خبر مراد دې. که هغه په بشارت باندې مشتمل وی اوکه په نذارت باندې مشتمل وی.

**[۳۰۸] دښه خوب د نبوت حصه کیدل**

> ۳۶۰۸ – [۲] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② " «الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل② ښه خوب د نبوت په شپږ څلوېښت (۴۶) حصو کې یوه حصه ده . (بخاري ، مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ" یعنی رښتونی خوب دَ نبوت څلوېښتمه حصه وی.

**د نبوت د جزء کیدو په باره کښې مختلف روایات:** په دې روایت کښې دَ ۴۶ عدد ذکر دې. دَ دې نه علاوه نورو روایاتو کښې مختلف شمیر ذکر دې. ۴۴، ۴۵، ۴۷، ۴۹، ۵۰، ۷۰، ۷۶، ۲۴، ۷۲، ۴۲، ۲۵، ۲۶، ۴۰. حافظ ابن حجر رحمه الله دا ټول ذکر کړی دی.

**د اجزاؤ د تعداد په اختلاف کښې تاویل:** قرطبی رحمه الله فرمائی دَ اجزاء دَ تعدد دا اختلاف دَ خوب لیدونکو دَ مختلفو حالاتو په وجه دې. په امانت صدق او نیتونوکښې خلق مختلف وی نودَ هغوی په خوبونو کښې دَ اجزاء اختلاف دې.

**خوب د نبوت د جزء کیدو په مفهوم کښې اقوال:** ① په تفسیر مظهری کښې دَ دې توجیه دابیان کړې شوې ده چه په رسول الله ﷺ باندې دَ نبوت دَوحی سلسله درویش کاله جاری وه. په دې کښې رومبو شپږو میاشتو کښې دَ الله تعالی وحی دَ خوبونو په شکل کښې راتله باقی پنځه څلوېښت ششماهی جبرائیل امین دَ الله تعالی پیغام دَ انسان په شکل کښې راوړلو دغه شان رښتونی خوبونه دَ وحی نبوت شپږ څلوېښتمه حصه شوه او په کومو روایتونوکښې چه کم و بیش مذکوردی په هغې کښې خویا تقریبی کلام کړې شوې دې یا

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب رؤیا الصالحین (رقم-۶۹۸۳) ومسلم فی کتاب الرؤیا (رقم-۷ - (۲۲۶٤)) ومالک فی الموطا کتاب الرؤیا/باب ما جاء فی الرؤیا (رقم-۱)

هغه سنداً ساقط دی.

② علامه قرطبی رحمه الله فرمائی دَ نبوت دَ جز نه مراد دادې چه په خوب کښې انسان بعض وخت داسې یوڅیز ګوری کوم چه دَهغه په قدرت کښې نه وی مثلاً دې ګوری چه په آسمان باندې الوزی یا دَ غیب نه داسې څیز اوګوری دَ کوم حاصلول چه دَهغه په قدرت کښې نه وی نودَ هغې ذریعه بغیر دَ امدادا و الهام دَ الله تعالی نه نور هیڅ هم نشی کیدې کومه چه اصل خاصه دَ نبوت ده په دې وجه ئی دې ته دَ نبوت جزء اوونیل

③ بعض اهل علم فرمائیلی دی چه دَ جزء نه جزء منطقی مراد نه دې چه هغه کل سره وی بلکه دَ دې معنی داده چه نیک خوبونه دَ لواحق نبوت او صفاتو دَ انبیاء کرامو نه دی اودَ انبیاء کرامو صفاتوسره غیرنبی هم متصف کیدیشی نولکه نیکو خوبونو ته ئی جزء وئیلو سره دَ دې تعریف او اوچته درجه بیان کول مقصود دی چه دا دَ نبوت یوه حصه ده.

④ بعض حضرات فرمائی دَ روایت مطلب دادې چه رښتونې خوب د علم نبوت د اجزاء نه دې نه چه دَ نبوت نه دې ځکه چه علم نبوت باقی دې او نبوت متجزی نه دې اودا منصب ختم شوې هم دې اوس څوک نبی راتلونکې نشته.

⑤ بعض علماء کرام فرمائی دلته دَ نبوت اصطلاحی معنی مراد نه ده معنی اعلام مراد ده. اوس به معنی شی رؤیا خبر صادق دې دَ الله تعالی دَ طرف نه لکه څنګه چه نبوت نباء صادق دې دَ الله تعالی دَ طرف نه نو رؤیا صالحه مثل نبوت دی دَ خبرصادق کیدلو په اعتبارسره.

⑥ ملاعلی قاری او نور شراح فرمائی بهتر دا دی چه اوونیلې شی په حدیث کښې خوب لیدلوته اجزاء نبوت وئیلې شوې دې او اجزاء نبوت هم انبیاء کرام علیهم السلام پیژنی مونږ ته معلوم نه دی مجملاً هم دومره معلومیدل کافی دی چه ښه خوب زیرې دې

**تنبیه:** دلته خلق غلط شوی دی چه دَ نبوت د جزء په دنیا کښې باقی پاتې کیدل او جاری کیدل ئې دَ نبوت باقی او جاری پاتې کیدل ګڼړلی دی کوم چه دَ قرآن کریم دَ قطعیه نصوص او بې شمیره احادیثو صحیحه نه خلاف دی بلکه دَ اجماع امت نه هم خلاف دی ځکه چه عقیده دَختم نبوت اجماعی مسئله ده او دا اونه ګڼړئی چه دَ یوڅیز یو جزء موجود کیدو سره د اصل څیز وجود لازم راځی. که دَ یوسړی یونوک دې یا یوویښته چرته موجود دې نو یوانسان دا وئیلې شی چه دلته هغه سړې موجود دې؟ که دَ مشین دَ ټولو پرزونه چاسره یوه پرزه موجود وی نو ولې دې ته دَ ټول مشین موجود کیدل وئیلی شی؟

## [۴۶۰۹] د نبی کریم ﷺ په خوب کښې لیدل

۴۶۰۹-[۳]([1]) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي ③ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ فِي صُورَتِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې زه په خوب کې وليدم هغه په حقيقت کې زه وليدم ③ ځکه چې شيطان ځما په صورت نشي جوړيدې (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① لَا يَتَمَثَّلُ: په مثل نه شي جوړيدې، صورت نه شي جوړولې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي:

**په مذکور جمله کښې بلاغې نکته:** علامه طيبي رحمه الله فرمائي من موصوله متضمن بمعنی الشرط دې دلته د شرط او جزا په مينځ کښې اتحاد معلوميږي کوم چه د کمال مبالغه د پاره کيږي ((اى من رآني في المنام فقد رآني حقيقةً على كماله بلا شبهة ولا ارتياب ويدل عليه حديث ابي قتادة رضي الله عنه انه عليه السلام قال من راني فقد راني الحق والحق ههنا مصدر مؤكد يعني فقد راني روية الحق والاظهر ان المراد بالحق ههنا الصدق اى فقد صدقت رؤياه فانه قد راني لا غيري.))

**د مذکوره جملې په توضيح کښې نهه اقوال:** ① بعض حضراتو فرمائيلی دی چه دا عام نه دې بلکه د امراد دې چه په خاص هيئت خاص حليه او شکل وصورت کښې ئې رسول الله ﷺ اوليدو نو حضور ﷺ ليدل به ورته ونيلی شي ګنی نه

② بعضې حضراتو نوره هم تنګی کړې ده فرمائي چه رسول الله ﷺ په کوم مخصوص صورت کښې د دنيانه رحلت فرمائيلې دې او د دغه آخری عمر په مخصوص صورت کښې ئې اووينی نو فقد رانی ګنی نه ترديږ پورې چه د وفات په وخت کښې د رسول الله ﷺ په سر او ږيره مبارکه کښې د سپينو ويښتو څومره تعداد وو هم دومره اووينی نو فقد رانی ګنی نه دې وجې نه چه ابن سيرين رحمه الله ته چا خپل خوب بيان کړو کوم چه به د حضورپاک ﷺ په مخصوص حليه باندې نه وونو فرمائيل به ئې اذهب ما رأيتَ النبيَّ صلى الله عليه وسلم

③ بعض حضرات فرمائي چه د عمر شريف په کوم وخت کښې چه په کوم يو صورت کښې رسول الله ﷺ په خوب کښې اووينی بس کتل به شمير وی که د ځوانئی په صورت کښې وی يا د کهولت او يا آخری عمر په حالت کښې وی بهرحال هغه به د رسول الله ﷺ ليدل

[1]) اخرجه البخاري في كتاب العلم/باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۱۰) ومسلم في كتاب الرؤيا/باب قول النبي عليه الصلاة والسلام من رآني في المنام فقد رآني (رقم-۱۰ - (۲۲۶۶)) وابن ماجه في كتاب تعبير الرؤيا/باب رؤية النبي صلى الله عليه وسلم في المنام (رقم-۳۹۰۱) واحمد في المسند:۴۱۱/۲

وی کما فی الروایة لانی اری فی کل صورة.

④علامه مازری رحمه الله فرمائی چه حضور پاک ﷺ په معروف مشهور او مخصوص صورت کښې اووینی یا دَ دې نه په علاوه صورت کښې بهرحال هغه به هم حضور ﷺ لیدلې وی فرق صرف دادې چه که په مخصوص او معهوده صورت کښې نی اولیدو نو هغه حقیقی رؤیا دې او که په دویم صورت باندې ا وکتلونو تاویل رؤیا دې لکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله په خوب کښې دَ حضورپاک ﷺ مختلف مبارک هډوکی راجمع کول لیدلې وو نو ابن سیرین تعبیر ورکړو چه تاسو به دَ نبی کریم ﷺ دَ احادیثو دَمعانی جامع یئی. دَ کومو احادیثو په باره کښې چه دَ صحابه کرامو او تابعینو په مینځ کښې اختلاف دې بیا تاسو به امام المسلمین یئی نو هم داسې اوشو.

⑤نووی رحمه الله فرمائی په کوم صورت چه هم حضور مبارک ﷺ اووینی هغه به هم حضور مبارک ﷺ لیدلې وی او البته دَ دین او ایمان دَ نقص په اعتبارسره مختلف صورتونه کیدیشی. چاکه حضورپاک ﷺ په ښه صورت کښې په خوب کښې اولیدلو نوهغه دَ کمال دین اوایمان علامت دې اوچاچه دَدې خلاف اولیدلو نودا دَ کتونکی دَ دین او ایمان دَنقص طرف ته اشاره ده دې دَ پاره چه هغه دَ خپل دین او ایمان علاج اوکړې شی. نبی کریم ﷺ په خوب کښې لیدل یوکسوټی او پیمانه ده په کوم سره چه سړې خپل باطنی حالات معلومولې شی کامل الایمان نوره ترقی هم کولې شی او ناقص الایمان خپله اصلاح کولې شی.

⑥ابن باقلانی رحمه الله فرمائی فقد رانی معنی رؤیاه صحیحه لیست باضغاث ولامن تسویلات الشیطان دَ روایت الفاظ فقد رای الحق سره دَ دې تائید کیږی اودَ روایت الفاظ فقد رای الحق دی.

⑦دَ دې معنی من رانی فی المنام سیرانی ده که لیدونکی صحابی وی نودَ دغه صحابی دَ پاره بشارت به وی چه دَ هغه په لرې اوسیدو باندې هم کله چه هغه رسول الله ﷺ په خوب کښې اولیدلو نو ډیر زربه هغه ته زیارت یقظةً هم نصیب شی. په بل روایت کښې سیرانی فی الیقطة په صراحت سره واقع دې په دې قول سره دَ رسول الله ﷺ دا ارشاد مبارک به صحابه کرامو رضی الله عنهم سره مخصوص وی. که غیر صحابی لیدلې دې نوبیا دَ دې مطلب دادې چه ده ته به په آخرت کښې خاص زیارت نصیب کیږی په کوم کښې چه به لیدونکی ته حضور ﷺ سره قرب حاصل وی او نبی کریم ﷺ به دَ هغه سفارش کوی.

⑧دَ دې معنی دَ تشبیه په توګه ده چه داسې لیدونکی ته به په مدینه منوره کښې روضة الاقدس باندې دَ حاضرئی توفیق حاصلیږی.

⑨ فقد رانی نه معنی رؤیا مراد ده یعنی داسې سړی ته بشارت او زیرې دې چه هغه به دَ

رسول الله ﷺ په طریقه باندې وی اودَ حضورپاک ﷺ اتباع به ورته نصیب وی جمهور علماء فرمائی چه روایت په خپل ظاهر باندې دې چاچه رسول الله ﷺ په خوب کښې اولیدلو هغه هم رسول الله ﷺ لیدلې دې اوس که هغه زیارت دَ حلیه معهوده نه علاوه کړې وی نودا دَ لیدونکی دَ احوالو په اعتبارسره دې شراح فرمائی دَ دې مثال دَ آئینې په شان دې دَ کوم رنګ چه آئینه وی هم هغه شان شکل به په کښې ښکاری دَ کتونکی چه کوم قسم احوال وی هم هغه شان صفاتو سره به زیارت کیږی

**دنبی علیه السلام د لیدو دوه صورتونه:** ① صوفیاء کرام فرمائی چې بعضو ته الله تعالی دومره قوت ورکوی چه هغوی بعینه دَ رسول الله ﷺ دَ ذات اقدس مبارک زیارت کوی

② بعضې کسانو ته دَ آئینې په شان مثالی زیارت نصیب کیږی حقیقی صورت ورته نصیب نشی.

**اشکال:** دَ رسول الله ﷺ زیارت هم په یووخت کښې په مختلفو ښارونوکښې مختلفو ملکونوکښې مختلفو خلقوته کیږی نو حضور ﷺ هم په یووخت باندې کوم کوم ځای ته تشریف اوړلې شی؟

**د اشکال جواب:** دَ رسول الله ﷺ مثال دَ آفتات اومهتاب یعنی نمر او سپوږمئی دې نمر په خپل ځای باندې قایم دې خو په مختلفو ملکونوکښې مختلف خلق ګوری دغه شان که رسول الله ﷺمختلفو ځایونوته تشریف یونه سی نوبیا نی هم مختلف مقاماتوکښې مختلف خلق په یووخت دَ زیارت شرف حاصلولې شی نو هیڅ اشکال نشته

**قوله:** فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ بِي:

**د شیطان په نبوی شکل کښې عدم تمثل:** یعنی شیطان تمثل نه شی کولې اوخپل ځان دَ حضوراکرم ﷺ په شکل کښې نه شی خودلې یعنی لکه څنګه چه دَ بیدارئی په صورت کښې شیطان دَ نبی کریم ﷺ په شکل چاته نشی راتلې هم دغه شان دَ خوب په حالت کښې هم چاله نشی راتلې اودا معجزه د رسول الله ﷺ سره خاص ده.

**یوه نازکه خبره اودهغې توجیهات:** محققین حضرات فرمائی چه شیطان دَ الله تعالی په شکل کښې تمثل کولو سره دَ چا په زړه کښې دا وسوسه اچولې شی چه زه الله یم خودَ حضور ﷺ تمثل کولو سره وسوسه نشی اچولې او اهل علم دَ دې مختلف وجوهات بیان کړی دی

① حضوراکرم ﷺمنبع دَهدایت او مظهردَ رشد دې او شیطان مظهر ضلالت دې نو په هدایت اوضلالت کښې تضاددې بیاځکه تمثل کولې شی اودَالله تعالی دَپاره صفت هدایت سره سره صفت اضلال هم ثابت دې بلکه هغه خو دَ ټولو متضاد صفاتو جامع دې لهذاشیطان چه مظهرضلالت دې نوهغه په صفت اضلال کښې دَالله تعالی تمثل کولې شی

④ دَ مخلوق دَ طرف نه دَ الوهیت دعوی کول ښکاره بطلان دې دَ محل اشتباه نه کیدلو په وجه دَ الوهیت دَ دعوی نه پس که دَ هغه نه خوارق صدور هم اوشی نوبیا هم هغه باطل دې نوکه شیطان دَ الله تعالی تمثل کولو سره چاله راغلو او صدور خوارق هم اوکړی نودا دَ صریح البطلان کیدلو په وجه به چاته هم شک نه وی نو په دې وجه تمثل باری تعالی کولې شی اودَ شیطان دَ نبوت دعوی کولو کښې اشتباه ده ځکه چه نبی انسان وی کما قال تعالی قل انما انا بشر مثلکم یوحی الی نوکه اوس شیطان هم انسانی شکل اختیار کړی او دَ نبوت دعوی اوکړی نودا دَ اشتباه محل دې په دې وجه الله تعالی هغه ته دا قدرت ورنه کړو چه هغه دې دَ حضور ﷺ تمثل اوکړیشی دې دَپاره چه دَ نبوت منصب محفوظ پاتې شی او په حق او باطل کښې اشتباه نه وی.

## [۳۱۰] د نبی علیه السلام په خوب کښې لیدل

۳۱۰-[۴] (۱) ① وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ رَآنِي فَقَدْ رَأَى الْحَقَّ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوقتاده رضی الله عنه وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل ② چا چي زه په خوب کې ولیدم هغه حق ولیدلو یعنی د هغه خوب ریښتني دي چې هغه زه ولیدلم (بخاري، مسلم)

**تسهیلات: قوله:** مَنْ رَآنِي فَقَدْ رَأَى الْحَقَّ:

**دنبی عیه السلام د لیدلو حقانیت:** یعنی دغه سړی هم زه لیدلې یم داحق دی دروغ نه دی په دې باره کښې دَ دروغ خیالی او شیطان دخل نه شی کیدی. دا اعزاز دَ نبی کریم دَ خصائصو نه دې کوم چه دَ اعجاز نبوی حصه ده. هرسړې نبی کریم دَخپل عمل په آئینه کښې ګوری

## [۳۱۱] د نبی کریم په خوب کښې دَ لیدلو فضیلت

۳۱۱-[۵] (۲) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَسَيَرَانِي فِي الْيَقَظَةِ ③ وَلَا يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِي»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړي چې زه په خوب کې ولیدم هغه به زر ما د بیدارئ په عالم کې هم ووینې ③ او شیطان ځما په صورت نشي جوړیدي (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْيَقَظَة: بیداری.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب من رأی النبی صلی الله علیه وسلم فی المنام (رقم-۶۹۹۶) ومسلم فی کتاب الرؤیا/باب قول النبی علیه الصلاة والسلام من رآنی فی المنام فقد رآنی (رقم-۱۱ - (۲۲۶۷) واحمد فی المسند:۳۰۶/۵

[2] اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب من رأی النبی صلی الله علیه وسلم فی المنام (رقم-۶۹۹۳) ومسلم فی کتاب الرؤیا/باب قول النبی علیه الصلاة والسلام من رآنی فی المنام فقد رآنی (رقم-۱۱ - (۲۲۶۶)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَيَرَانِي فِي الْيَقَظَةِ:

**د یقظة په مصداق کښې دوه احتمالات:** یعنی کوم سړی چه زه په خوب کښې اولیدلم هغه سړی به ډیر زر ما په بیدارئی کښې اووینی.

① یعنی کوم سړي ما په خوب کښې اوګوری هغه به ما په عالم آخرت کښې په بیدارئی کښې وینی لکه چه دَدغه سړی انجام به ښه وی اودَ ایمان سره به دَ دنیا نه اوچتیږی رخصت کیږی به.

② یعنی زما په زمانه کښې چرته یو سړي ما په خوب کښې وینی هغه به ماسره ملاقات کوی او مابه په بیدارئی کښې اووینی. په دې صورت کښې دَدې حدیث تعلق دَنبی کریم دَ حیات طیبه سره دې.

**[۳۳] د ښه او خراب خوب بیا نولو اسلامی طریقه**

۳۳–[۲] ()① وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللَّهِ،③ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ؟④ فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يُحِبُّ⑤ فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ،⑥ وَإِذَا رَأَى مَا يَكْرَهُ⑦ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ شَرِّهَا وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ،⑧ وَلْيَتْفُلْ ثَلَاثًا،⑨ وَلَا يُحَدِّثْ بِهَا أَحَدًا،⑩ فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوقتاده ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② ښه خوب د خداي ﷻ د طرف نه دي③ او خراب خوب د شیطان د طرف نه دي④ لهذا په تاسو کې چې کوم سړي داسې خوب ویني چې په هغې سره هغه خوشحاله شي ⑤ نو پکار دي چې هغه خوب صرف د هغه سړي په مخکې بیان کړي چې هغه یې دوست او همدرد ګڼي (لکه علماء او صلحاء او اقرباء او په هغه خوب باندې دې د خداي ﷻ شکر اداء کړي او د هغه حمد او تعریف دې وکړي څرنګه چې د بخاري او مسلم په یو بل روایت کې منقول دي)⑥ او هرکله چې داسې خوب ویني چې هغه نه خوښوي ⑦ نو پکار دي چې د هغه خوب د خرابې او د شیطان د شر نه د خداي ﷻ پناه وغواړي⑧ او د شیطان د لرې کولو په قصد دې دري ځلې (چپ طرف ته) توکې⑨ او هغه خوب دې د چا په مخکې نه بیانوي (که دوست وي یا دښمن) ⑩ نو هغه خوب به هغه ته نقصان نه رسوي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْحُلْمُ: خراب خوب، ② وَلْيَتْفُلْ: او دې توکی،

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب صفة إبلیس وجنوده (رقم-۳۲۹۲) ومسلم فی کتاب (رقم-٤ - (۲۲۶۱) والترمذی فی کتاب الرؤیا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب إذا رأی فی المنام ما یکره ما یصنع (رقم-۲۲۷۷) وابن ماجه فی کتاب تعبیر الرؤیا/بباب من رأی رؤیا یکرهها (رقم-۳۹۰۹) ومالک فی الموطا کتاب الرؤیا/باب ما جاء فی الرؤیا (رقم-٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللهِ، وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ:

**دخوب دوه قسمونه:** ① دَ ښه خوب ليدلو سره دَالله تعالى دَ طرف نه بنده ته يو بشارت اوزيږي حاصليږي په کوم چه بنده دَ الله تعالى شکراداکوي. نوالله تعالى خوشحاليږي په دې اعتباردا خوب دَ رحمان دَ طرف نه دې.

② په خراب خوب سره سړی غمگين او پريشان کيږی اوپه قسم قسم وسوسوکښې راګيريږی په کوم سره چه شيطان ډيرخوشحاليږی په دې وجه وئيلی شوی دی چه داسې خوبونه دَ شيطان دَ طرف نه وی يعنی شيطان په دې خوشحاليږی.

**قوله:** فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يُحِبُّ فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ:

**دخراب خوب ليدلوآداب:** ① چې يوکس خراب او شيطانی خوب اووينی نوشريعت د هغه دپاره څه آداب بيان کړی دی. يوادب په دې زيربحث حديث کښې دې او درې په راروان حديث نمبر (۴۶۱۳) کښې راروان دی.

① دَداسې خوب دَې د چا په مخکښې تذکره نه کوی.

② ګس طرف ته دې توکانړې اوتوکی دې دَپاره چه شيطان ذليل شی او اوتختی.

③ د خراب خوب په ليدو دې اعوذ بالله اووائی

④ چې په کوم اړخ اوده وی هغه اړخ دې بدل کړی.

**[۳۳] د خراب خوب د ليدو درې آداب**

۳۳—[۷] ()[1] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «إِذَا رَأَى أَحَدُكُمُ الرُّؤْيَا يَكْرَهُهَا ③ فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا، ④ وَلْيَسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ ثَلَاثًا، ⑤ وَلْيَتَحَوَّلْ عَنْ جَنْبِهِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت جابر ﷛ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرکله چې په تاسو کې څوك داسې خوب ووينې چې هغه نه خوښوي ③ نو هغه ته پکار دي چې چَپ طرف ته درې خلې توکي ④ او درې خلې دشيطان نه د الله پناه وغواړي ⑤ او خپل اړخ دې بدل کړل په کوم چې هغه خوب د ليدو وخت اوده شوي وو. (مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلْيَبْصُقْ: اودې توکی، ② وَلْيَتَحَوَّلْ: حالت دې بدل کړی.

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الرؤیا (رقم-۵ - (۲۲۶۲) وابن ماجه فی کتاب تعبیر الرؤیا/بباب من رأی رؤیا یکرهها (رقم-۳۹۰۸) اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر/بباب القید فی المنام (رقم-۷۰۱۷) ومسلم فی کتاب الرؤیا (رقم-۶ - (۲۲۶۳) والترمذی فی کتاب الرؤیا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بباب فی تأویل الرؤیا ما یستحب منها وما یکره (رقم-۲۲۸۰) وابن ماجه فی کتاب تعبیر الرؤیا/بباب الرؤیا ثلاث (رقم-۳۹۰۶) واحمد فی المسند:۲/۲۶۹

**تسهیلات:**

**قوله: فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا:**

**د یبصق او یتفل په مینځ کښې فرق:** په حدیث الباب کښې د "یبصق" الفاظ ذکر دی حالانکه په اولنی حدیث کښې لفظ د "یتفل" مذکور دې، د معنی په اعتبار سره دواړ الفاظ په ظاهر یو شان دی لیکن په دواړو کښې لږ شان فرق دې،

تفل د خلې نه توکانړی راوښکلو ته وائی. او د "بصق" معنی د خلې د دننه حصی نه توکانړی راوښکل چه په هغی کښې د حلق توکانړی هم شامل وی. او توکانړو ته بصاق، بزاق دواړه وئیل کیږی.

**د توکلو درې مراتب:** ددې نه دا معلومه شوه چه د توکلو په سلسله کښې اولنی درجه د "بصق" ده بیا وریسی د "تفل" ده او د تفل نه بعد نفث دې او د نفث معنی دا ده چه شونډی په توکانړو سره لوندول یا پوک وهل.

**[۳۳] د خوبونو اقسام**

۴۳۳—[۸] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ يَكَدْ يَكْذِبُ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ، [۳] وَرُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ، [۴] وَمَا كَانَ مِنَ النُّبُوَّةِ، فَإِنَّهُ لَا يَكْذِبُ. [۵] قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ: وَأَنَا أَقُولُ: الرُّؤْيَا ثَلَاثٌ: [۵] حَدِيثُ النَّفْسِ، [۶] وَتَخْوِيفُ الشَّيْطَانِ، [۷] وَبُشْرَى مِنَ اللَّهِ، [۸] فَمَنْ رَأَى شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلَا يَقُصَّهُ عَلَى أَحَدٍ، [۹] وَلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم وخت چې زمانه نزدې شي نو د مؤمن خوب به دروغ نه وي [۳] او د مؤمن خوب د نبوت د شپږ څلویښت د اجزاؤ نه یوجز دې [۴] او کوم څیز چې د نبوت د اجزاؤ نه وي هغه دروغ نه وي [۵] او محمد ابن سیرین رحمه الله [چې یوجلیل القدر تابعي او د فنِ تعبیر خواب امام دې] فرمایي چه زه [د حضور ﷺ نه د منقول احادیثو په رڼا کې] دا وایم چې خوب په درې قسمه دې [۵] یو خو د نفس خیال [۶] دویم د شیطان هیرول [۷] دریم د الله د طرف نه بشارت ،[۸] کوم سړي چې خراب خوب (یعني هیرونکې) خوب ووینې نو هغه دې د چا مخکې نه بیانوي [۹] او داسې دې وکړي چې خوب لیدو نه پس دې پاڅې او نفل مونځ دې وکړي [چې د مونځ د برکت او نورانیت په سبب د هغه زړه ته اطمنان نصیب شي او د خوب د خرابئ چې کوم وهم او وسوسه په زړه کې پیدا شویده هغه ختمه شي].

**حل اللغات:** ① لَمْ يَكَدْ: نه به وی، ② حَدِيثُ النَّفْسِ: د نفس خیال، ③ تَخْوِيفُ: ویرول، ④ بُشْرَى: زیری،

قَالَ: وَكَانَ يُكْرَهُ الْغُلُّ فِي النَّوْمِ، وَيُعْجِبُهُمُ الْقَيْدُ. وَيُقَالُ: الْقَيْدُ ثَبَاتٌ فِي الدِّينِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(¹) اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب القید فی المنام (رقم-۷۰۱۷) ومسلم فی کتاب الرؤیا (رقم-۴ - (۲۲۶۱)

**ترجمه:** [۱] او ابن سیرین رحمه الله فرمایي چې رسول الله ﷺ به په خوب کې طوق لیدل نه خوښول او قید لیدل به یې خوښول د خوب د تعبیر ماهر علماء وایي چې د قید مطلب په دین قائم اوسیدل دي داپوره روایت چې د حضور ﷺ ارشاد او د ابن سیرین رحمه الله په قول مشتمل دي بخاري او مسلم نقل کړي دي (لیکن د روایت د آخري جز باره کې دوارو ته تردد دي)

**حل اللغات:** ⑤الْغُلُّ :طوق، تیزندئ، غاړه کښې رسئ. ⑥الْقَيْدُ: خپو کښې بیړئ،زنځیر.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَااقْتَرَبَ الزَّمَانُ:

**د اقتراب الزمان په مفهوم کښې درې اقوال:** ① صاحب الفائق فرمائی دې نه آخری زمانه مراد ده چه قرب قیامت به وی. کمافی روایة انه علیه السلام قال فی آخر الزمان لاتکادرؤیاالمؤمن تکذب. په اقتراب سره ئی څکه تعبیر اوفرمائیلو چه شئ قلیل اوقصیر کیږی نودَ دې اطراف او اړخونه نیزدې کیږی. بیا آخری زمانه کومه یوه مراد ده؟ بعض فرمائی خروج مهدی زمانه ځکه چه هغه وخت به عدل اوانصاف قایم وی هغه وخت به دَ خوشحالئی وخت وی زمانه به قلیل یعنی مختصر معلومیږی لکه دَ دې په مقابله کښې دَ پریشانو وخت قلیل هم کثیر یعنی اوږد معلومیږی. دَ بعضو خیال دې چه دا به هغه زمانه وی چه کوم وخت حضرت عیسی علیه السلام دجال قتل کړی او خلقو سره شی هغه وخت به هم دَ عدل او انصاف وخت وی. بعضو وئیلی دی چه آخری زمانه به هغه وی چه کله مسلمان په ډیر خراب حالت کښې وی چه نه به اعوان او انصار وی اونه به ئی دَ څه قسم امداد کولې شی نو په داسې وخت کښې به دوی ته رښتونی خوبونه ښکاری دې دَ پاره چه دَ دوی امداد اوکړې شی اودوی ته په رښتونو خوبونو سره لاړخودنه اوشی.

② هغه زمانه اوهغه وخت مراد دې کوم وخت چه شپه او ورځ دواړه برابر شی هغه وخت دَ انسان مزاج صحیح او معتدل وی نو په دې وجه به ئی هم په خوبونو کښې ګډوډوالې نه وی بلکه خوبونه به ئی رښتونی وی.

③ هغه زمانه مراد ده په کومه کښې چه کال دَ میاشتو په شان، میاشتې دَ هفتو په شان، او هفتې دَ ورځو په شان او دغه شان ورځ دَ یوې ګهړئی په شان نیزدې نیزدې شی. کمافی روایة انه قال یتقارب الزمان حتی تکون السنة الخ.

**[۳۶۱۵] په خوب کښې د طوق ليدل نه خوښول**

۳۶۱۵—() [۱] قَالَ الْبُخَارِيُّ: رَوَاهُ قَتَادَةُ وَيُونُسُ وَهُشَيْمٌ وَأَبُو هِلَالٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. [۲] وَقَالَ يُونُسُ: لَا أَحْسَبُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْقَيْدِ. [۳] وَقَالَ مُسْلِمٌ: لَا أَدْرِي هُوَ فِي الْحَدِيثِ أَمْ قَالَهُ ابْنُ سِيرِينَ؟ [۴] وَفِي رِوَايَةٍ نَحْوُهُ، [۵] وَأَدْرَجَ فِي الْحَدِيثِ قَوْلَهُ: "وَأَكْرَهُ الْغُلَّ." إِلَى تَمَامِ الْكَلَامِ.

**ترجمه:** [۱] چنانچه امام بخاري رحمه الله وايي دا حديث (يعني پوره روايت يا صرف هغه جزو چې په هغې کې د قيد ذکر دی) قتاده رحمه الله، يونس رحمه الله، هشيم رحمه الله او ابوهلال رحمه الله د محمد ابن سيرين نه او هغوئ د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه (ابتدايي جزو بطريق مرفوع او آخري جزو بطريق موقوف) نقل کړي دي [۲] او يونس ويلي دي چه خما ګمان دي چې د حديث هغه جزو چې په هغې کې [ابن سيرين] د قيد ذکر کړي دي [يعنی دا الفاظ يعجبهم القيد والقيد ثبات في الدين د حضرت ابوهريره رضی الله عنه قول نه دي بلکې] د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ارشاد دي [ګويا د بخاري ددې قول مطلب دا شو چې ابن سيرين رحمه الله د نقل کونکې يو راوي يونس رحمه الله مطابق د روايت هغې جزو چې په هغه کې د طوق ذکر دي د حضرت ابوهريره رضی الله عنه يا د ابن سيرين رحمه الله خپل قول دي البته هغه جزو چې هغې کې د قيد ذکر دي د حضرت ابوهريره رضی الله عنه يا د ابن سيرين رحمه الله خپل قول نه دي بلکې حديث مرفوع يعنی د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد دي چې د حضور صلی الله علیه وسلم نه ابوهريره رضی الله عنه او د ابوهريره رضی الله عنه نه محمد ابن سيرين رحمه الله نقل کړي دي] [۳] او امام مسلم چې ابن سيرين رحمه الله نه روايت نقل کوي دا وايي چې ماته معلومه نه ده چې هغه جز چې په هغې کې د قيد الفاظ دي د حضور صلی الله علیه وسلم د حديث الفاظ دي يا د ابن سيرين رحمه الله خپل قول دي [۴] د مسلم يوبل روايت کې دغه شان الفاظ دي [۵] او مسلم داهم ويلي دي چې حضرت ابوهريره رضی الله عنه يا محمد ابن سيرين رحمه الله په حديث کې ادراج کړي دي په دې طور چې هغوئ اوويل زه طوق ليدل ښه نه ګنړم الخ [ګويا د مسلم د قول مطلب دا دي چې د حديث پوره آخري جزو چې د طوق او قيد په ذکر مشتمل دي د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد نه دي بلکې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه يا د محمد ابن سيرين رحمه الله خپل قول دي او د بخاري او مسلم ددې اقوالو په رڼا کې قال وکان يکره الخ د ضميرونو حقيقت حال هم منکشف کيږي چې دا ضميرونه چا طرف ته راجع کول پکار دي].

**حل اللغات:** ① أَحْسَبُهُ: خما ګمان دي، ② الْقَيْدُ: خپو کښې بيړئ، زنځير ③ الْغُلّ: تيزندئ، غاړه کښې رسئ، طوق.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأُحِبُّ الْقَيْدَ فِي النَّوْمِ وَأَكْرَهُ الْغُلَّ:

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب التعبير /باب القيد في المنام (رقم-۷۰۱۷) ومسلم في كتاب الرؤيا (رقم-٤ - (۲۲۶۱))

**د قید د خوښولو او د طوق د بدګڼلو وجه:** غل په ضمه دَ غین سره په معنی د طوق، په خوب کښې په ستې کښې دننه طوق په دې وجه بد ګڼړلې شو چه دا دَ دوزخیانو علامت دې. کما قال تعالی (إِذِ الْأَغْلَٰلُ فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ) او په خپو کښې بیړئی په دې وجه خوښوی چه په خپه کښې بیړئی دَ رامنع کولو دَ پاره وی یعنی دَ ګناه نه منع کیدل چه په دین دَ ثابت کیدو علامت او هغه مطلوب او مقصود دې.

### [۴۳۳] شیطانی خوب چاته نه بیانول

۴۳۳-[۹] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: [۳] رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ رَأْسِي قُطِعَ. [۴] قَالَ: فَضَحِكَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَالَ: [۵] " إِذَا لَعِبَ الشَّيْطَانُ بِأَحَدِكُمْ فِي مَنَامِهِ [۶] فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ النَّاسَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایي [۲] چه یوه ورځ د نبي کریم ﷺ په خدمت کې یوبانډچي (کلیوال) حاضر شو او عرض یې وکړو [۳] چې (یا رسول الله) ما خوب لیدلي دي چې ګویا خما سر پرې کړې شوي دې [۴] جابر رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ دا خوب اوریدو سره وخندل او وې فرمایل [۵] هرکله چې په تاسو کې د یوسړي په خوب کې هغه سره شیطان تماشه (لوبې) وکړي [۶] نو هغه خوب دې د خلقو په مخکې نه بیانوي. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا لَعِبَ الشَّيْطَانُ بِأَحَدِكُمْ فِي مَنَامِهِ فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ النَّاسَ:

**د شیطانی خوب نه بیانول:** یعنی شیطان انسان ته ویرونکی خوبونه ښائی او دې لوبې توقې او دَ خلقو دَ پاره ئی تماشه جوړوی. په دې وجه نبی کریم خپل امت ته دا تعلیم ورکړو چه دَ شیطان دَ دې قسم ویریونکو خوبونو اثر مه اخلئی اومه دې ته اهمیت ورکوئی چه دَ دې دَ تعبیر دَ پاره به سړو هلې ګرځئی دا مهمل خوب دې دَ دې چاته اظهار مه کوئی.

### [۴۳۴] د نبی کریم ﷺ یو خوب

۴۳۴-[۱۰] (²) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- " [۲] «رَأَيْتُ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ [۳] كَأَنَّا فِي دَارِ عُقْبَةَ بْنِ رَافِعٍ [۴] فَأُتِينَا بِرُطَبٍ مِنْ رُطَبِ ابْنِ طَابٍ [۵] فَأَوَّلْتُ أَنَّ الرِّفْعَةَ لَنَا فِي الدُّنْيَا [۶] وَالْعَاقِبَةَ فِي الْآخِرَةِ [۷] وَأَنَّ دِينَنَا قَدْ طَابَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ما یوه شپه هغه څیزونو کې چې په هغې کې خوب لیدونکي وینې (یعني په خوب کې) مې ولیدل [۳] چې ګویا زه او

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الرؤیا/باب لا یخبر بتلعب الشیطان به فی المنام (رقم-۱۶ - (۲۲۶۸) وابن ماجه فی کتاب تعبیر الرؤیا/باب من لعب به الشیطان فی منامه فلا یحدث به الناس (رقم-۳۹۱۲) واحمد فی المسند:۳/۳۵۰
[2] اخرجه مسلم فی کتاب الرؤیا/باب رؤیا النبی صلی الله علیه وسلم(رقم-۱۸ - (۲۲۷۰)

خما صحابه رضی الله عنهم د عقبه ابن رافع رضی الله عنه په کورکي ناست يو۴ او خما مخې ته تازه خرما راوړل شوي چې هغې ته رطب ابن طاب وايي۵ نو ما د دې خوب دا تعبير وخكلو چې زمونږ د پاره دنيا رفعت او سربلندي ده۶ او په آخرت کې نيك عاقبت [يعنی د نبي جزاء انعام دي]۷ او دا چه زمونږ دين ښه دي . (مسلم)

**حل اللغات:** ① رُطَب: تازه کجوري، ② ابنِ طَابٍ: د کجورو يوقسم يا نوم دي، ③ الرِّفْعَةَ: بلندی، اوچتوالي، ④ وَالْعَاقِبَةَ: ښه انجام، ښه بدله، ⑤ طَابَ: ډير ښه.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَوَّلْتُ أَنَّ الرِّفْعَةَ لَنَا

**دعربی لغت په بنياد سره د درې الفاظو تعبيرويستل:** په زيربحث حديث کښې نبی کريم دَ دريو نومونوپه لغت سره تعبيرويستلي دي.

① عقبه لفظ سره نبی کريم عاقبت او دآخری انجام دَ ښيګړي تعبيرويستې دي

② دَ رافع لفظ سره نبی کريم دَ دنيا او آخرت دَ اوچتوالی تعبير راويستې دي

③ دَطاب دَ لفظ نه دَ دين اسلام دَ طيب او ښه کيدو تعبيرنی ويستې دي.

**[۳۶۸] د هجرت متعلق د نبی کريم صلی الله علیه وسلم خوب**

۳۶۸-[۲]()۱ وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "۲ «رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أُهَاجِرُ مِنْ مَكَّةَ إِلَى أَرْضٍ بِهَا نَخْلٌ، ۳ فَذَهَبَ وَهَلِي إِلَى أَنَّهَا الْيَمَامَةُ أَوْ هَجَرُ ۴ فَإِذَا هِيَ الْمَدِينَةُ يَثْرِبُ. ۵ وَرَأَيْتُ فِي رُؤْيَايَ هَذِهِ: ۶ أَنِّي هَزَزْتُ سَيْفًا، فَانْقَطَعَ صَدْرُهُ، ۷ فَإِذَا هُوَ مَا أُصِيبَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ أُحُدٍ. ۸ ثُمَّ هَزَزْتُهُ أُخْرَى فَعَادَ أَحْسَنَ مَا كَانَ، ۹ فَإِذَا هُوَ مَا جَاءَ اللهُ بِهِ مِنَ الْفَتْحِ وَاجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِينَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوموسی اشعري رضی الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل۲ د هجرت نه مخکې په مکه کې يوه ورځ ما دا خوب وليدلو چې زه د مکي نه هجرت کولو سره يوې داسې زمکې طرف ته روان يم چې په هغې کې د کجورو ونې دي۳ د دې خوب په تعبير کې خما داخيال وو چې هغه ښار (چيرته چې زه په هجرت ځم) يمامه به وي يا هجر ۴ ليکن په حقيقت کې هغه مدينه وختله چې د هغې پخواني نوم يثرب دي۵ ما خپل په دې خوب کې داهم وليدل۶ چې ماخپله توره وخوزوله نو هغه د پورته نه ماته شوه۷ نو د توري ماتيدو تعبير په جنګ احد کې د هغه پريشانو او مصائبو صورت کې ظاهر شو کوم چې مسلمانانو ته پيښ شو [چې په ابتداء کې په ظاهره مسلمانانو ته شکست وشو، د حضور صلی الله علیه وسلم غاښ مبارك شهيد شو، ډير مسلمانان شهيدان شول او ډير

[1] اخرجه البخاري فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۶۲۲) ومسلم فی کتاب الرؤيا/باب رؤيا النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۰ - (۲۲۷۲) وابن ماجه فی کتاب تعبير الرؤيا/باب تعبير الرؤيا (رقم-۳۹۲۱)

زخمي شول[۸] بيا ما په خوب کې توره په دويم ځل وخوزوله نو هغه توره نه صرف روغه شوه بلکه د هغې نه ښه شوه[۹] نو د توري د روغيدو تعبير د مکې د فتح يا د حديبې د صلح په وخت د خداي ﷻ د طرف نه د عطا کيدونکې فتح او د مسلمانانو د اجتماعيت صورت کې ښکاره شو (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات**: ① أُهَاجِرُ: زه هجرت کوم. ② وَهْلِي: خيال زما ، ګمان زما ، ③ هَجَرُ: د يو مقام نوم دې، ④ يَثْرِبُ: دَمدينې منورې پخوانې نوم دې. ⑤ هَزَزْتُ: ما اوخوزوله (توره).

**تسهيلات**:

**قوله**: فَذَهَبَ وَهْلِي إِلَى أَنَّهَا الْيَمَامَةُ أَوْهَجَرُ:

**د يمامه او هجر پيژندګلو**: پخوانئ زمانه کښې يمامه ډيره شنه اوآباده علاقه اودَ حجاز په ښارونوکښې يومرکزی ښار وو. هجر هم ډير شين او آباد وو. په دې دواړو ښاريوکښې دَ کهجورو ډيرزيات باغونه وو. دَ نبی کريم خيال هم دغه طرف ته لاړو چه کيدې شی په خوب کښې هم دَدې طرف ته دَ هجرت اشاره کيږی. نن صبا يمامه دَ سعودی عرب دارالخلافه رياض په خواکې يووړوکې شان کلې پاتې دې اودَهجر هم دغه حالت دې.

**قوله**: فَإِذَاهِيَ الْمَدِينَةُ يَثْرِبُ:

**د مدينې پخوانې نوم**: دَمدينې منورې پخوانې نوم يثرب وو نبی کريم دا بدل کړو اومدينه ئې کيخودو. په مدينه کښې دَ کهجورو ډيرزيات باغونه وو په دې وجه دَدې نوم نخله هم دې. دَمدينې منورې اسلامی نومونه تقريباً سل دی کوم چې په کتاب الحج کښې ذکرشوی دی.

**قوله**: وَرَأَيْتُ فِي رُؤْيَايَ هَذِهِ: أَنِّي هَزَزْتُ سَيْفًا:

**د خوب په زمانه کښې دوه احتمالات**: ① دا دَ يوبل خوب بيان دې کوم چه دَهجرت نه پس رسول الله ﷺ ليدلې وو لکه څنګه چه دَ نورو روايا تونه معلوميږی

② دا ههم ممکن ده چه دَ خوب داحصه ئې هم دَ هجرت نه مخکښې ليدلې وی کوم چه دَدې حديث دَ ظاهرنه معلوميږی سره دَدې چه بعيد ښکاری.

**قوله**: هَزَزْتُهُ:

**د تورې په ماتيدو او بيا روغيدوکښې دوه تعبيرونه**: ① توره خوزولوته وائی. دَتورې ماتيدل لکه چه دَماتی طرف ته اشاره وه. اوبيا يوځائی کيدل دَمسلمانانو بيا را جمع کيدلو اودَ فتح حاصلولوطرف ته اشاره وه.

② دَ تورې دوباره جوړيدل راتلونکې فتوحاتو مثلاً فتح مکه صلح حديبيه اوفتح خيبر طرف ته اشاره وه.

## [٣٣] په دوو دروغژنو پيغمبرانو سره د يو خوب تعبير

٣٣-[١٢] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② ( «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِخَزَائِنِ الْأَرْضِ، ③ فَوُضِعَ فِي كَفَّيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ، فَكَبُرَا عَلَيَّ، ④ فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنِ انْفُخْهُمَا، ⑤ فَنَفَخْتُهُمَا، فَذَهَبَا، ⑥ فَأَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابِينِ اللَّذَيْنِ أَنَا بَيْنَهُمَا: ⑦ صَاحِبُ صَنْعَاءَ وَصَاحِبُ الْيَمَامَةِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② يوه ورځ زه اوده وم چې په خوب کې د زمکې خزانې ځما مخې ته راوستل شوې ③ بيا ځما په لاس د سرو زرو (سوني) دوه کړۍ کيخودل شوې چې په ما مشکلې شوې [يعنې د سرو د پاره د سرو زرو د حراميدو په وجه د هغه کړو ځما په لاسونو کې کيدل ماته ناګوار شول] د دې نه پس په ما باندې وحي راغله يعنې په خوب کې بطور الهام ځما په زړه کې خداي ﷻ دا خبره واچوله چې دې کړو ته پوکل ورکړه ⑤ ماچې پوکل ورکړه نو هغه کړۍ والوتلې ⑥ ما د دې دوو کړو نه د هغه دوو دروغجنو باره کې تعبير واخستلو چې باعتبار مسکن او علاقه زه د هغوئ په منځ کې يم ⑦ يعنې يوخو يمامه والا او دويم صنعا والا (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① كَفَّيَّ: زما په تلى كښې (يعنى لاس كښې)، ② سِوَارَانِ: دوه بنګړى، كړې، ③ فَكَبُرَا: نو مشكلې شوې په ما، ④ صَاحِبَ صَنْعَاءَ: دصنعاء والا يعنى د يمن كذاب اسود عنسى، ⑤ صَاحِبَ الْيَمَامَةِ: د يمامه والا يعنى مسيلمه كذاب.

① وَفِي رِوَايَةٍ: " «يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا مُسَيْلِمَةُ صَاحِبُ الْيَمَامَةِ، ② وَالْعَنْسِيُّ صَاحِبُ صَنْعَاءَ» ③ " لَمْ أَجِدْ هَذِهِ الرِّوَايَةَ فِي "الصَّحِيحَيْنِ"، ④ وَذَكَرَهَا صَاحِبُ "الْجَامِعِ" عَنِ التِّرْمِذِيِّ.

**ترجمه:** ① او په يو روايت كې [چې ترمذي نقل كړې دې داسې] دي چې حضور ﷺ د هغه دوو دروغجنو وضاحت داسې وفرمايلو چې په هغوئ كې يو ته مسيلمه وئيل كيږي ② او دويم عنسي دې چې د صنعاء اوسيدونكې دې ③ صاحب مشكوٰة وايي چې ما دا روايت په بخاري او مسلم كښې اونه موندلو ④ او دا صاحب جامع الاصول د ترمذي نه نقل كړې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَكَبُرَا عَلَيَّ، فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنِ انْفُخْهُمَا، فَنَفَخْتُهُمَا، فَذَهَبَا:

**د نبى عليه السلام د پريشانۍ وجه:** قرطبى ﷫ فرمائى، چه هغوى ته بنګړى په لاسونوكښې دَ كيدلو دَ وجه غم ځكه اوشو چه دا دواړه دَ سرو زرو وو كوم چه په سړو باندې حرام دى او غيرمحل كښې دى ګويا چه دا باطل ځيز دَ هغوى په لاسونوكښې ځكه ښكاره

(¹) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب وفد بني حنيفة، وحديث ثمامة بن [ص:١٧٠] أثال (رقم-٤٣٧٤) ومسلم في كتاب الرؤيا/باب رؤيا النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٢٢ - (٢٢٧٤) والترمذي في كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رؤيا النبي صلى الله عليه وسلم الميزان والدلو (رقم-٢٢٩٢) وابن ماجه في كتاب تعبير الرؤيا/باب تعبير الرؤيا (رقم-٣٩٢٢) واحمد في المسند: ٣١٩/٢

شوې دې اهل علم فرمائی په لاس کښې کیدل لکه په لاس باندې دَ قبضه کیدو مترادف دی چه دوو باطل څیزونو لاسونه دَ دین دَ اشاعت نه رابند کړی دی.

**قوله:** فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنِ انْفُخْهُمَا، فَنَفَخْتُهُمَا، فَذَهَبَا:

**د وحی په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دې څخه مراد خو الهام دې کوم چې الله تعالی د خپل نیک بنده په زړه کښې اچوی.

② دځخه مراد دَ فرښتې په ذریعه دَ الله تعالی حکم دې قاله القرطبی.

**قوله:** أَنْفُخْهُمَا:

**د مذکوره لفظ په ترکیب کښې دوه اقوال:** ① ان مفسره دې اودَ اوحی تفسیر دې

② طیبی رحمه الله فرمائی چه ان ناصبه دې اوحرف جر محذوف دې ای بأن انفخهما.

**قوله:** فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا:

**په نفخ سره یوه باریکه اشاره:** پس ما پوکې اووهلو نودواړه والوتل. حافظ فرمائی رسول الله ﷺ دَ دې دواړو بنګړو په وجه غمګین شوې وو نو الله تعالی دَ پوکی وهلو حکم ورکړو ونی فرمائیل چه دَ دې به دومره خاص طاقت نه وی چه په تاسو به غالب راشی بلکه په معمولی کوشش سره به دغه دواړه ختم شی او دَ پوکی غوندې معمولی څیز سره هغه دواړه والوتل نو ته مه خفه کیږه په لفظ نفخ وطیران سره دَ هغې دَ عدم شوکت او عدم غلبه طرف ته اشاره اوفرمائیله.

**قوله:** فَأَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ:

**په دوو دروغژنوسره د بنګړو تعبیر:** رسول الله ﷺ دَ بنګړو دَ سرو زرو کیدو نه او دې کتلو سره چه په غیرمحل کښې دی اوګڼړل چه هغه کاذب به راځی کوم چه په باطل وی بیا دَ ذهب معنی دَ فناکیدلو ده. دَ دې نه ئې دا هم اخذ کړل چه هغه به ختم شی اودَ نفخ نه حضورپاک ﷺ معلومه کړه چه دَ دې غلبه به نه وی بلکه کمزورې به وی چه په پوکی به هم والوزی

**قوله:** صَاحِبَ صَنْعَاءَ:

**د صاحب صنعاء مصداق:** داسود عنسی دې کوم چه دَ مقام صنعاء اوسیدونکې وو هغه هم دَ نبوت دعوی کړې وه دَ حضورپاک ﷺ په حکم سره په مرض الوفات کښې فیروز دیلمی رضی الله عنه هغه قتل کړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل فاز فیروز رضی الله عنه.

**قوله:** وَصَاحِبَ الْيَمَامَةِ:

**د صاحب الیمامه مصداق:** دَ خای نوم دې هغه دَ نبوت دعوی اوکړه او دَ یمامه اوسیدونکو خلقو دَ هغه تصدیق هم اوکړو مګر دَحضورپاک ﷺ په حیات مبارک کښې هغه ته غلبه

اونه شوه دَحضرت ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کښې حضرت وحشي بن حرب رضی الله عنه هغه قتل کړو قال ابوبکر رضی الله عنه له قتلت خیرالناس فی الجاهلیة وشرالناس فی الاسلام وحشي رضی الله عنه سید الشهداء حضرت حمزه رضی الله عنه په زمانه دَ کفر کښې قتل کړې وو.

**[۴۳۳۰] د چینې تعبیر د عمل په جاری والی سره**

۴۳۳۰ – [۱۳] (¹) [۱] «وَعَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ الْأَنْصَارِيَّةِ، قَالَتْ: [۲] رَأَيْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ فِي النَّوْمِ عَيْنًا تَجْرِي، [۳] فَقَصَصْتُهَا عَلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَقَالَ: "ذَلِكِ عَمَلُهُ يَجْرِي لَهُ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي ام العلاء انصاریه رضی الله عنها فرمائي [۲] چه ما په خوب کې ولیدل چې عثمان ابن مظعون رضی الله عنه د پاره د اوبو یوه چینه جاري ده [۳] کوم وخت چې دا خوب ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخکې بیان کړو [۴] نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل دا د هغه د عمل ثواب دي چې د هغه د پاره جاري ساتلې شوې دې. (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله:** رَأَيْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ فِي النَّوْمِ عَيْنًا تَجْرِي:

**دچینې تعبیر د عمل په دوام سره:** دَعین نه مراد سترګه نه ده بلکه دې نه دَ اوبو چینه مراد ده حضرت عثمان بن مظعون رضی الله عنه دَ یوشان والا صحابی دي اودَ رسول الله صلی الله علیه وسلم رضاعی رور او دَهغوی محبوب وو. په مدینه منوره کښې هغه رومبې سړې دې چه په بقیع الغرقد کښې دفن کړې شوې دې. دَ چینې جاری کیدل دَهغه دَ عمل مسلسل جاری پاتې کیدو طرف ته اشاره ده. چونکه دا صحابی مرابط وو اودَ مرابط عمل همیشه جاری وی په دې وجه دَهغه عمل داسې ښکاره شو

**[۴۳۳۱] د نبی علیه السلام اورد خوب لیدل**

۴۳۳۱ – [۱۴] (²) [۱] عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا صَلَّى أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ، [۳] فَقَالَ: "مَنْ رَأَى مِنْكُمُ اللَّيْلَةَ رُؤْيَا" [۴] قَالَ: فَإِنْ رَأَى أَحَدٌ قَصَّهَا، [۵] فَيَقُولُ مَا شَاءَ اللهُ. فَسَأَلَنَا يَوْمًا [٦] فَقَالَ: "هَلْ رَأَى مِنْكُمْ أَحَدٌ رُؤْيَا؟" [۷] قُلْنَا: لَا. [۸] قَالَ: "لَكِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي، [۹] فَأَخَذَا بِيَدَيَّ، [۱۰] فَأَخْرَجَانِي إِلَى أَرْضٍ مُقَدَّسَةٍ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت سمره ابن جندب رضی الله عنه وایي [۲] چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا معمول وو چې د سحر د مانځه نه به فارغه شو نو خپل مخ مبارك به یې زمونږ طرف ته متوجه کړو [۳] او پوښتنه به یې کوله چه نن شپه په تاسو کې چا خوب لیدلي دي؟ [۴] حضرت سمره رضی الله عنه وایي که په مونږ کې به چا خوب لیدلي وو نو هغه به یې بیان کړو [۵] او حضور صلی الله علیه وسلم به د هغې

(¹) اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر/باب العین الجاریة فی المنام (رقم-۷۰۱۸)
(²) اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب ما قیل فی أولاد المشرکین (رقم-۱۳۸٦) واحمد فی المسند:۱۴/۵

تعبیر ورکولو کوم چې به ورته خداي ﷻ الهام فرمایلو (د خپل معمول مطابق) یوه ورځ حضور ﷺ زمونږ نه هم هغه پوښتنه وکړه ⁶ او وي فرمایل آیا په تاسو کې یوسړي خوب لیدلي دي؟ ⁷ مونږ عرض وکړو نه، ⁸ حضور ﷺ وفرمایل لیکن نن شپه ما خوب لیدلي دي او هغه داچې دوه سړي ماته راغلل ⁹ او څما دواړه لاسونه یې اونیول ¹⁰ او زه یې مقدس سر زمین [ملك شام] طرف ته بوتلم

① فَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ ② وَرَجُلٌ قَائِمٌ بِيَدِهِ كَلُّوبٌ مِنْ حَدِيدٍ، ③ يُدْخِلُهُ فِي شِدْقِهِ، فَيَشُقُّهُ ④ حَتَّى يَبْلُغَ قَفَاهُ، ثُمَّ يَفْعَلُ بِشِدْقِهِ الْآخَرِ مِثْلَ ذَلِكَ، وَيَلْتَئِمُ شِدْقُهُ هَذَا، ⑤ فَيَعُودُ فَيَصْنَعُ مِثْلَهُ. ⑥ قُلْتُ: مَا هَذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ، ⑦ فَانْطَلَقْنَا، حَتَّى أَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ مُضْطَجِعٍ عَلَى قَفَاهُ، ⑧ وَرَجُلٌ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِهِ بِفِهْرٍ، أَوْ صَخْرَةٍ ⑨ يَشْدَخُ بِهَا رَأْسَهُ، ⑩ فَإِذَا ضَرَبَهُ تَدَهْدَهَ الْحَجَرُ، ⑪ فَانْطَلَقَ إِلَيْهِ لِيَأْخُذَهُ، ⑫ فَلَا يَرْجِعُ إِلَى هَذَا حَتَّى يَلْتَئِمَ رَأْسُهُ، ⑬ وَعَادَ رَأْسُهُ كَمَا كَانَ، ⑭ فَعَادَ إِلَيْهِ فَضَرَبَهُ،

**ترجمه:** ① یوځاي ته رسیدو سره زه ګورم چې یوسړي ناست دي ② او د یوبل سړي په لاس کې د اوسپنې کونډه (کنډه) نیولې ولاړ دي ③ او بیا هغه کُنډه د ناست سړي وښکې کښې وراچوی او هغه څیروي ④ تردې چې هغه ترڅټ پورې څیري کړي ⑤ بیا هغه د بل وښکې سره دغه شان کوي (یعني هغه ترڅټ پورې څیروي) هرکله چې هغه وښکې خپل اصلي حالت باندې راشي ⑤ نو بیا د مخکې په شان هغه عمل کوي [یعنی هغه وښکې څیروي او هرکله چې هغه وښکې درست شی نو بیايي څیروي غرض داچې بار بار دا عمل کوي (او دا عمل جاري وي) ⑥ حضور ﷺ فرمایي چه په دې لیدو سره ما هغه دواړو سړو نه پوښتنه وکړه (چې زه یې دځان سره راوستلي وم) چې داڅه کیږي؟ هغه دواړو اوویل زمونږ سره راځه [یعني داپوښتنه مه کوه چې څه کیږي) بلکې مخکې ځئ اوس لاډیر عجائبات کتل دي د دې تعبیر به درته پخپله معلوم شی] نو مونږ په مخکې روان وو تردې چې یو داسې ځاي ته راغلو چې هلته یو سړي (چې شایي په زمکه لګولي وه) پروت وو ⑧ او یو بل سړي د هغه دسر سره دومره غټ کاڼي اخستي ولاړ وو چې د هغه نه لاس ډکیږي ⑨ او هغه سره یې د هغه پروت سړي سر چختاڼ کوي ⑩ هغه چې به سر په کاڼي ویشتلو نو کاڼي به سرمیده کولو سره لرې ورغړیدو ⑪ بیابه هغه دوباره د ویشتلو په غرض هغه کاڼي پورته کولو د پاره ورتلو ⑫ او چې واپس به راتلو نو د هغه د رارسیدو نه مخکې به د هغه سړي سر یوځائې شوي وو ⑬ اوسره به ئې هغه شان شو څنګه چې به مخکې وو ⑭ او بیا به هغه په کاڼي ویشتلو [او دغه شان دا سلسله جاري وه چې د هغه سر به درست کیدو او هغه به یې په کاڼي ویشتلو]

**حل اللغات:** ① كَلُّوبٌ: دَ اوسپنې سیخ، کُنډه، ② شِدْقِهِ: کلنی، وښکې (یعنی د خولې ښی اوګس طرف)، ③ فَيَشُقُّهُ: نو سیرې ئې کړو، ④ قَفَاهُ: څټ دهغه، ⑤ مُضْطَجِعٍ: ملاست وو، ⑥ قَفَاهُ: دڅټ په

طرف، ⑥ يلهَبُ: لوئي كاڼړي، غټ ګټې، ⑧ صَخْرَةٌ: غټ كاڼړي، ⑨ يَشْدَخُ: چقنړي كولو ته (سر)، ⑩ تَدَهْدَهَ: را ارغړولو ته هغه (كاڼړي). ⑪ يَلْتَئِمَ: د التئام نه دَ يوځائي كيدو په معنى كښې دي،

① فَقُلْتُ: مَا هٰذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ، ② فَانْطَلَقْنَا، حَتّٰى أَتَيْنَا إِلٰى ثَقْبٍ مِثْلِ التَّنُّورِ ③ أَعْلَاهُ ضَيِّقٌ وَأَسْفَلُهُ وَاسِعٌ، ④ تَتَوَقَّدُ تَحْتَهُ نَارٌ، ⑤ فَإِذَا ارْتَفَعَتِ ارْتَفَعُوا ⑥ حَتّٰى كَادَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا، ⑦ وَإِذَا خَمَدَتْ رَجَعُوا فِيهَا ⑧ وَفِيهَا رِجَالٌ وَنِسَاءٌ عُرَاةٌ. ⑨ فَقُلْتُ: مَا هٰذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ. ⑩ فَانْطَلَقْنَا، حَتّٰى أَتَيْنَا عَلٰى نَهَرٍ مِنْ دَمٍ، ⑪ فِيهِ رَجُلٌ قَائِمٌ عَلٰى وَسَطِ النَّهَرِ، ⑫ وَعَلٰى شَطِّ النَّهَرِ رَجُلٌ بَيْنَ يَدَيْهِ حِجَارَةٌ، ⑬ فَأَقْبَلَ الرَّجُلُ الَّذِي فِي النَّهَرِ، ⑭ فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ رَمَى الرَّجُلُ بِحَجَرٍ فِي فِيهِ ⑮ فَرَدَّهُ حَيْثُ كَانَ، ⑯ فَجَعَلَ كُلَّمَا جَاءَ لِيَخْرُجَ رَمَى فِي فِيهِ بِحَجَرٍ فَيَرْجِعُ كَمَا كَانَ،

**ترجمه:** ① په دې ليدو سره ما پوښتنه ورنه وكړه داڅه كيږي؟ هغه دواړو جواب راكړو مخكې راځئ ② نو مونږ مخكې لاړو تردې چې يو داسې كندې ته ورسيدو چې د تنور په شان وه ③ ④ چه د هغې د پاسه حصه تنګه وه او لاندې حصه يې فراخه وه ④ او په هغې كې دننه اور لمبې وهلې ⑤ اور چې به پورته طرف ته راوختو نو څه خلق چې په اور كې به دننه وو شغلو سره به پورته راتلل ⑥ تردې چې هغوى به د كندې نه وتلو ته نزدې شو ⑦ او هركله چې د شغلې زور به كم شو نو هغه ټول به بيا دننه طرف ته ولاړل ⑧ ما وليدل چې په هغه اور كې څو سړي او څو ښځې وې او ټول بربنډ وو ⑨ په دې ليدو سره ما پوښتنه وكړه داڅه كيږي؟ نو هغه دواړو راته اوويل مخكې ورځه ⑩ نو مونږ مخكې لاړو تردې چې يو داسې نهر ته ورسيدو چې د اوبو په ځاى د وينو نه ډك وو ⑪ د نهر په منځ كې يو سړى ولاړ وو ⑫ او يو بل سړى د هغې په غاړه وو چې د هغه مخې ته كاڼي پراته وه ⑬ هغه سړى چې د نهر په منځ كې وو ⑭ چې غاړې ته به راغلو او بهرته راوتل به يې غوښتل نو كوم سړى چې په غاړه ولاړ وو هغه به يې په مخ په كاڼي ويشتلو ⑮ چې د هغې سره به هغه خپل ځاى ته واپس لاړلو ⑯ او بيا دغه شان داسلسله جاري وه چې په نهركې دننه سړى به بهرته د راوتلو اراده كوله نو په غاړه ولاړ سړى به په كاڼي په مخ ويشتلو او هغه به يې خپل ځاى ته واپس رسولو.

**حل اللغات:** ② ثَقْبٍ: كنده، تنور ⑦ خَمَدَتْ: أور به مړشو، سوړ به شو، ⑧ عُرَاةٌ: بربنډ، ⑫ شَطِّ: غاړه،

① فَقُلْتُ: مَا هٰذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ، ② فَانْطَلَقْنَا، حَتّٰى انْتَهَيْنَا إِلٰى رَوْضَةٍ خَضْرَاءَ ③ فِيهَا شَجَرَةٌ عَظِيمَةٌ، ④ وَفِي أَصْلِهَا شَيْخٌ وَصِبْيَانٌ، ⑤ وَإِذَا رَجُلٌ قَرِيبٌ مِنَ الشَّجَرِ ⑥ بَيْنَ يَدَيْهِ نَارٌ يُوقِدُهَا ⑦ فَصَعِدَا بِيَ الشَّجَرَةَ، ⑧ فَأَدْخَلَانِي دَارًا وَسَطَ الشَّجَرَةِ، لَمْ أَرَ قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهَا ⑨ فِيهَا رِجَالٌ شُيُوخٌ وَشَبَابٌ وَنِسَاءٌ وَصِبْيَانٌ، ⑩ ثُمَّ أَخْرَجَانِي مِنْهَا ⑪ فَصَعِدَا بِيَ الشَّجَرَةَ، ⑫ فَأَدْخَلَانِي دَارًا هِيَ أَحْسَنُ وَأَفْضَلُ مِنْهَا ⑬ فِيهَا شُيُوخٌ وَشَبَابٌ، ⑭ فَقُلْتُ لَهُمَا: إِنَّكُمَا قَدْ طَوَّفْتُمَانِي اللَّيْلَةَ، ⑮ فَأَخْبِرَانِي عَمَّا رَأَيْتُ.

**ترجمه:** ① په دې ليدو سره ما پوښتنه وكړه داڅه كيږي؟ نو هغه دواړو راته اوويل مخكې ورځه ② نو مونږ مخكې لاړو تردې چې يو سرسبز او شاداب باغ ته ورسيدو ③ هغه باغ كې يوه لويه ونه وه ④ او د هغې دتنې سره يو بوډا سړى او څه هلكان ناست وو ⑤ بيا ګورم چې

هغه ونې سره يوبل سرې هم دي [۶] چې د هغه مخې ته اور بليږي او هغه يې ګرموي او تيزوي [۷] بيا هغه دواړو زه خان سره اخستو سره هغه ونې ته وختل [۸] او زه يې يوداسې كوركې داخل كړم چې د هغه ونې بالكل په منځ كې وو او هغه كور دومره ښانسته وو چې ما د هغې نه ښه كور چيرته نه وو ليدلې [۹] په هغه كوركې څه خوانان، بوډاګان سړي وو څه ښځې او څه بچې وو [۱۰] د دې نه پس هغه دواړو زه د هغه كور نه ويستلم [۱۱] او د ونې سرته يې بوتلم [۱۲] او زه يې په يو داسې كوركې داخل كړم چې د مخكښې كور نه هم ښه او افضل وو [۱۳] په هغې كې هم بوډاګان او ځلمي سړي موجود وو [۱۴] اوس ما هغه دواړو ته اوويل نن شپه تاسوزه ښه وګرځولم [۱۵] ليكن ما چې څه ليدلي دي د هغې دحقيقت نه خو ما آګاه كړئ

**حل اللغات:** (۱۶) رَوْضَةٍ خَضْرَاءَ: سرسبز باغ، (۱۷) أَصْلِهَا : د ونې تنه، (۱۸) طَوَّفْتُمَانِي : تاسو دواړو زه ښه اوګرځولم

[۱] قَالَا: نَعَمْ، [۲] أَمَّا الرَّجُلُ الَّذِي رَأَيْتَهُ يُشَقُّ شِدْقُهُ فَكَذَّابٌ، [۳] يُحَدِّثُ بِالْكَذْبَةِ فَتُحْمَلُ عَنْهُ حَتَّى تَبْلُغَ الْآفَاقَ [۴] فَيُصْنَعُ بِهِ مَا تَرَى إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، [۵] وَالَّذِي رَأَيْتَهُ يُشْدَخُ رَأْسُهُ [۶] فَرَجُلٌ عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْآنَ فَنَامَ عَنْهُ بِاللَّيْلِ [۷] وَلَمْ يَعْمَلْ بِمَا فِيهِ بِالنَّهَارِ، [۸] يُفْعَلُ بِهِ مَا رَأَيْتَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، [۹] وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي الثَّقْبِ فَهُمُ الزُّنَاةُ، [۱۰] وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي النَّهْرِ آكِلُ الرِّبَا. [۱۱] وَالشَّيْخُ الَّذِي رَأَيْتَهُ فِي أَصْلِ الشَّجَرَةِ إِبْرَاهِيمُ. [۱۲] وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهُ فَأَوْلَادُ النَّاسِ، [۱۳] وَالَّذِي يُوقِدُ النَّارَ مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ. [۱۴] وَالدَّارُ الْأُولَى الَّتِي دَخَلْتَ دَارُ عَامَّةِ الْمُؤْمِنِينَ.

**ترجمه:** [۱] هغه دواړو اوويل ښه ده موږ تاسو ﷺ ته ښايو (بيا هغه دواړو بيان كول شروع كړل) [۲] چې كوم سړي تاسو وليدلو چې د هغه وښكې شلولې شي هغه داسې سړي دي چې دروغجن دي [۳] دروغ وايي او د هغه دروغ خبري نقل او بيانيږي چې په دنيا كې څلور طرف ته خوريږي (چې په هغې سره خلق ګمراه كيږي) [۴] نو هغه سره هغه سلوك كيږي كوم چې تاسو ﷺ وليدلو او د هغه سلسله به ترقيامته پورې جاري وي [۵] او كوم سړي چې تاسو ﷺ وليدلو چې د هغه سرميده كول كيږي ، [۶] هغه داسې سړي دي چې هغه ته خداي ﷻ قرآن ښودلې وو (يعنى هغه ته يې د قرآني علومو زده كولو توفيق وركړي وو ليكن هغه (سړي د قرآن نه بې نيازه كيدو سره) د شپې به اوده وو [۷] او د ورځې به يې د قرآن مطابق عمل نه كولو [۸] نو هغه سره هغه سلوك كيږي كوم چې تاسو ﷺ وليدلو او د هغه سلسله به ترقيامته پورې جاري وي [۹] او كوم خلق چې تاسو ﷺ تنور كې ليدلي دي هغه زنا كار دي [۱۰] او كوم سړي چې تاسو ﷺ په نهر كې وليدل هغه سود خواره دي (دې ټولو ته د خپل عمل سزا وركول كيږي چې ترقيامته پورې به دغه شان جاري وي) [۱۱] او كوم بوډا سړي چې تاسو ﷺ د ونې بيخ سره ناست ليدلي دي هغه حضرت ابراهيم عليه السلام وو [۱۲] او د هغه سره چې كوم بچي دي هغه د خلقو اولاد دي [۱۳] او كوم سړي چې د ونې نه په څه فاصله اور تيزوي هغه د دوزخ داروغه دي [۱۴] او د ونې د پاسه مخكښې كور چې په هغې كې

تاسو ﷺ داخل شوي وئ هغه جنت د عامو مؤمنانو مكان دي

**حل اللغات:** ⑭الآفَاقِ: اطراف د دنيا، ⑮خَازِنٌ: داروغه.

[۱] وَأَمَّا هٰذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ.[۲] وَأَنَا جِبْرِيلُ وَهٰذَا مِيكَائِيلُ[۳] فَارْفَعْ رَأْسَكَ، فَرَفَعْتُ رَأْسِي، فَإِذَا فَوْقِي مِثْلُ السَّحَابِ-[۴] وَفِي رِوَايَةٍ: مِثْلُ الرَّبَابَةِ الْبَيْضَاءِ[۵] قَالَا: ذٰلِكَ مَنْزِلُكَ.[۶] قُلْتُ: دَعَانِي أَدْخُلْ مَنْزِلِي.[۷] قَالَا: إِنَّهُ بَقِيَ لَكَ عُمُرٌ لَمْ تَسْتَكْمِلْهُ[۸] فَلَوِ اسْتَكْمَلْتَهُ أَتَيْتَ مَنْزِلَكَ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[۹] وَذُكِرَ حَدِيثُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ فِي رُؤْيَا النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْمَدِينَةِ فِي "بَابِ حَرَمِ الْمَدِينَةِ".

**ترجمه:** [۱] او دا كور چې د مخكني كور د پاسه واقع دي د شهداؤ مكان دي [۲] او زه جبرائيل عليه السلام يم او داچي زماسره دي ميكائيل عليه السلام دي [۳] او لږ تاسو ﷺ سرپورته كړئ حضور ﷺ فرمايي چې ماخپل سر پورته كړو نو ګورم چې خما د پاسه ډيري بلندئ كې د وريځ په شان څه شي دي [۴] اوپه يو روايت كنبې دی پشان د سپينې وريځې پشان وه [۵] هغه دواړو اوويل [د وريځي په شان داشي چې تاسو ﷺ وينئ دراصل] په جنت كې ستاسو ﷺ مكان دي [۶] ما اوويل بيا تاسو خلق ما پريږدئ چې زه خپل مكان ته لاړشم [۷] هغه دواړو اوويل اوس لا ستاسو ﷺ عمر باقي دي چې تاسو ﷺ نه دي پوره كړي [۸] كله چې تاسو ﷺ خپل عمر پوره كړئ نو خپل مكان ته به لاړ شئ (بخاري) [۹] اود حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما هغه روايت چې په مدينه كې د رسول الله ﷺ خوب ليدو سره متعلق دي هغه د حرم مدينه باب كې نقل كړې شوي دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَخْرَجَانِي:

**تنبيه:** د مذكوره حديث دَ نبی كريم په خوب كنبې څو معراجونه شوی دی دا معراج هم دَدغې نه يودې. ليكن دَ ليلة الاسراء والا معراج دَ خوب واقعه نه ده بلكه هغه په جسد عنصرى سره دَ بيدارئې په حالت كنبې شوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۶۲۳] خپل خير خواه ته خوب بيانول**

۴۶۲۳-[۱۵] ()[۱] عَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "«رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ[۳] وَهِيَ عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا لَمْ يُحَدِّثْ بِهَا[۴] فَإِذَا حَدَّثَ بِهَا وَقَعَتْ ".[۵] وَأَحْسِبُهُ قَالَ: " لَا تُحَدِّثْ إِلَّا حَبِيبًا أَوْ لَبِيبًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[۶] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: "

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب ما جاء فى الرؤيا (رقم-۵۰۲۰)والترمذى فى كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ما جاء فى تعبير الرؤيا (رقم-۲۲۷۸)وابن ماجه فى كتاب تعبير الرؤيا/باب الرؤيا إذا عبرت وقعت. فلا يقصها إلا على واد (رقم-۳۹۱۴)

«الرُّؤْيَا عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا لَمْ تُعَبَّرْ، [۷] فَإِذَا عُبِّرَتْ وَقَعَتْ ". [۸] وَأَحْسِبُهُ قَالَ: " وَلَا تَقُصَّهَا إِلَّا عَلَى وَادٍّ أَوْ ذِي رَأْيٍ»".

**ترجمه:** [۱] حضرت ابورزين عقيلي رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د مؤمن خوب د نبوت شپږ څلويښتو حصو کې يوه حصه ده [۳] او خوب چې ترڅو پورې بيان نه کړې شي هغه د مارغه (پرندې) په پښو وي [۴] او هرکله چې هغه د چا مخکې بيان کړې شي نو هغه واقع کيږي [۵] (راوي وايي) ځما خيال دې چې حضور ﷺ دا هم وفرمايل چې د دانا او دوست نه علاوه د بل چا په مخکې خوب مه بيانوه (ترمذي) [۶] او د ابوداود په روايت کې داسې دي د خوب تعبير چې ترڅوپورې بيان نه شي هغه د مارغه په پښو وي [۷] او هرکله چې د هغې تعبير بيان کړې شي نو هغه تعبير واقع کيږي [۸] او ځما خيال دې چې حضور ﷺ دا هم وفرمايل چې د دوست او عقلمند نه علاوه د بل چا په مخکې خوب مه بيانوه.

**حل اللغات:** ① طَائِرٍ: مارغه، ② لَبِيبًا: هوښيار ملګرې، ③ عُبِّرَتْ: تعبيربيان کړې شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَ عدم قرار په اعتبارسره تشبيه مقصود ده يعنی لکه څنګه چه يوځيز دَ مرغئی په خپه باندې کيخودې شوی وی کوم چه په معمولی حرکت کولو سره پريوتلې شی هم دغه شان دَ خوب تعبيرهم وی کله هم چه دَ دې څه تعبير اوکړې شی زر به هغه واقع کيږی اوهم دغه تعبير به متيقن کيږی.

② حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی دَ دې مطلب دادې چه کله يوسړې خوب وينی نودَهغه په زړه کښې قرار نه وی بلکه مختلف تعبيرونه دَ هغه په زړه کښې ځی راځی لکه څنګه چه رجل طائر باندې څه ځيز کيخودې شی نو هغې ته قرار نه وی. حتی چه اول کوم سړې تعبير ورکوی نو بيا هم هغه دَ ده په زړه کښې راسخ کيږی او دَ هغه په نيز هم هغه تعبير متعين کيږی اوس که دې نه پس بل څوک بل تعبيرورکوی نو رومبې به ختميږی نه دَ وقعت او سقطت هم دغه مطلب دې.

**قوله:** إِلَّا لَبِيبًا أَوْ حَبِيبًا:

**عاقل اودوست ته د خوب بيانول:** بعض رواياتوکښې الاعلی عالم اوناصح او بعضو کښې ذی رأی‌واد واقع دې مراد دادې چه خوب خو يا عقل مند يا عالم او دَ رائې خاوند ته ذکر کړئی او يا محبت کونکی خيرخواه ته ځکه چه عقل مند او محبت کونکی به دَ عقل او محبت په وجه ښه تعبير بيان کړی اوچه کوم اول تعبير وی هم هغه به واقع کيږی اوکه دغه سړې جاهل يا بغض لرونکې وی نوداسې تعبير به درکړی چه غم او خفګان به وی نو بيا به هم دغه تعبير واقع کيږی.

[۴۶۲۳] د ورقه ابن نوفل متعلق د نبي عليه السلام خوب ليدل

۴۶۲۳ - [۱۶] (۱) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ② «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ وَرَقَةَ، ③ فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ: إِنَّهُ كَانَ قَدْ صَدَّقَكَ ④ وَلَكِنْ مَاتَ قَبْلَ أَنْ تَظْهَرَ، ⑤ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُرِيتُهُ فِي الْمَنَامِ، وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ بِيضٌ، ⑥ وَلَوْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ كَانَ عَلَيْهِ لِبَاسٌ غَيْرُ ذَلِكَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ فرمائي ② چې يو وخت د نبي كريم ﷺ نه د ورقه ابن نوفل باره كې پوښتنه وشوه (چې هغه مؤمن وو او كه نه؟) ③ او بي بي خديجې ﷺ د حضور ﷺ مخكې بيان وكړو چې ورقه ابن نوفل به ستاسو تصديق كولو ④ ليكن ستاسو د نبوت ظاهريدو نه مخكې مړ شوي دي ⑤ حضور ﷺ وفرمايل ماته په خوب كې ورقه ابن نوفل داسې حالت كې ښودل شوي دي چې په هغه سپينې كپړې وې ⑥ كه هغه دوزخي وې نو د هغه په جسم به بل قسم كپړې واې. (احمد وترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّهُ كَانَ قَدْ صَدَّقَكَ، وَلَكِنْ مَاتَ قَبْلَ أَنْ تَظْهَرَ:

**دخديجه رضي الله عنها د تپوس مقصد:** د حديث الباب حاصل دا دې چه كله د نبي كريم ﷺ نه د ورقه بن نوفل په باره كښې سوال وكړې شو نو حضرت خديجه رضي الله عنها د نبي كريم ﷺ د جواب وركولو نه مخكې د خپل تره خوې حالت بيان كړو ليكن داسې طريقه ئې اختيار كړه چه د ورقه بن نوفل حقيقت هم واضح شي او د نبوت د مرتبې د ادب خيال هم وساتلې شي، نو دوى وفرمائيل چه هغوى ستاسو تصديق كولو يعنى هغوى ستاسو تصديق كولو سره فرمائيلى وو چه كومه فرښته چه تاسو ليدلى ده نو دى فرښتې به د الله تعالى د طرف نه انبياء كرامو ته وحى راوړله او ستاسو نه مخكې حضرت موسى عليه السلام او حضرت عيسىٰ عليه السلام ته ئى هم وحى راوړله او تاسو د الله تعالى پيغمبر ئې او كه زه ستاسو د ظهور اوغلبه (يعنى د نبوت ملاويدلو) په وخت كښې ژوندې وم نو زه به ضرور ستاسو مدد كوم او تاسو ته به طاقت رسوم، نو حضرت خديجه رضي الله عنها يو طرف ته ايمان ثابتول غوښتل او بل طرف ته ئې دا ثابت كړل چه هغه د نبي كريم ﷺ د اعلان نبوت نه مخكې وفات شوې وو

**قوله:** أُرِيتُهُ فِي الْمَنَامِ، وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ بِيضٌ:

**د سپينو جامو تعبير په جنتي كيدو سره:** نبي كريم ﷺ د مذكوره ارشاد په ذريعه دا ثابت

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رؤيا النبي صلى الله عليه وسلم الميزان والدلو (رقم-۲۲۸۸) واحمد في المسند: ۶/۶۵

كړل چه هغه جنتي وو، لهذا دا حديث د حضرت ورقه بن نوفل په خاتمه بالخير باندې دلالت کوي، نو ددې نه دا معلومه شوه چه مړي په خوب کښې سپين لباس کښې ليدل د مړي د جنتي کيدلو علامت دي

**[۳۳۳] د نبی کريم ﷺ په تندي مبارك د سجدې كولو خوب ليدل**

۳۳۳-[۱۷] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، «عَنْ عَمِّهِ أَبِي خُزَيْمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ- [۲] أَنَّهُ رَأَى فِيمَا يَرَى النَّائِمُ، أَنَّهُ سَجَدَ عَلَى جَبْهَةِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳] فَأَخْبَرَهُ، فَاضْطَجَعَ لَهُ وَقَالَ: [۴] "صَدِّقْ رُؤْيَاكَ" فَسَجَدَ عَلَى جَبْهَتِهِ» . رَوَاهُ فِي " شَرْحِ السُّنَّةِ ". [۵] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي بَكْرَةَ: كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ. فِي بَابِ: " مَنَاقِبِ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- "

**ترجمه:** [۱] او حضرت خزيمه ابن ثابت د خپل تره حضرت ابو خزيمه رضي الله عنه نه نقل کوي [۲] چه هغه داسې حالت کې چې په هغې کې اوده سړي ويني (يعني په خوب کې يې وليدل) چې هغه د نبي کريم ﷺ پر تندي مبارك سجده کړيده [۳] بيا هغه داخوب د حضور ﷺ په مخکي بيان کې نو حضور ﷺ (هغه خوب اوريدو سره) د ابو خزيمه رضي الله عنه د خاطره پريوتلو (چې هغه تندي مبارك باندې سجده وکړي) او وي فرمايل [۴] خپل خوب رښتيا کړه يعنی د خپل خوب مطابق عمل وکړه نو هغه دحضور ﷺ پر تندي مبارك سجده وکړه (شرح السنه)

[۵] او د حضرت ابوبکره رضي الله عنه دا روايت كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ په مناقب ابوبکر رضي الله عنه و يا عمر رضي الله عنه کې نقل کړې شي

**حل اللغات:** ① فَاضْطَجَعَ: پس پريوتلو (په سجده باندې)

**تسهيلات:**

**قوله:** صَدِّقْ رُؤْيَاكَ" فَسَجَدَ عَلَى جَبْهَتِهِ

**په خوب باندې د عمل کولو کوشش کول:** يعنی ابوخزيمه رضي الله عنه خوب اوليدلو چه هغه په خوب کښې دَ نبی کريم په تندی مبارك باندې سجده لګوی سحر هغه دا خوب نبی کريم ته بيان کړونو نبی کريم سملاستو او وئی فرمائيل خپل خوب دې رښتيا کړه اوزما په تندی باندې سجده اولګوه دَدې حديث نه دامعلومه شوه چه په يوخوب باندې په بيدارئی کښې ترکومې عمل کول ممکن وی نوخوب ليدونکی له په هغې باندې عمل کول پکاردی خاص کر چه کله دَ عباداتو معامله وی چه په خوب کښې په يوخاص جمات کښې مونځ کړې يا په خاص ورځ ئې روژه ساتلې ده يادَ خاص بزرګ زيارت ئې کړې دې نو په بيدارئی کښې په دې افعالو باندې عمل کول پکاردی

---

[۱] اخرجه احمد فی المسند:۵/۲۱۵

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٤٦٢٥] د عالم برزخ متعلق د نبي كريم عليه السلام يو خوب

٤٦٢٥-[١٨] (١) [١] عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِمَّا يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ لِأَصْحَابِهِ: [٣] "هَلْ رَأَى أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنْ رُؤْيَا؟ [٤]" فَيَقُصُّ عَلَيْهِ مَنْ شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَقُصَّ، [٥] وَإِنَّهُ قَالَ لَنَا ذَاتَ غَدَاةٍ: "[٦] إِنَّهُ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتِيَانِ، [٧] وَإِنَّهُمَا ابْتَعَثَانِي، وَإِنَّهُمَا قَالَا لِي [٨]: انْطَلِقْ، وَإِنِّي انْطَلَقْتُ مَعَهُمَا. [٩] وَذَكَرَ مِثْلَ الْحَدِيثِ الْمَذْكُورِ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ بِطُولِهِ، [١٠] وَفِيهِ زِيَادَةٌ لَيْسَتْ فِي الْحَدِيثِ الْمَذْكُورِ،

**ترجمه:** [١] حضرت سمره ابن جندب ﷜ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ به اكثر خپلو صحابه ﷡ نه دا پوښتنه كوله [٣] چې آيا په تاسو كې چا څه خوب ليدلي دي؟ [٤] نو خداي ﷻ چې به چاته څه خوب ښودل وغوښتل او هغه به خوب وليدلو نو هغه به خپل خوب حضور ﷺ ته بيانولو [٥] يوه ورځ حضور ﷺ زمونږ مخكې بيان وكړو [٦] چه نن شپه ما خوب وليدلو چې دوه سړي ماته راغلل [٧] هغوئ څه راپاڅولم راته يې وويل [٨] زمونږ سره راځه نو زه د هغوئ سره روان شوم [٩] ددې نه پس د حديث راوي سمره ﷜ هغه طويل (اوږد) حديث بيان كړو چې د دې خوب سره متعلق په اول فصل كې تير شوي دي [١٠] ليكن په دې حديث كې د مخكني فصل والاحديث نه څه زياتې خبرې دي

[١] وَهِيَ قَوْلُهُ: "فَأَتَيْنَا عَلَى رَوْضَةٍ مُعْتَمَّةٍ، [٢] فِيهَا مِنْ كُلِّ نَوْرِ الرَّبِيعِ، [٣] وَإِذَا بَيْنَ ظَهْرَيِ الرَّوْضَةِ رَجُلٌ طَوِيلٌ، [٤] لَا أَكَادُ أَرَى رَأْسَهُ طُولًا فِي السَّمَاءِ، [٥] وَإِذَا حَوْلَ الرَّجُلِ مِنْ أَكْثَرِ وِلْدَانٍ مَا رَأَيْتُهُمْ قَطُّ. [٦] قُلْتُ لَهُمَا: مَا هَذَا، مَا هَؤُلَاءِ؟ [٧] " قَالَ: " قَالَا لِيَ: انْطَلِقْ [٨] فَانْطَلَقْنَا، فَانْتَهَيْنَا إِلَى رَوْضَةٍ عَظِيمَةٍ [٩] لَمْ أَرَ رَوْضَةً قَطُّ أَعْظَمَ مِنْهَا، وَلَا أَحْسَنَ". [١٠] قَالَ: "قَالَا لِيَ: ارْقَ فِيهَا". [١١] قَالَ: "فَارْتَقَيْنَا فِيهَا، [١٢] فَانْتَهَيْنَا إِلَى مَدِينَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ ذَهَبٍ، وَلَبِنِ فِضَّةٍ،

**ترجمه:** [١] او هغه دادي چې حضور ﷺ وفرمايل نومونږ يو ګڼ (ګونږ) باغ ته ورسيدلو [٢] چې هلته د ونو د كثرت او په هغې كې د سرسبزئ او شادابئ د زيات والي په وجه تياره خوره شوي وه په باغ كې هرطرف ته بهار او بهار وو او د هرقسم غوټې خلاصې شوي وې [٣] بيا ناڅاپه ګورم چې د باغ منځ كې يو سړي ولاړ دي هغه ډير اوږد وو [٤] چه د هغه سر هم ماته په نظر نه راتلو ځكه چې د هغه اوږدوالي د آسمان سره خبرې كولې [٥] بيا ماته دا هم په نظر راغلل چې د هغه نه ګير چاپيره ډير هلكان وه چې ماهيڅ كله نه وو ليدلي [٦] ما هغه دواړو سرو نه پوښتنه وكړه دا اوږد سړي څوك دي او دا هلكان څوك دي؟ [٧] حضور ﷺ وفرمايل چه هغه دواړو خما د خبرې د جواب راكولو په ځاي ماته اوويل مخكې ځې: [٨] مونږ مخې ته روان وو او يوډير لوي باغ ته ورسيدو [٩] چې د هغې نه لوي او د هغې نه ښه

(١) اخرجه البخاري في كتاب التعبير /باب تعبير الرؤيا بعد صلاة الصبح (رقم-٧٠٤٧) واحمد في المسند: ٩/٥

باغ ماهیځ کله نه وو لیدلي[۱۰] حضور ﷺ وفرمایل هلته رسیدو سره هغه دواړو سړو ماته اوویل چې باغ ته دننه ورشي[۱۱] ایا هغه ونو باندې وخيژئ! نو مونږ وختو [۱۲] او یو داسې ښارته نژدې ورسیدو چې د سروزرو او سپینوزرو د خښتو نه تعمیر شوي وو

**حل اللغات**: ① مُغْتِمَة: گنړ. گور رجه د وونو د گنړوالی په وجه پکښې تیاره وه، ② نَوْرُ الرَّبِيعِ: نور د گلونو غوټې ته وائی، ربیع سپرلی ته وائی یعنی د بهار ښائست ③ ارْقَ: اوخيژه، ④ مَبْنِيَّةٌ: جوړه شوې وه، ⑤ بِلَبِنِ ذَهَبٍ: د سرو زرو په خښتو،

[۱] فَأَتَيْنَا بَابَ الْمَدِينَةِ، فَاسْتَفْتَحْنَا، فَفُتِحَ لَنَا،[۲] فَدَخَلْنَاهَا، فَتَلَقَّانَا فِيهَا رِجَالٌ،[۳] شَطْرٌ مِنْ خَلْقِهِمْ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ[۴] وَشَطْرٌ مِنْهُمْ كَأَقْبَحِ مَا أَنْتَ رَاءٍ".[۵] قَالَ: "قَالَا لَهُمْ: اذْهَبُوا، فَقَعُوا فِي ذَلِكَ النَّهْرِ".[۶] قَالَ: "وَإِذَا نَهَرٌ مُعْتَرِضٌ يَجْرِي[۷] كَأَنَّ مَاءَهُ الْمَحْضُ فِي الْبَيَاضِ،[۸] فَذَهَبُوا، فَوَقَعُوا فِيهِ،[۹] ثُمَّ رَجَعُوا إِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذَلِكَ السُّوءُ عَنْهُمْ،[۱۰] فَصَارُوا فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ".

**ترجمه**: [۱] بیا مونږ د هغه ښار دروازې ته راغلو نومونږ دد دروازې خلاصولو مطالبه اوکړه نودروازه زمونږ دپاره خلاصه کړې شوه [۲] مونږ دننه داخل شو او په هغه ښار کې داسې سړو سره یوځای شو[۳] چې په هغې کې د هر یو د بدن نیمه حصه دومره ښائسته وه چې ته یې گورې[۴] او نیمه حصه د هغه نه بدتره او انتهایي خرابه وه[۵] حضور ﷺ وفرمایل هغه دواړو چې زه یې د ځان سره بوتلې وم هغه ټولو ته اوویل ځئ په دې نهر کې غوټه ووهئ[۶] حضور ﷺ فرمایي هرکله چې هغه دواړو داخبره وکړه نو زه وینم چې هلته عرضاً یونهر بهیږي[۷] چې د هغې اوبه خالصې د شیدو په شان سپینې دې[۸] نو هغه خلق نهر ته ورغلل په هغې کې وروغورزيدل[۹] بیا چې هغوئ غوټه وهلو سره مونږ ته واپس راغلل نو د هغوئ دجسم خرابې لرې شوې وه[۱۰] او دهغوئ پوره جسم بهترین شکل او صورت کې بدل شوي وو

**حل اللغات**: ① شَطْرٌ: حصه، نیمه حصه، ② أَقْبَح: ډیره خرابه، ③ فَقَعُوا: غوټه اووهئ، ورغوځه شئ، ④ مُعْتَرِضٌ: په پلنوالي، ⑤ الْمَحْضُ: خالص.

[۱] وَذَكَرَ فِي تَفْسِيرِ هَذِهِ الزِّيَادَةِ:[۲] "وَأَمَّا الرَّجُلُ الطَّوِيلُ الَّذِي فِي الرَّوْضَةِ فَإِنَّهُ إِبْرَاهِيمُ،[۳] وَأَمَّا الْوِلْدَانُ الَّذِينَ حَوْلَهُ فَكُلُّ مَوْلُودٍ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ".[۴] قَالَ: فَقَالَ بَعْضُ الْمُسْلِمِينَ: يَا رَسُولَ اللهِ! وَأَوْلَادُ الْمُشْرِكِينَ؟ [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَأَوْلَادُ الْمُشْرِكِينَ،[۶] وَأَمَّا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَانُوا شَطْرٌ مِنْهُمْ حَسَنٌ، وَشَطْرٌ مِنْهُمْ قَبِيحٌ،[۷] فَإِنَّهُمْ قَوْمٌ قَدْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا،[۸] تَجَاوَزَ اللهُ عَنْهُمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] د دې نه پس حضور ﷺ د حدیث د هغه زیاتو الفاظو په وضاحت کې وفرمایل چې[۲] هغه اوږد سړې کوم چې په باغ کې وو حضرت ابراهیم علیه السلام وو[۳] او د هغوئ نه چاپېره چې کوم هلکان وه هغه داسې بچې وو کوم چې په فطرت باندې مړ شوي وو [یعنی کوم بچي چې په کوچني عمر کې نابالغه مړه شي هغوئ د حضرت ابراهیم علیه السلام سره وو[۴] راوي وايي چه بعضې صحابه رضي الله عنهم د حضور ﷺ نه پوښتنه وکړه چې یارسول الله! او د مشرکانو

بچي؟ [۵] حضور ﷺ وفرمايل د مشركانو نابالغه بچي هم حضرت ابراهيم عليه السلام سره وو [۶] او هغه خلق چي د هغوئ نيم جسم ښه اونيم جسم خراب وو [۷] هغه داسي خلق وو چي د هغوئ اعمال ګډوډ وو چي هغوئ څه عمل ښه كړي وو او څه خراب [۸] بيا خداي ﷻ هغوئ معاف كړل (بخاري)

**تسهيلات:**

**نوټ:** په ترجمه كښي د اضافي قيوداتو په وجه د حديث مطلب واضح دې په دې باندې بس والې اوكړئ

**[۳۳۶] د دروغو خوب د بيانولو مذمت**

۴۶۳۳-[۱۹] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«مِنْ أَفْرَى الْفِرَى [۳] أَنْ يُرِيَ الرَّجُلُ عَيْنَيْهِ مَا لَمْ تَرَيَا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په لوي بهتانونو كي يو لوئ بهتان دا هم دي [۳] چي يو سړي خپلو ستركو سره هغه شي وښايي كوم چي په حقيقت كي د هغه ستركو نه وي ليدلي (بخاري)

**حل اللغات:** ① أَفْرَى الْفِرَى: دَ ټولو نه لوئي دروغ.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَفْرَى الْفِرَى أَنْ يُرِيَ الرَّجُلُ عَيْنَيْهِ مَا لَمْ تَرَيَا:

**د دروغو خوب د بيانولو ګناه:** يعنى دَ ټولو نه لوئى دروغ دادى چه سړې په ستركو باندې هغه څيز اوښائى چه په ستركوئى نه وي ليدلى يعنى دَ دروغو خوب بيانول دَ لويو بهتانونو نه يو بهتان دې. دَدې وجه داده چه دَ خوب تعلق وحى سره دې او نظام وحى او نظام غيب باندې بهتان لګول او دروغ تړل دَ عامو دروغو په شان نه دى بلكه ډير سخت دى.

**[۳۳۷] د كوم وخت خوب زيات رښتيا وي**

۴۶۳۴-[۲۰] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، قَالَ: [۲] "«أَصْدَقُ الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چي حضور ﷺ وفرمايل [۲] د سحر وخت [يعنى قبل الصلاة] خوب زيات رښتيا وي (ترمذي، دارمي)

**حل اللغات:** ① الْأَسْحَار: دَ شپې آخرى حصه. پيشمنې.

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب التعبير /باب من كذب فى حلمه (رقم-۷۰۴۳) واحمد فى المسند: ۹۶/۲

[۲]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب قوله لهم البشرى فى الحياة الدنيا (رقم-۲۲۷۴) والدارمى فى السنن رقم الحديث ۲۱۴۶ واحمد فى المسند:۲۹/۳

**تسهيلات:**

**قوله:** أَصْدَقُ الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ:

**دپيشمنى په وخت كښې د خوب د رښتيا كيدو وجه:** دَ شپې آخرى حصه كومه چه دَ سحر نه لږه شان وړاندې وى دغه وخت كښې خوب عمومًا رښتونې وى دَ دې وجه دا وى چه دغه وخت كښې معده دَ بخاراتو نه خالى وى قوت فكريه مجتمع وى او په شهوانى قوت كښې سكون وى بيا دَ ملائكو دَ نزول وخت هم وى.

**د جلد اختتام:** الحمد لله د رمضان المبارک يوكم ديرشتمه شپه ده او د شپې پوره لس بجې دى. چې ددې جلد د تكميل څخه فارغ شوم الله تعالى دې د رمضان د دې مباركو شپو په خاطر ورته مقبوليت وركړى او زر تر زره دې د نورو جلدونو د تكميل توفيق راكړى آمين

# [۲۵] كِتَابُ الْآدَابِ

## دَ آدابو بيان

**دادب لغوى تحقيق:** ادب په فتح د الف او دال سره د يوځيز د حد رعايت كولوته وائى، او ادب په سكون د دال سره جمع كول او رابللوته وائى.

**دادب په اصطلاحى تعريف كښې اقوال:** ① په اصطلاح كښې د ادب مصداق خصائل حميده دى.څكه چه دا داعى الى الخير وى ومنه قول على رضى الله عنه فعأثربآدابها.يعنى د هر ښار په خصائل حميده باندې ژوند تيروئ.

② علامه طيبى فرمائى چه ادب هر هغه رياضت محموده ته وائى چه په هغې كښې د كسب فضيلت دپاره مشقت برداشت كړې شى،

③ دقول او فعل استعمالولو ته ادب وائى قاله السيوطى رحمه الله.

④ په حسناتو باندې استقامت او د سيئاتو څخه اعراض ته ادب وائى.

⑤ د خپلو مشرانو تعظيم كول ادب دې.اوپه كشرانوشفقت ته ادب وائى.

⑥ چا ونيلى دى ادب د مأدبة څخه ماخوذ دې اومأدبة طعام ته دعوت وركولو ته وائى.

(المرقاة ۴۵/۹، والاشعة ۲/٤)

**د كتاب الادب موضوعات:** كتاب الادب د خپلې موضوع په اعتبار سره يو جامع كتاب دې، حضرات محدثين په كتاب الادب كښې يا موضوعات بيانوي

① د سلام اوخبرو اكلام
② دخوراک څكاک آداب.
③ دخوب آداب.
④ د زيارت او ملاقات آداب.
⑤ د تعلق اوعدم تعلق آداب.
⑥ د خوشحالئ او د خفگان آداب.

# [ ۱ ]بَابُ السَّلَامِ

## دَ سلام بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة وثلاثون حديثاً مشتملة على ثلاث عشرة مسائل:**

① من يستحق السلام: ۱، ۵، ۶، ۷، ۱۲، ۳۵، ۳۶، ۳۷۔

② جواب السلام: ۱، ۱۳، من توابع : ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۳۴، ۳۵ ۔

③ فضيلة تعميم السلام وفوائده: ۲، ۳، ۴، ۱۶، ۲۳۔

④ السلام على غير المسلم: ۸، ۹، ۱۰ ، ۱۱۔

⑤ ثواب السلام بزيادة الكلمات: ۱۷، ۱۸۔

⑥ فضيلة من بدأ بالسلام: ۱۹، ۳۹۔

⑦ السلام وجوابه على سبيل الكفاية: ۲۱۔

⑧ النهي عن السلام على طريق غير الإسلام : ۲۲، ۲۷۔

⑨ سنية السلام وقت دخول البيت والخروج منه: ۲۴، ۲۵، ۳۳۔

⑩ السلام قبل الكلام: ۳۶۔

⑪ السلام على الغائب: ۲۸۔

⑫ آداب الكتابة: ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۲۔

⑬ الزجر لمن لا يسلم على المسلم: ۳۸۔

**سلام د اسلام په ابتداء کښې:** دَاسلام په ابتدائی دورکښې دَ سلام شروع اوشوه هغه وخت چونکه په مسلمان او غیر مسلمان کښې دَ پیژندګلو ضرورت وو نو یومسلمان به بل مسلمان ته وئیل السلام علیکم یعنی زمادَطرف نه به تاته څه تکلیف نه رسی هغه به جواب کښې وئیل وعلیکم السلام یعنی زمادَ طرف نه به هم تاته څه تکلیف نه وی لکه چه په شروع کښې سلام دَ کوډ نمبر په توګه استعمال کړې شو

**دسلام مفهوم:** بیا شریعت داعام کړو اودَمسلمانانودَپاره ئې مشروع کړو اوس دَ سلام پوره مفهوم داسې دې چه السلام علیکم ویونکې بل ته وائی چه الله تعالی دې تا په دنیا او آخرت کښې دَهرقسم ظاهری او باطنی مصیبتونو نه محفوظ اوساتی جواب ورکونکی هم وعلیکم السلام ونیلوسره هم دغه مفهوم اداکوی اوس دَدوارو طرفونه یوبل ته دَ سلامتیا ضمانت هم ورکړې شو اودعاهم اوشوه

**دسلام حکم:** سلام کول سنت دی لیکن دَدې جواب ورکول واجب دی سره دَدې نه چه دَدې واجب نه دا سنت افضل دی. [المرقات، ۸/۳۱۲]

فاسق فاجرته په سلام کولوکښې ړومبې والې نه دی کول پکار اودَهغه دَسلام جواب ورکول واجب دی. هم دغه شان دَغیرمسلم معامله ده چه دَهغه دَ سلام جواب ورکول پکاردی مګر په سلام کښې ړومبې والې نه دی کول پکار.

**د سلام اچولو څو اصول:** بیا دَ سلام څه اصول دی.

① په ګاډی کښې سورسړی لره په پیدل سلام کول پکار دی.

② کمو خلقو له دَ زیاتو خلقو نه په سلام کښې ړومبې والې کول پکاردی

③ ولاړو خلقولره په ناستوخلقوته سلام اچول پکار دی.

④ کشرانوله په مشرانوته سلام اچول پکاردی

⑤ هرراتلونکی لره دَمقامی مجلس په ناستو خلقو سلام کول پکار دی.

**په چا سلام چې نشی اچولې:** ①کوم خلق چه په خوراك کولوکښې مشغول وی هغوی ته سلام نه دی کول پکار ځکه چه سلام کونکې دَ خپل سلام دَ جواب په انتظاروی اوکیدې شی چه خوراك کونکی دَ روټئی خوړلودَوجې نه په سلام کښې سستی اوکړی نودا سړې به خفه شی.

② غټې او وړې متیازې یا په څه بنکاره ګناه کښې ککرسړی ته سلام نه دی کول پکار.

③ اوکه دَ سلام کونکې اوګې وی نوهغه سلام کولې شی دَده دَ سلام مطلب به داشی لکه چه دې هغوی سره په خوراك کښې شریکیدل غواړی.

④ دغه شان په تلاوت ذکراذکار یا مطالعه یاتکرارکښې مشغول سړی ته سلام نه دی اچول پکار.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٤٦٢٨] د فریښتو حضرت آدم علیه السلام ته سلام کول**

٤٦٢٨—[١] ([1]) [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«خَلَقَ اللّٰهُ آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ، [٣] طُولُهُ سِتُّونَ ذِرَاعًا، [٤] فَلَمَّا خَلَقَهُ قَالَ: اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَى أُولَئِكَ النَّفَرِ، [٥] وَهُمْ نَفَرٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ جُلُوسٌ، [٦] فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ، فَإِنَّهَا تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ، [٧] فَذَهَبَ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالُوا: السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ [٨]" قَالَ: فَزَادُوهُ "وَرَحْمَةُ اللّٰهِ". [٩] قَالَ: "فَكُلُّ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ آدَمَ وَطُولُهُ سِتُّونَ ذِرَاعًا، [١٠] فَلَمْ يَزَلِ الْخَلْقُ يَنْقُصُ بَعْدَهُ حَتَّى الْآنَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب بدء السلام (رقم-۶۲۲۷) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب یدخل الجنة أقوام أفئدتهم مثل أفئدة الطیر (رقم-۲۸ - (۲۸٤۱) واحمد فی المسند:۲/۳۱۵

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خداي تعالی آدم علیه السلام په خپل صورت جوړکړي [۳] د هغوئ اوږدوالي شپيته ګزه وو [۴] خداي تعالی چې هغه جوړکړي نو ورته يې وفرمايل لاړشه او دي جماعت ته سلام وکړه [۵] او هغه جماعت د فرشتو وو چې هلته ناست وو [۶] بيا واوره چې هغوئ تاته څه جواب درکوي هغه ستا او ستا د اولاد جواب دي [۷] حضور ﷺ فرمايي آدم علیه السلام د دې حکم خداوندي تعميل کې د فرشتو هغه جماعت ته ورغلى ورته يې اوويل السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فرشتو جواب ورکړو السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ يعنى په تادي د الله سلامتيا او رحمت وي [۸] حضور ﷺ وفرمايل (ګويا) د آدم علیه السلام د سلام جواب کې ورحمة الله لفظ فرشتو زيات کې [۹] بيا حضور ﷺ وفرمايل بس کوم سړي چې په جنت کې دا خليږي هغه به د آدم علیه السلام په صورت وي په دې طور چې د هغه اوږدوالي به شپيته ګزه وي (يعنى جنت ته تلونکي به د حضرت آدم علیه السلام د قد مذکوره بلندي او د هغوئ حسن وجمال سره هلته داخليږي) [۱۰] بيا د حضرت آدم علیه السلام نه پس د خلقو ساخت برابر کميدي تردي چې موجوده مقدار ته ورسيدي. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُحَيُّوْنَكَ: تحيه (سلام) پيش کوی تاته ② تَحِيَّةٌ: پيشکشی، سلام.

**تسهیلات:**

**قوله: خَلَقَ اللهُ آدَمَ عَلٰى صُوْرَتِهٖ:**

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې څلور اقوال:** يعنى الله تعالى حضرت آدم علیه السلام په خپل صورت باندې جوړکړو. په دې حديث دَ پوهيدلودَ پاره يوڅو اقوال دی.

① د "صورته" څخه مراد دَ الله تعالى هغه ښه صفات دی په کومو صفاتوچه الله تعالى حضرت آدم علیه السلام پيداکړو لکه "حي، عالم، کريم، بصير، متکلم" لکه چه انسان دَ الله تعالى دَ صفاتو مظهردې. په دې توجيه کښې دَ "بصورته" ضمير دَالله عالى طرف ته راګرځی اودَ صورت نه به صفت مراد وی.

② دا حديث دَ متشابهاتو نه دې لهذا دَهيڅ تاويل ضرورت نشته دې بلکه دَ سلف صالحينو په طرز باندې به دا ونيلی شی "مايليق بشانه" يعنى کوم چه دَ الله تعالى دَ شان سره مناسب وی مونږ هم هغه منو.

③ الله تعالى حضرت آدم علیه السلام دَ صورت اومجسمې په شکل کښې پيدا کړو يعنى مرحله وار ئې پيدا کړې نه دې چه اول نطفه وی بيا مضغه وی بيا عظام بيا لحم وی او بيا تخليق وی داسې نه دی شوی بلکه دَ شروع نه ئې مکمل صورت وو. دَ هغوی قد ۶۰ ګزه وو ﴿فَتَبٰرَكَ اللهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾ دې نه پس انسان کميدو اوس دوه دوه نيم ګزه پاتې شو. بياچه کله انسانان په جنت کښې داخليږی نوشپيته ګزه به پوره وی. بهرحال حضرت آدم علیه السلام فرښتوته

سلام اوكړو فرښتو جواب وركړو اوهم دغه طريقه په آولاد آدم كښې راغله كومه چه دې وخت كښې صرف مسلمانانوسره ده.باقي انسان وحوش وطيور كښې شامل شو.ياد لرئى چه شرعى ګز كم و زيات دوه ليشت وى.[المرقات، ۸/۴۱۳-۴۲]

④ حضرت آدم عليه السلام الله تعالى هم دَ حضرت آدم عليه السلام په صورت باندې پيداكړې دې يعنى په كوم صورت ئى چه حضرت آدم عليه السلام جوړكړو دغه هم دَحضرت آدم عليه السلام قسمت كښې وو آدم عليه السلام خپل مثال پخپله وو دَ بل چا دَ صورت نمونه نه وو.لكه څنګه چه يوماشوم نه دَ پلار په شكل وى اونه دَ مور په شكل كښې وى.نومنيندې وائى دا په خپل شكل باندې پيدا شوې دې.دَدې تاويل په رڼا كښې "بصورته" كښې ضمير دَ حضرت آدم عليه السلام طرف ته راګرځى اومطلب به هم هغه وى چه آدم عليه السلام خپل مثال په خپله وو.

**[٤٦٢٩] په هرچا باندې د سلام اچولو ترغيب**

۴۶۳۹-[۲] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-[۲] «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ؟[۳] قَالَ: "تُطْعِمُ الطَّعَامَ،[۴] وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او د حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دې [۲] چې يو سړي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وكړه چې د اهل اسلام كوم خصلت ښه دې؟[۳] حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل طعام خوړل [۴] او هراشناسا او ناشنا ساته سلام كول .(بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① أَيُّ الْإِسْلَامِ:

دلته مضاف محذوف دې يعنى "أى آداب الإسلام" د اسلام كوم آداب افضل دى؟

اسلام نه د اسلام آداب مراد دى.

**قوله:** خَيْرٌ: خير صيغه د اسم تفضيل ده يعنى اسلام كوم آداب د ثواب او نفعې په اعتبار سره غوره او افضل دى؟

**قوله:** تُطْعِمُ الطَّعَامَ:

**اشكال:** په حديث كښې كه د "تطعم الطعام" په شان "تسلم السلام" ئى وئيلې وې نو په كلام كښې به برابرى وې، نو د "تقرئ السلام" وئيلو څه وجه ده؟

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الاستئذان/باب السلام للمعرفة وغير المعرفة (رقم-۶۲۳۶) ومسلم في كتاب الإيمان/باب بيان تفاضل الإسلام. وأي أموره أفضل (رقم-۶۳ - (۳۹) والنسائي في كتاب الإيمان وشرائعه/باب أي الإسلام خير(رقم-۵۰۰۰) وابن ماجه في كتاب الأطعمة/باب إطعام الطعام (رقم-۳۲۵۳) واحمد في المسند:۲/۱۶۹

**۵اشکال جوابونه:** ① دا انداز اختیارولو کښې د عموم طرف ته اشاره کول مقصود دي، چه په ژبې سره سلام کول وي یا د لیکلو په ذریعه سلام وي نو هر یو ته شامل دي
② دلته إطعام الطعام وإفشاء السلام ني نه دي ونیلي. نو ددې وجه دا ده چه ددې عادتونو متعلق به د هغه خلقو نه پوښتنه کیږي کوم چه ددې اهل وي یعنی کوم چه د روټی خورولو طاقت لري نو د هغه نه به د اطعام طعام متعلق پوښتنه کیږي او کوم چه د سلام کولو لائق وو نو هغوی نه به د سلام متعلق پوښتنه کیږي (التعلیق ایضاً)
**نوټ:** "أي الأعمال أفضل" متعلق تفصیل په کتاب الایمان کښې بیان شوې دي
**قوله** «وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ»:
**په هر جا بانډې ۵ سلام اچولو حکم:** یعنی هغه کس ته هم سلام کوه کوم چه ته پیژنې نو دی سلام ته سلام مواجهت ونیلې کیږي او هغه کس ته هم سلام کوه کوم چه ته نه پیژنې ددې وجهې نه په حدیث شریف کښې ذکر دی چه په قرب قیامت کښې به سلام صرف پیژند ګلو خلقو ته کیږي

**[-۴۶۳۰] د یومسلمان په بل مسلمان شپږ حقونه**

۴۶۳۰-[۳] ()[1] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «لِلْمُؤْمِنِ عَلَى الْمُؤْمِنِ سِتُّ خِصَالٍ: [۳] يَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ، [۴] وَيَشْهَدُهُ إِذَا مَاتَ، [۵] وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ، [۶] وَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ، [۷] وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ، [۸] وَيَنْصَحُ لَهُ إِذَا غَابَ أَوْ شَهِدَ» [۹] " لَمْ أَجِدْهُ فِي " الصَّحِيحَيْنِ "، وَلَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ، وَلَكِنْ ذَكَرَهُ صَاحِبُ " الْجَامِعِ " بِرِوَايَةِ النَّسَائِيِّ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په مسلمان د مسلمان شپږ حقونه دي [۳] یو خو دادي چې کله یو مسلمان ناجوړه شي نو دویم مسلمان دي د هغه پوښتنه کوي [۴] دویم دا چې هرکله یو مسلمان وفات شي نو بل مسلمان دي د هغه د جنازې په مونځ کې شریک شي [۵] دریم داچې کله یو مسلمان طعام د پاره وبلل شي نو بلل شوی مسلمان دي د هغه دعوت قبول کړي ،په شرط د دې چې څه شرعي عذر مانع نه وي لکه هغه دعوت کې باجې سرودونه وغیره وي یا هغه دعوت د اظهار فخر او ریا کاري دپاره وي ،[۶] څلورم داچې کله د یو مسلمان سره یوځاې شي نو هغه ته دي سلام وکړي [۷] پنځم داچې کله یومسلمان وترچې (او الحمد لله اووائي) نو د هغه جواب دي ورکړي ایعنی یرحمك الله دي ورته اووائي که الحمد الله ونه وایي نو هغه د جواب مستحق نه دي[۸] او شپږم دا چې یومسلمان دي په هرحالت کې د بل مسلمان خیرخواهي کوي که هغه حاضر وي یاغائب [۹] د مشکوٰة مؤلف وایي ما دا حدیث نه خو صحیحین بخاري او مسلم کې پیداکړې دي او نه د حمیدي په کتاب کې البته دا صاحب جامع الاصول نقل کړي دي

[1]) اخرجه مسلم في كتاب السلام/باب من حق المسلم للمسلم رد السلام (رقم) ۵ - (۲۱۶۲)

**حل اللغات:** - ① خِصَالٌ: صفتونه، خوبیانې، ② تَعُودُهُ: عیادت او بیمار پرسی ئې کوی، ③ تَشْهَدُهُ: حاضریږي ورته (یعني جنازه ئې کوی)، ④ تُشَمِّتُهُ: د فرنجي کونکی دالحمد لله جواب ورکوی، ⑤ عَطَسَ: چه فرنجې (انتوشې) اوکړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** لِلْمُؤْمِنِ عَلَى الْمُؤْمِنِ سِتُّ خِصَالٍ:

① دَ بیمار تپوس کول ② جنازه کول ③ دعوت قبلول ④ دَ ملاقات په وخت سلام کول ⑤ په انتروشی باندې جواب ورکول ⑥ په هرحال کښې دَهغه خیرخواهی کول.

**قوله:** لَمْ أَجِدْهُ فِي "الصَّحِيحَيْنِ"،

**په صاحب مصابیح باندې تعریض:** په دې سره د صاحب مشکوٰة مقصد په صاحب مصابیح باندې اعتراض کول دی، چه هغه په اول فصل کښې داسې احادیث ذکر کړی دې چه په بخاری او مسلم کښې نشته خو تواضعاً او ادباً ئې دا هم اوفرمائیل چه دا زما غلطی ده چه ما ته هلته ملاو نه شو مګر که ما تلاش او جستجو کړې وې نو ما ته به ملاو شوې وې.

**[۴۶۲۱] دتعلق او دوستی قائمولو بهترینه ذریعه سلام دی**

۴۶۳۱—[۳] ([۱]) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، [۳] وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، [۴] أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ [۵] أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو چې ترڅو پوري ایمان رانه وړي په جنت کې نشي داخلیدي [۳] او ستاسو ایمان هغه وخته پوري کامل کیدي نشي څوپوري چې تاسو د الله د رضا او خوشنودي د پاره خپلو کې تعلق او دوستي قائمه نه کړي [۴] او حضور ﷺ وفرمایل آیا زه تاسو ته یوه داسې ذریعه ونه ښایم چې هغه تاسو اختیارکې نوپه خپلو کې به د دوستي تعلق قائم شي [۵] او هغه ذریعه دا ده چې تاسو خپلو کې د سلام چلن عام کئ یعنی آشنا او نا آشنا ټولو ته سلام کوئ. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** حَتَّى تَحَابُّوا، أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ،

**په سلام سره د محبت زیاتیدل:** د سلام فائده او ددې د مشروعیت سبب هم دا دې چه د خلقو په مینځ کښې د محبت پیدا کولو هم دا خوئ دې په کوم چه الله تعالی راضی کیږي او سلام خورول

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب بيان أنه لا يدخل الجنة إلا المؤمنون، وأن محبة المؤمنين من الإيمان، وأن إفشاء السلام سببا لحصولها (رقم-۹۳ - (۵٤) والترمذی فی کتاب الأمثال عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی مثل المؤمن القاری للقرآن وغير القاری(رقم-۲۸۶۶) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب إفشاء السلام(رقم-۳۶۹۲)

يو داسې آله ده كوم چه محبت پيدا كوي، هم دغه شان لاس ملاوول، لاس ښكلول. ماشومانو لويو ته سلام كول،

**[٤٦٣٢] په كوم مسلمان به په كوم مسلمان سلام اچوي؟**

۴۶۳۲—[۵] (۱) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي، [۳] وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ، [۴] وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې په سورلۍ وي هغه دې پياده تلونكي ته سلام وكړي [۳] پياده تلونكي دې ناست ته سلام كوي [۴] او لږ سړي دې ډير تعداد والا سړو ته سلام كوي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الرَّاكِبُ: په سورلۍ باندې ناست كس، ② الْمَاشِي: پيدل تلونكې،

**تسهيلات:**

**قوله:** الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي،

**د سور په پيدل باندې سلام اچول:**

په حديث كښې دي چې سور به په پيدل سلام اچوي، دا حكم د تواضع او د انكسارى طرف ته د راغب كولو دپاره دې ځكه چه كوم كس سورلى باندې وي هغه لره په پيدل تللو والاباندى فوقيت حاصل دې لهذا كه سورلى والاسلام كښې مخكى والې وكړى نو هغه ته به تواضع حاصل شى،

**قوله:** وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ

**د كمو خلقو په زياتو خلقو سلام اچول:** هم دغه شان دا مسئله ده چه كم تعداد والا دې ډير تعداد والو ته په سلام كولو كښې مخكى والې وكړى، او هم دغه شان كه څوك يو مجلس ته لاړ شى او د مجلس بعضې خلقو ته سلام وكړى نو دا مكروه دې، ځكه چه د سلام مقصد موانست او موافقت دې او بعضى خلق خاص كول دا عداوت او نفرت پيدا كوي.

**[٤٦٣٣] د كشر په مشر سلام اچول**

۴۶۳۳—[۶] (۲) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ، [۳] وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ، [۴] وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب تسليم الراكب على الماشى (رقم-۶۲۳۲) ومسلم فى كتاب السلام/باب يسلم الراكب على الماشى والقليل على الكثير (رقم-۱ - (۲۱۶۰) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى تسليم الراكب على الماشى (رقم-۲۷۰۳) ومالک فى الموطا كتاب السلامة /باب العمل فى السلام (رقم-۱)

[۲]) اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب تسليم القليل على الكثير (رقم-۶۲۳۱) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى تسليم الراكب على (رقم-۲۷۰۴) واحمد فى المسند: ۲/۳۱۴

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] سلام دې کوي کوچني لوي ته. [۳] تيريدونکي دې ناست ته. [۴] او کم تعداد والا دې زيات تعداد والا ته (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الْمَارُّ: تيريدونکې، تلونکې،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ:

**د تيريدونکي په ناست سلام اچول:** دا حکم د ملاقات په باره کښې دې چه کله دوه کسان ملاقات کوی ليکن که يو کس د بل کس خوا له ځی نو د بهر طرف نه راتلونکې د سلام وکړی بيا که هغه وروکې وی او که غټ وی او دا به د راتللو اطلاع او اجازت شی.

**[٤٦٢٤] د نبی عليه السلام په ماشوما نو سلام اچول**

| |
|---|
| ٤٦٣٣-[٧] ( )[١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ، فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي [۲] يو وخت رسول الله ﷺ په څه ماشومانو هلکانو باندې تير شو نو حضور ﷺ هغوئ ته سلام وکړو (بخاري . مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ، فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ:

**په ماشومانو د سلام اچولو مسنونيت:** اګرچه په اصولی توګه ماشومانوله پکاردی چه هغوی مشرانوته په سلام کولوکښې ړومبيوالې اوکړی ليکن حضورپاک دَ تواضع اودَ شفقت به توګه اول ماشومانوته سلام کړې دې دَ کوم نه چه دَ جواز پته لګی.بله داخبره چه ماشومان زيات هم وو په دې وجه حضورپاک هغوی ته سلام اوکړو.بل حضورپاک په لار تيريدونکې هم وو په دې وجه نې ورته سلام اوکړو بل ماشومانوته دَسلام تعليم ورکول وو.

**[٤٦٢٥] په غير مسلم د سلام اچولو حکم**

| |
|---|
| ٤٦٣٥-[٨] ( )[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ: [٢] " «لَا تَبْدَءُوا الْيَهُودَ وَلَا النَّصَارَى بِالسَّلَامِ، [٣] وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي طَرِيقٍ فَاضْطَرُّوهُ إِلَى أَضْيَقِهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

[1]) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٦٢٣١ ومسلم فی كتاب السلام/باب استحباب السلام على الصبيان (رقم-١٥ - (٢١٦٨) والترمذی فی كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی التسليم على الصبيان (رقم-٢٦٩٦) وابن ماجه فی كتاب الأدب/باب دخول الحمام (رقم-٣٧٥٠)

[2]) اخرجه مسلم فی كتاب السلام/باب النهى عن ابتداء أهل الكتاب بالسلام وكيف يرد عليهم (رقم-١٣ - (٢١٦٧) والترمذی فی كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی التسليم على أهل الذمة (رقم-٢٧٠٠) واحمد فی المسند:٢/٢٦٦

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يهوديانو او عيسائيانو ته سلام کولو کې مخکې والي مه کوئ [۳] او هرکله چې د هغوئ سره په لار کې يو ځاي شئ نو هغوئ په تنګ ترينه لاره تلو باندې مجبوره کئ .(بخاري ، مسلم)

**حل اللغات**:- ① فَاضْطَرُّوهُ: نو مجبوره ئې کړئ، ② أَضْيَقِهِ: په تنګه لار،

**تسهیلات**:

**قوله**: لَاتَبْدَءُوا الْيَهُودَ وَلَا النَّصَارَى بِالسَّلَامِ:

**غیرمسلم ته د سلام کولو څلور صورتونه**: ① په عامو حالاتو کښې غير مسلم ته په سلام کښې ړومبې والي کول حرام دی

② د سختې مجبورۍ په غيرمسلمه په سلام کښې ړومبې والي کول جائز دی.

③ که په ناخبرئ کښې کافرته سلام اوکړې شی نوداسې واپس کول پکاردی استرجعت سلامی زه خپل سلام واپس کول غواړم.

④ که چرې غيرمسلم په شروع کښې سلام اوکړی نوصرف په وعليکم سره جواب ورکول جائزدی.

⑤ مبتدع ته هم په ابتداء کښې سلام نه دی کول پکار اوکه مجبوری وی نوصحيح دې.

**قوله**: وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي طَرِيقٍ فَاضْطَرُّوهُ إِلَى أَضْيَقِهِ:

**اهل کتاب تنګې لارې ته د کولو حکم**: په دې حديث کښې يوحکم داهم بيان کړې شوې دې چه که چرې يو يهودی يا عيسائی تاته په لارکښې ملاؤشی نوهغه په تنګه لاره باندې په تللو مجبورکړه دَمسئلې وضاحت داسې دې چه که دَ اهل کتاب نه څوک ذمی وی نوهغه ته په کولاؤ لارباندې دَتللو حق نشته دې دغه شان که يومسلمان او اهل کتاب په يوه لار روان دی اولاردَ مسلمانانودَپاره تنګه پريوځی نو يهودو اونصارىٰ ته په کولاؤ لار باندې دَتللو حق نشته دې لهذا هغوی ته به په تنګه لار دَ تللو حکم ورکولې شی که هغه په دې باندې عمل نه کوی نو ديکه ورکولوسره به مجبورکولې شی.

**[٤٦٣٦] د يهوديانو خباثت**

٤٦٣٦-[٩] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲] "«إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمُ الْيَهُودُ،[۳] فَإِنَّمَا يَقُولُ أَحَدُهُمْ: السَّامُ عَلَيْكُمْ. فَقُلْ: وَعَلَيْكَ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هرکله چې يهود

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب: کيف يرد علی أهل الذمة السلام (رقم-٦٢٥٧) ومسلم فی کتاب السلام/باب النهی عن ابتداء أهل الکتاب بالسلام وکيف يرد عليهم (رقم-٨ - (٢١٦٤) ومالک فی الموطا کتاب السلامة/باب ما جاء فی السلام علی اليهودی والنصرانی (رقم-٣) واحمد فی المسند:٩/٢

تاسو ته سلام کوي [۳] نو د دې نه علاوه نور هیڅ نه دي چې هغه خلق داسې وایي اَلسَّامُ عَلَیْكَ یعنی په تادي مرګ راشي نوتاسو د هغوئ په جواب کې داسې وایئ ، وعلیك یعنی په تادي مرګ راشي .(بخاري ، مسلم)

**حل اللغات**: - ① السَّامُ: مرګ، یو قسم مرض.

**تسهیلات:**

**قوله**: فَإِنَّمَا يَقُولُ أَحَدُهُمْ: السَّامُ عَلَيْكُمْ. فَقُلْ: وَعَلَيْكَ:

**یهودو ته د سلام جواب ورکولو طریقه**: د یهودو د شرارت او د خباثت اندازه د دې نه لږی چه دوی به مسلمانان د سلام کولو په وخت کښې هم نه معاف کول بلکه هغه وخت به ئې هم بد دعا کوله او کله چه یهودو به صحابه کرامو ته السام علیکم وئیل نو صحابه کرامو ته به ډیر تکلیف وو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو د هغوې په جواب کښې وعلیکم وائی، یعنی څومره چه هغوی تاسو ته بد وائی نو تاسو د هغوی نه ډیر بد مه وائی بلکه څومره چه تاسو ته بد وائی نو د هغې په انداز تاسو هم بد وائی یعنی تجاوز مه کوئ.

**[٤٦٣٧] اهل کتابو ته د سلام جواب ورکولو طریقه**

٤٦٣٧-[١٠] [١] () وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا: وَعَلَيْكُمْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او حضرت انس ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هرکله چې اهل کتاب یعنی یهود او نصاري تاسو ته سلام وکړ نو تاسو د هغوئ په جواب کې اووایئ وَعَلیکُم (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله**: فَقُولُوا: إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا: وَعَلَيْكُمْ:

**مسلمانانو سره د یهودیانو دشمنی**: دَیهودودَ شرارت اوخباثت اندازه دَدې نه لګیدلې شی چه دا خبیث یومسلمان لره دَ ملاقات په وخت کښې هم نه معاف کوی بلکه دَ سلام په صورت کښې دَ دعاپه ځائی بددعاکوی. کله چه به ئې صحابه کرامو ته سلام کولو نودَ السلام علیکم په ځائی به ئې ژبه تاوولہ السام علیکم به ئې وئیلو دکوم ترجمه چه مرګ او هلاکت دې په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل تاسو هغوی ته په جواب کښې وعلیکم وایئ یعنی چه دا مرګ او هلاکت دې په تاسو وی.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب: کیف یرد علی أهل الذمة السلام (رقم-٦٢٥٨) ومسلم فی کتاب السلام/باب النهی عن ابتداء أهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم (رقم-٦ - (٢١٦٣)) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب رد السلام علی أهل الذمة (رقم-٣٦٩٧) واحمد فی المسند: ٩٩/٣

**دوه قسمه روایات:** ① بعضې روایاتو کښې صرف علیکم لفظ دې هغه زیات بهتر دې ځکه چه په وعلیکم کښې دَتشریك خطره ده ځکه چه مطلب داکیدې شی چه زمونږ مرګ اوهلاکت سره دې په تاسو باندې هم مرګ اوهلاکت وی.

② په کومو روایتونو کښې چه وعلیکم دې په هغې کښې به واؤ دَ استناف په معنی کښې اخستې شی دَ کوم مطلب چه به دا وی چه مرګ اوهلاکت دې صرف هم په تاسو وی."اې وعلیکم ماتستحقون" بهرحال دواړه الفاظ جائز دی. [المرقات، ۸/۴۲۲-۴۲۱]

**[۴٦۲۸] د نبی علیه السلام صبر اوتحمل**

۴۶۳۸-[۱۱] ()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] «اسْتَأْذَنَ رَهْطٌ مِنَ الْيَهُودِ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، فَقَالُوا: السَّامُ عَلَيْكُمْ. [۲] فَقُلْتُ: بَلْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ [۳] فَقَالَ: "يَا عَائِشَةُ! إِنَّ اللَّهَ رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْأَمْرِ كُلِّهِ". [۴] قُلْتُ: أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا" قَالَ: "قَدْ قُلْتُ: وَعَلَيْكُمْ» ". [۵] وَفِي رِوَايَةٍ: "عَلَيْكُمْ" وَلَمْ يَذْكُرِ الْوَاوَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.-

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي [۲] چې يوه ورځ د يهوديانو يو جماعت د حضور ﷺ په خدمت کې د حاضريدو اجازت وغوښتل هغوئ ته اجازت ورکول شوه او کوم وخت چې هغوئ راغلل نو هغوئ اوويل السَّامُ عليکم (په تاسو دې مرګ راشي)[۲] نو ما اوويل بلکې په تاسو دې مرګ راشي او په تاسو دې لعنت وي[۳] حضور ﷺ وفرمايل اې عائشې! خداي ﷻ محبت او نرمي کونکي دي او محبت او نرمي خوښوي [۴] ما عرض وکړو آيا تاسو ﷺ وانه وريدل هغوئ د سلام په ځاې څه لفظ ويلي دي حضور ﷺ وفرمايل بيشکه ما اوريدلي دي او ما دهغوئ په جواب کې ويلي دي چې وعليکم او په [۵] يو روايت کې دالفظ عَلَيْكُمْ دي يعنی د واو ذکر نشته. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -① رَهْطٌ: جماعت، ډله، ② السَّامُ: مرګ، ③ رَفِيقٌ: محبت، نرمی،

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ. قَالَتْ: «إِنَّ الْيَهُودَ أَتَوُا النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالُوا: السَّامُ عَلَيْكَ [۲] قَالَ: "وَعَلَيْكُمْ" فَقَالَتْ عَائِشَةُ: السَّامُ عَلَيْكُمْ، وَلَعَنَكُمُ اللَّهُ، وَغَضِبَ عَلَيْكُمْ [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَهْلًا يَا عَائِشَةُ! عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ، [۴] وَإِيَّاكِ وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ". [۵] قَالَتْ: أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا؟ [٦] قَالَ: "أَوَلَمْ تَسْمَعِي مَا قُلْتُ، [۷] رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ، فَيُسْتَجَابُ لِي فِيهِمْ، وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ» ". [۸]- وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: "«لَا تَكُونِي فَاحِشَةً، [۹] فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفُحْشَ وَالتَّفَحُّشَ» ".

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «یستجاب لنا فی الیهود، ولا یستجاب لهم فینا» (رقم-۶۴۰۱) ومسلم فی کتاب السلام/باب النهی عن ابتداء أهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم (رقم-۱۰ - (۲۱۶۵) والترمذی فی کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التسلیم علی أهل الذمة (رقم-۲۷۰۱) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب الرفق (رقم-۳۶۸۹)

**ترجمه:** [۱] او د بخاري په يو روايت کې داسې دي چې بي بي عائشي رضي الله عنها وفرمايل يوه ورځ ځو يهوديان رسول الله ﷺ ته راغلل او هغوئ (د السلام عليکم) ويلو په ځاي دا اوويل چې السام عليکم [۲] حضور ﷺ ورته په جواب کې وفرمايل وعليکم بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي د يهوديانو دا بد تميزي ز ما برداشت نه شوه او ماورته په جواب کې اوويل په تاسو دي مرګ راشي او په تاسو دي د الله تعالى لعنت وي او په تاسو دي د الله غضب وي [۳] حضور ﷺ ځما د ژبي نه دا الفاظ په اوريدو سره وفرمايل اې عائشي رضي الله عنها منع شه تاته نرمي اختيارول پکار دي [۴] او سخت ګويي او فحش خبرو نه پرهيز پکار دي [۵] بي بي عائشه رضي الله عنها اوويل آيا تاسو ﷺ وانه وريدل چې هغوئ څه لفظ ويلي دي [۶] حضور ﷺ ورته وفرمايل او تاوانه وريدل چې هغوئ څه ويلي دي [۷] ما د هغه جواب ورکړي دي (تاته دي معلومه وي چې) د هغوئ په حق کې ځما دعا يا بد دعا خو قبليږي ليکن ځما په حق کې د هغوئ دعا يا بد دعا نه قبليږي [۸] او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل اې عائشي رضي الله عنها ! ته فحش خبري کونکي مه جوړيږه [۹] ځکه چې خداي ﷻ فحش خبري او په تکلف فحش خبري جوړول نه خوښوي.

**حل اللغات:** -④مَهْلًا: منع شه، مه کوه، ⑤إِيَّاكِ: ځان اوساته، ⑥الْعُنْفَ: سخت کلامی، ⑦الْفُحْشَ: پوچه وينا ،نامناسبه خبرې، ⑧فَاحِشَةً: بدې ناروا خبرې کونکې، بدګويه،

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالُوا: السَّامُ عَلَيْكُمْ:**

**نبی عليه السلام ته د يهودو خيرې كول:** دَيهودو عداوت اوخباثت تردې حده پورې زيات شوې وو چه حضورپاك ته به ئې هم په سلام كولوكښې دَ بددعا كولوكوشش كولو "السام عليكم" به ئې وئيلو دَ كوم معنى چه داوه چه په تادې مرګ اوهلاكت راشي.حضورپاك به اوريدل او پوهيدلو به ليكن صرف په وعليكم به ئې جواب وركولو.

**قوله: مَهْلًا يَا عَائِشَةُ! عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ:**

**عائشي رضى الله عنها ته د نرمى كولوحكم:** يوځل حضرت عائشه رضي الله عنها واوريده نو ښه جواب ئې وركړو په كوم چه حضورپاك اوفرمائيل اې عائشه نرمی الله تعالى خوښوى ته دَ نرمئى نه كارواخله.حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه آيا تاسو دَدې يهوديانوخبره نه اورئى چه په سلام كښې بددعاكوى؟ حضورپاك اوفرمائيل زه ئې اورم اوجواب هم وركوم دَهغوى بددعا زما په حق كښې نه قبليږى اوزما بددعا دَهغوى په حق كښې قبليږى.په دې حديث كښې دَ حضورپاك دَ حكم اوصبر اوبرداشت لويه نمونه موجود ده. [المرقات، ۲۸۲/۸]

**[٤٦٣٩] د مسلم او غیر مسلم مخلوط مجلس کې د سلام کولو طریقه**

۴۶۳۹-[۱۲] (۱) [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ بِمَجْلِسٍ [۳] فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ، وَالْيَهُودِ، [۴] فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسامه ابن زید ﷺ وايي [۲] چې یوه ورځ رسول الله ﷺ په یو مجلس باندې تېر شو [۳] چې په هغه کې مسلمانان او مشرکيني په خپلو کې ناست وه او په مشرکينيو کې بت پرست هم وو او یهودیان هم [۴] نو حضور ﷺ (د مسلمانانو اراده کولو سره) مجلس والاوو ته سلام واچوي (بخاري . مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَخْلَاطٌ: ګډ وډ . ② الْأَوْثَانِ: بتان.

**تسهیلات:**

**قوله: مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ... وَالْيَهُودِ، فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ:**

**د مسلم او غیر مسلم په ګډ مجلس باندې سلام اچول:** که چرې انسان یوداسې اجتماع ته لاړشي یاهلته تیریږي په کوم کښې چه مسلمانان اوکافران اوهرقسم خلق وی یا داسې مجلس سره تیرشی په کوم کښې چه څه اهل سنت وی اوڅه بدعتی څه عادل وی اوڅه ظالمان نو په داسې صورت کښې دَ سلام کولو طریقه داده چه کله انسان سلام کوی نو په دې ګنره کښې دې دَ مسلمانانو دَ سلام اراده اوکړی اوهغه چه کوم دَ اهل سنت نه وی اوعادل وی.نبی کریم ﷺ خو په مذکوره حدیث کښې دَ سلام الفاظ عام استعمال کړی دی لیکن دې سره ئې صرف دَاهل اسلام اراده کړې ده په دې سره حقیقت کښې امت ته درس ورکول مقصودوو (تحفة الاحوذی ۷ ۴۰۰ عارضة الاحوذی)

**[٤٦٤٠] لارې ته د هغې حقونه ورکول**

۴۶۴۰-[۱۳] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ ". فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [۳] مَا لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيهَا. [۴] قَالَ: " فَإِذَا أَبَيْتُمْ إِلَّا الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ حَقَّهُ [۵] " قَالُوا: وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [۶] قَالَ: " غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الْأَذَى، وَرَدُّ السَّلَامِ، [۷] وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ، وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب الاستئذان/باب التسليم فی مجلس فيه أخلاط من المسلمين والمشركين (رقم-٦٢٥٤) ومسلم فی كتاب الجهاد والسير/باب فی دعاء النبی صلى الله عليه وسلم إلى الله. وصبره على أذى المنافقين (رقم-١١٦ - (١٧٩٨) والترمذی فی كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی التسليم على أهل الذمة (رقم-٢٧٠٢)واحمد فی المسند:٢٠٣/٥

[۲] اخرجه البخاری فی كتاب الاستئذان/بابقول الله تعالى: ﴿يا أيها الذين آمنوا لا تدخلوا بيوتا غير بيوتكم حتى تستأنسوا. وتسلموا على أهلها. ذلكم خير لكم لعلكم تذكرون.... (رقم-٦٢٢٩) ومسلم فی كتاب الأشربة/باب النهى عن الجلوس فی الطرقات وإعطاء الطريق حقه (رقم-١١٤ - (٢١٢١)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو سعید خدري د رسول الله ﷺ نه نقل کوي حضور ﷺ وفرمایل [۲] تاسو په لارو کې د ناستې نه پرهیز کوئ (په دې اوریدو سره) بعضې صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو چې یا رسول الله ! [۳] زمونږ د پاره په لارو کې د ناستې نه علاوه بله څه چاره نشته چې هلته مونږ خبرې کوو [یعنی په لارو کې ناستې نه پرهیز کول زمونږ د پاره ممکن نه دي زمونږ سره څه داسې ځای نشته چې هلته مونږ خپل مجلس کوو ځکه مونږ چې څو سړي یوځای شو نوهلته په لار کې کینو او د خپل دیني او دنیاوي امورو باره کې خپلو کې رایې مشورې او مذاکرات کوو د یو بل حالت د ریافت کوو که څوك ناجوړه شي نو د هغه د پاره علاج معالجه تجویز کوو که په خپلو کې څه رنجش او عناد وي نو صلح صفايي کوو او د خپلو معاملاتو فیصله کولو تدبیر باندې غور کوو] [۴] حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې تاسو د مجبورې په بناء د ناستې نه علاوه دویم صورت نه انکار کوئ نو بیا د لارې حق اداء کوئ [یعنی که داسې صورت وي چې په لار کې د ناستې نه پرهیز کول ستاسو د پاره ممکن نه وي او تاسو ته په داسې ځای کې کینا ستل وي کوم چې په لار باندې واقع وي نو د لارې حق اداء کوئ] [۵] صحابه ؤ ﷺ عرض وکړو یا رسول الله! د لارې حق څه دی؟ [٦] حضور ﷺ وفرمایل د سترګې بندول یعنی حرام څیزونو باندې نظر نه اچول چاته تکلیف رسولو نه منع کیدل [یعنی لار تنګول یا چا تیریدونکو ته تکلیف نه رسول] د سلام جواب ورکول [۷] او خلقوته د ښو خبرو حکم ورکول او خرابو نه منع کول (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الطُّرُقَاتِ: د طرق جمع ده، لاره، ② بُدٌّ: ضروري، لاچاري، ③ أَبَيْتُمْ: انکار کوئ تاسو. ④ غَضُّ الْبَصَرِ: نظر ښکته ساتل، ⑤ وَكَفُّ الْأَذَى: تکلیف نه رسول.

**تسهیلات:** **قوله:** إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ:

**بلا ضرورته په لارکښې د کیناستوحکم:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه په لارو کوڅاو چوترو باندې کیناستل او په خلقو پسې آوازونه کول او ګپ لګول منع دی.

**قوله:** غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الْأَذَى، وَرَدُّ السَّلَامِ، وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ، وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ

**دلارې کیناستوحقوق:** که دَ څه مجبورئ دَ وجې په لاره کښې کیناستل ضروري وی نود لاندینې خبرو خیال ساتل پکار دی.

① د نظرحفاظت کول.
② چاته تکلیف نه رسول.
③ د سلام کونکی د سلام جواب ورکول.
④ ورک شوی ته لار ښودل.
⑤ امربالمعروف او نهی عن المنکر کول

**[٤٦٤١] ورکه شوي ته لار ښودل**

۴۶۴۱-[۱۴] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي هٰذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ: "[۲] «وَإِرْشَادُ السَّبِيلِ» ". [۳] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَقِيبَ حَدِيثِ الْخُدْرِيِّ هٰكَذَا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ د رسول الله ﷺ نه د هغه مضمون په سلسله کې کوم چې په پورته حدیث کې ذکر شوي دي نقل کوي او حضور ﷺ دا هم وفرمایل [۲] چې د کوم سړي نه لار خطا شي یا کوم سړي چې لار نه پیژني هغه ته لار ښودل هم یو حق دي [۳] دا روایت ابوداود د حضرت ابوسعید خدري ﷺ د روایت نه پس داسې نقل کړې دي څرنګه چې صاحب مصابیح او د هغوئ اتباع کې صاحب مشکوة دلته نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① وَإِرْشَادُ السَّبِيلِ: او ښودل (سيدها کول) د لارې.

نوټ: د دې حدیث وضاحت وړاندې حدیث نمبر (۴۶۴۲) کښې تیرشو

**[۴۶۴۲] د مظلوم فریاد رسي کول**

۴۶۴۲-[۱۵] ()[۱] وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي هٰذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ: "[۲] «وَتُغِيثُوا الْمَلْهُوفَ، وَتَهْدُوا الضَّالَّ» ". [۳] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ عَقِيبَ حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ هٰكَذَا، وَلَمْ أَجِدْهُمَا فِي الصَّحِيحَيْنِ ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر ﷺ د رسول الله ﷺ نه د هغه مضمون په سلسله کې نقل کوي چې حضور ﷺ دا هم وفرمایل [۲] چې (یو حق دا هم دي چې) د مظلوم فریاد رسي وشي او لار خطا ته لار وخودل شي [۳] دا روایت حضرت ابوداود ﷺ د حضرت ابوهریره ﷺ د روایت نه پس دغه شان نقل کړې دي او ما دا دواړه حدیثونه صحیحینو یعنی بخاري او مسلم کې نه دي پیدا کړي.

**حل اللغات:** - ① وَتُغِيثُوا: فریاد رسي اوشي، ② الْمَلْهُوفَ: مصیبت وهلې. مظلوم. فریاد کونکې. ③ وَتَهْدُوا: او لار اوښودلې شي. ④ الضَّالَّ: لاره ورکه شوی ته.

**تسهيلات:**

**قوله: وَتُغِيثُوا الْمَلْهُوفَ:**

**مصيبت زده سره مدد کول:** مصیبت وهلې فریادکونکی ته وائی د دوی امداد کول په لاره کښې د کیناستو په حقوق کښې یو حق دي.

**قوله: وَلَمْ أَجِدْهُمَا فِي "الصَّحِيحَيْنِ":**

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الجلوس في الطرقات (رقم-۴۸۱۶)
[۲]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الجلوس في الطرقات (رقم-۴۸۱۷)

**په صحیحینو کښې ددواړو خبرو نه موندل:** د صاحب د مشکاة فرمائی چې دا دواړه خبرې په صحیحینو کښې ماته ملاؤ نشوې.

**په عدم وجدان کښې دوه تاویلونه:** ① د امام بغوی رحمه الله د صنیع نه معلومیږي چه دا دواړه روایات به د حضرت ابو هریره ﷺ او حضرت عمر ﷺ د صحیحینو وی، چنانچه صاحب مشکوة دا دواړه په صحیحینو کښې تلاش کړی دی لیکن کامیابی ورته نه ده ملاو شوې،

② دا دوړاه احادیث أصالة نه دي بلکه تتمیم او تکمیل دپاره ذکر کړې شوې دي لهذا په صحیحینو کښې ددې موجود یدل ضروری نه دی. (التعلیق الصبیح ج۵، ص۱۰۳) (مرقات ج۹، ص۵۳)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٤٦٤٢] د اسلامي معاشرې شپږ اصول

۴۶۴۳—[۱۲] () ١ عَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ بِالْمَعْرُوفِ: ٢ يُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ، وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ، ٣ وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ، وَيَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ، ٤ وَيَتْبَعُ جِنَازَتَهُ إِذَا مَاتَ، وَيُحِبُّ لَهُ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت علي ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل په مسلمان باندې د مسلمان شپږ حقوق دي چې حُسنِ سلوك (او د خداي ﷻ دخوشنودي) سره متعلق دي ٢ هركله چې يو مسلمان د بل سره يوځاي شئ نو هغه ته سلام كوئ هركله چې يو مسلمان دَي طعام د پاره يا بل څه غرض د پاره راوبلي نو هغه قبول كړي ٣ او هركله چې يو مسلمان وترچي نو په هغه يرحمك الله اووائي او هركله چې يو مسلمان ناجوړه شي نو د هغه پوښتنه كوي ٤ او هركله چې يو مسلمان وفات شي نو د هغه د جنازي سره ځي او مسلمان د پاره هغه شي خوښوي كوم چې ځان د پاره يي خوښوئ (ترمذي دارمي)

**حل اللغات:** - ① الْمَعْرُوف: د دستور مطابق. ② عَطَسَ: فرنجي، انتوشي. ③ يَتْبَعُ: ځي يعنى جنازه كښې شركت كوي.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِالْمَعْرُوفِ

**د معروف څخه مراد:** شارحين حضرات ليكي چه په بالمعروف كښې دَباء متعلق محذوف دي اصل عبارت داسې دي "للمسلم على المسلم خصال ستة متلبسة بالمعروف" يعنى دا شپږ خصلتونه په معروف او ښه طريقه پوره كول پكاردي دَ دستور مطابق دَ دي حق اداكول پكاردي امر

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تشميت العاطس (رقم-۲۷۳۶) وابن ماجه في كتاب الجنائز/باب ما جاء في عيادة المريض (رقم-۱۴۳۳) واحمد في المسند: ۶۸/۲

بالمعروف اونهی عن المنكر مراد نه دي كوم شپږ خصلتونه چه دَدستور موافق ، ښه سلوك او په ښه طريقه سره پوره كول پكار دي هغه دادي

**د مسلمان شپږ حقوق:** ① مسلمان سره دَملاقات په وخت سلام كول

② د مسلمان دعوت قبلول

③ په يرحمك الله سره د مسلمان دَ اټيوشي جواب وركول

④ دَ بيمار دَتپوس دَپاره هغه له ورتلل

⑤ د مسلمان په مرګ باندې دَهغه جنازه كول

⑥ د مسلمان د جنازې سره تلل

**اشكال اودهغې جواب:** مذكوره خصائل پنځه دي اوحكم دَ شپږو دې؟ دَدې جواب شيخ عبدالحق رحمه الله دا وركړې دې چه جنازې سره تلل دادَ جنازې نه پس شوى دى لهذا دَ جنازې كولو ذكر په ضمن كښې راغلې دې په مستقل توګه باندې ذكرنه دې كړې شوې

**[٤٦٤٤] د سلام په جواب كښې د مسنون زيادت ثواب**

٤٦٤٤-[١٧] ()[١] [١] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [٢] «أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، ثُمَّ جَلَسَ. [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَشْرٌ". [٤] ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، [٥] فَجَلَسَ، فَقَالَ: "عِشْرُونَ". [٦] ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، فَجَلَسَ فَقَالَ: "ثَلَاثُونَ"» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه :** [١] او حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه وايي [٢] چې يوه ورځ د رسول الله ﷺ مجلس ته يو سړي راغلواو هغه اوويل السلام عليكم حضور ﷺ د هغه د سلام جواب وركړو بيا هغه سړي كيناستو [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل د دې سړي د پاره لس نيكي وليكل شوى [٤] بيا يو بل سړي راغلواو هغه اوويل السلام عليكم ورحمة الله حضور ﷺ د هغه د سلام جواب هم وركړو [٥] او كوم وخت چې هغه كيناستو نو حضور ﷺ وفرمايل ده ده دپاره شل نيكي وليكل شوى [٦] د دې نه پس يوبل سړي راغلواو هغه اوويل السلام عليكم ورحمة الله وبركاته حضور ﷺ د هغه د سلام جواب هم وركړو او هغه كيناستو نو حضور ﷺ وفرمايل د ده د پاره ديرش نيكي وليكل شوي (ترمذي ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَرَدَّ عَلَيْهِ:**

---

[١]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب كيف السلام؟ (رقم-٥١٩٥) والترمذی فی كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما ذكر فی فضل السلام (رقم-٢٦٨٩) واحمد فی المسند: ٤/٤٣٩، ٤/٤٤٠

**د سلام د جواب په الفاظو کښې زيادت کول:** که يوسړي په دې الفاظوسره سلام اوکړي السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته نو دَ ده دَ پاره ديرش نيکئی ليکلې کيږی داالفاظ دَ صحيح حديث څخه ثابت دی

**د سلام په جواب کښې د مغفرته او رضوانه د زيادت حکم:** بعضې رواياتو کښې دَ دې نه زيات ومغفرته او بعضې کښې ورضوانه الفاظ هم راځي.خودا احاديث ضعيف دی او په فضائل اعمال کښې خو په ضعيف حديث باندې هم عمل کولې شي خودَ حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما نه دا تصريح نقل ده چه سلام وبرکاته په لفظ باندې ختميږی په دې وجه په سلام کښې دَلفظ وبرکاته باندې اضافه کولونه اجتناب کول پکاردی ځکه چه دَ دې نه زياتی کلماتو سره سلام کول مسنون نه دی سره دَدې که جوازشته.تحفة الاحوذی۷/۳۸۴ معارف القرآن ۲/۵۰۴

**[٤٦٤٥] د سلام په جواب کښې د مغفرته حکم**

۴۶۳۵ -[۱۸] () [۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَعْنَاهُ، وَزَادَ، [۲] «ثُمَّ أَتَى آخَرُ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ وَمَغْفِرَتُهُ، [۳] فَقَالَ: " أَرْبَعُونَ " وَقَالَ: " هَكَذَا تَكُونُ الْفَضَائِلُ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه :** [۱] او حضرت معاذ ابن انس رضي الله عنه هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د پورته حديث معني روايت نقل کړي دي چې په هغه کې معاذ رضي الله عنه دا الفاظ مزيد نقل کړي دي [۲] بيا يوبل سړي يعنی څلورم سړي راغلواو هغه اوويل السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ومغفرته [۴] حضور صلی الله علیه وسلم [د هغه د سلام جواب ورکړو او وي] فرمايل د ده د پاره څلويښت نيکي وليکل شوی او دايې وفرمايل دغه شان په ثواب کې اضافه کيږي يعنی سلام کونکي چې څومره الفاظ زياتوي هغه قدري د هغه په ثواب کې زياتوب کيږي (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ:

**د سلام په جواب کښې د جمعې صيغه استعمالول:** د حديث الباب حاصل دا دې چه د سلام کولو په سلسله کښې که مخاطب يو هم وی بيا به هم د جمع صيغه استعماليږی السلام عليکم او په جواب ورکولو کښې به هم د جمع صيغه استعماليږی

**د سلام اچولو درجات:** د سلام ادنی درجه السلام عليکم يا السلام عليك ده او د جواب ادنی درجه وعليکم السلام ده، علماء کرامو ليکلی دی چه د اهل اسلام په جواب کښې صرف وعليکم وئيل، کافی نه دی امام ابوالحسن واحدی رحمه الله فرمائی چه سلام نکره لکه

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب کیف السلام؟ (رقم-۵۱۹۶)

سلام عليكم يا معرف باللام لكه السلام عليكم ونيلو كښي اختيار دي.امام نووی رحمه الله فرمائي چه معرف باللام ونيل اولى دى هم دا مشهور دي. (مرقات ج۹، ص۵۵)

**[٤٦٤٦]په سلام کې د مخکې کېدو فضیلت**

۴۶۳۰-[۱۹]()[۱]وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَ بِالسَّلَامِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** : [۱]او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]په خلقو کې الله ته نزدې هغه دې چې په سلام کې مخکې شي .(احمد ترمذي ابو داود)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَ بِالسَّلَامِ:

**په سلام کښې د وړاندی والی فضیلت**: دَ دې حديث نه معلومه شوه چه کوم سړې په سلام کښې رومبې والې کوی هغه ته دَ الله تعالى په نيزخاص نزديوالې او قرب حاصليږی او په يوبل حديث کښې دی داسې سړې دَ تکبرنه خلاصيږی په هغه کښې عاجزی انکساری او تواضع پيداکيږی.په دې وجه په سلام کښې دَ رومبی والی عادت پيدا کول پکاردی دې دَ پاره چه انسان ته دافضيلت حاصل شی (تحفة الاحوذی ۳۹۲/۷ مرقاة ۴۷۰/۸)

**[٤٦٤٧]پردو ښځوته دَ سلام کولو حکم**

۴۶۳۱-[۲۰]()[۱]وَعَنْ جَرِيرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [۲]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ عَلَى نِسْوَةٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِنَّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : [۱]او د حضرت جرير رضي الله عنه نه روايت دي [۲]چې [يو وخت] رسول الله ﷺ د ښځو په خوا کې تير شو نو حضور ﷺ هغوئ ته سلام وکړو .خودا د رسول عليه السلام سره خاص دي دعامو خلقو دپاره مکروه دي (احمد)

**تسهيلات**:

**قوله**: فَسَلَّمَ عَلَيْهِنَّ

**نامحرمه ښځوته د سلام اچولو حکم**: يعنی حضورپاك ښځوته سلام اوکړو په دې حديث کښې دا تفصيل نشته دې چه ښځې بوډئی وې که خوانې وې اوکه ګډې وډې وې ځکه چه هم وې خو ښځوته سلام کول دَحضورپاك دَ خصوصياتو نه يو خصوصيت وو حضورپاك دَ

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی فضل من بدأ السلام (رقم-۵۱۹۷) والترمذی فی كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل الذی يبدأ بالسلام (رقم-۲۶۹٤) واحمد فی المسند:۲۵٤/۵

[2]) اخرجه احمد فی المسند: ۲۵٤/۵

امت دَ پلار په حکم کښې دې په دې وجه دَامت ښځې دَ حضورپاك لونړه دی او د حضورپاك نه علاوه بل چا مسلمان يا پيرفقير دپاره جائزنه دی چه هغه دې ښځوته سلام اوکړی **نامحرمه ځوانې ښځې ته د سلام کولو حرمت**: البته که ښځه بالکل بوډئی وی نوهغې ته سلام کول جائزدی ځوانې ښځې ته دَ پردی سړی سلام کول مکروه تحريمی دی څکه چه دا د فتنې کولاويدو سبب اودروازه ده

**[٤٦٤٨] دَسلام سنت کفايه کيدل**

۴۶۳۸-[۲۱] (۱) [۱] وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] يُجْزِءُ عَنِ الْجَمَاعَةِ إِذَا مَرُّوا أَنْ يُسَلِّمَ أَحَدُهُمْ، [۳] وَيُجْزِءُ عَنِ الْجُلُوسِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدُهُمْ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ " مَرْفُوعًا. وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: رَفَعَهُ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَهُوَ شَيْخُ أَبِي دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت علي ابن ابي طالب کرم الله وجهه نه منقول دي هغوئ وفرمايل [۲] هرکله چې څه خلق تيريږي نو په هغوئ کې د چا يو سلام کول به د ټولو د طرفه کافي وي [۳] دغه شان کوم خلق چې ناست وي په هغوئ کې د يو سړي جواب ورکول به د هغه ټولو د طرفه کافي وي دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې بطريق مرفوع نقل کړي دي يعني د بيهقي د روايت مطابق دا د حضور ﷺ ارشاد ګرامي دي، نه چې د حضرت علي رضي الله عنه قول دي او ابوداود دا روايت (بطريق موقوف) نقل کړي دي او هغوئ (د خپل سند بيانولو نه پس) ويلي دي چې دا روايت حسن ابن علي مرفوع بيان کړي دي او دا حسن ابن علي امام حسن ابن علي ابن ابي طالب نه دي بلکې هغه حسن رحمه الله دي چې د ابوداود استاد او شيخ دي حاصل دا چې دا روايت خو بيهقي رحمه الله مرفوع نقل کړي دي او ابوداود هم د حسن ابن علي سند سره مرفوع نقل کړي دي ليکن دويم سند سره يې موقوف نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** يُجْزِءُ عَنِ الْجَمَاعَةِ إِذَا مَرُّوا أَنْ يُسَلِّمَ أَحَدُهُمْ:

**په روانو کسانو کښې د يو کس د سلام کفايت:**

که يوه ډله په بله ډله يا څو کسانو باندې تيرشی او په دغه روانه ډله کښې يو کس هم سلام واچوی نو د پوره ډلې غاړه خلاصه شوه څکه چې سلام سنت کفايه دې د يو کس په اچولو سره د ټولو ذمه فارغيږی

**قوله:** وَيُجْزِءُ عَنِ الْجُلُوسِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدُهُمْ:

**د يوکس جواب دجماعت دپاره کافي کيدل:** په کومه ډله چې سلام واچولې شو نو که په هغوی کښې يو کس هم د سلام جواب ورکړو نو د ټولوغاړه خلاصه شوه.

۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی رد الواحد عن الجماعة (رقم-۵۲۱۰)

**[۴۶۴۹] په ګوتو سره د سلام کولو ممانعت**

۴۶۳۹-[۲۲]() [۱] وَعَنْ عَمْرِوبْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] قَالَ: "«لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا، [۳] لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ وَلَا بِالنَّصَارَى، [۴] فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الْإِشَارَةُ بِالْأَصَابِعِ، وَتَسْلِيمَ النَّصَارَى الْإِشَارَةُ بِالْأَكُفِّ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار حضرت شعیب نه او هغه د خپل نیکه حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ نه روایت کوي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړي چې زمونږ د غیرو سره مشابهت کوي یعنی زمونږ د امت د خلقو برعکس د نورو مذهبونو د خلقو په طریقه عمل کوي هغه زمونږ نه نه دي [۳] تاسو مه یهودو سره مشابهت کوئ او مه د عیسائیانو سره [۴] د یهودیانو سلام کول د ګوتو په ذریعه د اشاري کولو په صورت کې کیږي او د عسائیانو سلام کول د ورغوو د اشاري په ذریعه په صورت کې وي ترمذي دا روایت نقل کړي دي او ویلي یي دي چې د دې اسناد ضعیف دي

**تسهیلات:**

**قوله:** فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الْإِشَارَةُ بِالْأَصَابِعِ:

**په اشاره سره د سلام کولو د ممانعت وجه:** چونکه سلام کول دَ ټولو انبیاء کرامو سنت دی او اسلام چه کوم سلام پیش کوی دادَ انبیاء کرامو طریقه ده لیکن یهودو اونصاریٰ دَ پیغمبرانو طریقه پرېخوده اودخپل طرف نه ئی دَ سلام طریقې جوړې کړې یهود نابهبود دَ ګوتو په اشارو سره سلام کوی او نصاریٰ دَ لاس په تلی سره سلام کول اختیارکړل دکوم شکل چه دَ سلوټ دې دَ سلام لفظ دَ هیڅا په نیز نشته دې په دې وجه مسلمانانوته حکم ورکړې شو چه هغوی دې : لاس په ځائی په ژبه سره السلام علیکم الفاظو سره سلام کوی صرف لاس خوزولو سره دې سلام نه کوی.

**په اشاره سره د سلام کولو د جواز صورت:** که یوسړې لرې وی اوهغه ته آواز نه رسی نو لاس سره سلام کول جائز دی لیکن دَدې دَپاره شرط دادې چه په ژبه دې دَ سلام الفاظ هم اداکړي

**د ناجائزه سلام بعضې نور صورتونه:**

① په سلام کښې لاسونویوځائی کړلوباندې اکتفا کول

② ملا ټیټولو سره سلام کول

③ صرف سر ښکته کولو سره سلام کول

() اخرجه الترمذي في السنن كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية إشاره اليد بالسلام (رقم-۲۶۹۵) واحمد في المسند:۲/۱۹۹

**قوله**: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ"

**د سند ضعف**: عمرو بن شعیب طریقه ضعیف ده لیکن نور طرق صحیح دی. [المرقات: ۸/۴۳۱]

**[۴۶۵۰] په هر نوی ملاقات باندې سلام کول پکاردی**

۴۶۵۰-[۲۳] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ، فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ، [٣] فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ، أَوْ جِدَارٌ، أَوْ حَجَرٌ، ثُمَّ لَقِيَهُ، فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] او د حضرت ابوهریره ؓ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ [٢] وفرمایل په تاسو کې چې څوك د خپل مسلمان ورور سره ملاقات کوي نو پکار دي چې مخکې دي هغه ته سلام اووائي [٣] او د دې نه پس که د دواړو په منځ کې څه ونه یا دیوال (یا لوی) کاڼي حائل شي او بیا هغه سره ملاقات وشي نو هغه ته دي دوباره سلام وکړي (ابوداؤد)

**تسهیلات**:

**قوله**: فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ أَوْ جِدَارٌ الخ

**په هرملاقات کښې د سلام مسنونیت**: په هرملاقات باندې یومسلمان له بل مسلمان ته سلام کول مسنون دی که دَ دوی دواړو جدائی دَ څه لږ وخت دَپاره ولې نه وی بس لږ شان غیبیدو نه پس په ملاقات کولو باندې سلام کول پکاردی مثلاً که په مینځ کښې یودیوال یا ونه هم راشی بیا هم په ملاقات باندې سلام کول مسنون دی.

**نوټ**: په دې سره داخبره واضحه شوه چه کوم خلق مخامخ ناست دی اوبیا پاسی اوسلام شروع کوی دامناسب نه دی لکه دَ مونځونونه پس یا دَاخترونونه پس اودَ رخصت په وخت سلام جائز اومسنون دي [المرقات: ۸/۴۳۲]

**[٤٦٥١] په کورکښې دَ داخلیدو یا دَ وتلو په وخت سلام کول**

۴۶۵۱-[۲۴] (٢) [١] وَعَنْ قَتَادَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] "«إِذَا دَخَلْتُمْ بَيْتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهِ، [٣] وَإِذَا خَرَجْتُمْ فَأَوْدِعُوا أَهْلَهُ بِسَلَامٍ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا.

**ترجمه**: [١] او حضرت قتاده ؓ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هرکله چې تاسو کورته ننوځئ نو خپل کوروالاوو ته سلام کوئ [٣] او هرکله چې د کور نه را ووځئ نو خپل کوروالا د سلام په ذریعه رخصت کې دا روایت بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې بطور ارسال نقل کړي دي

(١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الرجل یفارق الرجل ثم یلقاه أیسلم علیه؟ (رقم-۵۲۰۰)

(٢) کذا فی جامع معمربن رشد باب التسلیم اذا خرج من بیت (۱۰/ ۳۸۹)

**تسهيلات: قوله**: إِذَا دَخَلْتُمْ بَيْتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهِ

**خپل کور والا ته د سلام کولو ترغیب**: یعنی په کورکښې دَ داخلیدو په وخت اوهم دغه شان دَ وتلو په وخت خپل کوروالوته سلام کوئی دَ داخلیدو په وخت سلام دَ امن اوامان دعا ده اودَ رخصت په وخت سلام دَ دیانت او دَ امانت دعا ده لیکن ښځې ته دَ سلام کولونه مخکښې پوهه کول پکاردی چه داسې سلام کول سنت طریقه ده که چرې داسې اونه کړی نوخطره ده چه ښځه به نې داخیال کوی چه نن خو صاحب ماته سلام اوکړو صبابه سجده کوی [المرقات: ۸/۴۳۳]

**قوله**: وَإِذَا خَرَجْتُمْ فَأَوْدِعُوا أَهْلَهُ بِسَلَامٍ

**د وداع په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① یعنی کوروالوته الوداعی سلام کولوسره دَ کورنه بهر څه دَدې مطلب په رنړاکښې داصیغه به دَ وداع نه وی چه دَرخصت کولوپه معنی کښې ده ② شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلی دی اودعوا دَ ایداع نه دې کوم چه دَ امانت ساتلو په معنی کښې دې لکه چه دا سرې دَخپل سلام په ذریعه خپل بال بچ اوخپل مال په خپل کورکښې دَ امانت په توګه ایږدی او ځی دامطلب بعید دې [اشعة اللمعات]

**[۴۶۵۲] په کوروالا باندې د سلام اچولو فائده**

> ۴۶۵۲-[۲۵]( ) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «يَا بُنَيَّ! إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ فَسَلِّمْ [۳] يَكُونُ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِكَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] و د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته وفرمایل [۲] اي خویه: هرکله چې ته خپل کور والاوو سره یوځای کیږې نو سلام ورته کوه [۳] هغه سلام به په تاباندې او ستا کوروالاوو باندې د خیر او برکت د نزول باعث کیږي (ترمذي)

**تسهیلات: قوله**: يَكُونُ بَرَكَةً:

**په سلام اچولو کښې برکت**: دا جمله مستانفه ده، د علت معنی لره متضمن ده "أي فإنه يكون أي السلام" په یود نسخه کښې رواه الترمذی نه بعد "هذا حديث حسن غريب" الفاظ هم ذکر دی

**[۴۶۵۳] اول سلام بیا کلام**

> ۴۶۵۳-[۲۶]( ) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] «السَّلَامُ قَبْلَ الْكَلَامِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ.

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التسلیم إذا دخل بیته (رقم-۲۶۹۸)

[۲]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی السلام قبل الکلام (رقم-۲۶۹۹)

**ترجمه:** [۱]او حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]سلام د كلام نه مخكې دي يعنی د ملاقات په وخت مخكې سلام كول پكار دي او د دې نه پس خبره اتره كول پكار دي د سلام كولو نه مخكې خبرې اترې شروع كول ښه نه دي ترمذي دا روايت نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث منكر دي

**تسهيلات:**

**قوله** السَّلَامُ قَبْلَ الْكَلَامِ:

**د خبرو څخه وړاندې سلام اچول**:دَ سلام چه كوم مقصد په شروع كښې ليكلې شوې دې دَهغې په رڼاكښې دَ دوو كسانو په ملاقات كښې دَ ټولو نه مخكښې دَ سلام لفظ كيدل پكاردي دې دَپاره چه دَ طرفينو دَ سلامتيا ضمانت وركړې شي دې نه پس نورې خبرې اترې شروع كول پكاردى الحمد لله زمونږ د صوبه خيبر پختونخوا د ټريفک په آدابو كښې اوس دا خبره هم كولى شى ,,اول سلام بيا كلام،،

**د بعضې خلقو خلاف سنت عمل**:بعضې خلق اول خبرې كوى اوبيا سلام كوى دا صحيح نه دى لكه چه ريډيو پاكستان كښې دَ خبرونو شروع داسې كوى دا ريډيوپاكستان دې السلام عليكم دغه شان بعضې قومونه خوش آمديد. مرحبا اواهلاً وسهلاً او پخير راغلې الفاظ استعمالوى بيا سلام كوى دا صحيح نه دى ځكه چه دَ حديث تعليم دادې چه اول دې سلام وى اوبيا دې كلام وى

[۳۶۳] په سلام كښې دَ جاهليت قديمه اوجديده تقليد ناجائز دې

۴۶۳۶—[۲۷]() [۱]وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ نَقُولُ: أَنْعَمَ اللهُ بِكَ عَيْنًا، وَأَنْعِمْ صَبَاحًا. [۳]فَلَمَّا كَانَ الْإِسْلَامُ نُهِينَا عَنْ ذَلِكَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

**ترجمه:** [۱]او حضرت عمران ابن حصين ﷺ وايي [۲]مونږ خلقو به د جاهليت په زمانه كې د ملاقات په وخت دا وئيل انعم الله بك عينًا وانعم صباحًا يعنی الله دې ستا په وجه زمونږ ستركې يخې كړي او ته دې هر سهار په نعمتونو كې داخل شې [۳]بيا چې د اسلام زمانه راغله نو مونږ د دې ويلو نه منع شو (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله** أَنْعَمَ اللهُ بِكَ عَيْنًا:

**د جاهليت د دور دسلام دوه قسمه كلمات**:①دَ اسلام نه وړاندې به دَجاهليت خلقو دَملاقات په وخت دَمختلفو وختونودَپاره څه كلمات وئيل په هغې كښې يوه كلمه انعم الله بك عيناً وه ② اودويمه كلمه أنعم صباحاً وه په دواړو كښې دَخوشحالئ اوتازګئ دعا وه.

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى الرجل يقول: فلان يقرئک السلام (رقم-۵۲۳۱)

د انعم الله بک په مفهوم کښې دوه اقوال
① په بک کښې کلمه د باء د سببيت دپاره شی نوپه دې صورت کښې معنی دا کيدې شی چې الله تعالی دې ستا په وجه ستا د دوستانو او خپلو سترګې تروتازه او روښانه لری يا د مخاطب د خوشحالۍ څخه کناه ده چې ته دې خوشحاله اوسيږې اوستا ياران دوستان دې تا خوشحاله وينی
② چې په بک کښې کلمه د باء زياتی وی او د دې څخه تاکيد تعديه مراد شی په دې صورت کښې به دا جمله د دې مفهوم حامله وی چې الله تعالی دې تا ته د هغه څيز کتل په لاس درکړی چې د هغې په ليدلو ته خوشحاله کيږې او ته ئې خوښوې او دهغې طلب کوې
**قوله: أَنْعَمَ اللّٰهُ**
**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دا دامر صيغه ده مطلب دا دې چې ستا صحبتونه دې ستا دپاره د خوشحالۍ سبب اوګرځی.
② د صبا په وخت کښې دې ته تروتازه او خوشحاله اوسيږې دا هم د خوشحالۍ څخه کنايه ده اود صبا وخت ئې خکه مخصوص کړل چې هرکله د صبا په وخت کښې څخه مصيبت راشی نو ټوله ورځې بيا انسان پريشانه اوبدحاله وی.

**[۳۶۵۵] غائبانه سلام اودَهغې جواب**

۴۶۵۵ —[۲۸] (۱) [۱] وَعَنْ غَالِبٍ - رَحِمَهُ اللّٰهُ - قَالَ: «إِنَّا لَجُلُوسٌ بِبَابِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ، [۲] إِذْ جَاءَ رَجُلٌ [۳] فَقَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، قَالَ: بَعَثَنِي أَبِي إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: "ائْتِهِ فَأَقْرِئْهُ السَّلَامَ". [۴] قَالَ: فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ [۵] فَقَالَ: "عَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت غالب رحمه الله وايي چې يوه ورځ مونږ د حضرت حسن بصري رحمه الله په دروازه ناست وو [۲] چې ناڅاپه يوسړي راغلو [۳] او بيان يي وکړو چې ما ته خما پلار او ... نه د هغه پلار يعنی خما نيکه بيان وکړو چې خما پلار زه د رسول الله ﷺ په خدمت ئې ليږلم او راته اوويل چې ته حضور ﷺ ته ورشه او د حضور ﷺ په خدمت کې سلام عرض کړه [۴] خما نيکه بيان وکړو چې د خپل پلار په حکم زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړو چې خما پلار تاسو ﷺ ته سلام عرض کړی دی [۵] حضور ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل په تا او ستا په پلار دې سلامتيا وي (ابوداؤد)

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب باب في الرجل يقول: أنعم الله بک عينا (رقم-۵۲۲۷) واحمد في المسند: ۳۶۶/۵

**تسهیلات:**

**قوله:** عَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ:

**د غائب کس د سلام جواب ورکولو طریقه:** که یوسړې دَ لرې نه دَچادَپاره چاله سلام راوړی او هغه ته نی وړاندې کړی نودَهغې جواب څنګه ورکول پکاردی. دَدې تعلیم په دې حدیث کښې ورکړې شوې دې چه دَهغې په جواب کښې دې وعلیك وعلیه السلام یادَهغه سړی نوم اخستو سره وعلیك وعلی ابیك السلام دې اووائی. دغه شان اسلام دَ سلام راؤړونکې او سلام راليږونکی دواړه دَ سلام په جواب کښې شریك کړل.

**[۳۶۵۲] په خطونو کښې دَ سلام لیکلو طریقه**

۳۶۵۲ـ[۲۹] ([1]) [۱] وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ الْعَلَاءَ الْحَضْرَمِيَّ كَانَ عَامِلَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَيْهِ، بَدَأَ بِنَفْسِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو العلاء حضرمي رضي الله عنه وايي [۲] چې علاء حضرمي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د طرف نه عامل مقرر وو [۳] هغه چې به حضور ﷺ ته خط ليکي نو د خپل طرف نه به یې شروع کوله (ابوداؤد)

**د راوی حدیث مختصر تعارف:** حضرمی نسبت دې دَحضرموت طرف ته او حضرموت دَ یمن یو مشهورښاردې. حضرت العلا الحضرمی هم دې ښار طرف ته منسوب دې. داجلیل القدر صحابی دې حضورپاك دې دَ بحرین ګورنر مقررکړې وو. بیادَ صدیق اکبر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه په دورکښې هم ګورنر پاتې دې او مجاهدوو. دَدوی په لاس باندې لوئی کرامات ښکاره شوی دی دَمشکوة په نسخوکښې عن ابی العلا الحضرمی الفاظ دی بعضې نسخوکښې عن ابن العلاء الحضرمی ان العلا الحضرمی الفاظ راغلی دی. هم دغه واضح اوقابل فهم دی

**تسهیلات:**

**قوله:** وَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَيْهِ، بَدَأَ بِنَفْسِهِ:

**په خط لیکلو کښې د نبوی طریقې اتباع:** دخپل طرف څخه د شروع کولومطلب دا دې چې حضرت علاء حضرمی به د خط شروع په دې الفاظو سره کوله «من العلاء الحضرمی الی رسول الله السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته» اود دې څخه روسته به مضمون وو د خط دا طریقه حضرت علاء حضرمی رضی الله عنه د نبی علیه السلام په اتباع کښې اختیار کړې وه ځکه چې د نبی علیه السلام خطوط به هم په دې طریقه باندې وو او د دې څخه روسته به سلام وو.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فیمن یبدأ بنفسه فی الکتاب (رقم-۵۱۳۴)

**دحديث ترجمة الباب سره تعلق:** په ظاهره دا حديث د دې باب سره تعلق نه ساتی خو دا حديث د سلام د مقدمې حيثيت لری ددې وجې دا په دې باب کښې بيان کړې شو

**[۳۶۵۴] په ليکلو شوی خط باندې د خاورې شيندلو وجه**

۳۶۵۴–[۳۰] () [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰه عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «إِذَا كَتَبَ أَحَدُكُمْ كِتَابًا فَلْيُتَرِّبْهُ، [۳] فَإِنَّهُ أَنْجَحُ لِلْحَاجَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ...

**ترجمه:** [۱] او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هرکله چې په تاسو کې يو سړي چاته خط وليکي نو پکار دي چې خط ليکلو وروسته په هغه خاوره واچوي يا خاوره ننستو سره يې وشنډي [۳] ځکه چې دا شي د حاجت پوره کيدو د پاره ډيرپکار راځي ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث منکر دي

**حل اللغات:** - ① فَلْيُتَرِّبْهُ: نو خاوره دې پرې واچوی. په خاورو دې ککړ کړي. ② أَنْجَحُ: ډير پکار راځي حاجت پوره کونکي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيُتَرِّبْهُ**

**په خط باندې د خاورې په اچولو کښې حکمتونه:** ① په خوانئی زمانه کښې به قلم دوات سره خط ليکلي کيدو دَ قلم سياهي به دَ خط ليکلونه پس لمده وه که چرې خط به راغونډولې شو نوليکلې شوې خط به ورانيدو په دې وجه دَ خط ټکی اوچولو د پاره خلقو به په هغې باندې نرئی دوړه اچوله حضورپاك هم ددې څيز تعليم ورکړې دي چه دغه شان کونې نوستاسو حاجت به ډير زر پوره کيږی دَحديث دا مطلب ډير واضح دې اودَ پوهې په اعتبارسره بالکل آسان دي

② شارح مشکاة مظهر ليکلی دی چې په خط باندې خاورې اچولوکښې ي قسم اشاره ده چې انسان ستا خط به باقی پاتې شی او ستا لاسونه به خاورو سره خاورې شی لکه څنګه چې يو شاعر ونيلی دی

ومامن کاتب الاسيبلی    ويبقی الدهر ماکتبت يداه

③ دا خط دَ ليکلونه پس په خاوره کيږده او وايه چه دَدې په مضمون کښې کوم درخواست دې دَدې حاجت او ضرورت پوره کونکې صرف دَالله تعالی ذات دې دا خط هيڅ نه شی کولې داخوصرف يوه ذريعه ده چه استعمال کړې شوه بهرحال علماؤ داحديث منکر ګرځولې دې.

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تتريب الکتاب (رقم-۲۷۱۳) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب تتريب الکتاب (رقم-۳۷۷٤)

**[۳٦٥٨] په غوږ کښې د قلم کيخودل**

۳٦٥٨–[۳۱] (١) [١] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] وَبَيْنَ يَدَيْهِ كَاتِبٌ، [٣] فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "ضَعِ الْقَلَمَ عَلَى أُذُنِكَ: فَإِنَّهُ أَذْكَرُ لِلْمَآلِ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَفِي إِسْنَادِهِ ضَعْفٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت زيد ابن ثابت ﷺ وايي زه يوه ورځ د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم [٢] هغه وخت د حضور ﷺ مخکې يو خط نوست ناست وو [٣] ما د حضور ﷺ نه ليکونکي ته دا فرمايل واوريدل چې قلم خپل غوږ باندې کيږده ځکه چې دا شي مطلب ډيرښه ياد راولي امام ترمذي دا روايت نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي او د دې په سند کې ضعف دي

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّهُ أَذْكَرُ لِلْمَآلِ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ددی جملې د مفهوم علم صرف شارع ته دې مونږ ته ددې مفهوم اومطلب په ظاهره نه ښکاری.

② بعضی علماء کرامو ددې تاويل او توجيه بيان کړی ده، يحيٰی رحمه الله ليکلی دی چه قلم يو لحاظ سره د ژبې حکم لری لکه وئيل کيږی چه "القلم احد اللسانين" او ژبه د زړه او د ذهن ترجمان وی لهذا قلم په غوګ باندی ايږدل ګويا ژبه په غوګ باندی ايږدلو مترادف دی ځکه چه ژبه، قلم، زړه او ذهن نژدی شی او د سړی ذهن کولاو شی نو بيا د قلم په ذريعی سره ليکل شروع کړی.

**قوله: وَفِي إِسْنَادِهِ ضَعْفٌ:**

**په سند کښې د ضعف بيان:** په دی سند کښې ضعف دې، او ددی مطلب دا دې چه دا روايت متن يا سند په اعتبار سره غريب دې او د خپلو بعضی ضعيف راويانو په سبب ضعيف دې ليکن ددی د صحيح کيدلو تائيد ابن عساکر او ترمذی شريف کښې زيد بن ثابت نه په طريقه د مرفوع منقول دې "ضع القلم على اذنك فانه اذكر" الخ

**[۳٦٥۹] دَ ضرورت دَ وجې نه دَ غير مسلمو ژبه زده کول جائز دی**

۳٦٥۹–[۳۲] (٢) [١] وَعَنْهُ، قَالَ: «أَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] أَنْ أَتَعَلَّمَ السُّرْيَانِيَّةَ، [٣] وَفِي رِوَايَةٍ: إِنَّهُ أَمَرَنِي أَنْ أَتَعَلَّمَ كِتَابَ يَهُودَ، [٤] وَقَالَ: "إِنِّي مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابٍ". [٥] قَالَ: فَمَا مَرَّ بِي نِصْفُ شَهْرٍ حَتَّى تَعَلَّمْتُ، [٦] فَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَى يَهُودَ كَتَبْتُ، وَإِذَا كَتَبُوا إِلَيْهِ قَرَأْتُ لَهُ كِتَابَهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۷۱٤)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تعليم السريانية (رقم-۲۷۱۵)

**ترجمه**: [۱] او حضرت زید ابن ثابت ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ ماته دا حکم وکړو [۲] چې زه سریاني ژبه زده کړم او [۳] په یو روایت کې داسې دي چې حضور ﷺ ماته حکم وکړو چې زه د یهودیانو نه خط وکتابت زده کړم [۴] او حضور ﷺ وفرمایل د خط وکتابت معامله کې ځما په یهودیانو اطمینان نشته [۵] زید ابن ثابت ﷛ وایي د حضور ﷺ د دې حکم نه پس نیمه میاشت هم نه وه تیره شوي چې ما د یهودیانو ژبه او خط وکتابت زده کړل [۶] حضور ﷺ چې به کله یهودیانو ته څه خط لیکي نو هغه به مالیکي او یهودیانو چې به څه خط حضور ﷺ ته رالیږي نو هغه به دحضور ﷺ په خدمت کې ما وئیلو. (ترمذي)

**تسهیلات**:

**قوله**: أَنْ أَتَعَلَّمَ السُّرْيَانِيَّةَ:

**د سریانې ژبې زده کولوجه**: تورات په عبراني ژبه کښې نازل شوې وو لیکن یهودو به عبراني اوسریاني دواړه استعمالولې اودا دواړه ژبې نیزدې نیزدې وې حضورپاك چه بعضې وخت خط لیکلو نو په سریاني ژبه کښې به ضرورت وو یا په سریاني ژبه کښې لیکلې شوې خط چه به راتللو نوحضورپاك به دَدې په لوستلو او دَدې لیکلو دواړو کښې دَ یهودیانونه استفاده کوله لیکن په یهودو باندې اعتماد او اعتبار نه وو دا احتمال به وو چه هغوی دَ څه په ځائی باندې نور څه اولیکی په دې وجه حضور پاك حضرت زید ﷛ ته حکم ورکړو چه ته په سریاني اودَ یهودو ژبه کښې لیکل زده کړه دَهغه په ذهن باندې دې هم شاباش وی چه په نیمه میاشت پنځلس ورځو نه هم په کمه موده کښې هغه دا ژبه زده کړه او په هغې کښې ئی لیکل شروع کړه دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په مسلم معاشره کښې دَهرقسم کسانو وجود ضرورت دې دې دَپاره چه مسلمانان په یوه شعبه کښې هم غیرمسلمو ته محتاج نه وی.

**د انګریزۍ د زده کړې ضرورت**: په موجوده وخت کښې انګریزي ژبې بین الاقوامی مقام حاصل کړې دې چې کله هم بین الاقوامی کانفرنس وغیره وی نوانګریزۍ ژبه کښې خبرې کولې شی بل د انټرنټ زمانه ده یوغیرمسلم په انټرنټ باندې داسلام خلاف یا د نبی علیه السلام په شان کښې ګستاخی کوی نوچې عالم ته انګریزی ورځی هغه به ئې جواب اوکړی دا منم چې زمونږ په ملک کښې ډیرخلق داسې شته چې په انګریزۍ پوهیږی خوهغه د عالم پشان جواب نشی ورکولې ددې وجې زما دا درخواست دې چې په مدارسو کښې دې د اسلام د دفاع په غرض د انګریزۍ د زده کړې پیرډ مقررکړې شی بله خبره دا هم ده چې نن صبا خلقو په انګر یزۍ ایمان راوړې دې چې عالم په یومجلس کښې په انګریزۍ کښې خپله مدعا پیش کولې شی نوعوام ترې زیات متاثره کیږی دغه شان که د ژوند په ضروریاتو نظرواچولی شی نو زمونږ په ملک کښې دوایانې دی که نور د ضرورت څیزونه.

دی اکثرېه انګریزی کښې دی بل طرف ته دویم نمبر دوایانې اونورڅیزونه هم په ډېر مقدار کښې په بازارونو کښې خرڅیږی چې څوک په انګریزی پوهیږی کم ازکم د جعلی څیزونو تمیز به څه اندازه باندې کولی شی.

## [۴۴۴۰] دملاقات او د رخصت په وخت سلام کولی

۴۴۴۰–[۳۳] () ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ -، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ قَالَ: "«إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى مَجْلِسٍ، فَلْيُسَلِّمْ، ٣ فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَجْلِسَ فَلْيَجْلِسْ، ٤ ثُمَّ إِذَا قَامَ، فَلْيُسَلِّمْ فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي ٢ چې حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې په تاسو کې یو سړي مجلس ته ورسي نو مخکې دي سلام اووائي ٣ بیا که هغه کینا ستل غواړي نو کښې دي ني ٤ او هرکله چې مجلس نه تلو د پاره اودرېږی نو هغه وخت دي هم سلام وکړي ځکه چې مخکښي سلام د دويم سلام نه زيات نښه نه دي. (ترمذي ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى مَجْلِسٍ، فَلْيُسَلِّمْ:

**مجلس ته د ناخليدو په وخت کښې سلام:** حدیث الباب کښې ذکر دی چه مسلمان ته حکم دې چه تللو او راتلولو په وخت کښې د سلام کوی او دا روایت شرح السنة ذکر کړې دې او د ابو جری روایت په باب فضل الصدقة کښې نقل کړې دې، اولنې سلام او مفارقت والاسلام دواړه برحق دی ځکه چه کله کوم کس د مجلس نه خاموشی سره راواپس شی نو مجلس والاخلق کله نه کله په پریشانی کښې واقع شی، نو ددې نه دا معلومه شوه چه الوداعی سلام د ابتدائی سلام نه اولی او بهتر دې.

**قوله:** فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ:

**د الوداعی سلام حکم:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث ظاهر په دې خبره دلالت کوی چه کله کوم کس د مجلس نه واپس کیدلو اراده وکړی نو مجلس والا خلقو ته دی سلام کوی او مجلس والاخلقو باندی سلام جواب ورکول واجب دی. ابو سعید متولی فرمائی چه سلام مفارقت جواب ورکول واجب نه دی بلکه دا یو دعا ده لیکن شاشی په دې باندی رد کړې دې چه څرنګه سلام لقاء جواب واجب دې نو هم دغه شان د سلام مفارقت جواب هم واجب دې. (مرقات ج۹، ص۶۳)

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى السلام إذا قام من المجلس (رقم-۵۲۰۸) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التسليم عند القيام وعند القعود (رقم-۲۰۶) واحمد فى المسند: ۲/۲۳۰

## [۳۳۶] په لارکښې د ناستې حق اداکول

۴۶۶۱-[۳۴]() [۱] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«لَا خَيْرَ فِي جُلُوسٍ فِي الطُّرُقَاتِ، [۳] إِلَّا لِمَنْ هَدَى السَّبِيلَ، وَرَدَّ التَّحِيَّةَ، وَغَضَّ الْبَصَرَ، وَأَعَانَ عَلَى الْحَمُولَةِ»" رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ". وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي جُرَيٍّ فِي "بَابِ فَضْلِ الصَّدَقَةِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په لارو کې ناسته څه ښه کار نه دي [۳] هو کوم سړي چې لار خطاء يا ړوند سړي ته لار وښايي د سلام جواب ورکوي د حرام ځيزونو ليدو نه سترګې بندي ساتي او د هغه سړي مدد کوي چې بوج يې پورته کړې وي نو د داسې سړي په لار باندې ناسته کښې څه حرج نشته (شرح السنة) او د ابي جرَي ﷛ روايت باب فضل الصدقة کې تير شوي دي

**حل اللغات:** - ① الطُّرُقَاتِ: لارې. ② هَدَي السَّبِيلَ: لاره خودل. ③ التَّحِيَّةَ: سلام. پيشکشى. ④ غَضَّ الْبَصَرَ: نظر ښکته ساتل. ⑤ أَعَانَ: مدد کوى. ⑥ الْحَمُولَةِ: بار (بوج) اوچتونکى.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَعَانَ عَلَى الْحَمُولَةِ:

**باراوړونکى سره مدد کول:** داهغه خناور ته وائى په کوم چه بوج اوړلې شى مطلب داچه په لارکښې دکيناستو حق هغه سړى ته حاصل دې چه هغه داکارهم اوکړى چه يومجبورسړى سره امداداوکړى دهغه په سورلئى باندې دهغه سامان بار کړى که چرې داسې نه شى کولې نوفضول دې په لارکښې نه کينى [المرقات:۸/۴۴۱]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۳۷] دسلام شروع او حضرت آدم ﷷ

۴۶۶۲-[۳۵]() [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَمَّا خَلَقَ اللهُ آدَمَ وَنَفَخَ فِيهِ الرُّوحَ عَطَسَ، [۳] فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ، فَحَمِدَ اللهَ بِإِذْنِهِ، [۴] فَقَالَ لَهُ رَبُّهُ: يَرْحَمُكَ اللهُ يَا آدَمُ! اذْهَبْ إِلَى أُولَئِكَ الْمَلَائِكَةِ إِلَى مَلَإٍ مِنْهُمْ جُلُوسٍ، [۵] فَقُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. قَالُوا: عَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ. [۶] ثُمَّ رَجَعَ إِلَى رَبِّهِ، فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ بَنِيكَ بَيْنَهُمْ. [۷] فَقَالَ لَهُ اللهُ وَيَدَاهُ مَقْبُوضَتَانِ: اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ. [۸] فَقَالَ: اخْتَرْتُ يَمِينَ رَبِّي وَكِلْتَا يَدَيْ رَبِّي يَمِينٌ مُبَارَكَةٌ، ثُمَّ بَسَطَهَا، فَإِذَا فِيهَا آدَمُ وَذُرِّيَّتُهُ، [۹] فَقَالَ: أَيْ رَبِّ! مَا هَؤُلَاءِ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ ذُرِّيَّتُكَ، [۱۰] فَإِذَا كُلُّ إِنْسَانٍ مَكْتُوبٌ عُمُرُهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ، [۱۱] فَإِذَا فِيهِمْ رَجُلٌ أَضْوَؤُهُمْ -أَوْ مِنْ أَضْوَئِهِمْ- [۱۲] قَالَ: يَا رَبِّ! مَنْ هَذَا؟ قَالَ: هَذَا ابْنُكَ دَاوُدُ وَقَدْ كَتَبْتُ لَهُ عُمُرَهُ أَرْبَعِينَ سَنَةً. [۱۳] قَالَ: يَا رَبِّ زِدْ فِي عُمُرِهِ. قَالَ: ذَلِكَ الَّذِي كَتَبْتُ لَهُ. [۱۴] قَالَ: أَيْ رَبِّ! فَإِنِّي قَدْ

[1]) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۳۳۳۹

[2]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۳۶۸)

جَعَلْتُ لَهُ مِنْ عُمْرِي سِتِّينَ سَنَةً. قَالَ: أَنْتَ وَذَاكَ. [۱۵] [قَالَ: ثُمَّ سَكَنَ الْجَنَّةَ مَا شَاءَ اللهُ، ثُمَّ أُهْبِطَ مِنْهَا]، [۱۶] وَكَانَ آدَمُ يَعُدُّ لِنَفْسِهِ، فَأَتَاهُ مَلَكُ الْمَوْتِ، فَقَالَ لَهُ آدَمُ: قَدْ عَجَّلْتَ، قَدْ كُتِبَ لِي أَلْفُ سَنَةٍ. [۱۷] قَالَ: بَلَى، وَلَكِنَّكَ جَعَلْتَ لِابْنِكَ دَاوُدَ سِتِّينَ سَنَةً، [۱۸] فَجَحَدَ فَجَحَدَتْ ذُرِّيَّتُهُ، وَنَسِيَ فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ" [۱۹] قَالَ: "فَمِنْ يَوْمَئِذٍ أُمِرَ بِالْكِتَابِ وَالشُّهُودِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ [۲] وفرمايل خداي جل جلاله چې حضرت آدم عليه السلام جوړکړي او د هغه په جسم کې يې روح پوك وهلو نو هغوئ ته انتوشې راغلو [۳] نو هغوئ الحمد لله اوويل دغه شان هغوئ د الله جل جلاله توفيق او اجازت سره د الله حمد اوونيلو [۴] خداي جل جلاله د هغوئ د حمد په جواب کې ورته وفرمايل يرحمك الله يعنی په تادي د خداي جل جلاله رحمت نازل وي بيا يي ورته وفرمايل اي آدم عليه السلام د فرشتو دي جماعت ته ورشه کوم چې هلته ناستي دی، [۵] او ورته اووئيلو السلام عليکم نو حضرت آدم عليه السلام هغه فرشتو ته ورغلي او هغوئ ته يي سلام واچوي فرشتو ورته په جواب کې اوويل عليك السلام ورحمة الله [۶] د دې نه پس حضرت آدم عليه السلام خپل پروردگار ته راغلو يعنی هغه ځاي ته واپس راغلو چيرته چې پروردگار ورسره کلام کړي وو خداي جل جلاله ورته وفرمايل چې دا يعنی السلام عليکم ورحمة الله ستا او ستا د اولاد دعا ده چې په خپلو کې به يې يوبل ته کوئ [۷] بيا خداي جل جلاله ورته وفرمايل په داسې حال کې چې د هغه دواړه لاسونه بند وه چې په دې دواړو لاسونو کې کوم يو غواړې خوښ يي کې حضرت آدم عليه السلام اوويل ما د خپل پروردگار ښي لاس خوښ کې [۸] او ځما د پروردگا دواړه لاسونه ښي او بابرکته دي بيا خداي جل جلاله هغه لاس خلاص کې نو حضرت آدم عليه السلام څه وليدل چې په هغه کې آدم او د آدم عليه السلام د اولاد صورتونه وه يعنی حضرت آدم عليه السلام په عالم غيب کې خپل او د خپل ټول اولاد صورتونه وليدل [۹] هغه پوښتنه وکړه پروردگاره داڅوك دي؟ پروردگار ورته وفرمايل دا ستا اولاد دي [۱۰] حضرت آدم عليه السلام داهم وليدل چې د هرمسلمان عمر د هغه د دواړو سترگو په منځ کې ليکلي دي [۱۱] بيا د هغه نظر په يوداسې انسان ولگيدي چې د ټولو نه زيات روښانه وو يا په هغوئ کې د روشن ترين خلقو نه يو وو [۱۲] حضرت آدم عليه السلام د هغه په ليدو سره پوښتنه وکړه اي ځما پروردگاره! داڅوك دي پروردگار وفرمايل دا ستا ځوي داود عليه السلام دي او ما د ده عمر څلويښت کاله ليکلي دي [۱۳] حضرت آدم عليه السلام عرض وکړو پروردگاره! د ده عمر څه نور زيات کړي پروردگار وفرمايل دا هغه شي دي چې د ده په حق کې ماليکلي دي [۱۴] حضرت آدم عليه السلام عرض وکړو پروردگاره که د ده عمر ليکل شوي دي نو زه د خپل عمر نه ده ته شپيته کاله ورکوم پروردگار وفرمايل ته پوه شه او ستا کار پوه شه يعنی دې معامله کې ته مختار يي [۱۵] رسول الله ﷺ فرمايي د دې نه پس حضرت آدم عليه السلام په جنت کې وو ترڅوپورې چې

ازنه به منظوره وه بیا هغه د جنت نه زمکي ته را خکته شو [۱۶] او حضرت آدم علیه السلام د خپل عمر کلونه شمیرل نردي چې د هغه عمر نهه سوه څلویښت ۹۴۰ کاله شو نو د مرګ فرښته روح قبض کولو د پاره هغه ته راغله حضرت آدم علیه السلام ورته اوویل تا تلوار وکړه څما عمر خو زر کاله مقرر شوي دي [۱۷] فرښتي اوویل داصحیح ده لیکن تاسو د خپل عمر شپیته کاله خپل څوي داود علیه السلام ته ورکړي دي [۱۸] حضرت آدم علیه السلام د دې نه انکار وکړو او د هغه اولاد هم انکار کوي او حضرت آدم علیه السلام هغه ممانعت هیر کړي وو (چې د حق تعالی د طرف نه د مشهورې ونې د میوې خوړلو متعلق وو او د هغه اولاد هم هیر کړي) [۱۹] حضور ﷺ وفرمایل د هغه ورځې نه د لیکلو او شاهد جوړولو حکم وشو، یعنی دغه ورکړه او دعمر بخشش دآدم علیه السلام نه هیر وو څکه منکر هم شو نو اولاد کی هم دا عادت راغی چی خبره ورنه هیره شي ، اوبیا ورباندی منکر هم وی [دلته یوه ضروری خبره دعقیدی ده هغه دا چی هر کله چی دالله دپاره ید یا د عین لفظ راشی نو په لاس او یاپه سترګه تعبیر غلط دی ، په هغوئ الفاظو به تعبیر کول کیږي چی په شریعت کې راغلی وی دالله ﷻ صفات دی ، جارحه اندامونه ندی څکه دا اندامونه حادث دی اوالله ﷻ اوصفات یی قدیم دی ، څکه علی قاری هروی فرمایی ید خدادست خدانیست ] (ترمذي)

**حل اللغات** :- ① عَطَسَ: چه فرنجي اوکړی، ② تَحِيَّةُ: سلام، ③ مَقْبُوضَتَانِ: بند وو. ④ أَضْوَأُهُمْ: زیات روښانه وو په هغوی کښې، ⑤ يَعُدُّ: شمیرل ئې،

**تسهیلات:**

**قوله : فَإِذَا فِيهِمْ رَجُلٌ أَضْوَأُهُمْ - أَوْمِنْ أَضْوَئِهِمْ:**

**د داؤد علیه السلام په څوښولو کښې دوه اقوال:** ① دَ حضرت آدم علیه السلام داؤد علیه السلام ته متوجه کیدل هغه دَزړه رغبت اومناسبت وی چه په دواړو کښې دَ خلافت ارضی دَ وجې نه وو څکه الله تعالی دَحضرت آدم علیه السلام نه پس دَ نبوت سلسله جدا اوساتله او خلافت ئې جدا اوساتلو په حضرت داؤد علیه السلام کښې الله تعالی بیادا سلسله راجمع کړه دغه شان دې نه پس هم نبوت سره دَ خلافت منصب یوځائې کړې شو

② دَ ټولو نه زیات پرقیدونکې او روښانه وو دادَ حضرت داؤد علیه السلام جزئی فضیلت وو

**قوله : سِتِّينَ سَنَةً:**

**اشکال:** دلته دَ شپیتو کالو ورکولو خبره ده خو په مشکوة باب الایمان بالقدر حدیث نمبر ۱۱۸ کښې دَ څلویښتو کالو ذکر راغلې دې

**داشکال څلور جوابونه:** ① مذکوره حدیث پاك او ددې عدد صحیح دې او جلد دویم کښې چرته د یو راوی څخه سهو شوې ده هغه څلویښت دَ شپیتو په ځائې او شپیته دَ څلویښتو په ځائې بیان کړل

④ آدم عليه السلام اول شل کاله عمر ورکړې وو اوبيا ني څلوېښت کاله ورکړو نو شپېته پوره شو
④ کومو راوياتوته چې د څلوېښت علم وو نوهغوی څلوېښت ذکر کړی دی او کومو ته چې د شپېتو علم وو نو هغوی شپېته ذکر کړی دی.
④ دڅلوېښتوکالوحديث د اول دشپېتوکالود روايت څخه راجح دي

## [۳۳۳] ښځوته د سلام کولو حکم

۴۶۳۳–[۳٦] ( ) [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «مَرَّ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي نِسْوَةٍ، [۲] فَسَلَّمَ عَلَيْنَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ په مونږ ښځو تير شو هرکله چې مونږ څه ښځې ناستې وو [۲] نو حضور ﷺ مونږ ټولو موجودو ښځو ته سلام واچوئ (ابوداؤد ابن ماجه دارمي)

**تسهيلات:**

قوله: مَرَّ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي نِسْوَةٍ،

**د مذکوره جملې ترکيب:** حال دي او تقديری عبارت دغه شان دي "حال کوننا مع جماعة كثيرة من النساء". امام طيبي رحمه فرمائی چه "فی نسوة" تعلق فاعل سره نه دې او لازم دا دې چه نبی ک يم ﷺ ښځو سره د ښځو په يو جماعت باندې تير شو، بلکه دا د جار مجرور متعلق دې او ددې بيان دا دې چه د نبی کريم ﷺ دا جمله د عربو دې قبيلې نه ده "فی البيضة عشرون رطلا من حديد" دا نفس مقدار دې ظرف نه دې

**په زنانو د سلام په اچولو کښې دوه اقوال:** په حديث الباب کښې د رسول الله ﷺ د زنانو په يو جماعت باندې سلام کول ذکر دی. په بذل کښې د ابن الملک نه نقل دی چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت دې ځکه چه هغوی د فتنې د ويرې نه محفوظ وو او د بل سړی دپاره پردئ ښځې ته سلام کول مکروه دی مګر دا چه هغه بوډئ وی چه د هغې نه د فتنې خطره نه وی.

④ ډيرو علماء کرامو دې ته جائز وئيلې دی د هر يو بل ته سلام کول. ملا علی قاری فرمائی چه صحيح هم دا ده چه سلام کول په پردئ زنانه باندې مکروه دی نو چه هر کله مکروه دی نو مسلِم به هم د جواب مستحق نه وی

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی السلام علی النساء (رقم-۵۲۰٤) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب السلام علی الصبيان والنساء (رقم-۳۷۰۱)

**[۳۲۳] دَ سلام دَ ثواب دَ حاصلولو دَپاره دَ بازار چکر وهل**

۳۲۳-[۳۷] ( ) [۱] وَعَنِ الطُّفَيْلِ بْنِ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: أَنَّهُ كَانَ يَأْتِي ابْنَ عُمَرَ فَيَغْدُو مَعَهُ إِلَى السُّوقِ. [۲] قَالَ: فَإِذَا غَدَوْنَا إِلَى السُّوقِ، لَمْ يَمُرَّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَلَى سَقَّاطٍ وَلَا عَلَى صَاحِبِ بَيْعَةٍ، وَلَا مِسْكِينٍ، وَلَا عَلَى أَحَدٍ إِلَّا سَلَّمَ عَلَيْهِ. [۳] قَالَ الطُّفَيْلُ: فَجِئْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَوْمًا، فَاسْتَتْبَعَنِي إِلَى السُّوقِ، [۴] فَقُلْتُ لَهُ: وَمَا تَصْنَعُ فِي السُّوقِ وَأَنْتَ لَا تَقِفُ عَلَى الْبَيْعِ وَلَا تَسْأَلُ عَنِ السِّلَعِ وَلَا تَسُومُ بِهَا، وَلَا تَجْلِسُ فِي مَجَالِسِ السُّوقِ؟ [۵] فَاجْلِسْ بِنَا هَاهُنَا نَتَحَدَّثُ. [۶] قَالَ: فَقَالَ لِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ: يَا أَبَا بَطْنٍ! - قَالَ: وَكَانَ الطُّفَيْلُ ذَا بَطْنٍ - [۷] إِنَّمَا نَغْدُو مِنْ أَجْلِ السَّلَامِ، نُسَلِّمُ عَلَى مَنْ لَقِينَاهُ. رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ"

**ترجمه:** [۱] او د حضرت طفيل ابن ابي ابن كعب رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه به د حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه په خدمت کې حاضريدي او بيا دسهار په وخت کې چې د هغه سره به بازار ته تلو [۲] حضرت طفيل وايي کله چې به مونږ د سهار په وخت کې بازار ته تلو نو حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه چې به کوم سقاطي (کوم چې ردي څيزونه خرڅوي) کوم خرڅونکي کوم مسکيني او کوم سړي باندې تيريدي نو هغه ته به يې سلام اچوي [۳] حضرت طفيل وايي يوه ورځ د معمول مطابق زه حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه ته راغلم او هغه د ځان سره بازار ته بوتلم [۴] نو ماهغوئ ته اوويل چې تاسو بازار ته تلو سره څه کوئ نه خو تاسو د څه خريد وفروخت په ځاي دريږي او نه د څه خرڅونکي شي باره کې پوښتنه کوئ نه خو څه سودا کوئ او نه د بازار څه مجلس کې شريکيږئ [۵] نو بازار ته د تلو نه خو دا ښه ده چې تاسو زمونږ سره دلته کينئ چې څه خبري وکړو [۶] حضرت طفيل رحمه الله وايي حضرت عبد الله رضي الله عنه دا اوريدو سره ماته اوويل اي خيټې وره د راوي بيان دي چې د طفيل رحمه الله خيټه لويه وه [۷] آيا ته پوهيږي چې مونږ خريد وفروخت کولو يا څه بل غرض د پاره بازار ته ځو نه بلکې مونږ خو صرف د سلام کولو په غرض سره ځو او هرسړي ته سلام کوو چې زمونږ سره يوځاي شي او دغه شان مونږ بازار ته تلو سره ثواب حاصلوو (مالک بيهقي)

**حل اللغات:** - ① يَغْدُو: سحروختی به تلل. ② سَقَّاطٍ: کباړ مال خرڅونکي. ③ فَاسْتَتْبَعَنِي: زه ئې ځان سره کړم ④ لَاتَقِفُ: ته نه او دريږې. ⑤ السِّلَع: نرخ، ريټ معلومول. ⑥ وَلَاتَسُومُ: اونه څه سودا کوې. ⑦ أَبَابَطْنٍ!: د خيټې پلار يعنی اي خيټو.

**تسهيلات:**

**قوله: يَا أَبَا بَطْنٍ!**

**دابو بطن په وئيلو کښې دوه اقوال:** ① يعنې اي خيټې والا دَ علم زيات شوقين سړی ته

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب السلامة باب جامع السلام (رقم -۶) والبيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۸۷۹۰

ابوبطن وائی کیدې شی چه دَدې وجې نه ئی هغه ته ابوبطن وئیلې وی په دې کښې منافات نشته حضرت علی ﷺ ته هم دَعلم دَ کثرت دَ وجې نه شیخ بطین وائی.
② دکوم سړی چه خیټه غټه وی هغه ته ابوبطن وائی لکه څنګه چه دلته وئیلی شوی دی.

**[۴۶۳۵] په سلام کښې بخل کونکې لوئی بخیل دې**

۴۶۳۵—[۳۸] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقَالَ: لِفُلَانٍ فِي حَائِطِي عَذْقٌ، وَأَنَّهُ قَدْ آذَانِي مَكَانُ عَذْقِهِ، [۳] فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "أَنْ بِعْنِي عَذْقَكَ" قَالَ: لَا. قَالَ: "فَهَبْ لِي". قَالَ: لَا. [۴] قَالَ: "فَبِعْنِيهِ بِعَذْقٍ فِي الْجَنَّةِ". فَقَالَ: لَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا رَأَيْتُ الَّذِي هُوَ أَبْخَلُ مِنْكَ إِلَّا الَّذِي يَبْخَلُ بِالسَّلَامِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وایي یو سړي د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضرېدو سره عرض وکړو [۲] چې (یا رسول الله) څما په فلاني باغ کې د فلاني سړي د خرما وُنه ده او صورت حال داسې چې د هغه ونې په وجه ماته تکلیف رسیږي څکه چې هغه سړي د خپلې ونې په وجه وخت بې وخته څما باغ ته راځي [۳] رسول الله ﷺ یو سړي هغه پسې ولیږلو کوم وخت چې هغه راغلونو حضور ﷺ ورته وفرمایل ته د خپلې خرما وُنه په ما خرڅه کړه هغه اوویل زه یې نه خرڅوم [۴] حضور ﷺ ورته وفرمایل که د دې ونې خرڅولو کې تاته څه عارمحسوسیږي نو څما په نوم یې هبه کړه هغه اوویل زه هبه هم نه کوم حضور ﷺ ورته وفرمایل ښه دي ته دا وُنه څما په لاس د کجورو د داسې ونې په عوض کې خرڅه کړه چې تاته به په جنت کې حاصلیږي هغه اوویل زه یې داسې هم نه خرڅوم حضور ﷺ ورته وفرمایل ما ستا نه زیات بخیل هیڅ سړي نه دي لیدلي علاوه د هغه سړي نه چې په سلام کې بخل کوي یعنې د سلام په معامله کې کوتاهي کونکي سړي ستا نه هم زیات بخیل دي چې هغه دومره ذره کار کولو سره هم زیات ثواب حاصلول نه غواړي (احمد بیهقي)

**حل اللغات:** - ① حَائِطِي: حائط باغ ته وائی ② عَذْقٌ: دکهجورې ونه.

**تسهیلات:**

**قوله:** هُوَ أَبْخَلُ مِنْكَ إِلَّا الَّذِي يَبْخَلُ بِالسَّلَامِ:

**دابخل کیدلو وجه:** په سلام کښې څه خرچ کیږی نه دَ ژبې یوڅوکلمات دی دکومې فائده چه ډیره زیاته ده په دې کښې بخل کونکې واقعی لوئی بخیل دې.

[1]) اخرجه احمد فی المسند: ۳۲۸/۳ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۸۷۷۱

**قوله**: فَيُعْنِيهِ بِعَذْقٍ فِي الْجَنَّةِ:

**د مذكوره كس كم علمي**: دَ دغه سړي عجيبه حالت ووچه حضورپاك دَهغه نه وني اخستل غوښتل هغه انكار اوكړو. بيا حضورپاك دَ عطيه په توګه اوغوښتلې هغه بيا انكاراوكړو بيا حضورپاك هغه ته په جنت كښې دَ كهجورو دَ ونو وركولو وعده اوفرمائيله هغه بيا انكاراوكړو حضورپاك اوفرمائيل دې سړی نه په دنياكښې لوئی بخيل بل هيڅ څوك نشته دې او په سلام كښې چه څوك بخل اوكړی هغه دَده نه هم زيات بخيل دې.دَدغه سړی په طبيعت كښې سختی وه راجع دادی چه مسلمان وويس وخلق الإنسان ضعيفاً [المرقات،۸/۴۴۹]

[۳۳۳] په سلام كښې روميې والې كونكې دَتكبر نه پاك دې

۴۶۳۳-[۳۹] ([۱]) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، [۲] قَالَ: "«الْبَادِئُ بِالسَّلَامِ بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] په سلام كې مخكې كيدونكي د تكبر نه پاك دي .(بيهقي)

**تسهيلات**:

**قوله**: الْبَادِئُ بِالسَّلَامِ بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ:

**د بادئ بالسلام په مصداق كښې دوه اقوال**: ① دې څخه مراد هغه دوه كسان دی چه دَ يوبل نه خفه وی او په ملاقات كښې يوكس په سلام كښې روميې والې اوكړو اوخبرې ئې كولاؤكړې نودَهغه ټول ګناهونه هم معاف كيږی اودا دَتكبرنه هم خالی دې.

② دَ دوو ملګرو په لاركښې دَ ملاويدوپه وخت چه كوم سړې روميې والې كوی هغه مراددې چه په هغه كښې څه تكبر نه وی. دا مفهوم زيات عام دې.

[۱] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۸۷۸۷

# [٢] بَابُ الاِسْتِئْذَانِ

## دَاجازت اخستلو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على خمسة مسائل:**

① لابد من التسليم مرارا عندا الإستيذان: ١، ٧، ١٠.

② الرجوع حين عدم الإذن: ٢، ٣، ۶ ، ٩.

③ الزجر عن بعض طرق الأذان: ٣.

④ لا بد من الإستيذان للدخول عموما: ۴، ۵، ٨.

⑤ لا يستقبل الباب وقت الإستيذان: ٧.

**د استيذان لغوی معنی:** ① استيذان په معنی د اباحت هم راځی.لکه چه ونيلې شی ﴿ أذن له في الشئ أباحه له ﴾ (القاموس) دلته دواړه معنې مناسب دی، دا معنی هم مناسب ده خکه دخول فی البيت اباحت او اجازت هم غواړی

② استئذان إذن طلب کول، اذن په معنی د علم راځی لکه ﴿ أذن بالشئ ای علم ﴾ دا معنی هم مناسب ده خکه چه يو کس د چا د کور په دروازه باندې اودريږی او اجازت غواړی نو هغه پيژندل غواړی چه په کور کښې څوك شته يا نه،

**د سلام او استيذان په تقدم کښې اقوال:** ① افضل دا ده چه سلام او استئذان لره جمع کړی شی اختلاف په دې کښې دې چه سلام به مقدم کوی که استئذان؟

② ماوردی فرمائی چه که د اجازت طلب کونکی نظر که د کور په خاوند باندې کور ته د داخليدو نه مخکښې پريوتلو نو سلام دې مقدم کړی کنې استئذان دې مقدم کړی خو دا قول د حديث ﴿ السلام قبل الكلام ﴾ خلاف دې

③ د جمهورو په نزد صحيح دا ده چه سلام دې په استئذان باندې مقدم کړی او اوائی دې ﴿ السلام عليكم أأدخل ﴾ (المرقاة ٩/٦٩، والأشعة ٤/١٨)

**دکور په څخه د اجازت نه ملاويدو حکم:** که دکور مالك په کور کښې موجود دې اوهغه اوونيل چه روړه زه مصروف يم واپس لاړشه نودغه راتلونکی سړی له پکاردی چه واپس لاړشی.چونکه استيذان دَ اجازت غوښتلو په معنی کښې دې نودکور مالك ته دا اختيار حاصل دې چه اجازت ورکړی يا اجازت نه ورکوی.دَ راتلونکی سړی څه جبری حق نشته دې بلکه دَ راتلونکی سړی دَپاره دا بهتر اطهر او پاکيزه طريقه ده چه دَ شکايت او عداوت

نه بغیر واپس لاړشی دَ قرآن پاك اعلان دي ﴿هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ﴾ سبحان الله اسلام څه پاکیزه نظام دي [سورة نور: ۲۸]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۶۶۷] په درې ځل سلام باندې که اجازت ملاؤ نه شو نو واپس لاړشه

۴۶۶۷-[۱] (¹) [۱] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: أَتَانَا أَبُو مُوسَى، [۲] قَالَ: «إِنَّ عُمَرَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَنْ آتِيَهُ، فَأَتَيْتُ بَابَهُ، فَسَلَّمْتُ ثَلَاثًا، [۳] فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ، فَرَجَعْتُ. فَقَالَ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تَأْتِيَنَا؟ [۴] فَقُلْتُ: إِنِّي أَتَيْتُ فَسَلَّمْتُ عَلَى بَابِكَ ثَلَاثًا فَلَمْ تَرُدُّوا فَرَجَعْتُ، [۵] وَقَدْ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ، فَلْيَرْجِعْ". [٦] فَقَالَ عُمَرُ: أَقِمْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ. [۷] قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَقُمْتُ مَعَهُ، فَذَهَبْتُ إِلَى عُمَرَ، فَشَهِدْتُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ ابوموسي اشعري رضي الله عنه مونږ ته راغلو [۲] او هغه اوویل حضرت عمر رضي الله عنه يو سړي راليږلو سره زه غوښتي وم (حسب طلب) زه چې د هغوئ دروازي ته ورسيدم (او دننه د ورتلو اجازت طلب کولو د پاره) درې ځلي مي سلام وکړو [۳] خو ماته د سلام جواب رانغلي نو زه واپس راغلم بيا وروسته چې ملاقات وشو نو حضرت عمر رضي الله عنه زما نه پوښتنه وکړه ماته په راتلو کې ته څه شي منع کړي وي [۴] ما اوويل زه تاسو ته راغلي وم په دروازه ودريدو سره درې ځلي مي سلام واچوئ ليکن تاسو جواب رانه کې او نه ستاسو خادم جواب راکي نو زه واپس راغلم [۵] ځکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي هرکله چې تاسو کې څوك دچا کورته ورشي او دروازي باندې ودريدو سره درې ځلي اجازت طلب کړي او هغه ته اجازت حاصل نشي نو پکار دي چې واپس لاړ شي [٦] حضرت عمر رضي الله عنه په دي اوريدو سره وفرمايل د دې حديث شاهد راوله يعنى د دې حديث صحيح کيدو باندې شاهد پيش کړه چې دا د حضور صلى الله عليه وسلم ارشاد ګرامي دي [۷] ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي زه ابوموسي رضي الله عنه سره دتلو د پاره ودريدم او حضرت عمر رضي الله عنه ته ورتلو سره مي شاهدی ورکړه (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَقِمْ: قائم کړه. ② الْبَيِّنَةَ: ګواه.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا مَنَعَكَ" يعنى ته ما راغوښتې وې نو کوم يو څيزته ماله دَراتلونه منع کړي؟ [المرقات: ۴۵۱/۸]

¹) اخرجه البخاري في كتاب الاستئذان/باب التسليم والاستئذان ثلاثا (رقم-۶۲۴۵) ومسلم في كتاب الآداب/باب الاستئذان (رقم-۳۳ - (۲۱۵۳) والترمذي في كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الاستئذان ثلاثة (رقم-۲۶۹۰) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب الاستئذان (رقم-۳۷۰۶)

**قوله**: أَقِمْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ" يعني كوم حديث چه تا بيان كړو اوس په دې باندې ګواه پيش كړه چه دا واقعي دَ حضوريپاك حديث دې كه نه؟

حضرت عمر ﷺ چه اوكتل چه خلق په كثرت سره احاديث بيانوي نوهغوى په حديث بيانولو كښې دَ احتياط په وجه دا قانون جوړكړې وو چه كوم سړې حديث بيانوي په هغه باندې به لازم وى چه كم نه كم يوسړې په هغې باندې ګواه پيش كړى چه هغه كوم څه بيان كړه هغه واقعي مرفوع حديث دې يا نه دې؟ په شروع كښې داسې نه وو روستو دَ احتياط په توګه قانون جوړكړې شو.دَدې مطلب دانه دې چه خبر واحد قابل اعتبارنه دې خبرواحد خو به بياهم خبر واحدوى دادَ حضرت عمرﷺ دَ طرف نه احتياط وو چه دروغژن خلق غلطو احاديثو دَ ځان نه دَ جوړولو جرأت اونه كړې شي.[المرقات: ۴۵۱/۸]

**قوله**: فَقُلْتُ: إِنِّي" اصل عبارت داسې دې "فقلت منعني لأني" دادَ حضرت عمرﷺ دَ سوال "مامنعك" جواب دې.

**قوله**: قَالَ أَبُوسَعِيدٍ" تفصيلي روايت كښې داسې ذكردى چه حضرت ابوموسىٰ اشعرى ﷺ دَ پريشانتيا په حالت كښې دَ صحابه كرامو دې مجلس ته اورسيدو چرته چه ابى بن كعبﷺ ناست وو.دې حضراتو دَ توقو په توګه حضرت ابوموسىٰ اشعرى ﷺ نور هم اوويرولو.حضرت ابوموسىٰ ﷺ اوفرمائيل ګورئى رونړو زه پريشان يم زما امداد اوكړئى چاچه داحديث اوريدلى وى هغه ماسره لاړشئى.حضرت ابى بن كعب ﷺ اوفرمائيل چه مونږ دَدې مجلس نه دَ ټولو نه وړوكې صحابى تاسره ليږو دې دَپاره چه دې قصې ته زيات اهميت حاصل نه شى.په مجلس كښې دَ ټولو نه وړوكې حضرت ابوسعيد خدرى ﷺ ناست وو هغه ابوموسىٰ ﷺ سره لاړو او ګواهى ئې وركړه چه واقعي دا حديث مرفوع دې.دې نه پس حضرت ابى بن كعبﷺ حضرت عمرﷺ ته اوفرمائيل ته دَ حضورپاك دَ صحابه دَ پاره دَعذاب او تكليف سبب مه جوړيږه.حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل سبحان الله زه عذاب نه جوړيدل غواړم زه خو صرف دا غواړم چه خلق دَحديث په بيانولو كښې دَ احتياط نه كارواخلى.. درې ځل سلام كولوكښې رومبې سلام دَ تعارف دَپاره وى دويم سلام دَ اجازت دَپاره او دريم سلام دَ واپس تلو دَپاره وى.[المرقات: ۴۵۲/۸]

**[۳۶۶۸] دَحضرت ابن مسعود ﷺ رسول الله ﷺ سره ليزديكت**

۳۶۶۸ – [۲] (¹) [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ لِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِذْنُكَ عَلَيَّ أَنْ تَرْفَعَ الْحِجَابَ وَأَنْ تَسْمَعَ سِوَادِي حَتَّى أَنْهَاكَ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

¹) اخرجه مسلم فى كتاب السلام/باب جواز جعل الإذن رفع حجاب أو نحوه من العلامات (رقم-۱۶ - (۲۱۶۹)) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب الاستئذان (رقم-۳۷۰۹) واحمد فى المسند: ۳۸۸/۱

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ ماته [۲] وفرمايل خما د طرف نه تاته دا اجازت ده چې ته پرده پورته کړه او خما خبري واوره تردي چې زه تا منع نه کړم. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① اَلْحِجَابَ: پرده، ② سِوَادِي: اى سرارى يعنى پټې خبرې.

**تسهيلات: قوله:** أَنْ تَرْفَعَ الْحِجَابَ:

يعنى دَ کورد دروازو پرده اوچته کړه اوزما خبره واوره [المرقات:۸/۴۵۲]

**قوله:** سِوَادِي: داسې پټې خبرې چه دَهغې دکولو په وخت يوبدن بل بدن سره اولګي دې دپاره چه نور څوك ئې وانوري. دحضورپاك دَ كور په دروازه باندې دَ بورئي پرده وه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته داخصوصيت حاصل وو چه صرف پرده اوچته کړي او دننه لاړشي. اوکه دَ پردې اوچتولونه پس حضورپاك دَ داخليدونه منع کړي وى نوبيا به اجازت نه وى ګڼى صرف پرده اوچتول اجازت وو. په دې سره دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوچت شان او دَ قرب نبوى پوره پته لګي. عامو نوو صحابه کرامو به خيال کولوچه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ حضورپاك دَ کورد افرادونه يوفرد دې. اوداخبره دَ ياد ساتلوده چه دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا تګ راتګ دَ بيتك دَ حده پورې وو. دَ ازواج مطهراتو نه پرده خولازم وه دَ كور بې پردګى کله هم نه ده شوې. [المرقات:۸/۴۵۲]

### [۳۳۳] خپله پيژندګلو په غيرمبهم الفاظوکښې کول پکاردى

۳۳۳۳-[۳] ()[۱] «وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى أَبِي، فَدَقَقْتُ الْبَابَ، فَقَالَ: "مَنْ ذَا؟" فَقُلْتُ: أَنَا. فَقَالَ: "أَنَا! أَنَا!" [۳] "كَأَنَّهُ كَرِهَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ د يوقرض په معامله کې چې خما په پلار وو زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضرشوم [۲] نو (د خپل راتګ اطلاع ورکولو د پاره) دروازه مي وټکوله حضور ﷺ دننه نه پوښتنه وکړه څوك دي ما اوويل زه يم حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل زه يم زه يم (د دي څه مطلب) [۳] ګويا حضور ﷺ خما داسې جواب ورکول بد وګڼلو. (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَدَقَقْتُ: نو ما اوټکوله.

**تسهيلات:**

**قوله:** فِي دَيْنٍ

دَ حضرت جابر رضي الله عنه پلار په جنګ احد کښې شهيد شوې وو ليکن دَ اتو لورونه علاوه ئې په

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب إذا قال: من ذا؟ فقال: أنا (رقم-۶۲۵۰) ومسلم فى كتاب الآداب/باب كراهة قول المستأذن أنا إذا قيل من هذا (رقم-۳۹ - (۲۱۵۵) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التسليم قبل الاستئذان (رقم-۲۷۱۱)

خپل خان پسې ډیرزیات قرض هم پریخودي وو حضرت جابر ﷛ به په دې سلسله کښې ډیرزیات پریشان وو حضورپاك هغه په قرض کښې ډیر تعاون هم اوکړو هم ددې قرض په سلسله کښې حضرت جابر ﷛ دَ حضورپاك دروازې له راغلې وو چه قرض غوښتونکو سره څه خبره اوکړې شی چه هغوی لږه نرمی اوکړی اوپاڅ قرض دَ اداکولوڅه صورت جوړشی چنانچه دَ حضورپاك په برکت سره دغه قرض خلاص شو او په لږو شان کهجورو کښې برکت راغلو.

**قوله:** "مَنْ ذَا؟" په دې لفظ سره حضورپاك دَ آواز ورکونکی تعین اوفرق کولواراده کړې وه مخې ته حضرت جابر ﷛ "أنا" لفظ استعمال کړوپه کوم سره چه نه تعین اوشو اونه فرق حاصل شو په دې باندې حضورپاك نکیر اوفرمائیلو چه "أنا" "أنا" څه خیزدې په صف الفاظوکښې خپل نوم اوښایه دې دپاره چه ابهام لرې شی دَ :انا" لفظ استعمالولوسره خو ابهام تردغه وخت پورې پاتې دې نو بیا دَدې په وئیلوسره څه فائده اوشوه؟

حضورپاك به دَ حضرت جابر ﷛ آواز پیژندلې وی مگر دَ امت دَ تعلیم دپاره ئې نکیر اوفرمائیلو.بعضې علماء وائی چه صرف په درواز ټکولوسره حضورپاك خفه شو ځکه چه دَ اجازت دپاره خو په اسلام کښې سلام او استیذان مقرردې

په دې حدیث سره هغه خلقو ته هم تعلیم ملاویږی چه ټیلی فون کولوسره خبرې شروع کړی اوخپل نوم نه ښائی لکه دَهغوی داخیال وی چه دَ هغه آواز به دَ دنیا ټول خلق پیژنی داخام خیالی ده په صفا الفاظوکښې وئیل پکاردی چه زه معروف شاه یم اودَ قطر نه خبرې کوم په لفظ انا اناکښې که چرې دَ حضورپاك نکیر او خفگان داسې واخستې شی چه حضورپاك اوفرمائیل زه هم زه یم یعنی په زه سره خو څه تعارف نه شی حاصلیدې نودَدې مطلب هم امکان دې سره دَدې چه ما چرته لیکلې شوې نه دې لیدلې [المرقات: ۴۵۲/۸]

**[۴۶۷۰] قاصدسره دَراتلوپه وخت دَبیا غوښتلو اجازت ضرورت نشته دې**

۴۶۷۰—[۳] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، [۲] فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ. [۳] فَقَالَ: "أَبَا هِرٍّ! الْحَقْ بِأَهْلِ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ إِلَيَّ" [۴] فَأَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ، فَأَقْبَلُوا، فَاسْتَأْذَنُوا، فَأُذِنَ لَهُمْ، فَدَخَلُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې یوه ورځ زه دَ رسول الله ﷺ سره دَ حضور ﷺ په کورکې داخل شوم [۲] نو حضور ﷺ په کور کې دَ شیدو یوه پیاله پیداکړه [۳] حضور ﷺ ماته وفرمایل ابوهریره ﷛! اهل صفه ته ورشه او هغوئ ماته راوله [۴] زه دَ هغوئ پسې بلنې دَ پاره ورغلم کوم وخت چې هغه خلق راغلل نو په دروازه انتظار کیدو

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب إذا دعی الرجل فجاء هل يستأذن (رقم-۶۲۴۶)

سره دننه د راتلو اجازت يې وغوښتل حضور ﷺ هغوئ ته اجازت ورکړه نو هغوئ دننه راغلل (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** -①لَبَنًا: پئ (شودې) ، ②قَدَح: پيالئ.

**تسهيلات:**

**قوله: بِأَهْلِ الصُّفَّةِ**

حضرت ابوهريره ﷺ په مسجدنبوی کښې د حضورپاك د مدرسې د صفه طالب علم وو په صفه کښې به کله ۸۰ طالبان اوسيدل اوکله به څلورو سوو ته رسيدل اوکله به کم شو د ضرورت په وخت به د جهاد دپاره تيار اوسيدل لکه چه دا قطعۀ منتظره مجاهدينو وو چه په جهادي مدرسه کښې ئې سبق حاصلولو حضرت ابوهريره ﷺ هم ددوی نه يو وو پخپله اوګې وو د پينوپياله راغله خوشحال شو چه زه به نې اوڅکم مگر ابوهريره ﷺ ته حکم اوشو چه ټول راؤغواړه قاصد سره راغلو دکور خواکې د دننه داخليدلودپاره بيا اجازت اوغوښتلو کيدې شي چه دا ئې د دې وجې نه غوښتې وی چه داخلق به ناوخته راغلی وی يا د ډيرې حياء د وجې نه ئې دروازې سره دوباره اجازت اوغوښتو کوم چه يو استحبابی امر دې په حديث نمبر(۴۶۷۲) کښې وضاحت دې [المرقات: ۸/۴۵۴]

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۶۷۱] سلام کولوسره اجازت غواړه**

۴۶۷۱-[۵] ()[1] «عَنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ: أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- بَعَثَ بِلَبَنٍ أَوْ جَدَايَةٍ وَضَغَابِيسَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، [2] وَالنَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِأَعْلَى الْوَادِي، [3] قَالَ: فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ وَلَمْ أُسَلِّمْ وَلَمْ أَسْتَأْذِنْ، [4] فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ارْجِعْ، فَقُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ؟» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [1] حضرت کلدة ابن حنبل ﷺ فرمايي چې صفوان ابن اميه څما په لاس باندې د رسول اکرم ﷺ د پاره شو ده د هوسي بچي او بادرنګ وليږل [2] په دغه وخت کې رسول الله ﷺ د مکه په پورته غاړه باندې (چې معلي ورته وايي) تشريف فرماوو [3] حضرت کلده ﷺ وايي چې زه هم دغه شان د حضور ﷺ په خدمت کې ولاړم نه خو ما قيامګاه ته داخليدلو نه مخکې سلام واچوي او نه مي د دننه د راتلو اجازت وغوښتل [4] د دې وجې نه رسول الله ﷺ ماته وفرمايل چې واپس لاړشه او هلته اووئيلو چې السلام عليکم آيا

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب كيف الاستئذان (رقم-۵۱۷۶)والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التسليم قبل الاستئذان (رقم-۲۷۱۰) واحمد فى المسند:۳/۴۱۴

زه دننه راتلي شم؟ (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات** :- ① جَدَايَةٍ: دَ هوسئ يا چيلئ وړوکی بچې چه دَ شپږو مياشتو وی ② وَضَغَابِيسَ: دَ ضغبوس جمع ده بادرنګ ته وائی ③ أَعْلَى الْوَادِي: دَمکې مکرمې اوچتې حصې کوم ته چه المعلاة وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: ارْجِعْ**

يعنی دَ اجازت دَپاره دغه سړی سلام اونه کړو حضورﷺ هغه دَتعليم اوتنبيه په توګه هغه ته دَ واپس تلو حکم اوکړو اوبيا ئی دَ سلام کولواو دَ راتلوسره حکم ورکړو. دکوم نه چه معلوميږی چه دَ اجازت اخستو دَپاره سلام کول ضروری امر دې [المرقات: ۴۵۵/۸]

**[۳٦٧۲] دبلو نکي سره راتلو نکي د پاره د اجازت ضرورت نشته**

٤٦٧٢-[٦] ()[1] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ "«إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ فَجَاءَ مَعَ الرَّسُولِ، ٣ فَإِنَّ ذَلِكَ لَهُ إِذْنٌ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ، «قَالَ: "رَسُولُ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ إِذْنُهُ»"

**ترجمه** : ١ او د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي چې رسول اللهﷺ وفرمايل ٢ چې کله په تاسو کې يو شخص وبلل شي او دي د هغه شخص سره لاړ شي چې څوك په ده پسې تللي وو ٣ نو د هغه سره د ده راتلل بس اجازت ده (ابوداؤد) او د ابوداود په يو بل روايت کې داسې دي چې رسول اللهﷺ وفرمايل د يو شخص بل شخص لره د بللو د پاره استاذي ليږل هم د هغه د طرف نه اجازت ده.

**تسهيلات:**

د حديث الباب حاصل دا دې چه قاصد سره راتلونکې ميلمه ته ددې خبرې ضرورت نشته چه هغه دې دراوزی سره اودريږی او اجازت دې اوغواړی بلکه هغه دې کوربه د قاصد سره داخل شی وغيره

**[۳٦٧۳] دَاجازت په وخت دَ دروازې نه اخوااودريدل پکاردی**

٤٦٧٣-[٧] ()[2] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَتَى بَابَ قَوْمٍ ٢ لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ مِنْ تِلْقَاءِ وَجْهِهِ، وَلَكِنْ مِنْ رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ ٣ فَيَقُولُ: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" ٤ وَذَلِكَ أَنَّ الدُّورَ لَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا سُتُورٌ». ٥ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَذَكَرَ حَدِيثَ أَنَسٍ، «قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ»" فِي "بَابِ الضِّيَافَةِ".

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى الرجل يدعى أيكون ذلك إذنه (رقم-٥١٩٠) واحمد فى المسند: ٥٣٣/٢

[2]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب كم مرة يسلم الرجل فى الاستئذان (رقم-٥١٨٦) واحمد فى المسند: ١٩٠/٤

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن بسر رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ چې به د چا کورته ورتلو د پاره د هغه دروازي ته ورسيدي [۲] نو دروازي طرف ته مخ کړي به نه دريدلو چې په کوروالاوو يي نظر پرې نه وخي بلکي ښي يا چپه جانب ته به دريدلو [۳] او بيابه يي اجازت غوښتلو د پاره فرمايل السلام عليکم السلام عليکم او د دروازي مخکې د نه ودريدو [۴] وجه داوه چې هغه زمانه کې به دروازه پردې نه وي (ابوداؤد) [۵] او د انس رضي الله عنه دا روايت قال عليه السلام السلام عليکم ورحمة الله باب الضيافة کې نقل شوي دي

**حل اللغات:** - ① رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ: ښى طرف. ② الدُّوْرَ: د دار جمع ده. کورونه. ③ سُتُوْرٌ: د سِتر جمع ده. پردې

**تسهيلات:**

**قوله: لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ**

يعنى دروازې ته مخامخ نه دى اودريدل پکارخکه چه کله دروازه کولاؤشى نوداسې په کورکښې دننه نظر پريوتلې شى بلکه ښى اوګس طرف ته اودريدل پکاردى لکه څنګه چه د تبليغ والا اوتيوشن والا کوى مفسد قسم خلق ليدلې شوى دى چه بالکل په مينځ کښې اودريږى اودننه دکتلو کوشش کوى. دَدې حديث دَ آخرى الفاظونه معلوميږى چه دَاسلام په ابتدائى دورکښې به دَ مسلمانانو په دروازو کښې پردې نه وى اوروستو بيا پردې راغلې لهذا که دَ نظر دننه پريوتلو خطره نه وى نوبيامخامخ اودريدل به هم منع نه وى دَممانعت اصل علت خو نظر دننه پريوتل دى البته تفس سنت باندې دَعمل کولو په غرض مخې ته اودريدل به مناسب نه وى [المرقات: ۸/۴۵۶]

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۶۳] ځکه په کورکښې مورهم وى بياهم اجازت غوښتل پکاردى**

> ۴۶۶۳-[۸] (۱) [۱] عَنْ عَطَاءٍ، «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، فَقَالَ: أَسْتَأْذِنُ عَلَى أُمِّي؟ [۲] فَقَالَ: " نَعَمْ " فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي مَعَهَا فِي الْبَيْتِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا " [۳] فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي خَادِمُهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا، [۴] أَتُحِبُّ أَنْ تَرَاهَا عُرْيَانَةً؟ " قَالَ: لَا. قَالَ: " فَاسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا» ". رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] حضرت عطاء ابن يسار رضي الله عنه وايي يو سړي د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چې آيا زه مورته په ورتلو کې هم اجازت طلب کړم [۲] حضور ﷺ ورته وفرمايل هو (ځکه چې کيدي شي چې څه وخت د هغه د جسم اعضاء خلاص وي چې څوي ته ليدل يي هم جائز نه دي) هغه اوويل زه د هغه سره تنها وسيږم (يعني زه او ځما مور دواړه په يوکور کې

(۱) اخرجه مالک فى الموطا کتاب الاستئذان باب الاستئذان (رقم-۱)

اوسيږو په دي صورت کې ماته د اجازت طلب کولو څه ضرورت دي ګويا هغه سړي ګمان وکړو چې اجازت حاصلول هغه سړي ته مشروع دي چې بيګانه وي او کله کله څې راځي، حضور ﷺ ورته وفرمايل هرکله چې ته په يوکور کې داخليدل غواړي يا په يوکور کې هغه جدا يوه کمره کې وي او هغه ته ورتلل غواړي نو اجازت حاصلولو سره ورځه [۳] هغه اوويل زه د خپلي مور خادم يم يعني زه د هغه نګراني او خدمت د پاره ورته ځم راځم نو آيا د شرعي قواعدو مطابق دفع حرج د پاره هروار د اجازت طلب پابندي زما نه لري کيدي شي حضور ﷺ ورته وفرمايل بهر صورت اجازت حاصلولو سره هغه ته ورځه اګر که اجازت غاړه تازه کولو يا د پښو کشار او بلند اواز سره د خبرو کولو په صورت کې وي [۴] آيا ته دا خوښوي چې خپله مور بربنډه ووينې؟ يعنې ته بغير اجازت حاصلولو ناڅاپه هغه ته ورسي نو آيا ممکنه نه ده چې هغه وخت په څه وجه بربنډه ناسته وي او ستا نظر په هغه پريوځي هغه سړي اوويل چې هيڅ کله نه نو حضور ﷺ ورته وفرمايل بيا ته اجازت حاصلولو سره هغه ته ورځه دا روايت امام مالك رحمه الله بطريق ارسال نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① عُرْيَانَةً: بربنډه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَاسْتَأْذِنْ.**

يعنی په کورکښې ښځې اکثر په داسې حالت کښې ناستې وی په کوم کښې چه يوکس هم دا نه خوښوی چه په هغوی باندې نظر پريوځی لهذا په هرصورت کښې اجازت غوښتلو سره دننه تلل پکاردی. دَاجازت صورت داهم دې چه دَ سلام نه علاوه دَداخليدو په وخت سړې په اخ تونخ کولوسره يا دروازه ټکولوسره لاړشی دې دَپاره چه دننه ښځوته دَ راتلونکی اندازه اوشی په حديث کښې دَمورذکردې مرادهغه ټولې ښځې دی چه دَ محارمو دَ قبيلې نه دی اوکه په کورکښې صرف ښځه وی نو دَداسې اجازت ضرورت نشته دې [المرقات: ۸/۴۵۷]

**[۳۸۰] حضرت علی رضي الله عنه ته دَاجازت يوصورت**

د-۳۶۰-[۹] ( ) [۱] «وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: كَانَ لِي مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَدْخَلٌ بِاللَّيْلِ، وَمَدْخَلٌ بِالنَّهَارِ، [۲] فَكُنْتُ إِذَا دَخَلْتُ بِاللَّيْلِ، تَنَحْنَحَ لِي». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي رضي الله عنه وايي زه به رسول الله ﷺ ته د شپې هم او د ورځې هم تلم راتلم [۲] کله چې به زه د شپې حاضريدم نو حضور ﷺ به ماته د اجازت راکولو د پاره غاړه تازه کوله (نسائي)

**حل اللغات:** - ① مَدْخَلٌ: ځائې ته ورتلل ② تَنَحْنَحَ: غاړه به ئې تازه کوله.

---

[۱] اخرجه النسائی فی كتاب السهو التنحنح فی الصلاة ۱۲۱۱ وابن ماجه فی كتاب الأدب /باب الاستئذان (رقم ۳۷۰۸)

**تسهیلات:**

**قوله: تَنَحْنَحَ لِي**

دَحدیث نه داخبره واضحه شوه چه حضرت علی ﷺ ته دَ شپې په وخت دَحضوریاك په کورکښې دَ داخلیدو دَپاره داسې اجازت وو چه حضوریاك به غاړه تازه کوله دې سره دا امر معلوم نه شو چه دَ ورځې دَ اجازت دَ پاره کوم علامت مقرروو ممکن دی چه دَ ورځې دَ اجازت دَپاره دَحضرت علی ﷺ غاړه تازه کول دَ اجازت علامت وو لکه چه عام طریقه هم دغه شان وی.

اوس دلته یوسوال پیداکیږی هغه داسې چه بعضې روایاتوکښې راغلی دی چه دَ حضوریاك غاړه تازه کول دَ عدم اجازت دلیل وو په دې وجه حضرت علی ﷺ فرمائی چه کله به حضوریاك غاړه تازه کوله نوزه به واپس لاړم؟ دَدې سوال جواب دادې چه ممکن دی دَحضوریاك غاړه تازه کول دَ اجازت اوعدم اجازت دواړو علامت وو خو بیا به دَ خارجی قرینې نه معلومیدله چه دا دَ اجازت علامت دې اودا دَ عدم اجازت علامت دې. [المرقات:۸/۴۵۷]

**[۳۷۶] سلام نه کونکي ته څان ته دراتلو اجازت مه ورکوئ**

٤٦٧٦ـ[١٠] ()[١] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«لَا تَأْذَنُوا لِمَنْ لَمْ يَبْدَأْ بِالسَّلَامِ»" رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت جابر ﷺ نه روایت دي چی رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د سلام نه شروع ونه کړي هغه ته څان ته د راتلو اجازت مه ورکوئ (بیهقي)

**تسهیلات:**

د حدیث الباب حاصل دا دې چه کوم کس تاسو ته بغیر د سلام کولو نه راشی نو تاسو نی څان سره مه پریږدئ بلکه تاسو ورته اووائې چه واپس لاړ شه او اول سلام وکړه بیا اجازت اوغواړه او دننه راشه. څنګه چه بعضې وخت کښې استاذ خپل شاګرد ته او پلار خپل اولاد ته د تربیت ورکولو په وخت کښې وائی چه بچی واپس لاړ شه او د دروازي نه بهر سلام وکړه بیا دننه راشه

() اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۸۸۱۶

# [۳] بَابُ الْمُصَافَحَةِ وَالْمُعَانَقَةِ

## د مصافحې او معانقې بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① المصافحة وفضيلتها: ۱، ۳، ۴، ۵، ۷، ۱۸۔

② حكم التقبيل والمعانقة ثبوتاً ونفياً: ۲، ۴، ۶، ۷، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶۔

③ الترحيب للقادم: ۸۔

**د معانقې تعريف**: سينه سره سينې ملاوولو ته معانقه وائي

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۶۷۷] مصافحه ثابته ده

۴۶۷۷-[۱] ([1]) [۱] عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [۲]: أَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ قَالَ: نَعَمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضرت قتاده تابعي رحمه الله وايي ما د حضرت انس رضي الله عنه نه پوښتنه وكړه [۲] چې آيا د رسول الله ﷺ صحابه رضي الله عنهم (خپل د ملاقات په وخت شلام نه پس) مصافحه كوله هغه وفرمايل هو.

**تسهيلات:**

حضرت قتاده تابعي فرمائي چه ما د حضرت انس رضي الله عنه نه پوښته وكړه چه د نبي كريم ﷺ صحابه كرامو به د ملاقات په وخت كښې مصافحه كوله؟ نو دوي جواب كښې اونيل چه او

قوله: أَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (جار مجرور متعلق محذوف دي كوم چه د كان خبر جوړيږي، أي ثابتة وموجودة فيهم حال ملاقاتهم بعد السلام.

### [۴۶۷۸] ماشوم ښكلول مستحب دي

۴۶۷۸-[۲] ([2]) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَبَّلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ وَعِنْدَهُ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ. [۲] فَقَالَ الْأَقْرَعُ: إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ أَحَدًا، [۳] فَنَظَرَ إِلَيْهِ

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الاستئذان/باب المصافحة (رقم-۶۲۶۳) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المصافحة (رقم-۲۷۲۹)

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب رحمة الولد وتقبيله ومعانقته (رقم-۵۹۹۷) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان والعيال وتواضعه وفضل ذلك (رقم-۶۵ - (۲۳۱۸) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رحمة الولد (رقم-۱۹۱۱) واحمد فى المسند: ۲۴۱/۲

رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، ثُمَّ قَالَ: "مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي يو وخت رسول الله ﷺ د حسن ابن علي ﷺ نه مچي (ښكل) واخستله نو يو صحابي اقرع ابن حابس ﷺ چې هغه وخت د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر وو [۲] هغه اوويل چې ځما لس بچي دي او ما په هغوئ كې د هيچا نه مچي (ښكل) نه ده اخستي [۳] رسول الله ﷺ (دا اوريدو سره) هغه طرف ته وكتل او وي فرمايل كوم سړي چې رحم نه كوي په هغه رحم نه كيږي يعنى كوم سړي چې خپل اولاد يا د خداي په مخلوق باندې لطف او شفقت نه كوي په هغه د الله رحمت او شفقت نه كيږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① قَبَّلَ: ښكل ئې كړو. مچي (ښكل) ئې واخستله

**تسهيلات:**

**قوله:** فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اي نظر تعجب أو نظر غضب" يا به د تعجب په نظر سره ئې كتلي وى يا به ئې د ناخوښئ په نظر سره كتلي وى. ثم قال من لم يرحم لا يرحم امام طيبى رحمه الله فرمائي چه "من" موصوله دې يا "من" شرطيه دې يا اول يرحم مشاكلة د رحمت په معنى واغستلې شي نو معنى به دا شي "من لم يشفق على الأولاد لا يرحمه الله تعالى" (مرقات ج۹، ص۷۵)

ددې حديث په بناء باندې امام نووى رحمه الله فرمائي چه "تقبيل الرجل عدولده الصغير واجب" چه پلار لره د خپل ماشوم بچي مخ ښكلول واجب دى او د مخ اطرافو باندې محبت كولې شى يعنى سر يا تندې ښكل كړى.

هم دغه شان د خپلوانو او د ملگرو ماشومان هم ښكلول جائز دى او كه ښكلول د شهوت په وجه وى نو بيا حرام دى. (مرقات ج۹، ص۷۵)

[۱] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَثَمَّ لُكَعُ" فِي "بَابِ مَنَاقِبِ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَعَلَيْهِمْ أَجْمَعِينَ" إِنْ شَاءَ تَعَالَى. [۲] وَذَكَرَ حَدِيثَ أُمِّ هَانِئٍ فِي "بَابِ الْإِيمَانِ".

**توجمه:** [۱] وزر ده چې مونږ به د ابوهريره رضى الله عنه حديث ,,اثم لكع،، په باب مناقب اهل بيت النبى صلى الله عليه وسلم كښې ذكركړو انشاء الله [۲] ود ام هانى حديث ئې په باب الايمان كښې ذكر كړې دي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۶۷۹] دمصافحې فضيلت**

۴۶۷۹ - [۳] ( )[۱] عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«مَا مِنْ

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى المصافحة (رقم-۵۲۱۲) والترمذى فى كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المصافحة (رقم-۲۷۲۷) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب المصافحة (رقم-۳۷۰۳) واحمد فى المسند: ۲۸۹/۴

مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ، إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَتَفَرَّقَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. [٣] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: «إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ فَتَصَافَحَا، وَحَمِدَا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَاهُ، غُفِرَ لَهُمَا».

**ترجمه:** [١] حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] هركله چې دوه مسلمانان يوځاي كيږي او خپل منځ كې د يو بل سره مصافحه (جوړتازه كوي) نو د هغوئ دواړو د جدا كيدو نه مخكې خداي تعالى هغوئ بخښي (احمد ترمذي ابن ماجه) [٣] او د ابوداود په روايت كې داسې دي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل هركله چې دوه مسلمانان يوځاي شي او د يو بل سره مصافحه وكړي د خداي تعالى حمد اووائي او بخښنه وغواړي نو هغه دواړه بخښل كيږي.

**[٣٦٨٠] دَسلام په وخت ټيټيدل منع دي**

٣٦٨٠-[٣] () [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! الرَّجُلُ مِنَّا يَلْقَى أَخَاهُ أَوْ صَدِيقَهُ، أَيَنْحَنِي لَهُ؟ قَالَ: "لَا". [٣] قَالَ: أَفَيَلْتَزِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ؟ قَالَ: "لَا" [٤] قَالَ: أَفَيَأْخُذُ بِيَدِهِ وَيُصَافِحُهُ؟ قَالَ: "نَعَمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [٢] يو سړي عرض وكړو چې يا رسول الله! په مونږ كې چې څوك خپل مسلمان ورور يا دوست سره ملاقات كوي نو آيا هغه ورته خكته شي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل نه [٣] هغه سړي اوويل آيا د هغه سره غاړه يوځاي كړي او هغه ته مچي (پچه) وركړي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل نه هغه [٤] اوويل آيا د هغه لاس خپل په لاس كې اخستو سره هغه سره مصافحه وكړي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل هو (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَيَنْحَنِي: آيا ورخكته شي؟ ② أَفَيَلْتَزِمُهُ: آيا غاړه وركړي؟ ③ يُقَبِّلُهُ: ښكل ئې كړي

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "لَا".**

يعنى دَ سلام په وخت ټيټيدل منع دى دې سره دَ بدعت او شرك دروازه كولاويدې شى په دې حديث كښې چه څنګه دَ سلام په وخت ټيټيدل منع ګرځولې شوى دى دغه شان په دې كښې يوبل پورې اينختل اوغاړې وركول هم منع ګرځولې شوى دى اولاس وغيره ښكلول هم منع ګرځولى شوى دى.

فقهاؤ ليكلى دى چه كه دَ لاس ښكلول دَ دنيا په غرض سره وى نودا په اتفاق سره مكروه تحريمى دى ليكن دَ والدينو استاذانو يا مشائخو اهل الله لاس ښكلې كړې شى نودا جائز دى مګر دَ دنيادار لاس وغيره دَدنيا په غرض سره ښكلول جائز نه دى لهذا دَ ممانعت

[1]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المصافحة (رقم-٢٧٢٨) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب المصافحة (رقم-٣٧٠٢)

صورت هم ددي ممنوع صورتونو سره دي. [المرقات، ۳۶۲/۸]

**[۳۷۸] دَ سلام پوره طريقه**

۴۶۷۸—[۵] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«تَمَامُ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ أَنْ يَضَعَ أَحَدُكُمْ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ، أَوْ عَلَى يَدِهِ، فَيَسْأَلَهُ: كَيْفَ هُوَ؟ [۳] وَتَمَامُ تَحِيَّاتِكُمْ بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَضَعَّفَهُ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو امامه ﷺ نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د مريض پوره عيادت (پوښتنه) داده چې په تاسو کې څوك خپل لاس د هغه په تندي يا د هغه په لاس کيږدي او بيا پوښتنه وکړي چې د هغه څه حال دي [۳] او ستاسو پوره سلام چې تاسو يي خپلو کې کوئ مصافحه ده يعنی کله چې تاسو سلام کوئ نو مصافحه هم کوئ چې سلام پوره او کامل شي دا روايت احمد او ترمذي نقل کړی دي او دي ته يي ضعيف ويلي دي.

**تسهيلات:**

قوله: وَتَمَامُ تَحِيَّاتِكُمْ بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ.

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دوارِه امور په خپل ځائی کښې کمال ادنی درجه لري. خو که په دواړو باندې عمل وکړي شی نو د کمال درجه به حاصل شی. (مرقات ج۹، ص۷۶)

② د زياتی، نقصان، او تکلفونو صفا او معتدل طريقه دا ده چه سلام ومصافحه باندې اکتفا کوی او زيادت مه کوئ ځکه چه په تکلف کښې به واقع شئ.

**[۳۷۳] دَ سفر نه په راتلو سره معانقه او تقبيل جائز دي**

۴۶۷۳—[۶] ()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «قَدِمَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ الْمَدِينَةَ وَرَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي بَيْتِي، [۲] فَأَتَاهُ فَقَرَعَ الْبَابَ، فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ عُرْيَانًا يَجُرُّ ثَوْبَهُ، [۳] وَاللهِ مَا رَأَيْتُهُ عُرْيَانًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ، فَاعْتَنَقَهُ وَقَبَّلَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ فرمايي يو وخت زيد ابن حارثه ﷺ چې مشهور صحابي دي او حضور ﷺ خوي جوړ کړي وو ديوي غزا يا سفر نه راتلو سره مديني ته راورسيدي هغه وخت حضور ﷺ ځما په کورکي تشريف فرماوو [۲] زيد ﷺ د حضور ﷺ په خدمت کې حاضريدو د پاره ځما کورته راغلواو دروازه يي وټکوله رسول الله ﷺ لڅ (ښکاره،

---

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المصافحة (رقم-۲۷۳۱)واحمد فی المسند:۲۶۰/۵

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المعانقة والقبلة (رقم-۲۷۳۲)

بدن خپله کپړه يعنى څادر رانبكلو سره زيد ﷺ سره يوځاي كيدو د پاره بهر تشريف يووړي (يعني هغه وخت د حضور ﷺ په بدن مبارك د لنګ نه علاوه بله څه کپړه نه وه او حضور ﷺ په هغه حالت کې دروازې ته تشريف يووړي) [۳] په خداي مې دي قسم وي د دې نه مخکې او د دې نه پس ماهيڅ كله حضور ﷺ لغ (ښکاره بدن) نه دي ليدلي يعني داسې هيڅ كله نه دي شوي چې حضور ﷺ د چا د استقبال په خير راغلي په وخت داسې اظهار شوق او ارزو كړي وي ، او د هغه د ليدو د پاره په بربنډ بدن بې بهر ته تشريف وړي وي بهرحال حضور ﷺ حضرت زيد ﷺ غاړې سره ولګوي او مچ يې كې

**حل اللغات:** - ① فَقَرَعَ: اوئې ټکوله (دروازه)، ② عُرْيَانًا: بربنډ (يعني لنګ نه علاوه ئې په بدن بله کپړه نه وه) ③ يَجُرُّ: رانبكلو ئې. ④ فَاعْتَنَقَهُ: غاړه ئې ورکړه. ⑤ قَبَّلَهُ: ښكل ئې كړو

**تسهيلات:**

**قوله: فَاعْتَنَقَهُ**

**د معانقې دجواز دلائل:** ① يعني حضورپاك حضرت زيد بن حارثه ﷺ سره غاړه ملاؤ كړه. دَدې حديث نه دَ معانقې او دَ تقبيل ثبوت ملاويږي.

② په مشكاة كښې دَحضرت جعفر ﷺ حديث نمبر(۳۶۸۶) نه هم دَمعانقې او دَ تقبيل ثبوت ملاويږي. فقهاؤ هم دا قول اختيار كړې دې چه دا جائز دي. چرته چه دَممانعت روايت دې هغه په هغه تقبيل باندې محمول دې چه دَ دنيا په غرض سره وي. [المرقات: ۴۶۳/۸]

**[۳۸۳] د معانقه جواز**

۳۸۳-[۷] (۱) [۱] وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ بُشَيْرٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ عَنَزَةَ، أَنَّهُ قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: [۲] «هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَافِحُكُمْ إِذَا لَقِيتُمُوهُ؟ [۳] قَالَ: مَا لَقِيتُهُ قَطُّ إِلَّا صَافَحَنِي، [۴] وَبَعَثَ إِلَيَّ ذَاتَ يَوْمٍ وَلَمْ أَكُنْ فِي أَهْلِي، [۵] فَلَمَّا جِئْتُ أُخْبِرْتُ، فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ عَلَى سَرِيرٍ، فَالْتَزَمَنِي، فَكَانَتْ تِلْكَ أَجْوَدَ وَأَجْوَدَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] و حضرت ايوب ابن بشير د بنو عنزه يو سړي نه روايت دې هغه بيان وکړو چې ما د حضرت ابوذر ﷺ نه پوښتنه وكړه [۲] تاسو خلقو چې به رسول الله ﷺ سره ملاقات كوي نو آيا حضور ﷺ به ستاسو سره مصافحه هم كوله [۳] حضرت ابوذر ﷺ وفرمايل ماچې كله حضور ﷺ سره ملاقات كړي دي نو حضور ﷺ زما سره مصافحه كړيده [۴] د يوې ورځې واقعه ده چې حضور ﷺ ځما بللو د پاره ماته يو سړي راوليږلو هغه وخت زه خپل كوركې موجود نه وم [۵] كوم وخت چې زه كورته راغلم نو ماته د دې اطلاع راكول شوه نو زه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شوم او حضور ﷺ هغه وخت په يو تخت

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في المعانقة (رقم-۵۲۱۴)

تشریف فرماوو حضور ﷺ زماسره غاړیه ملاؤکړه او دا غاړه ملاوول د حصول لطف وسرور او برکت د اعتبار نه د مصافحي په نسبت، ښه وو ډیر زیات ښه. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** -① أَجْوَدُ: ډیر زیات ښه.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَهُوَعَلٰى سَرِيرٍ:

**د سریر په مصداق کښي دوه اقوال:** ① د بعضي عالمانو په نیز د سریر نه مراد کټ دي کوم چه به د مدیني خلقو د کجهورو د شاخونو نه جوړولو، دي دپاره چه په دي سره د مضر حشراتو نه بچ شي ② ابن الملک رحمه الله فرمائی چه دلته سریر د ملک او د نعمت نه تعبیر کړي شوي دي ګویا چه سریر نه مراد ملک نبوت او ددي انعامات دی، او

**[۳۷۳] دَحضرت عکرمه رضي الله عنه په راتګ باندي معانقه**

۳۷۳—[۸] () [۱] «وَعَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] يَوْمَ جِئْتُهُ: "مَرْحَبًا بِالرَّاكِبِ الْمُهَاجِرِ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عکرمه رضي الله عنه ابن ابي جهل وايي د مکي د فتحي نه پس په هغه ورځ چي زه د اسلام قبلولو د پاره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر شوم [۲] نو حضور ﷺ خمالیدو سره وفرمایل الله او رسول طرف ته یا دار الحرب نه دار الاسلام طرف ته هجرت کونکي سوار ته دي خوش آمدید په خیرراغلي وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** -① مَرْحَبًا: خوش آمدید، پخیر راغلی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَرْحَبًا بِالرَّاكِبِ الْمُهَاجِرِ:

**د مذکوره جملي پس منظر:** دَ فتح مکي په موقع باندي عکرمه بن ابی جهل دَ مسلمانانو په مقابله کښي راغلي وو مګر دَ حضرت خالدبن ولید رضي الله عنه په لاس باندي ماتي خوړلو نه پس دَ یمن طرف ته اوتختیدو. دَهغه بی بی مسلمانه شوي وه هغي دَ هغه دَپاره دَ رسول الله ﷺ نه امان اوغوښتلو. دا راتګ هم دَ هغه موقع دي چه حضورپاك په توګه دَ تلطف هغه "الراکب" او "المهاجر" په نوم سره یاد کړو ځکه چه په اوښ باندي سور راروان وو اودکفر نه دَ اسلام طرف ته هجرت کولوسره راتلو. په تفصیلی روایت کښي دَ معانقي ذکر دي.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی مرحبا (رقم-۲۷۳۵)

**[۴۶۸۸] دَ یوسړی حضورپاک لره دَ ښکلولو یوه عجیبه قصه**

۴۶۸۸—[۹] () [۱] «وَعَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ - قَالَ: [۲] بَيْنَمَا هُوَ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ - وَكَانَ فِيهِ مُزَاحٌ - بَيْنَا يُضْحِكُهُمْ [۳] فَطَعَنَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي خَاصِرَتِهِ بِعُودٍ، [۴] فَقَالَ: أَصْبِرْنِي. قَالَ: "اصْطَبِرْ" قَالَ: إِنَّ عَلَيْكَ قَمِيصًا وَلَيْسَ عَلَيَّ قَمِيصٌ، [۵] فَرَفَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ قَمِيصِهِ، فَاحْتَضَنَهُ وَجَعَلَ يُقَبِّلُ كَشْحَهُ، [۶] قَالَ: إِنَّمَا أَرَدْتُ هَذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسید ابن حضیر ﷛ چې د انصارو نه وو د هغه باره کې راوي وایي [۲] یوه ورځ هغه وخت هرکله چې اسید خلقو سره خبرې کولې او د هغه په مزاج کې چې کومه خوش طبعي او ظرافت وو د هغه لاندې خلق یې خندول [۳] نو رسول الله ﷺ (د توقو په طورد هغه په اړخ کې په یولرګي سره جټکه ورکړله هغه حضور ﷺ ته اوویل ماته د دې جټکې راکولو بدله راکړئ [۴] حضور ﷺ ورته وفرمایل واخله (زما نه بدله واخله) هغه اوویل ستاسو په جسم کپړه ده او ځما په جسم کپړه نه وه که زه په کپړې د پاسه جټکه درکړم نو بدله به پوره نشي [۵] رسول الله ﷺ په دې اوریدو سره خپل قمیص پورته کې اسید د حضور ﷺ د اړخ سره ومښتې او په اړخ یې مُچې (پَچه) ورکول شروع کړل [۶] او وئیل یې یا رسول الله! ماصرف دا غوښتل یعنی بدن مبارک مچول مې غوښتل (ابوداؤد).

**حل اللغات:** - ① مُزَاحٌ: توقې، خوش طبعی، ② فَطَعَنَهُ: لرګی (چوکه) سره ئې دیکه ورکړه. ③ خَاصِرَتِهِ: په اړخ کښې (په تشی کښې) ④ بِعُودٍ: لرګي (لښته، چُوکه)، ⑤ أَصْبِرْنِي: زما دَپاره صبراوکړئ (چه زه درنه بدله واخلم). ⑥ فَاحْتَضَنَهُ: راغاړه ئې باسلو ځانته، ⑦ يُقَبِّلُ: ښکلولو ئې، ⑧ كَشْحَ: ددې. اړخونه.

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت اسید بن حضیر:** د حدیث راوی نوم حضرت اسید ایوبی د پلار نوم ئې حضیر کنیت ئې ابوعتیک، خاندان ئې اشهل دې داسید پلار د اوس قبیلې سردار وو د جاهلیت په زمانه کښې به تول جنګونه د دوی په سرداریٔ کښې کیدل.

د دوی د اسلام راوړلو واقعه دا ده د بیعت عقبه نه پس نبی کریم ﷺ حضرت مصعب بن عمیر ﷛ مدینې منورې ته د اشاعت اسلام دپاره راولیږلو چه خلقو ته اسلامی تعلیمات اوښائی حضرت مصعب د اسعد بن زراره ﷛ په کور کښې قیام اوکړو یو ځل حضرت مصعب ﷛ خلقو ته په باغ کښې تعلیم ورکولو سعد بن معاذ ﷛ اسید ﷛ ته اوویل چه مصعب ﷛ د تعلیم ورکولو نه منع کړه سعد بن معاذ لانړلو خو ده پخپله نیزه واخستله او په باغ کښې داسلام د داعی د دعوت سلسله ختمولو په اراده سره روان شو

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی قبلة الجسد (رقم-۵۲۲۴)

چه د دوی دا حالت ئې ولیدلو نو اسعد بن زراره ﷺ مصعب ﷺ ته اوونیل دا د قوم سردار دې زمونږ خواته راځي دې به نه مسلمانوې اسید ﷺ مصعب ﷺ ته اوونیل تا زما د قوم خلق بیوقوفه جوړ کړی دی د دې ځائې نه لاړه شی.

حضرت مصعب ﷺ ورته اوفرمائیل تاسو زما خبره واورئ که زما خبره مو خوښه شوه نو ټیک ده اوکه خوښه مو نشوه نو تاسو څه حکم وی هغه شان به کیږی حضرت اسید ﷺ ورته اوونیل تا دانصاف خبره اوکړه رشتیا چه د چا خبره ما نه وی اوریدلې نو خامخا د انکار کول څه دعقل خبره خو نه ده ددې نه پس حضرت مصعب ﷺ د قرآن پاک څه آیاتونه تلاوت کړل د قرآن پاک اوریدل وو چه قرآن خپل اعجازی تاثر اوخودلو او د قرآن په اوریدو سره د اسید ﷺ د زړه دنیا بدله شوه هغه زړه چه د اسلام د دشمنئ اور په کښې بل شوې وو د اسلام په شمع د روښانه کیدو منتظر شو هغه قدمونه چه د اسلام د باغ ګلونو شوکولو دپاره روان شوی وو په هغې کښې د اسلام دمضبوطولو ارادې پیدا شوې حضرت اسید ﷺ ورته اوفرمائیل تاسو په کومه طریقه خلق په خپل دین کښې داخلوئ ددې نه پس دحضرت مصعب ﷺ په لاس باندې ددوی ایمان راوړلو. الله اکبر

**په غزواتو کښې شرکت:** دجنګ بدر په شرکت کښې د مؤرخینو اختلاف دې باقی په نورو ټولو غزاګانو کښې دنبی کریم ﷺ سره شریک شوې وو په غزوه حنین کښې د اوس قبیلې جنډه د دوی په لاس کښې وه [۱] د بیت المقدس په فتح کښې په ۱۲ هجری کښې دحضرت عمر ﷺ سره شام ته تلې وو ډیر رشتیا وینا به ئې کوله چه څه به ئې په زړه وو هغه به ئې په خوله وو د دې وجې حضرت عمر ﷺ دوی سره ډیره مینه کوله نبی کریم ﷺ یو ځل اوفرمائیل ((نعم الرجل اسید بن حضیر)) یعنی حضرت اسید ډیر ښه سړې دې

حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه حضرت اسید ﷺ د صحابه کرامو ﷺ په غوره افرادو کښې شامل وو دوی نه ۱۸ روایات منقول دی پورتنې حدیث په بخاری اومسلم دواړو کښې دې په بخاری کښې یو حدیث بل هم دې د دوی وفات په شعبان ۲۰ هجری کښې شوې دې حضرت عمر ﷺ ئې د جنازې مونځ کړې وو.

**تسهیلات:**

**قوله :** رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ

**د رجل مصداق :** په مصابیح کښې دَ رجل لفظ مجرور دې چه دَاسید بن حضیر ﷺ صفت دې په دې سره دا وهم پیدا کیږی چه دَحضور پاك نه دَبدلې اخستلو کومه واقعه ذکرده دادَ انصارو نومورې دَ شان والا صحابی اسید بن حضیر ﷺ ده لیکن دَمزاح دا انداز دَهغه دَ

[۱] طبقات ابن سعد (۱۰۸ حصه مغازی) -

شان خلاف دي لهذا دا واقعه د بل سړي ده دَچا په طبيعت کښې چه مزاح وو اوهغه هم دَ انصارو نه وو دَهغه قصه مشهور صحابي حضرت اسيدبن حضير رضي الله عنه بيان کړي ده دَدې خبرې تائيد دَ جامع الاصول دَ روايت نه هم کيږي چرته چه لفظ رجلا دي نوعبارت داسې دي "عن اسيدبن حضير قال إن رجلا من الأنصار كان فيه مزاح" بهرحال صحيح او راجح هم دغه دي چه حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنه دَدې حديث راوي دي اوقصه دَ بلې واقعې او دَ بل سړي ده [المرقات: ۸/۳۶۵]

**قوله: وَجَعَلَ يُقَبِّلُ كَشْحَهُ:**

**دصحابۀ د نبي عليه السلام سره مينه:** اسيد بن حضير رضي الله عنه فرمائي چه يو انصاري سړی د خلقو سره خبرې کولې چه د هغه په طبيعت کښې مزاح وو هغه خلق په خپلو خبرو باندې خندول چه په هغې باندې رسول الله ﷺ په يو چوکه سره د هغه ملا اوهله نو هغه اووې ما پريږدئ چه زه ستاسو نه بدل او قصاص واخلم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل بدله واخله. هغه اووې چه ستاسو په بدن باندې خو قميص دې او زما په بدن باندې قميص نشته په دې باندې رسول الله ﷺ خپل قميص اوچت کړو، هغه سړي د رسول الله ﷺ پورې خان اولګولو او دهغوی ﷺ شا ئې خکل کړه او وې وئيل يا رسول الله ﷺ زما مقصد خو دا وو

**[۴۶۸۶] په تندی باندې د ښکلولو ثبوت**

۴۶۸۶-[۱۰] ()[۱] وَعَنِ الشَّعْبِيِّ: «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، فَالْتَزَمَهُ وَقَبَّلَ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ». [۲] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا. وَفِي بَعْضِ نُسَخِ "الْمَصَابِيحِ": وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنِ الْبَيَاضِيِّ مُتَّصِلًا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت شعبي تابعي رحمه الله وايي چې رسول الله ﷺ حضرت جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه سره يوځاي شو نو هغه سره غاړه په غاړې شو او د هغه سترګو په منځ کې يې مچي (ښکل) ورکړله [۲] دا روايت ابوداود او شعب الايمان کې بيهقي بطريق ارسال نقل کړي دي هرکله چې د مصابيح بعضې نسخو او په شرح السنه کې دا روايت بياضي نه بطريق اتصال نقل شوي دي.

**حل اللغات:** - ① فَالْتَزَمَهُ: نو يوځائې شو ورسره، ② قَبَّلَ: ښکل ئې کړو.

**تسهيلات:**

**قوله: جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ:**

حضرت جعفرطيار رضي الله عنه اول دَ مکې نه حبشې ته هجرت اوکړو بيائې دَهغه ځائې نه مدينې ته هجرت اوکړو په زيربحث حديث کښې هم دغه دَ حبشې نه مدينې طرف ته دَ هجرت

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في قبلة ما بين العينين (رقم-۵۲۲۰)

ذکردي دحضورپاك چه حضرت جعفر رضي الله عنه سره دملاقات کوم ذکردي هغه هم ددې موقع دي قبل بن عيينه دي نه د تندی بنکلول ثابتيږي. [المرقات:۸/۴۶۸]

**قوله: وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" "مُرْسَلًا":**

**د روايت ارسال:** دې حضراتو دا روايت په طريقه دارسال نقل کړې دې ليکن په شرح السنة کښې د بياضی په حواله سره داحديث متصل ذکرکړې دې. بياضی د بياضه بن عامر طرف ته منسوب دې دمطلق بياضی ذکر چه چرته وی هلته عبدالله بن جابر رضي الله عنه انصاری مراددې. [المرقات:۸/۴۶۶]

**[۴۶۸۷] دجعفر په راتلو باندې د نبی عليه السلام خوشحالی**

۴۶۸۷-[۱۱] ()[1] [۱] «وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- فِي قِصَّةِ رُجُوعِهِ مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ، قَالَ [۲]: فَخَرَجْنَا حَتَّى أَتَيْنَا الْمَدِينَةَ، فَتَلَقَّانِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاعْتَنَقَنِي، [۳] ثُمَّ قَالَ: "مَا أَدْرِي: أَنَا بِفَتْحِ خَيْبَرَ أَفْرَحُ، أَمْ بِقُدُومِ جَعْفَرٍ؟" وَوَافَقَ ذَلِكَ فَتْحَ خَيْبَرَ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت جعفر ابن ابي طالب رضي الله عنه د حبشې د زمکې نه د واپسئ د واقعې په بيانولو کې وايې [۲] چې مونږ حبشه نه راروان شو او مدينې ته رسيدو سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او د حضور صلی الله عليه وسلم سره مو ملاقات وکړو حضور صلی الله عليه وسلم زه غاړه باسلم [۳] او وې فرمايل زه نشم ويلې چې زه د خيبر فتح کيدو په وجه زيات خوشحاله يم يا د جعفر رضي الله عنه د راتګ په وجه او اتفاقي حضرت جعفر رضي الله عنه په هغه ورځ راغلي وو په کومه ورځ چې خير فتح شوي وو. (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① فَاعْتَنَقَنِي: نو ماته ئې غاړه راکړه، ② أَفْرَحُ: زيات خوشحاله يم.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي قِصَّةِ رُجُوعِهِ مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ:**

**دحديث پس منظر:** يعنی کله چه جعفر بن ابی طالب رضي الله عنه د حبشې د هجرة کولو نه پس په واپسئ باندې مدينې ته حاضر شو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغه استقبال اوفرمائيلو او هغه وخت ئې ورسره معانقه اوفرمائيله او د هغوی تندې ئې هم بنکل کړو.

**د معانقې په حکم کښې مذاهب:**

امام نووی رحمه الله دمعانقې په باره کښې د علماء کرامو اختلاف دې

① د قادم من السفر دپاره معانقې ته امام مالک رحمه الله مکروه وئيلې دی

② سفيان بن عيينة وغيره مستحب ورته مستحب وئيلی دی.

**دمعانقې عدم جواز دلائل:** ① د انس رضي الله عنه په روايت کښې دی. ( قال رجل : يا رسول الله

---

[1] اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۳۲۷

الرجل منا يلقي اخاه أو صديقه اينحني له؟ قال لا قال أفيلتزمه ويقبله؟ قال لا قال أفيأخذ بيده ويصافحه؟ قال نعم، رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن ﴾

② په ابن ماجه کښې د انس رضي الله عنه حديث مرفوع داسې دې ﴿ ايعانق بعضنا بعضا قال لا، ولكن تصافحوا ﴾ يعنى د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه په مونږ کښې دې بعض بعضو سره معانقه کوی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل نه! خو مصافحه کوئ د انس رضي الله عنه دا حديث دکوم تخريج چه امام ترمذى او امام ابن ماجه کړې دې دمعانقې په کراهت باندې دال دې.

**د معانقې د جواز دلائل:** ① د عائشې رضي الله عنها روايت دې : قالت: قدم زيد بن حارثة المدينة ورسول الله صلى الله عليه وسلم في بيتي فأتاه فقرع الباب فقام إليه رسول الله صلى الله عليه وسلم عريانا يجر ثوبه والله ما رأيته عريانا قبله ولا بعده فاعتنقه وقبله قال أبو عيسى هذا حديث حسن غريب لانعرفه من حديث الزهري إلامن هذا الوجه،

② عَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - فِي قِصَّةِ رُجُوعِهِ مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ، قَالَ: فَخَرَجْنَا حَتَّى أَتَيْنَا الْمَدِينَةَ، فَتَلَقَّانِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاعْتَنَقَنِي، ثُمَّ قَالَ: " مَا أَدْرِي: أَنَا بِفَتْحِ خَيْبَرَ أَفْرَحُ، أَمْ بِقُدُومِ جَعْفَرٍ؟ " وَوَافَقَ ذَلِكَ فَتْحَ خَيْبَرَ». ([1])

③ عَنِ الشَّعْبِيِّ: «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، فَالْتَزَمَهُ وَقَبَّلَ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ». ([2])

خلاصه دا چه د احنافو په دې کښې دواړه اقوال دی خو اصح د جواز دې په شرط د عدم الفتنة او امام مالک رحمه الله على القول الاشهر د دې د کراهت قائل دې او د شوافعو په اصح قول کښې للقادم من السفر دپاره مستحب ده.

### [۳۶۸۸] د نبى عليه السلام پښې او لاسونه ښکلول

۳۶۸۸–[۱۳] ([3]) [۱] «وَعَنْ زَارِعٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ، [۲] قَالَ: لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ، فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا فَنُقَبِّلُ يَدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَرِجْلَهُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زارع رضي الله عنه چې د عبد القيس په وفد کې شامل وو [۲] دی وايي مونږ چې مديني ته ورسيدلو نو خپلو سورلو نه په تلوار تلوار خکته کيدلو او بارگاه نبوت کې حاضر شو نو مونږ د رسول الله ﷺ لاسونه او پښې مچ کړلي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① تَتَبَادَرُ: جلتی مو کوله. ② فَنُقَبِّلُ: نو مونږ ښکلول.

---

[1]) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۳۳۲۷

[2]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى قبلة ما بين العينين (رقم-۵۲۲۰)

[3]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى قبلة الرجل (رقم-۵۲۲۵)

**تسهيلات:**

**قوله: فَنُقَبِّلُ يَدَ رَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَرِجْلَهُ:**

**د حديث پس منظر:** ام ابان د خپل نيکه زارع نه روايت کوی کوم چه په وفد د عبدالقيس کښې وو هغه فرمائی چه کله مونږ مدينې طيبې ته راورسيدو نو مونږ زر زر د خپلو سورلو نه کوزيدو سره د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضريدلو، د هغوی لاسونه او خپې مو خکلول خو منذر اشج تيزی اونکړه تر دې چه هغه اول د خپلو کپړو پنډوکی ته راغلو خپلې دواړه کپړې ئې بدلې کړې او بيا د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو رسول اللهﷺ د هغوی دا ادا ليدلو سره اوفرمائيل: ﴿إِنَّ فِيكَ خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللهُ الْحِلْمُ وَالْأَنَاةُ». قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَنَا أَتَخَلَّقُ بِهِمَا أَمِ اللهُ جَبَلَنِي عَلَيْهِمَا قَالَ «بَلِ اللهُ جَبَلَكَ عَلَيْهِمَا». قَالَ الْحَمْدُ لِلهِ الَّذِي جَبَلَنِي عَلَى خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللهُ وَرَسُولُهُ﴾ چه په تا کښې دوه عادتونه داسې دی کوم چه الله پاک خوښوی يو حلم او دويم وقار، هغوی عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ دا دوه خصلتونه ما خپله اختيار کړې دی او که الله پاک زما په خلقت کښې ايخودلې دی؟ نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل الله پاک ته پيدا کړې هم په دې خصلتونو ئې، په دې باندې هغه اووې چه ټول تعريفونه د هغه الله پاک دپاره دی چا چه زه په داسې دوه خصلتونو باندې پيدا کړم کوم چه الله تعالی او د هغه رسولﷺ خوښوی.

**د نبی عليه السلام سره محبت:** په عون المعبود کښې د لمعات نه نقل کړی دی چه دا وفد د عبدالقيس کوم چه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو مدينې طيبې ته رسيدو سره د خپلو سورلو نه د زيارت نبوی په شوق کښې په تيزئ سره د خپلو سورلو نه کوز شو او ډير په تيزئ سره د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو، رسول اللهﷺ د هغوی د دې جذباتو مشاهده فرمائيله او د دې وفد چه کوم مشر وو اشج هغه اول کوزيدو سره خپلې قيام گاه ته لاړو او هلته تلو سره ئې غسل اوکړو او صفا جامې ئې واغوستلې د دې نه پس مسجد نبویﷺ ته داخل شو او هلته ئې دوه رکعته ادا کړل او دعاء ئې اوغوښتله او بيا د رسول اللهﷺ په خدمت کښې ډير په خشوع وخضوع او سکون اووقار سره حاضر شو په دې باندې رسول اللهﷺ د هغه په باره کښې هغه ارشاد اوفرمائيلو کوم چه پورته په حديث کښې تير شو

**د تندی اولاسونو ښکلولو جواز:** يعنی مونږ دَ سورلونه راکوزشو اوحضورپاك له راغلو اودَحضورپاك لاسونه اوخپې مو ښکل کړې.دَ لاس يا تندی ښکلولوکښې هيڅ څه خاص مسئله نشته دې ځکه چه دَاهل دين تندې اولاسونه ښکلول دَاحاديثونه ثابت دی.که څه دنياوی غرض نه وی نو په دغه ښکلولوکښې څه کلام نشته دې.

**د خپوه ښکلولو دوه صورتونه:**

① که یوکس په اوچت پالنګ یا مقام باندې وی اویوسړې دهغه خپې ښکلوی اودسجدې صورت نه جوړیږي نو دا صورت جائز دې

② که په خپو ښکلولو کښې تیتیدل کیږي په کوم سره چه دَ سجدې صورت پیدا کیږي نو په دې کښې اختلاف دې.

**په دویم صورت کښې دوه اقوال:** ① دَ احنافو څه علماء دا جائز ګڼړي اوداد سجده تعظیمی نه جداګڼړي او وائی چه په دې کښې نه دَ عبادت سجده ده او نه دَتعظیم سجده ده داصرف دَاحترام او اکرام یوصورت دې.عمدة الفقه کښې حضرت مولانا مفتی محمدشفیع رحمه الله اواحسن الفتاویٰ کښې مفتی رشیداحمدرحمه الله داجائز لیکلی دی حضرت مفتی محمد شفیع رحمه الله خودَدې دَ ثابتولو اودَ دلائل پیش کولو لوئی کوشش کړې دې زیر بحث حدیث دَدغه حضراتو لوئی دلیل دې

② عام فقهاء خپې ښکلول جائزنه ګڼړي اوزیربحث حدیث دَ پیغمبرعليه السلام په خصوصیت باندې حمل کوی او خپې ښکلول ښه نه ګڼړي.

**[۳۶۸۹] دَفاطمه رضي الله عنها دَخپل والدصاحب لاس ښکلول**

۳۶۸۹ـ[۱۳]([1]) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَشْبَهَ سَمْتًا وَهَدْيًا وَدَلًّا. [۲] وَفِي رِوَايَةٍ: حَدِيثًا وَكَلَامًا بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ فَاطِمَةَ، [۳] كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ، قَامَ إِلَيْهَا، فَأَخَذَ بِيَدِهَا فَقَبَّلَهَا وَأَجْلَسَهَا فِي مَجْلِسِهِ، [۴] وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَيْهَا، قَامَتْ إِلَيْهِ، فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مَجْلِسِهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] و بي بي عائشه رضي الله عنها وایي ما په طور طریقه عادات او روش او نیک خصلت [۲] و په یو روایت کې دي چې خبرو اترو اوکلام کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم مشابهت د بي بي فاطمي رضي الله عنها نه زیات په بل چا کې نه دي لیدلي (یعني بي بي فاطمه رضي الله عنها په دي امورو کې د حضور صلى الله عليه وسلم زیاته مشابه وه) [۳] بي بي عائشه رضي الله عنها د بي بي فاطمي رضي الله عنها باره کې دي بیان کولو نه پس هغه محبت او تعلق خاطر بیانوي چې د بي بي فاطمي رضي الله عنها او حضور صلى الله عليه وسلم یو بل سره وو او د هغه په وجه د دواړو په منځ کې کمال مشابهت ښکاره کیدي بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایي کله چې به بي بي فاطمه رضي الله عنها د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضریده نو حضور صلى الله عليه وسلم به ودریدلو هغه طرف ته به متوجه کیدي بیا به یې د هغه لاس په خپل لاس کې اخستي او هغه ته به یې مُچي (پَپه) ورکوله (یعني د هغه د دواړو سترګو په منځ کې

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی القیام (رقم-۵۲۱۷) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل فاطمة رضی الله عنها (رقم-۳۸۷۲)

تندي به يي خكلوي، او بيابه يي د خپل ناستي په ځاي کينوله (يعني خپل ځاي به يي د هغه د پاره پريخودي) [۴] دغه شان حضور ﷺ چې به بي بي فاطمي رضي الله عنها کره تشريف يووړي نو هغه به د حضور ﷺ په ليدو سره ودريدله د حضور ﷺ لاس مبارك به يي خپل په لاس کې واخستي بيابه يي حضور ﷺ ته مچي (پپه) ورکوله (يعني د حضور ﷺ لاس مبارك به يي مچوي يا څه بل ځاي ته به يي مچي (پپه) ورکوله) او په خپل ځاي به يي کينوي (ابو داؤد)

**حل اللغات:** - ① أَشْبَهَ: زيات مشابه، ② سَمْتًا: طورطريقې، ③ وَهَدْيًا: عادتونه او طريقې، ④ وَدَلًّا: چال چلن (په دې الفاظو کښې ترادف هم دې اومعمولی تغاير هم)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مَجْلِسِهَا:

**د موریلار د لاس ښکلولو ثبوت:** دَحضرت فاطمه رضي الله عنها دَعمل نه معلومیږی چه لاس ښکلول جائزدی په دې کښې هیڅ کلام نشته دې چه دَ والدینو لاس ښکلول جائزهم دی اواولاد له په دې باندې عمل کول هم پکار دی. موریلار که دَ شفقت په توګه دَخپل اولاد لاس ښکل کړی نو دا هم جائزدی.

**د عالمانوه لاس ښکولو استحباب:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه د اهل علم و فضل دپاره قیام مستحب دې او د احادیثو نه ثابت دې او صراحة په دې کښې هیڅ حدیث صحیح نشته. او دغه شان علامه شامی هم د دې د استحباب تصریح کړې ده، علماء فرمائی چه تعظیما اودریدل د اهل فضل دپاره مکروه نه دی بلکه مکروه د قیام محبت دې یعنی چه د کوم سړی دپاره قیام کولې شی هغه خپله د خپل ځان دپاره قیام خوښ کړی.

**[۳۰۰] دَحضرت صدیق اکبر رضي الله عنه عمل**

۴۶۹۰-[۱۳] ()[۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ، [۲] فَإِذَا عَائِشَةُ ابْنَتُهُ مُضْطَجِعَةٌ، قَدْ أَصَابَهَا حُمّٰى، [۳] فَأَتَاهَا أَبُو بَكْرٍ، فَقَالَ: كَيْفَ أَنْتِ يَا بُنَيَّةُ؟ وَقَبَّلَ خَدَّهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت براء رضي الله عنه وايي يو ځل زه د يوي غزا نه حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره مديني نه د هغوئ کورته لاړم [۲] نوګورم چې د هغوئ لور بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها پرته ده او په تبه کې مبتلا ده [۳] نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه ته راغلو او پوښتنه يي وکړه څما لوري ستا طبيعت څرنګه دي او هغوئ د شفقت او محبت يا برعايت سنت د هغې مخې ته مچي (پپه) ورکړله. (ابو داؤد)

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/ كتاب الأدب/باب في قبلة الخد (رقم-۵۲۲۲)

حل اللغات: - ① مُضْطَجِعَةٌ: ملاسته وه، ② ثُمّ: تبه، ③ خَدّهَا: مخ دهغې.

تسهیلات:

قوله: وَقَبَّلَ خَدَّهَا:

**د لورو ښکولو جواز:** د بذل المجهود په حاشیه کښې دی وفی الفتح ۳۲۸/۱۰ یجوز التقبیل الولد الصغیر فی کل عضو منه وکذا الکبیر عند الاکثر مالم یکن عورة وکان ﷺ یقبل فاطمة ﷺ وکذا ابوبکر ابنته عائشة اهـ وبسطت انواع القبلة فی الشامی ۲۴۲/۵.

یعنی د ماشوم بچی هراندام ښکلول جائز دی اودغه شان داکثرو عالمانو په نیز د بالغ هم، خویه دې شرط چې عورت نه وی څکه چې نبی علیه السلام به بی بی فاطمه رضی الله عنها ښکلوله اودغه شان به ابوبکررضی الله عنه خپله لور عائشه رضی الله عنها ښکلوله اوپه شامی کښې ئې د ښکلولو قسمونه په تفصیل سره بیان کړی دی.

## [۳۶۹] اولاد دَ ریحان دَګل په شان دي

۳۶۹ — [۱۵] () [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ «النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أُتِيَ بِصَبِيٍّ فَقَبَّلَهُ، [۲] فَقَالَ: "أَمَا إِنَّهُمْ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ، [۳] وَإِنَّهُمْ لَمِنْ رَيْحَانِ اللَّهِ»". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ"

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو بچي راوستل شو حضور ﷺ هغه مچ کې [۲] او وي فرمايل پوهه شئ چې دا اولاد د بخل باعث او د بزدلي سبب دي [۳] ليکن په دي کې هيڅ شك نشته چې اولاد د الله عطا کرده نعمت او رزق هم دي. (شرح السنة)

حل اللغات: - ① مَبْخَلَةٌ: بخل توب، ② مَجْبَنَةٌ: بزدل توب، ③ رَيْحَان: خوشبودار ګل.

تسهیلات:

قوله: أَمَا إِنَّهُمْ مَبْخَلَةٌ:

**اولاد او بخل:** اولاددَ بخل ذریعه ده.دَدې مطلب دادې چه کله دَ سړی اولادنه وی نوهغه لاس کولاؤساتی هغه سره دَ څه څیز پرواه نه وی په کولاؤ مټ خرچ کوی خوچه کله دَ چرګودَبچو په شان اولاد پیداشی نوبیا سړې سوچ کوی چه اوس دَ دغه بچودَ پالنې دَپاره پیشه بچ کول اوساتل ضروری دی.دغه شان سړې بخیل شی او په کولاؤ مټ په خپل ذات باندې خرچ نه کوی.[المرقات،۴۶۹/۸]

[1]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۳۴٤۸

**قوله: مَجْبَنَةٌ، وَإِنَّهُمْ:**

**اولاد او بزدلی:** دَسړی چه کله اولاد نه وی نوهغه په پتو سترګو دَ جنګ میدان ته وردانګی نه دَهغه دَخپل خان فکروی اونه خپل فکروی.خوکه اولاد وی نودا سړی ډیرپه احتیاط سره ژوند تیروی اووائی چه روره زما واړه واړه بچی دی زه جنګیدل نه غواړم دغه شان هغه بزدل شی.[المرقات:۸/۴۶۹]

**قوله: رَيْحَانِ اللهِ:**

**په اولاد د ګل د اطلاق وجه:** یعنی دَ خوشبودار ګل په شان دا واړه ماشومان ګرخی راګرځی عام طور موربلار بچی پوزې سره لګوی او بوئی کوی ئی.دَ ریحان نه رزق هم مراد اخستې شی یعنی دا دَ الله تعالی دَ طرف نه رزق دې.[المرقات:۸/۴۷۰]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۳] حسنینو څخه د نبی علیه السلام محبت**

۳۳—[۱۶] (¹) [۱] عَنْ يَعْلَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «إِنَّ حَسَنًا وَحُسَيْنًا-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-اسْتَبَقَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[۲] فَضَمَّهُمَا إِلَيْهِ، [۳] وَقَالَ: "إِنَّ الْوَلَدَ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت یعلی ﷛ وایي چې یوه ورځ حضرت حسن ﷛ او حسین ﷛ د یوځای نه په منډه (ځغستا) حضور ﷺ ته راغلل [۲] نو حضور ﷺ دواړه غاړي سره ولنوړی [۳] و وي فرمایل بچي د بخل سبب دي او د بزدلي باعث دي (احمد)

**حل اللغات:-** ① اسْتَبَقَا: په منډه راغلل، ② فَضَمَّهُمَا: نزدې ئي کړل خان سره، ③ مَبْخَلَةٌ: بخل توب. ④ مَجْبَنَةٌ: بزدل توب.

**تسهیلات:**

**قوله: فَضَمَّهُمَا إِلَيْهِ:**

**د ماشومانو څخه مینه کول:** علماؤ لیکلی دی، چی دلته دمذکوره الفاظو نه د بچو سره دشفقت اومحبت او دتعریف اظهار مقصود دی، هرکله چی په وروستنی حدیث کی ددې الفاظو په ذریعه دبچو دبدی او کراهت اظهار شوی دی.

**[۳۳] درې عملونه او دهغې نتائج**

۳۳—[۱۷] (²) [۱] وَعَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ [۲]: «تَصَافَحُوا يَذْهَبِ الْغِلُّ، [۳] وَتَهَادَوْا تَحَابُّوا وَتَذْهَبِ الشَّحْنَاءُ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

---

¹) اخرجه ابن ماجه فی کتاب الأدب/باب بر الوالد، والإحسان إلی البنات (رقم-۳۶۶۶) واحمد فی المسند:۴/۱۷۲

²) اخرجه مالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی المهاجرة (رقم-۱۶)

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عطاء خراساني رحمه الله نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په خپلو کې د يو بل سره مصافحه کوئ چې په دي سره بغض او کينه ځي، [۳] او په خپلو کې يو بل ته هديه او تحفه ليږئ چې په دي سره محبت زياتيږي او دښمني ختميږي امام مالك رحمه الله دا روايت بطريق دارسال نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① الْغِلُّ: بغض او کينه، ② تَهَادَوْا: يو بل ته هديه (تحفه) ورکوئ. ③ الشَّحْنَاءُ: په زړه کښې د ننه کينه يعنی دښمنی،

**تسهيلات:**

**قوله: وَتَهَادَوْا تَحَابُّوا وَتَذْهَبِ الشَّحْنَاءُ:**

**د هديه ورکولو دوه فائدې:** ① د هديه اوډالی ورکولو دا فائده ده چې په خپل مينځ کښې مينه محبت پيدا کيږی

② دغه شان که په زړه کښې څه کينه او بغض يا عداوت وی نو هغه ختميږی.

## [۳۳۳] په مصافحې کولو سره د ګناه رژيدل

۳۳۳ - [۱۸] () [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ صَلَّى أَرْبَعًا قَبْلَ الْهَاجِرَةِ، فَكَأَنَّمَا صَلَّاهُنَّ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ، [۳] وَالْمُسْلِمَانِ إِذَا تَصَافَحَا لَمْ يَبْقَ ذَنْبٌ إِلَّا سَقَطَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې ماسپښين (غرمې) نه مخکې څلور رکعاته مونځ وکړو هغه ګويا دا څلور رکعاته په شب قدر کې وکړل [۳] او دوه مسلمانان چې په خپلو کې مصافحه کوي نو د دواړو په منځ کې څه ګناه باقي نه پاتې کيږي بلکې رژيږي دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① قَبْلَ الْهَاجِرَةِ: د غرمې نه مخکښې، ② سَقَطَ: غورزيږی، رجيږی. ③ ذَنْبٌ، ذنب ګناه ته وائی بعضې عالمان وائی دلته ترې مراد بغض او کينه ده

**تسهيلات:**

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:** ① مَنْ صَلَّى أَرْبَعًا "اى صلوة الضحى" يعنی د مونځ نه مراد د چاشت مونځ دې.

② قَبْلَ الْهَاجِرَةِ، "اى قبل نصف النهار" د نيمی ورځ نه مخکې يعنی کله چه د نمر تيز والې خور شی.

**قوله: فَكَأَنَّمَا صَلَّاهُنَّ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ**

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۸۹۵۵

**د مذکوره ثواب وجه:** دا ده ته به د لیله القدر په شپه کښې د مونخ کولو برابر ثواب ملاوشی، ځکه چه دا په سخته گرمی کښې سخت مشقت برداشت کړو او د چاشت مونځ نی ادا کړو حالانکه په دې وخت کښې خلق دنیوی ضروریاتو کښې مصروف وی.

# [۴] بَابُ الْقِيَامِ

## تعظیماً دَ اودریدو بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنا عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الرخصة في القيام: ۱.

② النهي عن الجلوس في مكان مخصوص للغير: ۲، ۳، ۷.

③ عدم القيام لأحد والنهي عنه: ۴، ۵، ۶، ۷.

④ استحباب ترك علامة للراجع إلى المجلس: ۸.

⑤ النهي عن الجلوس بين الإثنين: ۹، ۱۰.

⑥ استحباب القيام مع من يريد الذهاب من المجلس: ۱۱.

⑦ التفسح للجائي إلى المجلس: ۲، ۱۲.

**د قیام څخه مراد:** قیام دَ اودریدو په معنی کښې دې لیکن دلته دَمطلق اودریدو خبره نه ده بلکه دَ یوراتلونکی په وراندې دَ تعظیم دَپاره احتراماً دَ اودریدلو بیان دې.

**د چا د استقبال دپاره د اودریدو په حکم کښې (۲) مذاهب:**

د چا د تعظیم اواحترامَ دَپاره اودریدو کښې د احادیثو ،روایاتو او واقعاتوپه مینځ کښې د تعارض په وجه دَ علماؤ په مینځ کښې اختلاف راغلې دې

① دابن الحاج وغیره په نیز دَ یوسړی په راتګ باندې دَ احترام اواکرام په توګه باندې اودریدل جائزنه دی.

② دَچادَپاره احتراماً اودریدل جائز دی.

**داول ډلی دلائل:** ① عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «لَمْ يَكُنْ شَخْصٌ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، وَكَانُوا إِذَا رَأَوْهُ لَمْ يَقُومُوا، لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذَلِكَ». (¹)

② عَنْ مُعَاوِيَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «مَنْ سَرَّهُ

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية قيام الرجل للرجل (رقم- ۲۷۵۴)

أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ»"(۱)

④ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُتَّكِئًا عَلَى عَصًا، فَقُمْنَا لَهُ فَقَالَ: "لَا تَقُومُوا كَمَا يَقُومُ الْأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا»"(۲)

**استدلال:** په دې احادیثوکښې د چا د تعظیم دپاره په اودریدو کښې سخت وعیدونه دی او دا دَ اعاجم کفارو اغیاروطریقه گرخولوسره منع کړې شوې ده.

**داول فریق د دلائلوجواب:** د نهی عن القیام احادیث د دې وجې راغلی دی چې نبی علیه السلام دَ عجمیانو په طرز باندې دَ قیام نه منع فرمائیلې ده اوهغه یقینًا منع دی ځکه چه په دې کښې لوئی سړې په مجلس کښې ناست وی ترکومې چه هغه ناست وی باقی خلق دَهغه په تعظیم کښې ولاړوی بلکه هغوی دَ اودریدو پابند وی هغوی په خپله مرضئی سره کیناستې نه شی.اودمجلس وډیره به دا غوښتل بلکه حکم به نې ورکولو.دَداسې قیام په حرمت اوبدعت کیدوکښې څه شك دې؟ داخودَتولو په نیزحرام دی.خوکه دَیوصاحب فضل اوبزرگ سړی دَپاره محض دَ احترام اودینی محبت په بنیاد باندې اودریږی اوهغه عالم فاضل سړې دغه قیام خوښوی هم نه نودَ جمهور علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه داسې اودریدل جائزدی.

**د دویم فریق دلائل:** ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ، بَعَثَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَيْهِ، وَكَانَ قَرِيبًا مِنْهُ، فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ، فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْمَسْجِدِ، قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِلْأَنْصَارِ: " قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ»"(۳)

کوم علماء چه دې قیام ته جائز وائی هغوی دَ حضرت سعد ﷺ دَحدیث نمبر(۳۹۸۵) نه استدلال کوی

په دې حدیث کښې د "قوموالی سیدکم" الفاظ راغلی دی.دې څخه اودریدل ثابتیږی.

② عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَشْبَهَ سَمْتًا وَهَدْيًا وَدَلًّا. وَفِي رِوَايَةٍ: حَدِيثًا وَكَلَامًا بِرَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِنْ فَاطِمَةَ، كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی قیام الرجل للرجل (رقم-۵۲۲۹) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة قیام الرجل للرجل (رقم-۲۷۵۵)واحمد فی المسند: ۴/۱۰۰

(۲) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی قیام الرجل للرجل (رقم-۵۲۳۰) وابن ماجه فی کتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۸۳۶)

(۳) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم من الأحزاب، ومخرجه إلی بنی قریظة ومحاصرته إیاهم (رقم-۴۱۲۱) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب جواز قتال من نقض العهد، وجواز إنزال أهل الحصن علی حکم حاکم عدل أهل للحکم (رقم-۶۴ - (۱۷۶۸))واحمد فی المسند: ۷۱/۳

قَامَ إِلَيْهَا»(¹)

③ دَحضرت عکرمه ﷺ په راتګ باندې حضورپاك اودريدلې وو

④ دَحضرت عدي ﷺ په راتګ باندې حضورپاك اودريدلې وو

**دويم فريق د دلائلو جواب**: دَحضرت سعد ﷺ واقعه دَهغه په مجبورئي باندې حمل کوي چه هغه زخمي وو دَ خپلې سورلئي نه پخپله نه شو کوزيدې په دې وجه حضورپاك اوفرمائيل "قوموا الى سيدكم" يعني دَ ده دَامداد دَپاره اودرېږئي که دَاحترام اوتعظيم خبره وې نو حضورپاك به "قوموا لسيدكم" فرمائيل. باقي دَحضرت عکرمه ﷺ اوحضرت عدي ﷺ روايات سخت ضعيف دي.

**انصافي خبره**: ① علامه طيبي ﷫ اومحي السنة ليکلي دي چه صلحاؤ علماؤ اوبزرگانو اولياء کرامو دَپاره دَ ديني محبت په بنياد باندې اودريدل جائز دي. [الكاشف: ۹/۴۹]

② مطالب المؤمنين: دَ قنيه په حوالې سره نقل کړي دي چه کوم سړې پخپله قيام غواړي نو دَهغه خان خوښئي دَ وجې نه دَهغه دَپاره قيام مکروه دې ليکن چه کوم سړې صاحب احترام وي اوهغه قيام غواړي هم نه نو دَهغه دَپاره به اودريدل مکروه نه وي.

③ قاضي عياض مالکي ﷫ ليکي چه په احاديثوکښې دَممنوعه قيام نه هغه قيام مراد دې چه عجمي خلقو به کولو چه دَ ناست سړي په احترام کښې به ځه خلق تر آخره پورې ولاړ وو اوهغوي به دَدې پابندوو دا مکروه اوممنوع دې. [المرقات: ۸/۴۷۴]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٤٦٩٥] دَحضرت سعد ﷺ دَپاره دَمجلس والو پاسيدل

٤٦٩٥ ـ [١] (²) [١] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ، [٢] بَعَثَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَيْهِ، وَكَانَ قَرِيبًا مِنْهُ، [٣] فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ، فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْمَسْجِدِ، [٤] قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِلْأَنْصَارِ: "قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٥] وَمَعْنَى الْحَدِيثِ بِطُولِهِ فِي "بَابِ حُكْمِ الْإِسَرَاءِ".

**ترجمه**: [١] حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي کوم وخت چې بنو قريظه د حضرت سعد ﷺ حکم او ثالث جوړيدو باندې را خکته شو [٢] نو رسول الله ﷺ يو سړي حضور ﷺ په

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما جاء في القيام (رقم-٥٢١٧) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل فاطمة رضي الله عنها (رقم-٣٨٧٢)

²) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب مرجع النبي صلى الله عليه وسلم من الأحزاب، ومخرجه إلى بني قريظة ومحاصرته إياهم (رقم-٤١٢١) ومسلم في كتاب الجهاد والسير/باب جواز قتال من نقض العهد، وجواز إنزال أهل الحصن على حكم حاكم عدل أهل للحكم (رقم-٦٤ - (١٧٦٨))واحمد في المسند: ٧١/٣

سعد رضي الله عنه پسي ولیږلو چې هغه راولي او هغه په راتلو سره د بنو قریظه مطالبه فیصله کړي ، هغه وخت حضرت سعد رضي الله عنه د حضور ﷺ قیامګاه ته نزدې تشریف فرماوو ۳ هغه په خرباندې سوریدو سره راغلواو کوم وخت چې مسجد ته نزدې را ورسیدې ۴ نو رسول الله ﷺ (د هغه په لیدو سره) وفرمایل اې انصارو! تاسو خپل سردار د پاره ودریږئ (بخاري ، مسلم) ۵ او دا حدیث په پوره تفصیل سره د قیدیانو په باب کې تیر شوې دې.

## [۳۳۳] څوک دَهغه دَ ځائې نه پاسول او پخپله د کیناستلو حرمت

٤٦٩٣-[٢] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ ٣ وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ٢ داسې کول نه دي پکار چې یو سړي په کوم ځاي کې ناست وي بل سړي یې د هغه ځاي نه ولاړولو سره خپله هلته کیني ٣ البته د ناستې ځاي خلاص ساتئ او راتلونکي ته ځاي ورکوئ چې د چا د اودریدو حاجت پاتې نشي (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَفَسَّحُوا: فراخې راولئ، ② تَوَسَّعُوا: ځائې و رکړئ یوبل له.

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا:**

**تقديري عبارت:** بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه د "ولكن تفسحوا وتوسعوا" اصل عبارت داسی دې "ولكن ليقل تفسحوا وتوسعوا" په دې صورت کښې به ترجمه دا شی چه دۀ له دا وئیل پکار وو چه کولاؤ کینئ او راتلونکی خلقو ته ځائې ورکړئ. (مرقات ج۹، ص۸۳)

**د مذکوره جملې مفهوم:** دا تاکید دې "ومعناه لا تتضاموا بل يقرب بعضكم من بعض ليتسع المجلس" چه بالکل جوخت او یوخی مه کینئ بلکه یو بل ته نیزدی نیزدی شئ چه مجلس کښې وسعت پیدا شی او نورو خلقو ته هم د ناستې ځائې ملاو شی. لقوله تعالى: يا أيها الذين آمنوا اذا قيل لكم تفسحوا في المجالس فافسحوا يفسح الله لكم. (مجادله:۱۱)

**د بل چا د پاسولو او خپله دهغه په ځائې کښې د کیناستلو حکم:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې مذکوره ممانعت د نهی تحریمی په توګه دې چه د کوم مطلب دا دې چه کوم کس جمعه یا اخترونو کښې مخکې راشی او کینې نو ددې ځائې حقدار هم دغه کس دې او بل کس له ددې پاځول حرام دی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب: لا يقيم الرجل الرجل من مجلسه (رقم-٦٢٦٩) ومسلم فی کتاب السلام/باب تحريم إقامة الإنسان من موضعه المباح الذي سبق إليه(رقم-٢٨ - (٢١٧٧)والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب کراهية أن يقام الرجل من مجلسه ثم يجلس فيه (رقم-٢٧٤٩) واحمد فی المسند:١٧/٢

**استثنائي صورت:** بعضې حضراتو ددې ممانعت نه يو څو مواقع مستثنی کړی دی په هغې کښې بعضې دا دی.
کوم کس چه په مسجد کښې يو خاص ځائی کښې کينی او فتوی ورکوی يا د قرآن تعليم ورکوی نو په داسې صورت کښې هغه کس ددې ځائی ډير حقدار دې. ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه دا خبره محل غور ده ځکه چه په حديث مبارک کښې راځی چه کوم کس په مسجد کښې ځان دپاره يو ځائی خاص کوی نو په دې کښې د ريا کاری شبه ده کوم چه د اخلاص منافی ده. (مرقات ج۹، ص۱۷۳)

**[۳۷۶] دَمجلس نه دَ څه وخت دَپاره دَ پاسيدو نکی دَ ځائی حکم**

۳۷۶ـ[۳] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «مَنْ قَامَ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] او د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د خپل ځای نه اودريدو سره لاړ شی او بيا هغه ځائ ته واپس را شی نو د هغه ځاي زيات حقدار به هغه وي .(مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ:

**په خپل ځائې د واپس کيناستو په حکم کښې دوه صورتونه:** ① که يوسړې دَ مجلس نه دَ څه وخت دَپاره پاسيدو لاړو که هغه په خپل ځائی باندې خپله څه نښه کيخوده يا زر واپس شو نو داسړې دَ خپل ځائی دَ ټولونه زيات مستحق اوحقدار دې
② که داسړې دَ ډيروخت پورې رانغلواودَهغه په ځائی باندې بل څوک کيناستو نواوس دَهغه حق باقی پاتې نه شو. دغه شان که يوسړی ځائی گير کړو او په هغې باندې ئې څادر وغيره کيخودوخودَ اوږدوخت دَپاره دَ هغه ځائی نه غيب پاتې شو نوبيابه هم دَهغه دغه ځائی دَهغه دَ لاس نه اوځی سره دَدې چه هغه نښه کيخودې وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۷۸] د نبی عليه السلام دَخپل ځان دَپاره د اودريدو بد ګڼڼل**

۳۷۸ـ[۴] ()[۱] عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «لَمْ يَكُنْ شَخْصٌ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] وَكَانُوا إِذَا رَأَوْهُ لَمْ يَقُومُوا، لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذَلِكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا

[1] اخرجه مسلم فی كتاب السلام/باب تحريم إقامة الإنسان من موضعه المباح الذی سبق إليه(رقم) ۲۷ - (۲۱۷۷) والترمذی فی كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا قام الرجل من مجلسه ثم رجع إليه فهو أحق به (رقم-۲۷۵۱) وابن ماجه فی كتاب الأدب/باب من قام عن مجلس فرجع فهو أحق به (رقم-۳۷۱۷)
[2] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية قيام الرجل للرجل (رقم-۲۷۵۴)

حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وايي د صحابه ﷺ په نز د رسول الله ﷺ نه زيات محبوب او عزيز هيڅ بل سړي نه وو [۲] ليکن (د دي محبت او تعلق باوجود) صحابه ﷺ چې به د حضور ﷺ ليدي نو پاڅيدل به نه ځکه چې هغوئ پوهيدل چې حضور ﷺ دا پاڅيدل نه خوښوي دا روايت ترمذي نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث صحيح دي

**تسهيلات:**

**قوله:** لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذٰلِكَ:

**د نبی عليه السلام د بد گڼړلو دوه وجوهات:** ① د نبی عليه السلام د اودريدو بد گڼړل د "سدالذرائع" د قبيلې څه وو. که چرې حضورپاك دې قيام ته رواج ورکړې وې نو معلومه نه ده چه خبره به دچرته نه چرته رسيدلې وه.

② د نبی عليه السلام دخپل ځان دپاره قيام خوښ نه کړو دادَ حضورپاك کمال انکساری اوتوضع وه

خلاصه دا چې مختلف اوقاتو اومقاماتو اومختلف حالاتو ته به کتلې کيږي چه په کومو صورتونو کښې دَقيام ممانعت دې او په کومو صورتونوکښې اباحت دې تفصيل وړاندې تيرشوي دي.

**[۳۳] خلق خپلې مخې ته دَ اودرولو باره کښې وعيد**

۳۳—[۵] (۱) [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا [۳] فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاويه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې دا خبره خوښوي چې خلق د هغه مخې ته سيدها ولاړ وي [۳] نو هغه ته پکار دي چې هغه د خپلې ناستې ځاي په دوزخ کې تيار کړي. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** -① سَرَّهُ: خوښوی ئې، ② يَتَمَثَّلَ: بتان شی يعنی نيغ اودريږی، ③ مَقْعَدَهُ: د ناستې ځائې،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ:

**په جهنم کښې د ځائې جوړولو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يعنی کوم سړې چه د خپل ځان دپاره دا خوښوی چه خلق د هغه مخکښې د تصوير په شکل باندې اودريږی نو هغه دې

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی قيام الرجل للرجل (رقم-۵۲۲۹) والترمذی فی كتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية قيام الرجل للرجل (رقم-۲۷۵۵) واحمد فی المسند: ۴/۱۰۰

خپله استوګنه په جهنم کښې جوړه کړي یعنی هغه دې دا اوګڼي چه د هغه استوګنه په جهنم کښې ده،

② یعنی هغه جهنم ته په خپله استوګنه کښې داخل شو، په یو حدیث کښې دا دي چه الله پاک د هر چا دپاره دوه دوه استوګنې جوړې کړې دي یو په جنت کښې او یو په دوزخ کښې، که هغه سړې دنیا ته د راتلو نه پس مسلمان وي یا کافر جوړ شي، په کفارو باندې د حجت قائمولو دپاره چه هسې نه هغوی داسې اوائي چه یا الله تا زمونږ د شروع نه په جنت کښې څه حصه نه وه کیخودله.

**[۴۷۰۰] د نبی علیه السلام خپل ځان دپاره د اودریدو صحابو لره منع کول**

۴۷۰۰ - [۶] ()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُتَّكِئًا عَلَى عَصًا، [۲] فَقُمْنَا لَهُ [۳] فَقَالَ: "لَا تَقُومُوا كَمَا يَقُومُ الْأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه ﷺ وايي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ عصاء مبارکه باندې سهاره کولو سره بهر تشریف راوړو [۲] نو مونږ د حضور ﷺ په احترام کې ودریدو [۳] حضور ﷺ وفرمایل تاسو خلق داسې مه درېږئ څرنګه چې عجمي خلق دریږي چې په هغوئ کې بعضې د بعضو تعظیم کوي. (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَقُومُوا كَمَا يَقُومُ الْأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا:

**د چا د تعظیم دپاره د قیام د عدم جواز دلیل:** دا حدیث د قول اول مستدل دې چه د عجمي خلقو دا طریقه وه چه کله به ئې یو سردار یا لوئې کس اولیدلو نو اودریدل به او بیا به دهغه مخې ته د ادب په توګه لاس ترلې ولاړ وو. او دلته د حدیث نه د مطلقًا قیام ممنوع کیدل ثابتیږي بلکه هغه قیام ممنوع دې کوم چه د شان وشوکت د اظهار او د تکبر دپاره وي یا نبی کریم ﷺ د دې وجهې نه منع کړې وي چه کیدې شي چه صحابه کرام د نبی کریم ﷺ په مخکې بلکل نیغ ولاړ وو په کوم کښې چه د زمانه جاهلیت سره مشابهت وي څکه ئې منع وفرمائیله.

**[۴۷۰۱] دابوبکره دپل په ځائې کښې د کیناستو څخه انکار**

۴۷۰۱ - [۷] ()[۲] وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] جَاءَنَا أَبُو بَكْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي شَهَادَةٍ، [۳] فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ، فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ [۴] وَقَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْ ذَا، [۵] وَنَهَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَمْسَحَ الرَّجُلُ يَدَهُ بِثَوْبِ مَنْ لَمْ يَكْسُهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في قيام الرجل للرجل (رقم-۵۲۳۰) وابن ماجه في كتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۸۳۶)

[2]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الرجل يقوم للرجل من مجلسه (رقم-۴۸۲۷) واحمد في المسند:۴۴/۵

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعيد ابن ابي الحسن ﷫ چې يوجليل القدر او ثقه تابعي او د حضرت حسن بصري ﷫ ورور دي دی وايي[۲] يوه ورځ حضرت ابوبکره صحابي مونږ ته يوه داسې مقدمه کې شاهدی د پاره تشريف راوړو (چې په هغه کې شاهد وو)[۳] يوسړي د هغه په احترام کې خپل ځاي پريخودي ودريدلو (چې هغه په هغه ځاي کيني) ليکن هغه هلته دناستي نه انکار وکړو[۴] او وي فرمايل رسول الله ﷺ د دې نه منع فرمايلي ده يعنی حضور ﷺ په هغه ځاي ناستي نه منع فرمايلي ده چيرته چې يو سړي د مخکې نه ناست وي او عارضي طور سره هغه ځاي نه ولاړ شوي وي [۵] او حضور ﷺ د دې نه هم منع فرمايلي ده چې يو سړي د داسې سړي کپړي سره خپل لاس پاك کړي چې هغه ورته کپړه نه ده اغوستي يعنی دبل په مال کې بې اجازته تصرف وکړي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ:

**دابوبکره دانکار وجه:** حضرت ابوبکره ﷛ څکه انکاراوکړو چه کيدې شی چه هغه سړې دَ زړه نه خوشحاله نه وو صرف دَ رعايت دَ وجې نه اودريدو اوځائی ئې پريخودو يا حضرت ابوبکر ﷛ دَ تقویٰ او دَ احتياط په بنيادباندې داسې اوکړل يابه څه بل څه عارضی وجه وی څکه چه دادَ عدالت اومحکمه عدالت ماحول وو. [المرقات، ۸/۴۷۷]

**[۴۷۰۳] مجلس ته دواپس راتللوپه صورت کښې د نښې کيخودل**

۴۷۰۳—[۸] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا جَلَسَ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ[۲] فَقَامَ، فَأَرَادَ الرُّجُوعَ، نَزَعَ نَعْلَهُ أَوْ بَعْضَ مَا يَكُونُ عَلَيْهِ[۳] فَيَعْرِفُ ذَلِكَ أَصْحَابُهُ فَيَثْبُتُونَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء ﷛ وايي رسول الله ﷺ چې به تشريف راوړو مونږ به ځيني چاپيره کينستو[۲] او بيابه حضور ﷺ د واپس راتلو ارادي سره (کورته تلو د پاره) پاڅيدلو نو خپل ځاي باندې به يي څپلی کيخودلي او خپې آبلې پښې به تلی يا په خپل بدن باندې به يې څه شي وولکه پټو وغيره هغه به يي په هغه ځاي پريخودي [۳] په دې سره به د حضور ﷺ صحابه ﷡ پوهه شول چې حضور ﷺ به بيا مجلس ته راځي نو هغوئ به په خپل خپل ځاي ناست وه (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① نَزَعَ: اوئې باسله. ② فَيَثْبُتُونَ: په خپل ځائې ناست پاتې کيدل

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب إذا قام الرجل من مجلس ثم رجع (رقم- ۴۸۵۴)

**تسهيلات:**

**قوله: وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ:**

**د حوله څخه مراد:** ددې نه مراد د نبی کريم ﷺ نبی طرف، ګس طرف ته او مخامخ کيناستل مراد دی، د نبی کريم ﷺ ورستو کيناستل مراد نه دی څکه چه په دې صورت کښې د حلقې په مينځ کښې کيناستل لازميږی او ددې نه ممانعت راغلې دې.

**قوله: نَزَعَ نَعْلَهُ:**

**د خپه ابله ګرځيدو حکم:** امام طيبی رحمه الله فرمائی چه ددې نه دا معلوميږی چه نبی کريم ﷺ به خپې ابله ګرځيدلو او صحابه کرامو ته به ئې هم ښپې ابله ګرځيدلو حکم ورکولو. ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه په دې کښې هيڅ بعد نشته چه نبی کريم ﷺ خپې ابله د نورو خلقو کورنو ته هم تلو. (مرقات)

**[۴۷۰۳] دَدوو کسانو په مينځ کښې د کيناستو ممانعت**

۴۷۰۳ - [۹] (¹) [۱] وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] د هيڅ سړي د پاره دا حلال نه دي چې د دوو ناستو سړو په منځ کې د هغوئ د اجازې نه بغير جدايي واچوي. (ترمذي ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا:**

**د تفريق په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① بعضې علماؤ دَ تفريق نه دَ دوو سړو په مينځ کښې نفاق او تفرقه پيداکول مراد اخستې دی. بيا خوبه مطلب ډيرواضح شي. راتلونکی حديث کښې دی که چرې دا دواړه ملګری اجازت ورکوی نوبيا دَ چا په مينځ کښې دَ چا کيناستل جائز دی. بهرحال دَدې قسم احاديثو تعلق دَ ازدحام حالت سره دې.

② چې دوه ملګری په خپل مينځ کښې ناست دی په دې کښې. دريم سړې راشی او دَهغوی په مينځ کښې ورننوځی کينی اوپه دواړو کښې جدائی اوکړی دامنع ده. څکه چه ممکن ده چه هغوی دواړه خپل مينځ کښې څه ضروری خبره کوی يا هسې هغوی ويريږی يا بل څه ترجيحی وجه موجود وی. که داسې څه مجبوری نه وی نوبيا په داسې کيناستوکښې څه بديت نشته دې.

---

(¹) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی الرجل يجلس بين الرجلين بغير إذنهما (رقم-٤٨٤٥) والترمذی فی السنن رقم الحديث ٢٧٥٢ واحمد فی المسند ٢/ ٢١٣

[۴۷۰۴] د دوو کسانو په مینځ کښې د کیناستو څخه ممانعت

۴۷۰۴—[۱۰] (¹) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ [۲] أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«لَا تَجْلِسْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن شعیب ﷫ د خپل پلار نه او هغه نیکه دادا نه نقل کوي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل د مخکې نه ناست د دوو سړو په منځ کې مه کینه خو دا چې د هغوئ اجازت حاصله شي. (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حدیث پشان مضمون وړاندې حدیث نمبر ۴۷۰۲ کښې تیرشوشرح ئې هم هلته اوګوره.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۴۷۰۵] دَمجلس په ختمیدو د قیام جواز

۴۷۰۵—[۱۱] (²) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَجْلِسُ مَعَنَا فِي الْمَسْجِدِ يُحَدِّثُنَا [۲] فَإِذَا قَامَ قُمْنَا قِيَامًا حَتَّى نَرَاهُ قَدْ دَخَلَ بَعْضَ بُيُوتِ أَزْوَاجِهِ».

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ به زمونږ سره مسجد کې ناست وو خبري يې کولو [۲] بیا چې مجلس نه به ولاړ شو نو مونږ به هم ودریدو او ډیر وخته پورې به ولاړ وو تردې چې مونږ به ولیدی چې حضور ﷺ خپلو بيبيانو مبارکو کې د يوې بي بي مبارکي کورته تشريف يووړي.

**تسهیلات:** **قوله: قُمْنَا قِيَامًا:**

**د مجلس ختمه په فراغت اودریدل:** دَدې قیام تعلق هغه قیام سره نه دې د کوم ممانعت چه راغلې دې بلکه دلته قیام دَدې دپاره اوکړې شو چه مجلس ختم شو. لهذا اوس دَ کیناستو څه مقصد نه وو نودَتلودپاره اودریدل. لیکن دَقیام په حالت کښې به صحابه کرامو څه انتظارکولو خکه چه کیدې شي چه حضورپاك بیا مجلس ته راشي یا هغوی ته بل څه ضرورت راپیښیږي په دې وجه به صحابه کرامو لږ انتظار کولو. [المرقات، ۸/۴۷۹]

[۴۷۰۶] مجلس ته د راتلونکی سړی خاطر مدارات کول

۴۷۰۶—[۱۲] (³) [۱] وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «دَخَلَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَاعِدٌ [۳] فَتَزَحْزَحَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ

¹) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی ال رجل يجلس بين الرجلين بغير إذنهما (رقم-٤٨٤٤)
²) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٨٩٣٠
³) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٨٩٣٣

اللهِ! إِنَّ فِي الْمَكَانِ سَعَةً، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "إِنَّ لِلْمُسْلِمِ لَحَقًّا إِذَا رَآهُ أَخُوهُ أَنْ يَتَزَحْزَحَ لَهُ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت واثله ابن خطاب رضي الله عنه وايي [۲] يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو سړي حاضر شو هرکله چې رسول الله ﷺ مسجد کې تشريف فرماوو [۳] رسول الله ﷺ هغه سړي ته ځاي ورکولو د پاره خپل ځاي نه حرکت وکړو او يو طرف ته شو هغه سړي عرض وکړو يارسول الله! په مکان کې د ناستي ځاي کافي فراخه او کشاده دي (زه به چيرته کينم تاسو ﷺ زما د پاره د خپل ځاي نه د ښوريدو زحمت مکوئ) [۴] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا د مسلمان حق دي چې هرکله هغه يو مسلمان ورور مجلس ته يا هغه ته راتلونکې ويني نو د ځاي د فراخي او تنگي نه قطع نظر کولو سره هغه د پاره خپل ځاي پريږدي او يو طرف ته وښوري (يعني د راتلونکي د پاره د خپل ځاي نه حرکت کول او ښوريدل دراصل د هغه اکرام او اعزازدی ، اويو مسلمان خپل دويم مسلمان وروربانډی دهغه اکرام او اعزاز په ځای کولو ورباندی حق لری ) دا دواړه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دي .

**حل اللغات:** - ① فَتَزَحْزَحَ: لږ شان اوخوزيدو (دخپل ځائي نه).

**تسهيلات:**

**قوله: يَتَزَحْزَحَ:**

**مجلس ته د راتلونکې کس ظهير کول:** يعنی دَ راتلونکی سړی دَپاره حضورپاك دَخپل ځائی نه لږ شان اوخوزيدو هغه سړی اووئيل يارسول الله ځائی شته تاسو مه خوزيږئ.په دې بانډې حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه دَ يونوی راتلونکی مسلمان داحق دې چه دَ مجلس رونړه دَهغه په کتو سره لږ شان اوخوزيږی په دې کښې يوخو ښه تهذيب دې بل دا چه دَهغه سړی مجلس ته په راتلوباندې اهميت ورکول دی په کوم سره چه به هغه ډيرخوشحال شی.چه دغه خلقو زما راتګ بوج اونه ګنړلو بلکه ماته ئی اهميت راکړو دې سره مينه زياتيږی. [المرقات: ۸/۴۸۰]

# [۵] بَابُ الْجُلُوسِ وَالنَّوْمِ وَالْمَشْيِ

## دَ کيناستو سملاستو او تلوبيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اربعة وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① هيئات جلوس النبي ﷺ : ۱، ۷، ۸، ۹.

② هيئات إضطجاع النبي ﷺ و موضع الإضطجاع: ۲، ۶، ۱۰، ۱۱.

③ النهي عن بعض الإضطجاع: ۳، ۴، ۱۲، ۱۳، ۲۳، ۲۴.

④ الزجرعلى بعض أقسام المشي: ۵، ۲۰، ۲۱.

⑤ النهي عن النوم في بعض الأمكنة: ۱۴، ۱۵.

⑥ النهي عن بعض أقسام الجلوس: ۱۶، ۱۸، ۱۹.

⑦ أفضيلة بعض المجالس : ۱۷، ۲۲.

**د عنوان مناسبت توتيب:** دلته په ذکر شوی ترتیب سره د دې درې څيزونو ذکر د اکثر عادت موافق دې خکه چه انسان د خوراك وغيره طرف ته پاڅی او ورځی

**دنوم تعريف:** په اعصابوچې کومه استرخاء راځی ددې استرخاء اعصاب په وجه چه په قوت دراکه کښې چې کوم فترة او ضعف راشی هغې ته نوم وائی.(كما فى الاشعة ٤/٣٣)

**د اسلام ښکلې ژوند:** اسلام چونکه کامل مکمل بلکه اکمل ضابطه حيات دې په دې وجه دې دَ انسانی ژوندون دَ هرې شعبې کفالت کوی.هم په دې سلسله کښې اسلام خپلو منونکو ته دَ اوده کيدو پاسيدو تلو راتلو اوناستې ولاړې طریقه ښائی که يو سړې په معاشرتی ژوند کښې راتلونکودې څيزونو کښې دَ شريعت نه رهنمائی نه حاصلوی نولامحاله دَنورو قومونو په تقليد کولو کښې به ورکيدو سره گمراه شی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۷۰۶] داحتباء په صورت کښې د کيناستو جواز

۴۷۰۶—[۱]( ) [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ مُحْتَبِيًا بِيَدَيْهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**توجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایی [۲] چې ما رسول الله ﷺ د خانه کعبي په صحن کې د خپلو لاسونو په ذريعه په پښو ناست ليدلي دي .(بخاري)

( ) اخرجه البخاري فى كتاب الاستئذان/بباب الاحتباء باليد، وهو القرفصاء (رقم-۶۲۷۲)

**حل اللغات:** - ① فِنَاء: صحن، ② مُحْتَبِيًا: راټول کيناستل چه زنګنونه ولاړوی او لاسونه ئې دخپو نه راتاو کړی وی.

**تسهيلات: قوله: مُحْتَبِيًا**

**د احتباء تعريف:** چه د سړی مقعد په زمکه باندې وی او زنګونونه ئی ولاړوی مخ سره نيزدې وی اودواړه لاسونه يا څه پټنۍ يا څادر د زنګونونونه راتاؤ کړې دی کيناستوته احتباء وائی.په حديث کښې صرف د دوؤ لاسونوسره د احتباء ذکرکړې شوې دې ليکن د احتباء صورت عام دې که هغه په لاسونوسره وی اوکه په کپړې سره وی

**د احتباء دوه صورتونه اودهريوحکم:** ① که چرته چاسره پرتوګ او پاجامه وی نو په دې صورت کښې ستر پرده نه ښکاره کيږی اواحتباء جائزيا مستحب ده.

② که چا سره پرتوګ اوپاجامه نه وی بلکه د احرام دوه څادرې وی يا لنګ وی او په دې کښې سړې د احتباء په شکل کښې کينی نو په دې کښې ستر ښکاره کيږی.لهذا په داسې انداز سره کيناستل منع دی

**[۴۷۰۸] [۴۷۰۸] په استلقاء سره د ناست جواز**

۴۷۰۸ — [۲] () [۱] وَعَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ عَمِّهِ قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَسْجِدِ مُسْتَلْقِيًا وَاضِعًا إِحْدَى قَدَمَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عباده ابن تميم تابعي رحمه الله خپل تره (حضرت عبد الله ابن زيد انصاري صحابي رضي الله عنه) نه روايت کوي [۲] هغه اوويل ما يوه ورځ رسول الله ﷺ په مسجد کې داسې سم پروت وليدلو چې دحضور ﷺ يوه پښه په بلې پښې پرته وه (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُسْتَلْقِيًا: نيغ څملاستل.

**قوله: مُحْتَبِيًا بِيَدَيْهِ:**

**د احتباء تعريف:** چه د سړی مقعد په زمکه باندې وی او زنګونونه ئی ولاړوی مخ سره نيزدې وی اودواړه لاسونه يا څه پټنۍ يا څادر د زنګونونونه راتاؤ کړې دی کيناستوته احتباء وائی.په حديث کښې صرف د دوؤ لاسونوسره د احتباء ذکرکړې شوې دې ليکن د احتباء صورت عام دې که هغه په لاسونوسره وی اوکه په کپړې سره وی

**د احتباء دوه صورتونه اودهريوحکم:** ① که چرته چاسره پرتوګ او پاجامه وی نو په دې صورت کښې ستر پرده نه ښکاره کيږی اواحتباء جائزيا مستحب ده.

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الاستئذان/باب الاستلقاء (رقم-۶۲۸۷) ومسلم فی کتاب الأشربة/باب فی إباحة الاستلقاء ووضع إحدی الرجلين علی الأخری (رقم-۷۵ - (۲۱۰۰) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الرجل يضع إحدی رجليه علی الأخری (رقم-۴۸۶۶)

④ که چا سره پرتوگ اوپاجامه نه وی بلکه دَ احرام دوه څادرې وی یا لنگ وی او په دې کښې سرې دَ احتباء په شکل کښې کینی نو په دې کښې ستر ښکاره کیږی.لهذا په داسې انداز سره کیناستل منع دی

**[۴۷۰۶] څپه په څپه کیښودو سره د نیغې سملاستو ممانعت**

۴۷۰۶—[۳] (¹) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى [۳] وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷛ وایي [۲] چی رسول الله ﷺ وفرمایل په تاسو کې دې یو سړي داسې نه پریوځي چې یوه پښه درولو سره په هغه دویمه پښه کیږدي [۳] په داسې حال کې چې هغه ستوني ستغ وي .(مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ: په ملا باندې نیغ څملاستل.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى:

**د مذکوره ناستې کیفیت او حکم:** د مذکوره ناستې کیفیت داسې دې چه یوسړې ستونی ستغ سملی یوه څپه اودروی اود هغې په زنگون باندې بله څپه کیږدی په کوم سره چه د لاندې پوره علاقه ښکاری.که سړې په احرام کښې وی که په ازاربند کښې وی نوداسې کول منع دی خوکه دغه سړی پرتوگ اچولې وی یا دَ ستر انتظام شوې وی نوبیا داسې سملاستل جائزدی.

**د ممانعت وجه:** حدیث کښې په یوخاص طریقه سره دَ سملاستونه منع کړې شوې ده خکه چه په دې کښې ستر ښکاره کیږی.

**[۴۷۰۷] د استلقاء څخه ممانعت**

۴۷۰۷—[۴] (²) [۱] وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: "[۲] «لَا يَسْتَلْقِيَنَّ أَحَدُكُمْ ثُمَّ يَضَعُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت جابر ﷛ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] چې په تاسو کې دې څوك داسې ستوني ستغ نه پریوځي چې یوه پښه ودروي او دویمه پښه باندې کیږدي .مسلم

**حل اللغات:** - ① لَا يَسْتَلْقِيَنَّ: نیغ دې نه څملي.

(¹) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب اشتمال الصماء والاحتباء فی ثوب واحد(رقم-۷۰ - (۲۰۹۹) ومسلم فی کتاب السنة/باب ما یدل علی ترک الکلام فی الفتنة (رقم-۴۶۶۵) واحمد فی المسند: ۲۹۹/۳

(²) اخرجه مسلم فی کتاب الأشربة/باب اشتمال الصماء والاحتباء فی ثوب واحد(رقم-۷۰ - (۲۰۹۹)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَسْتَلْقِيَنَّ أَحَدُكُمْ ثُمَّ يَضَعُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى:

**اشکال:** په دې حديث کښې او په ماقبل د عباد بن تميم حديث نمبر ۴۷۰۸ کښې د مستلقيا اجازت معلوميږي او د حضرت جابر ﷺ د حديث نمبر ۴۷۰۹ او ۴۷۱۰ دواړو حديثونو نه نهي معلوميږي؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① نبی کريم ﷺ به د ضرورت په بناء کړې وی چه نبی کريم ﷺ ډير ستړی وو نو آرام او راحت دپاره به ئې داسې کړی وی، نو ددې نه دا خبره معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ به په وقار تواضع سره د پړلت په حالت کښې کيناستلو.

② د استلقاء دوه صورتونه دی، يو صورت چه په هغې کښې د کشف عورت خطره وی او دويم صورت چه په هغې کښې د کشف عورت خطره نه وی لهذا د حضرت تميم روايت په هغه صورت باندې محمول دې کوم صورت کښې چه کشف عورت نه وی او مذکوره حديث په هغه صورت باندې محمول دې کوم کښې چه د کشف عورت ويره وی لهذا په دواړو رواياتو کښې هيڅ تعارض نشته

**[۴۷۱۳] په تکبر سره د تګ کونکی انجام**

۴۷۱۳-[۵] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «بَيْنَمَا رَجُلٌ يَتَبَخْتَرُ فِي بُرْدَيْنِ وَقَدْ أَعْجَبَتْهُ نَفْسُهُ [٣] خُسِفَ بِهِ الْأَرْضُ، فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِيهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] يو سړي دوه کرښيز کپړو کې ملبوس کبر او غرور سره روان وو او هغه هغه کپړي دومره نفيسي او برتر ګنلي چې د هغه نفس هغه غرور او خود بيني کې مبتلا کړي وو [٣] د هغه انجام دا شوچې زمکي هغه سړي غرق کې نو هغه به دقيامته پورې دغه شان په زمکه کې غرقيدونکي خي.

**حل اللغات:** - ① يَتَبَخْتَرُ: فخر او غرور سره روان وو. ② بُرْدَيْنِ: دوه څادرونه، ③ خُسِفَ: په زمکه کښې غرق شو، ④ يَتَجَلْجَلُ: کنده په کنده به غرقيدو سره روان وی.

**تسهيلات:** **قوله:** بَيْنَمَا رَجُلٌ يَتَبَخْتَرُ فِي بُرْدَيْنِ:

**د رجل په مصداق کښې دوه اقوال:** ① علامه نووی او نور شارحين وائی چې دا د اسلام نه مخکښې د يودور د يوسړی قصه ده چې په تکبر سره تلو نوالله تعالی په زمکه کښې ورخخ کړلو. ② څه عالمان فرمائی ددې رجل څخه مراد قارون دې.

(١) اخرجه البخاري في كتاب اللباس /باب من جر ثوبه من الخيلاء (رقم-٥٧٨٩) ومسلم في كتاب الأشربة /باب تحريم التبختر في المشي مع إعجابه بثيابه (رقم-٤٩ - (٢٠٨٨)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

[۴۷۳] په تکیه (بالغ) باندې د ډډې لګولو سنتیت

۴۷۳—[۲] () [۱] عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ عَلَى يَسَارِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ابن سمره ﷛ وايي [۲] چې ما رسول الله ﷺ داسې تکيه لګولې ناست ليدلې دې چې هغه تکيه بالښت د حضور ﷺ چپ طرف ته ايخودل شوي وو (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ عَلَى يَسَارِهِ:

**د بالغ (تکيه) د استعمال سنتيت:** د دې حديث نه دا معلوميږي چه د تکيه ته ډډه لګول او کيناستل سنت دی او دا هم معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ به تکيه خوښوله او څنګه چه نبی کريم ﷺ د خوشبو متعلق اوفرمائيل چه د خوشبو هديه قبلولو نه انکار مه کوئ هم دغه شان ئې د تکيه متعلق اوفرمائيل چه کوم کس تاسو ته تکيه درکوی نو تاسو د هغې د قبلولو نه انکار مه کوئ.

[۴۷۳] ذَ لاسونو راتاوولو سره د کيناستو حکم

۴۷۳—[۷] () [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا جَلَسَ فِي الْمَسْجِدِ احْتَبَى بِيَدِهِ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري ﷛ وايي [۲] رسول الله ﷺ چې به په مسجد کې کينا ستو نو دواړه زنګنونه به يې ودرول او په پنډيو باندې دواړه لاسونو سره به يې حلقه ترل (رزين)

**حل اللغات:** -① احْتَبَى: راتول کيناستل چه زنګنونه ولاړوی او لاسونه ئې د خپو نه راتاؤ کړی وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا جَلَسَ فِي الْمَسْجِدِ احْتَبَى بِيَدِهِ:

**د احتباء باليد کيفيت:** د خپو په سر کيناستل دا دی چه دواړه زنګونانه اودرولې شی دواړه لاسونه د خپو نه راتاؤ کړی حلقه جوړه کړی او د کوناټو په سر کينی. اکثر وختونو کښې د خپو په سر کيناستلو په ځائې د لاسونو کپړه لنګ يا پټکې سره هم کيږی په دې کښې تواضع هم ده او راحت هم دې، حديث شريف کښې راغلی دی چه د خپو په سر کيناستل د

(1) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب اللباس /باب فی الفرش (رقم-۴۱۴۳) والترمذی فی السنن رقم الحديث ۲۷۷۰
(2) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فی جلوس الرجل (رقم-۴۸۴۶)

عربو دیوالونه دی.

**د احتباء او قرفصاء په لغوی فرق کښې دوه اقوال:** ① بعض وائی چه د دې دوارو په مینځ کښې عموم خصوص مطلق دې ځکه چه قرفصاء د دوارو کوناتو په ذمکه کیخودلو سره کیږی او احتباء عام ده چه په دې کښې کوناتی په زمکه باندې وی او که نه.
② احتباء او قرفصاء دواړه یو څیز دې،

**[۳۷۳] د قرفصاء په صورت کښې د کیناستلو حکم**

۴۷۳-[۸] () [۱] وَعَنْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- أَنَّهَا «رَأَتْ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْمَسْجِدِ وَهُوَ قَاعِدٌ الْقُرْفُصَاءَ. [۲] قَالَتْ: فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمُتَخَشِّعَ أُرْعِدْتُ مِنَ الْفَرَقِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي قیله بنت مخرمه رضي الله عنها نه روایت دي هغه رسول الله ﷺ په مسجد کې په هیئت قرفصاء ناست ولیدلو [۲] بي بي قیله رضي الله عنها وایي هرکله چې ما رسول الله ﷺ داسې (انتهایي عاجزي انکساري خشوع وخضوع او استغراق او د کسرنفسي په حالت کې) ناست ولیدلو نو زه د هیبت نه په رپیدو شوم. (ابوداؤد)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت قیله بنت مخرمه** رضي الله عنها: نوم قیله دَ مخرمه لور ده.دَ قبیله بنو تمیم سره ئی تعلق لرلو.دَ هغې نه دَ علیه لونړه صفیه او وجیهه روایت کوی.دا دواړه دَ هغې دَ پلار هم راوایانې دی.دَ دې نه نور روایتونه هم نقل دی.دا هم دَسنن راویه ده په بخاری اومسلم کښې دَدې نه څه روایت نقل نه دي.

**حل اللغات:** - ① الْقُرْفُصَاءَ: دَ قعدې په شکل کښې لاس تړلی کیناستل، ② الْمُتَخَشِّعَ: خضوع خضوع سره کیناستل، ③ أُرْعِدْتُ: په رپیدو شوم، ④ الْفَرَقِ: د هیبت نه.

**تسهیلات:**

**قوله: الْقُرْفُصَاءَ:**

- **د قرفصاء تعریف:** دا په داسې طرز باندې کیناستل دی چه مثلاً یوسړې دَ قعدې په شکل کښې کینی اوزنګونونه په زمکه باندې کیږدی اوخپې شاته کړی بیا ښې لاس په ګس او ګس لاس په ښی ترخ کښې ورکړی اوخپله خیټه په پتونو او زنګونونو باندې راټیټه کړی اوسرزمکې ته نیزدې کړی

**د قرفصاء کیناستلو په اختیارولو وجه:** دا قرفصاء کیناستل دی په دې کښې عاجزی تواضع اوانکساری ده په دې وجه حضورپاك دا استعمالول.[المرقات: ۸/۴۸۴]

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب في جلوس الرجل (رقم-٤٨٤٧)

**قوله**: اَلْمُتَخَشِّعَ

**دنبی علیه السلام رعب**: یعنی خشوع خضوع اوډ انکسارئی داصورت کله چه ما اوکتلو نوزه اوږچیدلم حضورپاك ته الله تعالی رعب اودبدبه ورکړې وه په دې وجه حضورپاك چه څومره تواضع اختیارکړه هم هغه هومره ډ حضورپاك رعب زیات شو په دې وجه دغه ښځه اوویریدله اُرعدت زه اوږچیدلم

**د طبرانی روایت**: په بذل کښې لیکی چه دا روایت په طبرانی کښې بطوله دې چه د هغې په اخیر کښې دا دی چه قیله ﷞ فرمائی چه کوم سړې ما سره خوا کښې ناست وو هغه زما په باره کښې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ (ارعدت المسکینة) چه دا مسکینه زنانه خو رپیږی نو په دې باندې رسول الله ﷺ زما طرف ته د کتلو نه بغیر په خپل لاس مبارک سره تسلی راکولو سره اوفرمائیل ((یامسکینة علیك السکینة ...)) د رسول الله ﷺ په دې فرمائیلو باندې الله پاک زما نه هغه ویره لرې کړه

**[۳۰۸] ډسحرډ مانځه څخه پس ډ څاښت پورې په خپل مجلس کښې ناسته**

۴۷۱۳ —[۹] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ فِي مَجْلِسِهِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَسْنَاءَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ابن سمره ﷠ وايي [۲] رسول الله ﷺ چې به د سهار مونځ وکړو نو چارزانو به کیناستو او نمر به ښه شان روښانه کیدو پورې به دغه شان ناست وو (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① تَرَبَّعَ: پرلت به کیناستلو . ② حَسْنَاءَ: روښانه.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ فِي مَجْلِسِهِ

**د پرلتی وهلو مسنونیت**: یعنی حضورپاك به پرلت اووهلو او کیناستویه او ډ نمرډ راختو انتظاربه ئی کولو دکوم نه چه دا ثابته شوه چه په مکروه وخت کښې مونځ کول جائزنه دی دلته دا خبره هم ثابته شوه چه دین اسلام ژوندې اوتازه مذهب دې په کوم کښې چه ډحضورپاك ډ کیناستو کیفیت هم الحمد لله محفوظ دې [المرقات: ۸/۲۴۸۵]

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الرجل یجلس متربعا (رقم-۴۸۵۰) ومسلم فی کتاب المساجد/باب فضل الجلوس فی مصلاه بعد الصبح، وفضل المساجد (رقم-۲۸۷ - (۶۷۰)

جلد نهم

**[٤٧١٦] د رسول الله ﷺ د شپې وخت کښې د ډيرې اچولو طريقه**

۴۷۱۶—[۱۰] (۱) ① وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-: أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «كَانَ إِذَا عَرَّسَ بِلَيْلٍ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ، ② وَإِذَا عَرَّسَ قُبَيْلَ الصُّبْحِ نَصَبَ ذِرَاعَهُ وَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى كَفِّهِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوقتاده ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ به د سفر په دوران کې آرام کوي او اوده کيدو د پاره په يو ځاي کې د شپې خکته کيدی نو ښي اړخ باندې به پريوتلو ② او کله چې به سهار ته نزدې خکته کيدي نو دغه شان به پريوتلو چې خپل يولاس به يې درولو سره د هغه په ورغوي به يې سر مبارك کيخو دي (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① عَرَّسَ: آرام دپاره پړاؤ اچول (دمه کول، ② شِقِّهِ: په اړخ، ③ نَصَبَ: اودرولو به ئې، ④ ذِرَاعَهُ: خپل لاس

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ إِذَا عَرَّسَ بِلَيْلٍ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ:

**په سفر کښې د نبی عليه السلام د اوده کيدو دوه طريقې:** ① دَدې حديث مطلب دادې چه په سفر کښې به حضورپاك دَ شپې په وخت چرته ډيره اچوله اودَ شپې څه حصه به باقی پاتې وه نوحضورپاك به په ښی اړخ باندې اوده کيدلو لکه څنګه چه په حضر کښې دَحضورپاك عادت مبارك وو

② که بعضې نورو رواياتوڅخه معلوميږی که دَشپې اکثرحصه به تيره شوې وه اودَصبح صادق وخت به بالکل نيزدې وو نوحضورپاك به په اړخ نه سملاستو بلکه ښي لاس او مټ به نی اودرولو اودَدې په تلی باندې به ئی سرمبارك کيخودو اولږ آرام به ئی کولو.

**د دويمې طريقې په اختيارولوکښې حکمت:** دَدې وجه داوه چه صبح صادق به نيزدې وو نوحضورپاك به دَ ژور خوب دَ اوده کيدونه دَ بچ کيدو کوشش کولو دې دَ پاره چه دَ سحرمونځ فوت نه شی په دې وجه به نی په تلی باندې سر کيخودو اودَ لږ آرام او خوب کولوکوشش به نی کولو.

**[۴۷۱۷] قبلې طرف ته د پښو نه غزول**

۴۷۱۷—[۱۱] (۲) ① وَعَنْ بَعْضِ آلِ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَ: «كَانَ فِرَاشُ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ فِي قَبْرِهِ، ② وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب المساجد/باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم) ۳۱۳ - (۶۸۳)والبغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۳۳۵۹ واحمد فی المسند: ۳۰۹/۵

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب رقم الحديث ٥٠٤٤

**ترجمه:** [۱] او د بي بي ام سلمه ﷺ دخاندان يوكس وايي د رسول الله ﷺ بستره چې په هغه به حضور ﷺ آرام كوي د هغه كپړي په شان وه كومه چې د حضور ﷺ قبر شريف كې ايخودل شوي وه [۲] او مسجد به د حضور ﷺ سرمبارك ته نزدې وو .(ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① فِرَاشُ: بستره، ② نَحْوًا: په مثل، په شان،

**تسهيلات:**

**قوله: نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ فِي قَبْرِهِ**

**د مذكوره په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① زيربحث حديث په ظاهر كښې مطلب دا دې چه په حجره شريفه كښې چه په كوم بستره باندې رسول الله ﷺ آرام فرمائيلو د هغې حالت داسې وو لكه څنګه چه انسان په قبر كښې كيخودلې شي او دا خبره ټولو ته معلومه ده چه مړى لره په قبر كښې په ښى طرف باندې د قبلې په طرف باندې سملولې شي. معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به د اودهٔ كيدو په وخت هم دا صورت اختيارولو. لهذا د دې حديث نه د قبلې په طرف باندې خوب كول ثابت شو،

② په دې حديث كښې دابيان كول مقصود دى چه حضورپاك به دَ خان لاندې دَخورولودَپاره دومره مختصر كپړه استعمالوله څومره كپړه چه دَحضورپاك په قبرمبارك كښې خوره كړې شوې وه چه بالكل مختصروه.

**اشكال:** داكپړه په قبركښې ولې خوره كړې شوې وه اوچاخوره كړې وه؟

**داشكال جواب:** نبى عليه السلام به په مرض وفات كښې لاندې دَخورولودَپاره يوڅادر استعمالولو كوم چه صحابه كرامو ليدلې وو. د حضورپاك غلام شقران دغه څادر پټ اوچت كړو اوپه قبركښې ئې خوركړو چه هسې نه دَ حضورپاك نه پس داڅوك استعمال نه كړى ليكن صحابه كرامو دا اوليدلو اودَقبرنه ئې رااوويستلو.

**په حجره مباركه كښې د نبى عليه السلام د اودهٔ كيدوكيفيت:** مسجد نبوى د رسول الله ﷺ د حجرې شريفې نه غربى طرف كښې دې لهذا معلومه شوه چه د استراحت په وخت د رسول الله ﷺ سر په غربى طرف كښې او قدمونه مبارك په شرقى طرف كښې كيدل او په ښى طرف باندې د ملاستې ثبوت په احاديث شهيره كښې دې او د دې ملاستې نه پس په ښى طرف كښې د جنوب طرف دې د جنوب په طرف كښې د اهل مدينه قبله ده، او هم دا هيئت د ملاستې د انسان په قبر كښې وى. فاغتنم وتشكر .

........

## [۴۷۸] په خيټه اوپرمخې سملاستلو کراهت

۴۷۸-[۱۲] ()۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلًا مُضْطَجِعًا عَلَى بَطْنِهِ ۲ فَقَالَ: "إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ لَا يُحِبُّهَا اللَّهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ يوسړي پرمخې (يعني د نس (خيټې) په طرف) پروت وليدلو ۲ نو حضور ﷺ هغه ته وفرمايل داسې پريوتل د خداي ﷻ په نزد ناخوښه دي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① مُضْطَجِعًا: ملاست وو، ② ضِجْعَةٌ: خملاستل.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ لَا يُحِبُّهَا اللَّهُ:

**دَ اوده کيدو څلور طريقې دي:** ① دَ اهل نارده داخلق په خيټه پرمخې اوده کيږي په دې حديث کښې دغه شان سملاستل منع کړې شوي دي ځکه چه په دوزخ کښې به دوزخيان داسې وي.

② په ګس طرف باندې سملاستل دي دا طريقه دَ آرام طلبو دَ پاره ډيره ښه ده په دې کښې زړه ښکته دباؤ شي نو ښه په غفلت سره خوب ورځي.

③ په ښي طرف سملاستل دي. دادَ عبادت کونکو طريقه ده په دې کښې زړه زوړندوي نوخوب ئې کچه وي دَ عبادت دَپاره پاسيدل آسان وي.

④ ستونې ستغ سملاستل دادَ اهل اعتبارطريقه ده چه دَ آسمان نظام ته کتلوسره عبرت حاصلوي.

## [۴۷۹] دپرمخې سملاستو کراهت

۴۷۹-[۱۳] ()۱ وَعَنْ يَعِيشَ بْنِ طِخْفَةَ بْنِ قَيْسٍ الْغِفَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ - قَالَ ۲ «بَيْنَمَا أَنَا مُضْطَجِعٌ مِنَ السَّحَرِ عَلَى بَطْنِي ۳ إِذَا رَجُلٌ يُحَرِّكُنِي بِرِجْلِهِ فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ يَبْغَضُهَا اللَّهُ، ۴ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» -. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت يعيش ابن طخفه ابن قيس غفاري خپل پلار (حضرت طخفة ﷺ نه چې اصحابِ صُفّه نه وو) نقل کوي ۲ چې هغه (يعني حضرت طخفه ﷺ) بيان وکړو چې يوه ورځ زه د سيني د درد په وجه پرمخې پريوتلی وم ۳ ناڅاپه ما محسوس کړه چې

---

[1] اخرج الترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الاضطجاع على البطن (رقم-۲۷۶۸) واحمد في المسند: ۲/۳۰۴

[2] اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب في الرجل ينبطح على بطنه (رقم-۵۰۴۰) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب النهي عن الاضطجاع على الوجه (رقم-۳۷۲۳) واحمد في المسند: ۳/۴۳۰

یو سړي ما په خپلې ېښي سره ښوروي او بیا ما واوریدل چې هغه سړي وایي د پرېوتلو دا طریقه خداي ﷻ ته سخته ناخوښه ده ۴ بیاچې مانظر پورته کې نو ګورم چې هغه رسول الله ﷺ دي (ابوداؤد، ابن ماجه)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت یعیش بن طخفة الغفاری** رضي الله عنه: نوم یعیش دَ پلار نوم طخفة وو دَ قبیله غفار سره ئې تعلق وو دَشام اوسیدونکې وو.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دَ ده نه صرف هم دا یو روایت نقل دې اودَ هغه دا روایت په بخاری اومسلم کښې نشته صرف په سنن اربعه ابوداؤد ابن ماجه دا روایت نقل کړې دې.

**حل اللغات:**- ① مُضْطَجِعٌ: ملاست ووم، ② ضِجْعَةٌ: څملاستل،

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ يُبْغِضُهَا اللَّهُ:

**دحدیث پس منظر**:یعیش بن طخفه فرمائی چه زما پلار یعنی طخفه بن قیس د اصحاب صفه رضي الله عنهم نه وو (کوم چه به اکثر اوږی وو لکه چه وړاندې هم په دې قصه کښې دی) رسول الله ﷺ اوفرمائیل یعنی مونږ اصحاب صفه ته چه راځئ ماسره د عائشې رضي الله عنها د کور طرف ته. مونږ ټول هغوی سره روان شو، رسول الله ﷺ کور ته رسیدو سره عائشې رضي الله عنها ته اوفرمائیل په مونږ باندې څه اوخوروه هغې لږه شان دلیا راوړه، مونږ ټولو اوخوړه بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه عائشې! نور څه راباندې اوخوروه نو دې ځل ئې مالیده راوړه، د کهجورو، ستوانو، پنیر او غوړو مجموعه، خو هغه هم لږ شان وه د قطاة مرغۍ برابر، کوم چه مونږ اوخوړله، بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اې عائشه اوس راباندې څه اوڅکوه نو هغې د پیو یو لویه پیاله راوړله کومه چه مونږ ټولو اوڅکله، رسول الله ﷺ اوفرمائیل عائشې! نور هم راباندې اوڅکوه، دې ځل هغې یو وړه پیاله کښې راوړل کوم چه مونږ ټولو اوڅکل، په اخیر کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل که ستاسو زړه غواړی نو اوده شئ او که غواړئ نو مسجد ته لاړ شئ، وړاندې هغوی فرمائی چه زه د شپې په آخر کښې اولته ملاست اوم ناڅاپه زه چا په خپه باندې اوخوزولم په دې وینا چه د ملاستې دا طریقه د الله پاک ناخوښه ده ما چه کله پورته اوکتل نو هغه رسول الله ﷺ وو.

**قوله:** بَيْنَا أَنَا مُضْطَجِعٌ مِنَ السَّحَرِ عَلَى بَطْنِي:

**د سحر دوه معانی:**① سَحَر کوم چه په معنی د اخر اللیل دې هغه په فتحتین سره دې ② سحرکوم چه په معنی د الرئة دې نو هغه دوه طریقو سره ضبط کړې شوې دې سَحَر، سَحْر ....پس په مرقاة کښې دی: من السحر بفتحين وفی نسخة بسكون الثانی، وهو الرئة اهـ

**د من السحر په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① (من السحر) که څخه معنی مراد شی نود حديث مطلب دا شو چې د شپې په آخری حصه کښې نبی علیه السلام زه اوږقولوم.

② که د سحرڅخه دوه معنی مراد شی نوبيا دحديث مطلب داشو چې د کولمو د درد د وجې نه، دا ګويا هغوی د خپل اولته سملاستو وجه بيان کړه چه چونکه په خيټه کښې ئې درد وو په دې وجه اولته ملاست وو، ملا علی قاري رحمه الله دا معنی بيان کړې اوخوښه کړې ده.

**د نبی علیه السلام د منع کولودرې وجوهات:** ① نبی کريم ﷺ ته ددوي د عذر علم وو خو بيا ئي هم منع کړلو دا د تقوی په بنياد وو

② نبی کريم ﷺ دوی ته په بنپو سره اشاره څکه اوکړه چه کيدې شی چه نبی کريم ﷺ ته ددوي د عذر علم نه وو

③ د نبی علیه السلام به منع کولو کښې دا خودل مقصود دی چه د سينی درد علاج دپاره دغه شان سملاستل صحيح نه دی بلکه بله طريقه دې اختيار کړې شی مثلاً التحيات په شکل کښې دې کيناستلې شی او سينه دې د ګونډو سره ملاو کړې شی وغيره

**[۴۷۲۰] دَچارديوارلی یا پردې څخه بغیرپه چت باندې د سملاستو ممانعت**

۴۷۲۰- [۱۴] (1) [۱] وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ بَاتَ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَيْسَ عَلَيْهِ حِجَابٌ - [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: حِجَارٌ - فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ. وَفِي "مَعَالِمِ السُّنَنِ" لِلْخَطَّابِي "حِجًى".

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي ابن شيبان رضی الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د شپې داسې چت باندې اوده کيږي چې په هغه پرده نه وي [۳] او په يو روايت کې داسې دي چې د هغه چاپيره (ضرر دفع کونکې والا څه شي نه وي) نو دهغه نه ذمه ولاړه (ابو داؤد) او د خطابي کتاب معالم السنن کې د لفظ حجاب په ځاي د حجي لفظ دي.

**حل اللغات:** - ① بَاتَ: شپه تيره کړی، ② ظَهر: چهت، بام. ③ حِجَابٌ: پرده، چارديواری، ④ حِجَارٌ: کانړې (چه پرده جوړه شی). ⑤ حِجًى: پرده، رکاوټ.

**تسهيلات:**

**قوله: لَيْسَ عَلَيْهِ حِجَابٌ:**

**د الفاظو اختلاف:** ① په حديث کښې يولفظ حجاب دې چه دَ پردې په معنی کښې دې

---

(1) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب//باب فی النوم علی سطح غير محجر (رقم-۵۰۴۱) واحمد فی المسند: ۷۹/۵

② په حدیث کښې یولفظ حجار دې چه دَ کاڼړې په معنی کښې دې
③ په حدیث کښې یولفظ حجیٰ دې چه دَعقل اورکاوټ په معنی کښې دې.
**د حدیث مطلب:** مطلب داچه په کوم چت باندې چاردیواری یا بلنې یا پرده نه وی اوڅوک په دې باندې دَ شپې اوده کیږی نوداسې نه دی کول پکارځکه چه کیدې شی داسرې په خوب کښې اړخ بدلولوسره دَ چت نه پریوځی اولاندې ټکرې ټکرې او مرشی. [المرقات: ۸/۴۸۷]

**قوله:** فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ:

**د برائت ذمه په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی کوم سړې چه په یو داسې چهت باندې اوده شی چه د هغې په غاړو باندې پرده نه وی، وروکې شان دیوال، نو زه د هغه خلقو نه بری الذمه یم، که د هغه چهت نه هغه سړې راپریوځی او مړ شی نو د هغې به څوک ذمه دار وی هغه راغورځیدونکې به خپله مستحق د ملامتې وی. لهذا د یو کور په داسې چهت باندې اودهٔ کیدل نه دی پکار چه ناڅاپی انسان راپاسی او د بې خیالئ نه د پورته نه اوغورځیږی،
② په فتح الودود کښې د دې شرح هم دا لیکلې ده چه د هغه خون بها به د چا نه هم نه شی اخستلې او په لمعات کښې د براءت ذمه معنی دا لیکلې ده چه د الله پاک د طرف نه چه کوم د بندګانو حفاظت وی هغه به د هغه سره نه وی، او د هغه د دې بې احتیاطئ او د خوب دآدابو د خلاف ورزئ په وجه باندې.

**[۴۷۲۸] بغیر دیواله چت باندې د سملاستو ممانعت**

[۴۷۲۸-۱۵] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَنَامَ الرَّجُلُ عَلَى سَطْحٍ لَيْسَ بِمَحْجُورٍ عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وایې [۲] چې رسول الله ﷺ کوته باندې اوده کیدو نه منع فرمایلې ده چې په هغه د پردې دیوال نه وي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① بِمَحْجُورٍ: د پردې دیوال.

**تسهیلات:**

نوټ: ددې حدیث مضمون په حدیث نمبر ۴۷۲۰ کښې هم تیرشوې دې تسهیل ئې هلته اوګورئ.

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الفصاحة والبیان (رقم-۲۸۵٤)

**[۴۷۲۲] د حلقې په مېنځ کښې د کېناستو حرمت**

۴۷۲۲-[۱۶] ()[۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «مَلْعُونٌ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْ قَعَدَ وَسْطَ الْحَلْقَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذيفه ﷺ وايي [۲] د حضرت محمد ﷺ د ژبې مبارکې په ذريعه هغه سړې ملعون (لعنتي) ګرځول شوې دې کوم چې د حلقې په منځ کې کيني. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** - ① وَسْطَ الْحَلْقَةِ: د حلقې او مجلس په مينځ کښې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ قَعَدَ وَسْطَ الْحَلْقَةِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال:** ① چه يوسړې بې حياء او بدتهذيب وى سره د خلقو دَمجلس په مينځ کښې راځى او کينى اوټوقې مسخرې کوى دَ بيزوګانوپه شان حرکتونه کوى اوخلق خنده وى په ده باندې لعنت کړې شوې دې دامطلب ډير واضح دې.

② چې په يومجلس کښې خلق ناست وى يوسړې دَ بهر نه راشى په مجلس کښې ځاى نشته دې مګر داسړې دَخلقو په سټونو باندې اوښتوسره په ټوپونو راشى او دَ حلقې په مينځ کښې کښې دامنع دى ده له په غاړه چرته کيناستل پکاروو.

③ چې يوه حلقه ده په هغې کښې خلق ناست دى اويويل سره مخامخ خبرې کوى. يوسړې راشى او دَهغوى په مينځ کښې کينى اودَهغوى په مينځ کښې حائل جوړشى په کوم سره چه خلقوته تکليف رسيږى ځکه چه دَهغوى په مينځ کښې پرده راشى نودا ځکه منع دى.

[المرقات، ۸/۴۸۹-۴۸۸]

**[۴۷۲۳] په مجلسونو کښې د فراخه والي فضيلت**

۴۷۲۳-[۱۷] ()[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «خَيْرُ الْمَجَالِسِ أَوْسَعُهَا»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] بهترين مجلس هغه دي چې خلاص او په فراخه ځاي کې ولګول شي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** خَيْرُ الْمَجَالِسِ أَوْسَعُهَا:

**دحديث مطلب:** مطلب دادې چه وعظ اونصيحت اودَ دوستانو حلقه او محفل وى يابل څه

---

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى الجلوس وسط الحلقة (رقم-۴۸۲۶) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية القعود وسط الحلقة (رقم-۲۷۵۳)

(۲) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى سعة المجلس (رقم-۴۸۲۰) واحمد فى المسند: ۱۸/۳

مباح تقریب وی نودَدې مجلس اونشت په داسې خائی کښې کیدل پکاردی چه ارت وی چاته تنګی نه وی. دا امرارشادی دې اودپاره دَ رهنمائی دې اودَمسلمانانوتهذیب دَ ژوندې ساتلو تعلیم دې.

**[۴۷۴۳] په مجلس کښې د نزدې کیناستو ترغیب**

> ۴۷۴۳—[۱۸] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَصْحَابُهُ جُلُوسٌ، [۲] فَقَالَ: "مَالِي أَرَاكُمْ عِزِينَ»؟". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وایي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ د کور نه دوتلو سره تشریف راوړو کله چې مسجد نبوي کې د حضور ﷺ صحابه ﷺ (اخوا دیخوا) ناست وو [۲] هغوئ په دغه شان لیدو سره حضور ﷺ ورته وفرمایل څه خبره ده چې زه تاسو متفرق او منتشر (یعني تس نس) ناست وینم. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عِزِينَ: عزین جمع د عزه ده، متفرق، منتشر،

**تسهیلات:**

**قوله:** عِزِينَ:

**دحدیث پس منظر:** په ظاهره به دا حضرات د رسول الله ﷺ په انتظار کښې ناست وو لهذا بغیر د څه مصلحت او حاجت نه رسول الله ﷺ بیل بیل مجلسونو کښې ناسته خوښه او نه فرمائیله. تول یو مجلس جوړ کړئ چه معلومه شی چه تول د یو مقصد دپاره ناست دی، او په ظاهر کښې د اتفاق صورت محسوس شی.

**د متفرق کیناستو د ممانعت وجه:** دَخلقو ګنړې ته وائی دلته جدا جدا جماعتونه مرادی. حضورپاك امت ته دا تعلیم ورکړې دې چه اتحاد اواتفاق، مینه اویووالی تقاضا داده چه کله په یونشست کښې کیناستل وی نو په یوځائی کینئی دَ جدا جدا کیناستوسره وحشت بې اتفاقئی کښې اضافه کیږی. حالانکه چه دَمسلمانانوصفت په قرآن کښې ﴿كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ﴾ [سورة صف:۴] مذکور دې لهذاحضورپاك اوفرمائیل چه ځان ځانله تکړو او دلوکښې دکیناستو په ځائی یوځائی کینئی.

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الصلاة/باب الأمر بالسکون فی الصلاة، والنهی عن الإشارة بالید، ورفعها عند السلام، وإتمام الصفوف الأول والتراص فیها والأمر بالاجتماع (رقم-۱۱۹ - (۴۳۰) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی التحلق (رقم-۴۸۲۳) واحمد فی المسند:۹۳/۵

**[۴۷۲۵] نيم په نمر او نيم په سيورى د كيناستو ممانعت**

۴۷۲۵-[۱۹] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الْفَيْءِ فَقَلَصَ عَنْهُ الظِّلُّ، [۳] فَصَارَ بَعْضُهُ فِي الشَّمْسِ، وَبَعْضُهُ فِي الظِّلِّ، فَلْيَقُمْ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه :** او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] هركله چې په تاسو كې يو سړي په سايه (سورې) كې ناست وي ، او بيا دهغه سايه (سورې) ختميږي [۳] په دې طور چې د هغه سايه (سورې) په ځاي د نمر راتلو په وجه د هغه د جسم څه حصه په نمر كې او څه حصه په سايه (سورې) كې وي نو هغه ته پكار دي چې د هغه ځاي نه لاړ شي او په داسې ځاي كې كيني چې په پوره طور سره په سايه (سورې) كې وي يا پوره طور سره په نمر كې ځكه چې كله يوسړي په داسې ځاي كې ناست يا پروت وي چې څه حصه يې په نمر كې وي او څه حصه په سايه (سورې) كې نو د هغه په جسم يووقت كې د دوو متضاد څيزونو اثر انداز كيدو په وجه د هغه مزاج هم د فساد او اختلال ښكار كيږي.(ابو داؤد)

**حل اللغات :-** ① الْفَيْءِ: سايه ، سورې. ② فَقَلَصَ : ختميږي،

**تسهيلات:**

**قوله: فَصَارَ بَعْضُهُ فِي الشَّمْسِ، وَبَعْضُهُ فِي الظِّلِّ، فَلْيَقُمْ:**

**نيم په نمر او نيم په سيورى د ناستې ممانعت:** چه د ناستې په وخت د انسان څه حصه په نمر وى او څه په سورى كښې، د دې نه منع كولې شى، كه د مخكښې نه نمر ته ناست دې او بيا د نمر په ښكته كيدو او وخت تيريدلو سره د بدن څه حصه په نمر كښې پاتې شوه او څه په سورى كښې، هم دغه شان كه د مخكښې نه په سورى كښې ناست دې او بيا روستو دغه شان اوشى نو د هغه ځائې نه پاسيدو سره ځائې بدلول پكار دى.

**[۴۷۲۶] نمر او سيورى ته د ناستې كراهت**

۴۷۲۶-(۲) [۱] وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْهُ قَالَ: [۲] "«إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الْفَيْءِ فَقَلَصَ عَنْهُ فَلْيَقُمْ، فَإِنَّهُ مَجْلِسُ الشَّيْطَانِ» ". هَكَذَا رَوَاهُ مَعْمَرٌ مَوْقُوفًا.

**ترجمه:**[۱] او په شرح السنه كې د حضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دي[۲] چې حضرت ابوهريره ﷛ وفرمايل په تاسو كې چې كوم سړي په سايه (سورې) كې ناست وي او بيا

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى الجلوس بين الظل والشمس (رقم-۴۸۲۱) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب الجلوس بين الظل والشمس (رقم-۳۷۲۲) واحمد فى المسند: ۲/ ۳۸۳

(۲) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۳۳۳۵

هغه سايه (سورې) خټميرې نو هغه ته پكار دي چې د هغه ځاي نه لاړ شي ځكه چې داسې ځاي چې څه په سايه (سورې) كې وي او څه په نمر كې وي هغه د شيطان د ناستې ځاي دي دغه شان ځرنګه چې شرح السنه كې دي معمر رحمه الله هم دا روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه بطريق موقوف نقل كړي دي.

**حل اللغات:** ① الْفَيْءِ: سايه ، سورې. ② قَلَصَ: ختميږي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّهُ مَجْلِسُ الشَّيْطَانِ:**

**دشيطان مجلس كيدو په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① شيطان په داسې ځائې كښې كيناستو سره خوشحاليږي په كوم ځائې كښې چه په كيناستو باندې انسان ته تكليف وي اودهغه صحت خرابيږي ځكه چه نيم بدن ګرميدو سره وينه منډې وهي اونيم بدن به ئې يخ اوكلك وي.په دې سره دبدن په صحت باندې اثر پريوځي اوشيطان هم دغه غواړي او هم په دې سره خوشحاليږي.

② دا حديث په حقيقت محمول دې چې واقعي شيطان داسې ځائې كښې كينې كوم ځائې كښې څخه نمر وي او څخه سيورې وي.

**[۴۷۲۴] په لاره كښې د زنا نو د تګ حصه**

> ۴۷۲۴-[۲۰] ()[١] وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [٢] أَنَّهُ «سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ، [٣] فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ فِي الطَّرِيقِ، [٤] فَقَالَ لِلنِّسَاءِ: "اسْتَأْخِرْنَ فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ، [٥] عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ» ". [٦] فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تَلْصَقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [١] او د حضرت ابو اسيد انصاري رضي الله عنه نه روايت دې [٢] چې هغه يوه ورځ رسول الله ﷺ نه هغه وخت چې حضور ﷺ د مسجد نه ووتي (خلقوته ديني هدايات او شرعي احكامو مسائل) بيانول اوريدل [٣] بيا په لار كې سړي او ښځي سره يوځاي شول يعنى سړي او ښځي مخلوط كيدو سره په لاركي روان شول په دې ليدو سره [٤] حضور ﷺ ښځوته وفرمايل چې تاسو سړو پسې وروسته ځئ او هغوئ جدا اوسئ ځكه چې تاسو د پاره دا مناسب نه دي چې تاسو دې د لار په منځ كې ځئ [٥] بلكي ستاسو د پاره ضروري ده چې تاسو د لاري په غاړه ځئ [٦] نو ښځو د حضور ﷺ په دې حكم داسې عمل وكړو چې هغوئ به په لاره تلي نو ديوالونو سره لګيدلي به تلي تردې چې بعضې وختونو كې به د هغوئ كپړه ديوال سره ونښتلي.(ابوداؤد بيهقي)

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في مشى النساء مع الرجال في الطريق (رقم-٥٢٧٢)

**حل اللغات:** - ① فَاخْتَلَطَ: گډ وډ شول. يوځائې شول. ② اسْتَأْخِرْنَ: تاسو روسته شئ. ③ تُحْقِقْنَ: په منځ منځ کښې تلل. ④ بِحَافَاتِ: په غاړه غاړه کښې تلل. ⑤ تَلْصَقُ: ديوالونو سره لګيدلی به تلې

**تسهيلات:**

**قوله:** اسْتَأْخِرْنَ فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تُحْقِقْنَ الطَّرِيقَ:

**زنانؤته په لاره د تګ باره کښې دوه هدايات:** ① ابو اسيد انصاری ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه چه کله هغوی د مسجد نه وتل او حال دا چه په لاره کښې سړی د ښځو سره مخلوط شو دا واوريدل زنانو ته خطاب کولو سره چه د سړو نه شاته اوسئ

② دويم هدايت ئې ورته دا اوفرمائيلو چه ستاسو دپاره دا مناسب نه ده چه په طاق الطريق کښې ځئ يعنی د لارې په مينځ کښ. ستاسو دپاره ضروری ده چه د لارو په غاړه باندې ځئ. راوی وائی چه د رسول الله ﷺ د هدايت نه پس ما هره يوه زنانه اوليده چه هغه به ديوال سره جختـه تلله تر دې چه جامې به ئې ديوال سره لګيدلې

**[۴۷۲۸] د سړو دپاره د ښځو په مينځ کښې د تلو حرمت**

۴۷۲۸ — [۲۱] ()[1] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ نَهَى أَنْ يَمْشِيَ - يَعْنِي الرَّجُلَ - بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دې ٢ چې رسول الله ﷺ د دوو ښځو په منځ کې د تلو نه منع فرمايلې ده يعنی سړي ته .(ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَمْشِيَ - يَعْنِي الرَّجُلَ - بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ:

**ددوو ښځوپه مينځ کښې د تګ حرمت:** يعنی دَ دووښځو په مينځ کښې دَ يوسړی تګ منع دې ځکه چه دا بې شرمی هم ده او په فتنه کښې دَ پريوتلوخطره هم ده اوډير لوئی قباحت هم دې چه سړې دَ پردو ښځو په جهرمټ کښې تاويدوسره روان وی او په فتنه کښې اخته کيږی.دغه شان يوې ښځې سره ځان له تګ کول هم منع دی اوډيرو ښځوسره تلل هم منع دی په کوم کښې چه ناجائز اختلاط وی.[المرقات،۸/۴۹۱]

---

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فی مشی النساء مع الرجال فی الطريق(رقم-۵۲۷۳)

**[۴۷۴۹] دمجلس په خالي ځاي کښې کيناستل**

۴۷۴۹-[۲۲] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. [۴] وَذُكِرَ حَدِيثَا عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فِي "بَابِ الْقِيَامِ". [۵] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَلِيٍّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ فِي "بَابِ أَسْمَاءِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَصِفَاتِهِ" إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه وايي [۲] كوم وخت چې به مونږ د حضور ﷺ په مجلس کې حاضر شو [۳] نو په مونږ کې چې به کوم سړي يو خاي وليدلو او په آخرکي به کوم ځاي خالي وو نو هلته به کينا ستو (ابوداؤد) [۴] او د عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه دواړه حديثونه يعنى يو خو لايحل للرجل الخ او دويم چې د دې نه پس دي (ولايجلس بين رجلين الخ) باب القيام کې نقل شوي دي [۵] او د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه دواړه روايتونه به مونږ انشاء الله باب اسماء النبي ﷺ وصفاته کې نقل کوو چې په هغه کې يوخو: (کان رسول الله ﷺ اذا مشى تكفأ) الخ او دوهم (مارايت شيئًا احسن من رسول الله ﷺ) الخ دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي:

**په مجلس کښې د کيناستود محل دوه صورتونه:** ① سړي چرته چه مجلس ختميږی هغه له هم هلته کيناستل پکار دی. او د خلقو په ستونو باندې اوختلو سره ورله وړاندې تلل نه دی پکار.

② که د مجلس په وړاندې حصه کښې خالي ځائي وی نو بيا بيله خبره ده. هلته که خلاف مصلحت نه وی نو وړاندې تلل پکار دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۷۵۰] دکيناستو يوه ممنوع طريقه**

۴۷۵۰-[۲۳] (۲) [۱] عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «مَرَّ بِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَنَا جَالِسٌ هٰكَذَا وَقَدْ وَضَعْتُ يَدِي الْيُسْرَى خَلْفَ ظَهْرِي وَاتَّكَأْتُ عَلَى أَلْيَةِ يَدِي. [۳] قَالَ: "

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في التحلق (رقم-۴۸۲۵) والترمذي في السنن كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۷۲۵) واحمد في المسند: ۹۱/۵

[2] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الجلسة المكروهة (رقم-۴۸۴۸) واحمد في المسند: ۳۸۸/۴

أَتَقْعُدُ قِعْدَةَ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ؟»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عمرو ابن شرید تابعي رحمه الله د خپل پلار حضرت شرید ثقفي صحابي رضي الله عنه نه روایت کوي هغه اوویل یوه ورځ رسول الله ﷺ په ما تیریدي هرکله چې زه داسې ناست وم چې خما چپ لاس خما د شا وروسته وو [۲] او د بتې ګوتي د بیخ په غوښه مي سهاره اخستي وه [۳] حضور ﷺ (په داسې لیدو سره) راته وفرمایل آیا ته په هغه هیئت ناست يې په کوم هیئت چې هغه خلق کیني چې په هغوئ د خداي غضب نازل شوي دي (ابو داؤد).

**حل اللغات:** - ① مَرَّ: تیریدو، ② اَلْكَاتُ: ما تکیه لګولې وه، ③ اَلْيَةِ: د تلی د بیخ غوښه، ④ قِعْدَةَ: کیناستل، ⑤ الْمَغْضُوبِ: په چا چه غضب نازل شوې دې یعنی یهود.

**تسهیلات:**

**قوله: أَتَقْعُدُ قِعْدَةَ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ:**

**د مغضوب علیهم مصداق:** د مغضوب علیه څخه مراد یهودیان دی ځکه چه په هغوی باندې دَالله تعالی غضب نازل شوي دي.اوس که دوې نیك وی اوکه بد دَالله تعالی دَ غضب نه وتلې نه شی.په سورت فاتحه کښې هم (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ) دَالفاظونه هم یهودیان مراد دی.په کوم طرزباندې دکیناستونه چه حضورپاك منع کړې ده

**د مذکوره ناستې د ممانعت دوه وجوهات:** ① دا متکبرانه انداز دې.اوپخپله داسې کیناستل یوعجیبه دکارتون شکل هم دې.ځکه چه په دې سرې خپل ګس لاس په شاباندې شاته ایږدی اودَ ښی لاس دَ غټې ګوتې بیخ کښې چه کومه راؤچته شوې غوښه ده په هغې باندې اړه لګولوسره کینی په دې عجیبه شکل سره کیناستونه منع فرمائیلې شوې ده

② په داسې ناسته کښې د یهودیانوسره مشابهت دې اوپه نورو نصوصو کښې راغلی دی چې د یهودیانو د مشابهت مه اختیاروی.

**[۴۷۲۱] په پرمخې سملاستو باندې وعید**

۴۷۲۱—[۲۳] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «مَرَّ بِيَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] وَأَنَا مُضْطَجِعٌ عَلَى بَطْنِي [۳] فَرَكَضَنِي بِرِجْلِهِ [۴] وَقَالَ: "يَا جُنْدُبُ! إِنَّمَا هِيَ ضِجْعَةُ أَهْلِ النَّارِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ په ماتیریدي [۲] هرکله

[1]) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأدب/باب النهي عن الاضطجاع على الوجه (رقم-۳۷۲۴)

چې زه د نس (خيټه) په طرف اروليي پروت وم [۳] حضورﷺ په داليدو سره خپلې پښې سره زه وخوزولم [۴] او وې فرمايل جندب ﷺ! تاته معلوميدل پکار دي چې داسې پريوتل د دوزخيانو طريقه ده .(ابن ماجه)

**حل اللغات :-** ① مُضْطَجِعٌ : نيغ څملاستل، ② فَرَكَضَنِي : نو اونې خوزولم، ③ ضِجْعَةٌ : څملاستل، پريوتل.

**تسهيلات:**

**قوله :** إِنَّمَا هِيَ ضِجْعَةُ أَهْلِ النَّارِ:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال :** ① دا چه فساقو اوفجارو اودكافرانو دوزخيانو په دنياكښې هم دغه عادت دې چه هغوى په خيټه باندې پرمخې اوده كيږى.

② چه كافران كله دوزخ كښې اچولې شى هغوى به پرمې پريوتلې پراته وى نودَدوزخيانو هيئت په دوزخ كښې به هم داسې وى په دې وجه يومسلمان له دا هيئت اختيارول نه دى پكار.دامطلب زيات واضح دې.

الحمد لله نن د جمعې په سحر لس منټه كم يوولس بجې څلور ستمبر ۲۰۲۰ باندې د تسهيلات د دې جلد د نظرثانى څخه فارغ شوم الله تعالى دې په خپل دربار كښې قبول كرى.آمين

(الحمد لله ! نهم جلد خم شو.)